# کشف الباری

## عما فی

# صحیح البخاری

## کتاب فضائل القرآن، کتاب النکاح، کتاب الطلاق


**مؤلف** ← صدر وفاق المدارس مولانا سلیم الله خان مدظله العالی
شیخ الحدیث جامعه فاروقیه کراچی

**ترتیب وتحقیق** ← مولانا ابن الحسن عباسی (مؤلف درس مقامات)

**ترجمه** ← مولانا شاه فیصل فاضل وفاق المدارس، امداد العلوم


**جلد ۱۲**

### خصوصیات

① داحادیثو تخریج
② د تعلیقات بخاری تخریج کول
③ د اسماء الرجال مختصر تعارف
④ دګرانو لغاتو لغوی صرفی او نحوی حل
⑤ ماقبل باب سره د ربط په باره کښې پوره تحقیق
⑥ د شرحې د هرې خبرې په حاشیه کښې حواله ورکول
⑦ د ترجمة الباب مقصد په بیانولو کښې پوره تحقیق
⑧ د مختلفو مذاهبو تحقیقی بیان او بیا د مذهب حنفی ترجیح
⑨ دحدیث اطراف بیانول چه په بخاری کښې داحدیث په کوم کوم ځائې کښې دې


**خورونکی** فیصل کتب خانه محله جنګی پیښور
موبائل:- ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵

دکتاب نوم:- کشف الباری عما فی صحیح البخاری

جلد: کتاب فضائل القرآن، کتاب النکاح، کتاب الطلاق

شارح: صدر وفاق المدارس شیخ الحدیث مولانا سلیم اللہ خان مدظلہ العالی

ترتیب وتحقیق: مولانا ابن الحسن عباسی استاذ جامعہ فاروقیہ کراچی

پښتو مترجم: مولانا شاہ فیصل فاضل امداد العلوم و وفاق المدارس

ایم اے اسلامیات و عربی پېښور یونیورسټی



**د ملاویدو پتې: د فیصل کتب خانه پښور څخه علاوه**

- رشیدیه کتب خانه اکوړه خټک
- علمیه کتب خانه اکوړه خټک ۰۹۲۳۶۳۰۵۹۴
- مکتبه رشیدیه کوئټه ۰۸۱۲۶۶۲۲۶۳
- مکتبه عثمانیه کانسی روډ کوئټه ۰۳۰۱۳۷۳۷۰۳۰
- مکتبه یوسفیه کانسی روډ کوئټه ۰۳۲۱۰۸۲۸۹۳۰
- راشد کتب خانه چمن ۰۳۰۰۳۸۹۶۳۵۳
- مکتبه عمریه تاج میر روډ چمن بلوچستان
- مکتبه علوم اسلامیه تاج میر روډ چمن بلوچستان ۰۳۳۳۷۹۵۸۶۹۶
- مکتبه حقانیه چمن ۰۳۳۳۷۷۵۲۲۱۹
- صداقت کتب خانه قندهار افغانستان ۰۷۸۷۷۴۲۳۲۱
- مکتبهٔ رحمانیه قندهار افغانستان ۰۷۹۷۷۳۵۲۸۱
- مکتبه عبدالحي قندهار افغانستان ۰۷۰۰۸۲٤۳۳٤
- اسدالله کتب خانه قندهار افغانستان ۰۷۰۷٤۷۷٦۲۷
- مکتبهٔ غفاریه قندهار افغانستان ۰۷۰۰۳٤۱۷٤۹
- مکتبهٔ رشیدیه قندهار افغانستان ۰۷۷۲۲۱۰۷۰۹
- مکتبهٔ حبیبیه قندهار افغانستان ۰۷۹۹٤٤۷٤۱۳
- مکتبهٔ القدس قندهار افغانستان ۰۷۰۷۹٤۸۵۵۹
- قدرت کتب خانه کابل افغانستان ۰۷۹۹۲۱۹۲۰۳
- عبدالمجید کتب خانه جلال آباد ۰۷۰۸۱۹۷۷۴۹
- شاهین کتب خانه خوست افغانستان
- بلال کتب خانه خوست افغانستان
- اسلامي کتب خانه خوست افغانستان ۰۷۹۹۳۱۰۲۴۷

# فهرست مضامین

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

| شمیرہ | مضمون | صفحہ |
| --- | --- | --- |

## ۹_ بَابُ نِكَاحِ الْأَبْكَارِ



## ۱۱_ بَابُ تَزْوِيجِ الصِّغَارِ مِنَ الْكِبَارِ



## ۱۳- بَابُ اتِّخَاذِ السَّرَارِيِّ وَمَنْ أَعْتَقَ جَارِيَتَهُ ثُمَّ تَزَوَّجَهَا



## ۱۴- بَابُ مَنْ جَعَلَ عِتْقَ الْأَمَةِ صَدَاقَهَا

| شميره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

| شمیره | مضمون | صفحه |
| --- | --- | --- |

| شمیرہ | مضمون | صفحہ |
|---|---|---|

## ۷۱- كتاب الطلاق



## ۲- بَاب مَنْ طَلَّقَ وَهَلْ يُوَاجِهُ الرَّجُلُ امْرَأَتَهُ بِالطَّلَاقِ

## ۱۱- بَابُ الْخُلْعِ وَكَيْفَ الطَّلَاقُ فِيهِ

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

| صفحہ | مضمون | شمیرہ |
|---|---|---|



## ۲۲- بَابُ الْإِشَارَةِ فِي الطَّلَاقِ وَالْأُمُورِ



## ۲۳- بَابُ اللِّعَانِ

| شميره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

## يو وضاحت

### كتاب فضائل القرآن: الاحاديث (۴۲۹۴- ۴۷۷۵)

د صحيح بخاری کتاب فضائل القرآن په ۳۷ بابونو مشتمل دي او په دې کښې امام بخاری ټول (۹۹) احاديث مرفوعه ذکر کړی دی په دې کښې د معلق او متابعاتو تعداد اتلس دې او باقی ۸۱ احاديث موصوله دی ۷۳ احاديث په کښې مکرر دی يعنی هغه مخکښې تير شوی دی او باقی ۲۶ احاديث هغه دی چه امام دلته په اول ځل ذکر کړی دی د فضائل قرآن د يوولسو احاديثو نه علاوه باقی ټولو احاديث امام مسلم رحمه الله هم نقل کړی دی په دې وجه ددې باب اکثر احاديث متفق عليه دې کتاب فضائل القرآن کښې امام بخاری رحمه الله د صحابو رضی الله عنهم او سلف صالحينو اووه آثار هم نقل کړی دی ـ

..............................

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

حامداً ومصلياً:

**د مرتب درخواست:** دصحیح البخاری د جلد ثانی نه د کشف الباری دریم جلد ستاسو په لاسونو کښې دې داپه کتاب فضائل القرآن،کتاب النکاح او کتاب الطلاق باندې مشتمل دې کتاب التفسیر د کتاب المغازی نه درې کاله ورسته راغلې وو ددې دریم جلد په ترتیب ،تحقیق ، تعلیق او کتابت او طباعت کښې دوه کاله وخت اولګیدلو ،دکشف الباری کتاب المغازی اوکتاب التفسیر هریو د جدا جدا موضوع په وجه دمستقل کتاب حیثیت لری همدا شان دا جلد هم د جدا موضوع په وجه د مستقل کتاب حیثیت لری دا جلد چه د صحیح البخاری د کومې حصې په تشریح مشتمل دې په دې حصه کښې امام بخاری رحمه الله د انسان د ازدواجي ژوند متعلق د نبی کریم ﷺ احادیث مبارکه او د صحابه رضی الله عنهم او سلف صالحینو رحمهم الله آثار او اقوال خپل خاص او منفرد اسلوب سره جمع کړی دی امام بخاری رحمه الله په کتاب فضائل القرآن کښې (۳۷) بابونه ،کتاب النکاح کښې (۱۳۶) بابونه او کتاب الطلاق کښې (۵۳) بابونه قائم کړی دی نو په دې جلد کښې ټول (۲۱۶) بابونه دی دا بابونه په(۳۳۵) مرفوع،احادیثو او د حضرات صحابه کرامو رضی الله عنهم او سلف صالحینو رحمهم الله په (۱۳۳) آثارو باندې مشتمل دې

مرفوع احادیثو کښې (۳۲۷) احادیث مکرر دی او (۱۱۸) احادیث په اول ځل امام بخاری رحمه الله ذکر کړی دی دغه په اول ځل راغلی احادیثو په تخریج کښې په حاشیه کښې د صحاح سته نه شوې دې کتاب النکاح کښې امام بخاری رحمه الله د رضاع مسائل هم بیان کړی دی دغه شان کتاب الطلاق کښې د لعان، ظهار او عدت مسائل هم راغلی دی .

په ترتیب او تحقیق کښې هم د دغه امورو خیال ساتل شوې دې د کوم ذکر چه مخکنی جلدونو کښې شوې دې ترجمة الباب ، د امام بخاری رائې او رجحان ، د ائمهاربعه مسلك، او بحث طلب مسائلو کښې د دوی د دلائلو د وضاحت اهتمام شوې دې د هر کتاب په ابتداء کښې د هغې سرسری تعارف هم کړې شوې دې

دې عظیم علمی کار دپاره چه د کوم علمي ، روحانی ، او جسمانی قوتونو او صلاحیتونو د روښانه لالټین ضرورت دې د خپل ژوند په بیایان کښې د لرې لرې پورې د هغې رنړا نه ښکاری خو په دې خیال زما همت کلك او زیاتیږی چه الله جل شانه کمزوزې ګیاه لره د درونډ غر د استحکام عطاء کولې شی بې وسه میږې د سلیمان علیه السلام ملګرې کولې شی یوې ذره ته وسعت او فراخوالي ورکولې شی اود مخالف موسم بې رونقئ د فصل ګل په رونقونو بدلولې شی .

الله تعالی خالص په خپل فضل او کرم سره د د رې جلدونو د ترتیب کولو توفیق ماته نصیب کړه او د هغه د فضل نه مې دا امید دې چه هم دغه شان به راتلونکی جلدونه هم مکمل شی

آخر کښې د لوستونکو نه د حضرت شیخ الحدیث دامت برکاتهم د صحت او عافیت دپاره د خصوصی دعاګانو درخواست دې چه دا کار الله تعالی د هغوی د شفقت په سیوری کښې مکمل کړی اودې ناکاره ته د باقی حصو دتکمیل توفیق نصیب کړی او په وختونو کښې برکت او د ترتیب او تحقیق په مراحلو کښې آسانی پیدا کړی آمین _ وصلی الله علی خیر خلقه محمد وآله وصحبه اجمعین

ابن الحسن عباسی ۱۵ ذی قعده ۱۴۲۰ ھ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

# ۶۹= كِتَابُ فَضَائِلِ الْقُرْآنِ

امام بخاری د کتاب ا لتفسیر نه روسته کتاب فضائل القرآن ذکر کړو د دواړو بابونو په مینځ کښې مناسبت بیخی ښکاره دې د ابو ذرد نسخې نه علاوه باقی نسخو کښې لفظ د کتاب په دې مقام کښې نشته (۱)

فضائل جمع د فضیلة ده دا د «نقیصة» ضد دې د فضل او فضیلت دواړو یوه معنی ده (۲)
آیا د قرآن یوه حصه د بلې حصې نه افضله ده او که نه ؟ ؟

په دې مقام کښې د فضائل قرآن د مناسبت په وجه یو بحث کیږی چه د قرآن کریم بعضې حصه د بعضې نورو حصو نه افضله وی که نه ؟ په دې مسئله کښې اختلاف دې او دا اختلاف د دویمې هجرئ صدئ نه پس هغه وخت پیدا شو چه د خلق القرآن مسئله رااوچته شوه د دې نه مخکښې په دې مسئله کښې هیڅ قسم اختلاف نه وو د قرآن کریم د بعضې سورتونو او خاص آیاتونو متعلق چه فضائل راغلی دی په هغې کښې هیڅ قسم تاویل ته ضرورت پیښ شوې نه وو خوپه دویمه هجری صدئ کښې چه کله د خلق القرآن مسئله رااوچته شوه او جمهور اهل سنت او ائمؤ د معتزله فرقې په رد کښې د کلام الله د غیر مخلوقیت عقیدې وضاحت اوکړو هغه وخت دا مسئله مخې ته راغله (۳)

د معتزلؤ په نیز کلام الله چونکه مخلوق دې او د مخلوق په ما بین کښې د تفضیل نه انکار نشی کیدې په دې وجه د قران د یوې حصې افضل کیدل د بلې حصې نه دهغوی په نیزڅه د اشکال خبره نه ده خودمره ده چه اهل سنت په نیز په دې مسئله کښې دوه مذهبه پیدا شول

① د امام ابو الحسن اشعري ،قاضی ابو بکر باقلانی ، احمد بن کلاب او د متاخرینو شافعیه مذهب دا دې چه قرآ کریم کښې تفاضیل نشته یعنی دا اووئیل چه د قرآن کریم بعضې حصه د بعضې نورې نه افضله ده صحیح خبره نه ده (۴)

یوه وجه ده دا چه که یوه حصه د بلې نه افضله ومنلې شی نو د مفضل علیه د ناقصیت وهم پیدا کیږی او قران خو د هر قسم نقصان نه پاك دې (۵)

دویمه وجه دا ده چه کلام الله د الله تعالی صفت قدیمه دې اوپه صفات قدیمه کښې تفاضل جائز نه دې پهدې وجه د تاضل قول صحیح نه دې بلکة ابوعبدالله دراج په دې موضع باندې مستقله رساله تفاصل لیکلې ده او په هغې کښې په امتناع د تفاضل باندې د اهل سنت اجماع نقل کړې ده لکه هغه لیکی: «أجمع أهل السنة على أن ما ورد في الشرع مما ظاهره المفاضلة بين

---

۱ ) فتح الباری (٤١٩) وعمدة القاری (١١\١٢٠)_
۲ ) عمدة القاری (١١\١٢٠)_
۳ )فتاوی ابن تیمیة کتاب التفسیر (١٧\٥٣)_
٤ ) التعلیق الصبیح (٣\٣٢)_
۵ ) فتاوی شیخ الإسلام ابن تیمیه کتاب التفسیر (١٧\٦٩)_

آی القرآن وسورة ليس المراد به تفضيل ذوات بعضها على بعض إذ هم كله كلام الله وصفة من صفاته بل هو كله لله فاضل كسائر صفاته الواجب لها نعت الكمال)) (۳)

باقي كومو آياتونو يا سوتونو ته چه افضل يا اعظم وئيلې شوې دی‌دا حضرات ئې دوه مطلبه بيانوی

① يو دا چه د افضل او اعظم نه مراد عظيم او فاضل والې مراد دې يعنی ددې نه مقصود نفس فضيلت او عظمت دې د بل څيز په مقابله كښې اعظم او افضليت مراد نه دې (۴) يا افضل او اعظم ئې ورته په اعتبار د ثواب او جزاء وئيلې دې يعنی دغه حصه د بلې حصې نه د ثواب په اعتبار سره افضله او غوره ده او د ثواب په اعتبا سره په تفاضل كښې د چا اختلاف نشته ځكه چه ثواب او جزاء مخلوق دې او په مخلوق كښې تفاضل د ټولو په نيز صحيح دې (۱)

② دويم مسلك د جمهورو امت او ائمه اربعه دې چه د قرآن كريم بعضې حصه د بعضې بلې حصې نه افضل ده (۲)

د دې حضراتو مستدلات هغه نصوص دی په كومو كښې چه د مختلفو آياتونو او سورتونو فضيلت او عظمت او خاص اهميت بيان شوې دې چه منجمله د هغې نه څو فضائل راروان دی مثلاً آية ا لكرسئ ته د قرآنی آياتونو سردار وئيلې شوې ده سورة يسين ته قلب القرآن وئيلې شوی دی سورة اخلاص د ثلث القرآن مساوی ګڼړلې شوې دې دا ټول نصوص په دې خبره دلالت كوی چه د قرآن يوه حصه به په بله حصه افضليت لری

پاتې شوه دا خبره چه بعضو لره په بعضو فضيلت وركړې شی نو د مفضل عليه د نقص وهم لازميږی دا څه وزنی دليل نه دې يو څيز كه د بل څيز په مقابله كښې افضل اوګڼړلې شی د هغې مطلب هيڅكله دا نه وی چه ګويا دا بل څيز ناقص دې بعضې انبياء د نورو انبياؤ نه افضل دی خو ددې مطلب دا نه دې چه مفضل عليه كښې نقص يا كمې او كوتاهی موجود ده بيا كه چا ته دا وهم واقع كيږی نو د هغه د وهم په وجه خو دا صحيح او صريح روايات نشی رد كولې دا د جمهورو عالمانو مسلك دې (۳)

لكه علامه ابن تيميه رحمه الله چه ليكی :((والقول بأن كلام الله بعضه أفضل من بعض هو القول المأثور عن السلف وهو الذی عليه أئمه الفقهاء من الطوائف الأربعة وغيرهم)) (۳)

مثلاً قل هو الله احد او ((تبت يدا أبی لهب)) دا دواړه دا لله تعالى كلام دې خو د متكلم فيه په اعتبار سره دواړو كښې تفاضل دې يو كښې متكلم فيه د الله تعالى جل شانه ذات او صفات دی او په دويم كښې يو كافر متكلم فيه دې په دې اعتبار سره په دواړو كلامونو

---

۱ ) فتاوی شيخ الإسلام ابن تيميه (۷۳\۱۷)_

۲ ) فتاوی شيخ الإسلام ابن تيمية (۶۹\۱۷)_

۳ ) مجموع فتاوی شيخ الإسلام ابن تيمية (۱۳\۱۷ ، التعليق الصبيح :۳۲/۳)_

٤ ) مجموع فتاوی شيخ الإسلام احمد بن تيمية كتاب التفسير (۱۳\۱۷)_

كښې تفاوت او تفاضل دې (١)
په قرآن کريم کښې د تفاضل دا اختلاف په حقيقت کښې په يو بل مشهور اختلاف باندې مبنى دې او هغه دا چه کلام الله شئ واحد دې که شئ متعدد ، د اشاعرو په نيز کلام الله شئ واحد دې په دې کښې هيڅ قسم تنوع او تعدد نشته او کله چه تنوع او تعدد نشته نو خپل مينځ کښې د تفاضل سوال نه پيدا کيږى ليکن د نورو عالمانو په نيز کلام الله شئ واحد نه دې لکه علامه قسطلانى چه تقديم وتاخير ليکى :

((ولعل الخلاف فى هذه المسئلة يلتفت إلى الخلاف المشهور أن كلام الله شئ واحد أم لا وعند الشعرى أنه لايتنوع فى ذاته بل بحسب متعلقاته وليس لكلام الله الذى هو صفة ذاته بعض لكن بالتاويل والتعبير، وفهم السامعين اشتمل على أنواع المخاطبات ولولا تنزله فى هذه المواقع لما وصلنا إلى فهم شئ منه))(٢)

## بَاب كَيْفَ نَزَلَ الْوَحْيُ وَأَوَّلُ مَا نَزَلَ

دصحيح بخارى په اکثرو نسخو کښې د ((نزول الوحى)) لفظ دې نزول مصدر دې خو د ابو ذر په نسخه کښې د ((نزل الوحى)) الفاظ دى يعنى د مصدر په ځائې ((نزل)) د ماضى صيغه ده (٣)
د حافظ ابن حجر رحمه الله نه په دې مقام کښې تسامح واقع شوې دې هغوى نزول ته د جمع صيغه وئيلې ده (۴)
علامه عينى رحمه الله دوى راګير کړى دى او ليکى

((وقال بعضهم كيف نزول الوحى بصيغة الجمع قلت كأنه ظن من عدم وقوفه على العلوم العربية لفظ النزول جمع وهو غلط فاحش وإنما هو مصدر من نزل ينزل نزولا))(١)

**قوله:** قال ابن عباس المهيمن :الأمين ،القرآن أمين على كل كتاب

**قبله:** د سورة مائدې په آيت نمبر (۴۸) کښې دى ((وأنزلنا إليك الكتاب بالحق مصدقاً لما بين يديه من الكتاب ومهيمناً عليه)) يعنى مونږ په تاسو داسې يو رښتينې کتاب نازل کړې دې چه د مخکنو کتابونو تصديق کونکې دې او د هغې د مضامينو نګهبان دې
علامه شبير احمد عثمانى رحمه الله د دې آيت لاندې ليکى :
د مهيمن څو معانى بيان شوى دى امين ، غالب . حاکم ، نګهبان ، او محافظ او د هرې معنى په اعتبار سره قرآن کريم د مختلفو کتابونو دپاره مهيمن کيدل صحيح دى د الله تعالى چه کوم امانت په تورات . انجيل او نورو آسمانى کتابونو کښې وديعت کړې شوى

---

١ ) فتاوى شيخ الإسلام ابن تيمية (١٧\٦٧،٦٨)_
٢ ) ارشاد السارى (١١\٢٥٤)_
٣ ) ارشاد السارى (١١\٢٥٤)_
٤ ) فتح البارى (٩\٤)_

وود زياتي ځيز سره په قران كښې محفوظ دی په هغې كښې هيڅ خيانت نه دې شوې او كوم چه فروعي ځيزونه په هغه كتابونو كښې د مخصوص مخاطبينو يا د زمانې د حال موافق وو هغه قرآن منسوخ كړل او كوم حقائق چه نا مكمل وو د هغې ئې تكميل اوكړو او كومه حصه چه د موجوده وخت په اعتبار سره غير مهمه وه هغه ئې بيخي پريخوده (۲)

دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما دا تعليق عبدبن حميد په خپل تفسير كښې موصولاً نقل كړې دې فرمائي (۳)

[۴۶۹۳] حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ مُوسَى عَنْ شَيْبَانَ عَنْ يَحْيَى عَنْ أَبِي سَلَمَةَ قَالَ أَخْبَرَتْنِي عَائِشَةُ وَابْنُ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ قَالَا لَبِثَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَكَّةَ عَشْرَ سِنِينَ يُنْزَلُ عَلَيْهِ الْقُرْآنُ وَبِالْمَدِينَةِ عَشْرَ سِنِينَ [ر: ۳۶۹۵]

د عبيدالله بن موسى استاذ شيبان بن عبدالرحمن دې چه كنيت ئې ابو معاويه دې دده شيخ يحى بن ابى كثير دې او د يحيى شيخ ابو سلمه بن عبدالرحمن بن عوف دې دا حديث په كتاب المغازى كښې تير شوې دې (۱)

[۴۶۹۵] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ قَالَ سَمِعْتُ أَبِي عَنْ أَبِي عُثْمَانَ قَالَ أُنْبِئْتُ أَنَّ جِبْرِيلَ أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعِنْدَهُ أُمُّ سَلَمَةَ فَجَعَلَ يَتَحَدَّثُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِأُمِّ سَلَمَةَ مَنْ هٰذَا أَوْ كَمَا قَالَ قَالَتْ هٰذَا دِحْيَةُ فَلَمَّا قَامَ قَالَتْ وَاللّٰهِ مَا حَسِبْتُهُ إِلَّا إِيَّاهُ حَتَّى سَمِعْتُ خُطْبَةَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُخْبِرُ خَبَرَ جِبْرِيلَ أَوْ كَمَا قَالَ قَالَ أَبِي قُلْتُ لِأَبِي عُثْمَانَ مِمَّنْ سَمِعْتَ هٰذَا قَالَ مِنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ [ر: ۳۴۳۵]

معتمر بن سلمان فرمائي چه ما د خپل والد سليمان نه اوريدلي وو او هغه د ابو عثمان عبدالرحمن نهدى نه نقل كړى دى چه ماته خبر راكړې شوې وو چه حضرت جبرئيل عليه السلام نبى كريم ته راغلو او د نبى كريم ﷺ سره ام سلمه رضي الله عنها موجوده وه حضرت جبريل عليه السلام په خبرو كولو شروع اوكړه نبى كريم ﷺ د ام سلمې رضي الله عنها نه تپوس اوكړو دا څوك دې؟ هغې عرض اوكړو دا دحيه (صحابى) دې بيا چه نبى كريم ﷺ پاڅيدو نو حضرت ام سلمې عرض اوكړو قسم په رب ما خو دې دحيه رضي الله عنه ګنړلو تر دې چه ما د رسول الله خطبه واوريده چه هغوى د حضرت جبريل عليه السلام خبرې نقل كولې (دهغې نه اندزه لګيده چه د نبى ﷺ ته چه څوك راغلې وو هغه حضرت جبريل عليه السلام ووچه د دحيه رضي الله عنه په شكل كښې راغلې وو)

**قوله:** قَالَ أَبِي قُلْتُ لِأَبِي عُثْمَانَ مِمَّنْ سَمِعْتَ هٰذَا: معتمر بن سليمان فرمائى چه زما پلار (سليمان) وئيلى دى چه ما د خپل شيخ ابو عثمان نه تپوس اوكړو چه تا دا حديث د چا نه اوريدلې دې؟ نو ابو عثمان اوفرمائيل چه ما د حضرت اسامه بن زيد رضي الله عنه نه اوريدلې دې چه د رسول الله ﷺ محبوب وو

په پورتنى سند كښې ابو عثمان حديث مرسل بيان كړې دې ددې وجې د هغوى شاګرد

---

۱) صحيح البخارى كتاب المغازى رقم الحديث (۴۶۴۴) ص: ۹۲۰)_

سليمان د هغوى نه تپوس اوکړو چه تاسو د چا نه اوريدلي دي نو هغوى د حضرت اسامه بن زيد ﷺ نوم اوخودلو ـ

**خطبه د کوم څيز متعلق وه؟** ددې حديث متعلق دا خبره پاتې کيږي چه په دې خطبه کښې رسول الله ﷺ کومه خبره کړې وه او کومه قصه ئې بيان کړې وه

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه ما ته په دې باره کښې داسې څه روايت ملاؤ نشو چه د هغې نه دغه معلومه شي خو ډيره ممکن ده چه په دې کښې د بنو قريظه طرف ته د تلو کوم حکم ورکړې شوې وو هغه مراد وی ځکه چه په ،،دلائل بيهقى،، کښې د عبدالرحمن بن قاسم په طريق سره د حضرت عائشې ﷺ نه هم دغه شان روايت منقول دې چه هغوى نبى ﷺ د سورلئ په حالت کښې د يو کس سره خبرو کولو باندې ليدلې وود خبرو نه چه اوزګار شو نبى ﷺ دوى ته تشريف راوړو نو دوى ترې تپوس اوکړوچه دا څوك وو نو نبى ﷺ اوفرمائيل دې د چا پشان وو ؟ حضرت عائشې اوفرمائيل د دحيه ﷺ پشان وو نو نبى ﷺ اوفرمائيل چه دا حضرت جبرئيل وو ماته ئې د بنو قريظه طرف ته د تلو حکم اوکړو.

ددلائل بيهقى ددې روايت نه دا اخذ کولې شى چه د بخارى ذکر شوې حديث باب کښې د ((يخبر خبر جبرئيل)) نه هم دا قصه او واقعه مراد ده (۱)

خو علامه عينى رحمه الله دا خبره په درې وجوه سره رد کړې ده يو دا چه په حديث باب کښې د حضرت ام سلمې ذکر دې چه هغه د نبى ﷺ سره وه او د دلائل بيهقى په روايت کښې د حضرت عائشې نوم دې دويمه دا چه راويان هم په دواړو کښې مختلف دی دريم دا چه د حديث باب نه معلوميږى چه حضرت ام سلمې ﷺ نبى ﷺ په کور کښې ليدلې وو او حضرت عائشې ﷺ د کور نه بهر د سورلئ په حالت کښې ليدلې وو ددې وجې په حديث باب کښې د ((خبر جبرئيل)) نه د بنو قريظه واقعه مراد نشى اخستې (۲)

خو په دواړو کښې تطبيق کيدې شى چه واقعه خو هم هغه د بنو قريظه وه خو حضرت ام سلمې او حضرت عائشې ﷺ دواړو به ليدلې وى يو په کور کښې دننه او بل د کور نه بهر، هم دا وجه ده چه علامه قسطلانى رحمه الله د علامه عينى رحمه الله د اعتراض په ترديد کښې ليکى.

((وأجاب فى إنتقاض الإعتراض : بأنه ليس فى شئ من ذلك ما يمنع إتحاد القصة فراوه كل من عائشة و أم سلمة))(۳)

[۴۶۹۶] (۴) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ حَدَّثَنَا سَعِيدٌ الْمَقْبُرِيُّ عَنْ أَبِيهِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا مِنَ الأَنْبِيَاءِ نَبِيٌّ إِلاَّ أُعْطِيَ مَا مِثْلهُ آمَنَ

---

۱) فتح البارى (۶\۹)ـ
۲) عمدة القاى (۲۰\۱۲)ـ
۳) ارشاد السارى (۱۱\۲۵۶)ـ
٤) أخرجه البخارى ايضا فى كتاب الإعتصام باب قول الله ﷺ بعثت بجوامع الكلم رقم الحديث ۷۲۶۳ ومسلم فى كتاب الإيمان باب وجوب الإيمان برسالة نبينا محمد ﷺ رقم الحديث ۱۵۲ . والنسائى فى كتاب التفسير باب قوله جل شانه ((إنا أوحينا إليک كما أوحينا إلى نوح )) رقم الحديث (۱۱۱۲۹) وفى فضائل القرآن باب كيف نزول القرآن رقم الحديث ۷۹۷۷)ـ

عَلَيْهِ الْبَشَرُ وَاِنَّمَا كَانَ الَّذِي اُوتِيتُ وَحْيًا اَوْحَاهُ اللّٰهُ اِلَيَّ فَاَرْجُو اَنْ اَكُونَ اَكْثَرَهُمْ تَابِعًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ [ر:۶۸۴۶]

سعيد مقبرى د خپل پلار نه نقل كوى چه نوم ئې كيسان دې او هغوى د حضرت ابوهريره ﷺ نه نقل كوى چه نبى ﷺ فرمائيلى دى چه په پيغمبرانو كښې يو پيغمبر هم داسې نه دې تير شوې چه يوه معجزه ورته هم نه وى وركړې شوې چه د هغې معجزې په وجه خلقو ايمان راوړې وې يعنى هر نبى ته يوه نه يوه معجزه ضرور وركړې شوې وه چه د هغې مشاهده به ئې اوكړه نو خلق به ايمان راوړو ته مجبوره شو خو په دې باره كښې چه كوم څيز ماته راكړې شوې دې هغه وحى الهى ده كومه چه الله تعالى په ما باندې نازل كړې ده ددې وجې زما اميد دې چه د قيامت په ورځ به زما د تابعدارو شمار دټولو نه زيات وى .

**د حديث باب څلور مطلبونه** : امام نووى ددې حديث درې مطلوبه بيان كړى دى

① يو دا چه هر يو نبى ته معجزه وركړې شوې ده ددې پشان معجزه به د دوى نه وړاندې پيغمبرانو ته هم وركړې شوې وه خو زما لويه معجزه قران كريم دې او دا يوه داسې معجزه ده كومه چه زما نه وړاندې چاته هم نه ده وركړې شوې ددې وجې د قيامت په ورځ به زما د امت شمار د ټولو نه زيات وى

② دويم مطلب دا دې چه نورو پيغمبرانو ته كومې معجزې وركړې شوې وې په هغې كښې د جادو او سحر د لارې ګمان ووچه خلقو به هغې باندې د جادو او سحر ګمان كولو خو كومه معجزه چه ماته راكړې شوې ده په دې كښې داسې قسم ګمان نشى كولې

③ دريم مطلب دا دې چه د نورو انبياؤ معجزې به د هغوى په تلو سره ختمې شوې د هغې مشاهده صرف هغه كسانو كولې شوه كوم چه د هغوى په زمانه كښې په هغه وخت كښې حاضر وو خو قرآن كريم يوه داسې معجزه ده چه د قيامت تر ورځې پورې هر سړې ددې مشاهده كولې شى (۱)

په دې درې مطلبونو كښې څه تضاد نشته ټول مراد كيدې شى په اصل كښې د حديث سياق د نورو پيغمبرانو د معجزاتو او د نبى كريم ﷺ په معجزه كښې د فرق ښكاره كولو دپاره دې او ذكر شوى درې واړه مطلبونو نه فرق ښكاره كيدې شى .

محشى د بخارى علامه سندى رحمه الله يو بل مطلب بيان كړې دې او هغه دا دې چه د ((امن عليه البشر)) نه د نورو پيغمبرانو د معجزانو ښكاره والې خودل مقصود دې چه هغه معجزات داسې ښكاره وې چه د هغې مشاهده به ئې اوكړه نو زړه به پخپله ايمان راوړو باندې مجبوره شو لكه مړى ژوندى كول د كاڼى نه اوښه راوتل وغيره خو د نبى كريم ﷺ د معجزه قرآن پاك ادراك د كمال عقل نه بغير نشى كيدې نو نبى ﷺ ته چه د قرآن معجزه وركړې شوې ده دا په دې خبره دليل دې چه د امت محمديه د خلقت بنياد په كمال عقل باندې كيخودې شوې دې او د كمال عقل وصف دوى ته وركړې شوې دې ددې وجې ددې

۱) شرح مسلم للنوى (۱۱\۸۶) وعمدة القارى (۲۰\۱۳)۔

امت نه هم دا امید دي چه ددې اکثریت به ایمان راوړی ځکه چه د کمال عقل هم دا تقاضا ده(۱)

د «وإنما كان الذي أوتيته» کښې د «إنما» کلمه د حصر ده خو د نبی ﷺ معجزات صرف قرآن کریم کښې منحصر نه دی د دوی ﷺ نورې هم ډیر معجزې شته خو په دې ټولو کښې قرآن کریم چونکه یو لازواله او لویه معجزه ده ددې وجې په کلمه حصر سره په خصوصیت سره ددې ذکر اوکړې شو (۲)

**قوله**: مَا مِنَ الْأَنْبِيَاءِ نَبِيٌّ إِلَّا أُعْطِيَ مَا مِثْلُهُ آمَنَ عَلَيْهِ الْبَشَرُ: په دې جمله کښې «ما» موصوله ده او دا د فعل «اعطی» دپاره مفعول به ثانی دې «مثله» مبتداء ده او «آمن علیه البشر» پوره جمله ددې خبر دې مبتدا او خبر چه دواړه ملاؤ شو د «ما» موصوله دپاره صله ده

د «آمن» په صله کښې باء او لام استعمالوی او دلته «علی» استعمال شوې دې کوم چه په معنی د لام کښې ده «أی آمن لأجله البشر» او د لام په ځائې د «علی» د استعمال وجه دا ده «آمن» د غلبې معنی لره متضمن دې مطلب دا دې چه ددې معجزې شان به دا وی چه ددې مشاهده اوکړی نو انسان به په ایمان راوړو باندې مجبوره او مغلوب شی او د هغې رد کولو دپاره څه وجه باقی نه پاتې کیږی (۳)

علامه طیبی رحمه الله فرمائی «علیه» د «آمن» د فاعل نه حال واقع شوې دې یعنی په دې معجزه باندې انسان ایمان راوړی په داسې حال کښې چه هغه ددې چیلنج او مقابله نه مغلوبه شی (۴)

دا حدیث امام بخاری دلته په اول ځل ذکر کړې دې او وړاندې په کتاب الاعتصام کښې ئې هم دا ذکر کړې دې امام مسلم او امام نسائی هم ددې تخریج کړې دې ـ

[۴۶۹۷] حَدَّثَنَا (۵) عَمْرُو بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا أَبِي عَنْ صَالِحِ بْنِ كَيْسَانَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ أَخْبَرَنِي أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ اللَّهَ تَعَالَى تَابَعَ عَلَى رَسُولِهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْوَحْيَ قَبْلَ وَفَاتِهِ حَتَّى تَوَفَّاهُ أَكْثَرَ مَا كَانَ الْوَحْيُ ثُمَّ تُوُفِّيَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدُ

---

۱) حاشیة البخاری للسندی (۷۴٤/۲)ـ
۲) ارشاد الساری (۲۵۷\۱۱)ـ
۳) عمدة القای (۱۳\۲۰)ـ
٤) عمدة القاری (۱۳/۲۰)- وشرح طیبی )ـ
۵) وأخرجه مسلم فی أوائل کتاب التسیر رقم الحدیث (۳۰۱۶) والنسائی فی کتاب فضائل القرآن باب کیف نزول القرآن رقم الحدیث (۷۹۸۳)ـ

دا حدیث هم امام بخاری دلته په اول ځل نقل کړې دې حضرت انس بن مالک رضي الله عنه فرمائی چه په رسول الله ﷺ باندې د هغوی د وفات نه وړاندې څو ځله پرله پسې الله تعالی وحی راولیږله تردې چه نبی ﷺ پورته کړې شو یعنی د نبی ﷺ د وفات نه څه موده وړاندې نه واخله تر وفاته پورې چه کومه موده ده په هغې کښې وحی الهی پرله پسې په تواتر سره نازلیدله په دغه زمانه کښې وحی د باقی نورو ټولو زمانو نه زیاته وه بیا ددې نه پس نبی ﷺ وفات شو۔

**قوله:** حتی تَوَفَّاهُ أَكْثَرَمَا كَانَ الْوَحي: «اکثر» د «الوحی» د لفظ نه حال واقع شوې دې «ما» موصوله ده او د «أكثر» دپاره مضاف الیه ده «أی أكثر ما كان الوحی نزولاً علیه من غیره من الأزمنة»

**قوله:** ثُمَّ تُوُفِّيَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدُ: «بعد» مبنی بر ضمه دې ځکه چه ددې مضاف الیه محذوف منوی ده «أی بعد ذلك»

[۴۶۹۸] حَدَّثَنَا ابُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ الأَسْوَدِ بْنِ قَيْسٍ قَالَ سَمِعْتُ جُنْدَبًا يَقُولُ اشْتَكَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمْ يَقُمْ لَيْلَةً اوْلَيْلَتَيْنِ فَاتَتْهُ امْرَاةٌ فَقَالَتْ يَا مُحَمَّدُ مَا ارَى شَيْطَانَكَ الَّا قَدْ تَرَكَكَ فَانْزَلَ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ وَالضُّحَى وَاللَّيْلِ اذَا سَجَى مَا وَدَّعَكَ رَبُّكَ وَمَا قَلَى [ر: ۱۰۷۲]

## ۲= بَابُ نَزَلَ الْقُرْآنُ بِلِسَانِ قُرَيْشٍ وَالْعَرَبِ
## وَقَوْلِ اللّٰهِ تَعَالَى قُرْآنًا عَرَبِيًّا (یوسف: ۲): [الشعراء: ۱۹۵]

دا ترجمه په ابواب المناقب کښې تیره شوې ده خو هلته د «بلسان قریش» نه پس «والعرب» اضافه نشته (۱)

د بخاری شارحینو ددې ترجمې څه مقصد نه دې بیان کړې خو داسې معلومیږی چه امام بخاری یوې اختلافی مسئلې طرف ته اشاره کوی

**آیا په قرآن کریم کښې غیر عربی الفاظ شته؟:** او هغه دا چه په قرآن کریم کښې غیر عربی الفاظ واقع شوی دی که نه؟ په دې مسئله کښې دوه مذاهب دی

① د امام شافعی، ابن جریر ، طبری ، ابوعبیده ،معمر بن مثنی ، قاضی ابوبکر باقلانی او مشهور امام لغت ابن فارس رائې دا ده چه په قرآن کریم کښې غیر عربی لفظ نه دې استعمال شوې (۲)

نځکه چه الله تعالی فرمائیلی دی «إنا أنزلناه قرآناً عربیاً» او په بل ځائې کښې فرمائی «بلسان عربی مبین» نو ځکه په قرآن کریم کښې غیر عربی لفظ نه دې مستعمل.

---

۱) صحیح البخاری أبواب المناقب (۷۲۰)
۲) الإتقان ی علوم القرآن (۱۳۵/۱) النوع الثامن والثلاثون فیما وقع فیه بغیر لغة العرب)۔

باقى په قران كريم كښې چه كوم غير عربى نومونه دى لكه ابراهيم ، موسى وغيره يا ددې نه سوا نور هغه الفاظ د كومو په باره كښې چه وئيلې شى چه دا د حبشى ژبې يا سريانۍ ژبې وغيره الفاظ دى دا حضرات په دې باره كښې مختلف تاويلات كوى

بعضې حضرات وائى چه داسې لغات د «توارد اللغات» د قبيلې څنى دى يعنى لكه څنګه چه دا په حبشى ،سريانى وغيره ژبو كښې استعماليږى دغه شان دغه په عربۍ كښې هم استعماليږى نو دې ته غير عربى وئيل صحيح نه دى

بعضې حضرات وائى اګرچه دا اصلاً عربى ژبه كښې داخل نه دى خو د نورو ژبو سره د مخلوط معاشرت په وجه په عربۍ كښې هم دغه شان داخل شوى دى چه عربى ټكى ترې جوړ شوى دى (١)

امام شافعى رحمه الله فرمائيلى دى چه د پوره عربۍ لغت احاطه كول د نبى نه سوا د بل چا دپاره ممكن نه ده ددې وجې كوم كلماتو ته چه غير عربۍ وئيلى شوى دى نو دا د ناواقفيت په بنياد وئيلې شوى دى قران كريم هغه د عربۍ په حيثيت سره استعمال كړى دى (٢)

③ خو نور عالمان فرمائلى چه په قران كريم كښې غير عربى الفاظ استعمال شوى دى باقى په كومو آياتونو كښې چه د قرآناً عربياً وغيره الفاظ راغلى دى هغه په خپل ځائې ټيك دى ځكه چه يو غير عربى كلمات استعمال شى په دې سره قرآن د عربيت نه نه اوځى كه په يوه فارسى قصيده كښې يو عربى لفظ مستعمل وى نو څوك هم دا نه وائى چه دا قصيده په فارسۍ كښې نه ده هم دغه شان بعضې غير عربى كلمات چه په قرآن كښې استعمال شوى دى په دې سره د قرآن پاك په عربيت څه اعتراض نه راځى (٣)

علامه سيوطى رحمه الله هم دا قول اختيا ركړې دې دوى فرمائى چه حافظ ابن جرير طبرى رحمه الله په صحيح سند سره د حضرت ابو ميسره تابعى نه روايت نقل كړې دې چه هغوى فرمائيلى دى «فى القرآن من كل لسان» په قرآن كريم كښې د هرې ژبې الفاظ دى (۴)

**په قرآن كريم كښې څومره الفاظ غير عربى دى؟** : هغه غير عربى الفاظ اوكلمات كوم چه په قرآن كريم كښې استعمال شوى دى علامه تاج الدين سبكى ، حافظ ابن حجر او علامه سيوطى رحمهم الله دا شمار كړى دى

علامه تاج الدين سبكى رحمه الله اوويشت الفاظ شمار كړى دى (۵)

حافظ ابن حجر رحمه الله په دې باندې د څليريشتو زيادت كړې دې نو د دوارو نه يوپنځوس جوړيږى (۶)

---

١ ) الإتقان فى علوم القرآن (١٣٥/١و ١٣٦)_
٢ ) الإتقان ى علوم القرآن (١٣٦/١)_
٣ ) الإتقان فى علوم القرآن (١٣٥/١)_
٤ ) الإتقان فى علوم القرآن (١٣٥/١)_
۵ ) الإتقان فى علوم القرآن (١٤٠/١)_
۶ ) الإتقان فى علوم القرآن (١٤٠/١)_

علامه سيوطى رحمه الله په دې باندې د شپيتو زيادت كړې دې نو د هغې تعداد يو سل يوولس ته زيات دې (١)

علامه سيوطى رحمه الله په دې موضوع باندې يوه مستقله رساله «المهذب فيما وقع فى القرآن من المعرب» ليكلې ده د هغې خلاصه هغوى په «الإتقان فى علوم القرآن» كښې نقل كړې ده (٢)

بهرحال امام بخارى رحمه الله دا ترجمه قائمه كړې ده او د قرآن پاك آياتونه ئې ذكر كړې دى د هغې حضراتو تائيد كوى ځوك چه وائى په قرآن كښې غير عربى هيڅ لفظ نشته دا دلته ددې ترجمې غرض كيدې شى.

[٤٦٩٩] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ حَدَّثَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ وَأَخْبَرَنِي أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ قَالَ فَأَمَرَ عُثْمَانُ زَيْدَ بْنَ ثَابِتٍ وَسَعِيدَ بْنَ الْعَاصِ وَعَبْدَ اللَّهِ بْنَ الزُّبَيْرِ وَعَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ الْحَارِثِ بْنِ هِشَامٍ أَنْ يَنْسَخُوهَا فِي الْمَصَاحِفِ وَقَالَ لَهُمْ إِذَا اخْتَلَفْتُمْ أَنْتُمْ وَزَيْدُ بْنُ ثَابِتٍ فِي عَرَبِيَّةٍ مِنْ عَرَبِيَّةِ الْقُرْآنِ فَاكْتُبُوهَا بِلِسَانِ قُرَيْشٍ فَإِنَّ الْقُرْآنَ أُنْزِلَ بِلِسَانِهِمْ فَفَعَلُوا [ر: ٣٣١٥]

**قوله:** قُرَيْشٍ فَإِنَّ الْقُرْآنَ أُنْزِلَ بِلِسَانِهِمْ فَفَعَلُوا: قرآن كريم د قريشو په ژبه كښې نازل شوې دې ددې متعلق قاضى ابو بكر باقلانى رحمه الله فرمائى چه «إن معظم القرآن أنزل بلسان قريش» يعنى لويه حصه د قريشو په ژبه كښې نازل شوې دې (٣)

او ابو شامه فرمائى چه ابتداء د نزول د قريشو په لغت كښې نازل شوې دې بيا روسته په نورو ژبو كښې هم ددې د قراءت اجازت وركړې شو. (٤)

[٤٧٠٠] حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ حَدَّثَنَا عَطَاءٌ وَقَالَ مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ قَالَ أَخْبَرَنِي عَطَاءٌ قَالَ أَخْبَرَنِي صَفْوَانُ بْنُ يَعْلَى بْنِ أُمَيَّةَ أَنَّ يَعْلَى كَانَ يَقُولُ لَيْتَنِي أَرَى رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ يُنْزَلُ عَلَيْهِ الْوَحْيُ فَلَمَّا كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْجِعْرَانَةِ عَلَيْهِ ثَوْبٌ قَدْ أُظِلَّ عَلَيْهِ وَمَعَهُ نَاسٌ مِنْ أَصْحَابِهِ إِذْ جَاءَهُ رَجُلٌ مُتَضَمِّخٌ بِطِيبٍ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ كَيْفَ تَرَى فِي رَجُلٍ أَحْرَمَ فِي جُبَّةٍ بَعْدَ مَا تَضَمَّخَ بِطِيبٍ فَنَظَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَاعَةً فَجَاءَهُ الْوَحْيُ فَأَشَارَ عُمَرُ إِلَى يَعْلَى أَنْ تَعَالَ فَجَاءَ يَعْلَى فَأَدْخَلَ رَأْسَهُ فَإِذَا هُوَ مُحْمَرُّ الْوَجْهِ يَغِطُّ كَذَلِكَ سَاعَةً ثُمَّ سُرِّيَ عَنْهُ فَقَالَ أَيْنَ الَّذِي يَسْأَلُنِي عَنِ الْعُمْرَةِ آنِفًا فَالْتُمِسَ الرَّجُلُ فَجِيءَ بِهِ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

١) الإتقان فى علوم القرآن (١٤١/١)_
٢) الإتقان فى علوم القرآن (١٣٥/١-١٤١)_
٣) فتح البارى (١١/٩)_
٤) فتح البارى (١١/٩)_

وَسَلَّمَ فَقَالَ اَمَّا الطِّیبُ الَّذِی بِكَ فَاغْسِلْهُ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ وَاَمَّا الْجُبَّةُ فَانْزِعْهَا ثُمَّ اصْنَعْ فِی عُمْرَتِكَ كَمَا تَصْنَعُ فِی حَجِّكَ [ر:۱۴۶۳]

ددې حدیث د ترجمة الباب سره په ظاهره څه مناسبت نشته بلکه دا په اولنی باب کښې ذکر کول پکار وو چه د وحی کیفیت په کښې بیان شوې وو خو کیدې شی د کاتب د سهو په وجه په دې باب کښې راغلی وی

علامه قسطلانی رحمه الله فرمائی چه په دې باب کښې دا حدیث ذکر کړې دې او امام بخاری رحمه الله دې طرف ته اشاره کول غوښتل چه د وحی بالقرآن او وحیٔ بالسنة شان او د دواړو ژبه یوه ده (۱)

دا حدیث په کتاب الحج کښې تیر شوې دې (۲)

## ۳=بَاب جَمْعِ الْقُرْآن

قرآن مجید د الله تعالی آخری کتاب دې د خپل دې آخری کتاب د حفاظت دپاره الله جل شانه مکمل انتظام کړې دې څکه چه د قرآن د انسانانو په سینو کښې د حفاظت انتظام کړې شوې دې او ددې د نزول دپاره ئې د داسې قوم انتخاب کړې دې چه په خپل قوت حافظه کښې نظیر نه لرلو،د هغوی سینې د قومی واقعاتو ا قبائلی انسابو دپاره محفوظې خزانې وې،چه یوځل به ئې د سوونو اشعارو قصیده واوریده نو پوره قصیده به د هغوی په زړه او دماغو باندې نقش او یاده شوه په دې باندې د عربو تاریخ گواه دې ،خو بیا چونکه دا یو امی قوم وو ددې وجې د دوی سره د هرې خبرې د باقی ساتلو مدار صرف په حافظه باندې وو-

هم دا وجه وه چه قران کریم به څومره څومره نازلیدلو نو حضرات صحابه کرام رضی الله عنهم به ډیر په شوق او ذوق او دلچسپۍ سره هغه یادولو په صحابه کرام رضی الله عنهم کښې لس زره حافظان صحابه زیات مشهور وو په دوی کښې ۲۷ ته اوچت مقام حاصل وو په دوی کښې د خلفاء اربعه نه سوا حضرت عبدالله بن مسعود ، حضرت طلحه،حضرت سعد بن ابی وقاص ، حضرت حذیفه بن الیمان . حضرت ابوهریره رضی الله عنه ، حضرت سعد بن عباده رضی الله عنه ، حضرت عباده بن صامت رضی الله عنه او حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنه سرفهرست دې (۳)

بیا لکه څنگه چه د قرآن کریم په سینو کښې د حفاظت انتظام د اول نه شوې وو دغه شان تحریری صورت کښې هم ددې د محفوظ ساتلو اهتمام کړې شوې وو په مستدرك حاکم کښې په صحیح سند سره روایت دې چه قران کریم په تحریری صورت کښې درې څله جمع شوې وو ① عهدی نبوی کښې ② عهدی صدیقی کښې ③ عهد عثمانی کښې په عهد نبوی کښې د قرآن جمع ـ

---

۱ ) ارشاد الساری (۱۱\۲۶۰)ـ
۲ ) صحیح البخاری کتاب الحج (۱) رقم الحدیث (۱۵۳۶) ص، ۳۰۵)ـ
۳ ) النشر فی القراءات العشر (۶\۱۱) بحواله علوم القرآن (۱۷۶)ـ

① په عهد نبوی کښې طریقه کار دا وو چه نبی ﷺ به کله د قرآن کریم څه حصه نازله شوه نو نبی ﷺ به یو کاتب صحابی راغوښتلو او په هغه باندې به ئې اولیکله د کاتب د لیکلو نه پس به ئې بیا په خپله هغه واوریده که په هغې کښې به د کاتب نه څه غلطی شوې وه نو د هغې اصلاح به ئې اوکړه نو بیا به ئې هغه خلقو ته پیش کړه د داسې صحابو ﷺ شمار تقریباً څلویښت وو چه دا فریضه به ئې ادا کوله ددې تفصیل په وړاندې باب کښې راځی.
خو د نبی کریم ﷺ په زمانه کښې د قرآن جمع کول باقاعده په یو مصحف کښې نه وو بلکه په سپینو چمړو ،یا سپینو تراشلو کاڼړو یا تختو یا د لرګی په تختو به دا لیکلی شو.
**په عهد نبوی کښې په یو مصحف کښې د نه جمع کیدو وجوهات:** په یو مصحف کښې ددې وجې جمع نکړې شو چه د نزول قرآن په زمانه کښې د نسخې سلسله جاری وه په یو مصحف کښې د جمع کولو په صورت کښې به ناسخ او منسوخ التلاوت دواړه قسمه آیاتونه په کښې لیکلی شول او که منسوخ به ئې ویستل او ناسخ به ئې لیکل نو په دې صورت کښې به د کټ کولو مرحله راتله او دا دواړه صورتونه مناسب نه وو ددې وجې په یو مصحف کښې د جمع کولو اهتمام اونکړې شو
یوه وجه دا هم وه چه د قرآن کریم ترتیب نزولی د حالاتو او واقعاتو مطابق وو او د آیاتونو او سورتونو ترتیب د ربط مضامین په اعتبار سره وو که په عهد نبوی کښې قرآن په کتابی صورت کښې مرتب کولې شو نو چه نوې کوم آیاتونه نازلیدل هغه دخپلو مناسب آیاتونو او سورتونو سره لګولو کښې به مشکل وو (١)
**په عهد صدیقی کښې جمع د قرآن :** ② خو د حضرت صدیق اکبر ﷺ په زمانه کښې حالات بدل شول د نبی کریم ﷺ د وصف نه پس د وحی د نزول سلسله بنده شوه د قرآن کریم نزول مکمل شو ددې وجې اوس حالات ددې متقاضی شول چه قرآن کریم په یو مصحف کښې جمع کړې شي دلته د باب په اولنی روایت کښې په عهد صدیقی کښې د قرآن د جمع کولو تفصیل بیان شوې دې چه کله په جنګ یمامه کښې اویا قاریان شهیدان شول نو د حضرت عمر ﷺ په توجو ورکولو باندې حضرت زید بن ثابت ﷺ ته د یو مصحف تیارولو حکم ورکړې شو نودا مصحف د حضرت صدیق اکبر ﷺ سره وو د دوی نه پس د حضرت عمر ﷺ سره و او بیا حضرت حفصې ﷺ ته منتقل شو ددې نسخې دا خصوصیات وو.
① په دې نسخه کښې قرآنی آیاتونه مرتب خو وو خو سورتونه مرتب نه وو هر یو سورة جدا جدا وو۔ ② په دې کښې اووه حروف جمع وو③ په دې کښې صرف غیر منسوخ التلاوة آیاتونه جمع وو (٢)
**په عهد عثمانی کښې د قرآن پاک جمع کول:** ③ په دریم ځل قرآن کریم د حضرت عثمان ﷺ په زمانه کښې جمع کړې شو ددې قرآن جمع کولو پس منظر دا دې چه کله اسلام د عربو د زمکې نه بهر شوروم او ګیرچاپیره په نورو ملکونو او علاقو کښې خور شو اوپه اسلام کښې داخلیدونکې خلقو دهغه مجاهدینو او سوداګرو اوتبلیغیانو نه قرآن زده کول شروع کړو د

---
١) علوم القرآن از مولانا شمس الحق افغانی (١١٤)۔
٢) علوم القرآن (١٨٦)۔

چا په وجه چه هغوی ته اسلام نصیب شوې وو نو په قراءتونو کښې د اختلاف په وجه په عامو مسلمانانو کښې د فتنې پیدا کیدو خطره شوه چونکه قرآن کریم په اووه لغاتو نازل شوې وو او حضرات صحابه کرامو رضی الله عنهم د نبی ﷺ نه په مختلفو لغاتو سره قرآن لوستې وو نوهرصحابی به خپلو شاګردانو ته هم د هغه لغت مطابق قرآن وئیل د کوم مطابق چه هغه د نبی ﷺ نه وئیلې وو حضرات صحابه کرامو رضی الله عنهم ته خو چونکه معلومه شوه چه قرآن په اووه لغاتو نازل شوې دې ددې وجې په هغوی کښې د اختلاف ویره نه وه خو کله چه دا اختلاف لرې لرې ملکونو ته اورسیدل اود قرآن کریم په اووه لغاتو باندې د نزول حقیقت هغوی کښې پوره مشهور نشو نو په دغه وخت کښې په خلقو کښې جګړې پیدا شوې بعضې خلقو به خپل قراءت ته صحیح اودنورو قراءت ته غلط وئیل داختلاف دا صورت د فتنې سبب جوړیدل ددې وجې خبرې ضرورت پیښ شو چه د قرآن کریم داسې نسخې په عالم اسلام کښې خورې کړې شی او عام کړې شی نچه په هغې کښې د اختلاف دغه ذکر شوې صورت ختم شی نو حضرت عثمان مستقل طور څلورو صحابه کرامو ته مستقل طور د قریشو په لغت باندې د قرآن جمع کولو حکم ورکړو په دې کښې حضرت زید بن ثابت انصاری رضی الله عنه وو او باقی درې سعید بن العاص، حضرت عبدالرحمن بن حارث بن هشام، او حضرت عبدالله بن زبیر قریشی رضی الله عنهم وو دلته د باب په دویم حدیث کښې په عهد عثمانی کښې د قرآن جمع کولو تفصیل بیان شوې دې

**د مصحف عثماني خصوصيات:** د حضرت عثمان رضی الله عنه په دور کښې چه کوم مصاحف تیار شوی وو د هغې خصوصیات دا وو ـ

① په عهد عثمانی کښې کوم مصحف تیار شوې وو نپه هغې کښې سورتونه مرتب نه وو بلکه هر یو سورة جدا جدا لیکلې شوې وود عهد عثمانی په مصاحفو کښې سورتونه مرتب کړې شوی وو. ② په مصحف کښې هغه څیز اولیکلې شو کوم چه په یقین سره قرآن وو. ③ د کوم صحت چه د نبی کریم ﷺ نه ثابت وو او د هغې د غیر منسوخ التلاوت یقین وو(١)

دحضرت عثمان رضی الله عنه د دې مصاحفو او نسخو په شمار کښې اختلاف دې مشهوره دا ده چه پنځه نسخې تیارې کړې شوې وې بعضو د څلورو مصحفونو قول اختیار کړې دې خو ابو حاتم سجستانی رحمه الله ددې نسخو شمار اووه نقل کړې دې په هغې کښې یوه نسخه په مدینه منوره کښې کیخودې شوه او یوه مکه مکرمه ته یوه شام ته او یوه یمن ته او یوه بحرین ته او یوه بصره ته او یوه کوفه ته اولیږلې شوه (٢)

بیا ددې نسخو نه مسلمانانو بې شمیره نسخې نقل کړې حضرت عثمان رضی الله عنه نورې ټولې نسخې چه په کومو کښې د لغاتو اختلاف موجود وو ضائع کړې (٣)

١ ) علوم القرآن (١٩٠)-
٢ ) الإتقان فی علوم القرآن (٦٠١١) النوع الثامن عشر فی جمعه وترتیبه)_
٣ ) مباحث فی علوم القرآن للمناع القطان (١٣١) د مصاحف عثمانیه کومه نسخه چه په مدینه منوره کښې کیخودې شوې وه هغه د حضرت عثمان رضی الله عنه د شهادت [بقیه حاشیه په راروان مخ....

[٤٧٠١] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ اسْمَاعِيلَ عَنْ اِبْرَاهِيمَ بْنِ سَعْدٍ حَدَّثَنَا ابْنُ شِهَابٍ عَنْ عُبَيْدِ بْنِ السَّبَّاقِ اَنَّ زَيْدَ بْنَ ثَابِتٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ اَرْسَلَ اِلَيَّ اَبُوبَكْرٍ مَقْتَلَ اَهْلِ الْيَمَامَةِ فَاِذَا عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ عِنْدَهُ قَالَ اَبُوبَكْرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اِنَّ عُمَرَ اَتَانِي فَقَالَ اِنَّ الْقَتْلَ قَدِ اسْتَحَرَّ يَوْمَ الْيَمَامَةِ بِقُرَّاءِ الْقُرْاٰنِ وَاِنِّي اَخْشٰى اَنْ يَسْتَحِرَّ الْقَتْلُ بِالْقُرَّاءِ بِالْمَوَاطِنِ فَيَذْهَبَ كَثِيرٌ مِنَ الْقُرْاٰنِ وَاِنِّي اَرَى اَنْ تَاْمُرَ بِجَمْعِ الْقُرْاٰنِ قُلْتُ لِعُمَرَ كَيْفَ تَفْعَلُ شَيْئًا لَمْ يَفْعَلْهُ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ عُمَرُ هٰذَا وَاللّٰهِ خَيْرٌ فَلَمْ يَزَلْ عُمَرُ يُرَاجِعُنِي حَتّٰى شَرَحَ اللّٰهُ صَدْرِي لِذٰلِكَ وَرَاَيْتُ فِي ذٰلِكَ الَّذِي رَاٰى عُمَرُ قَالَ زَيْدٌ قَالَ اَبُوبَكْرٍ اِنَّكَ رَجُلٌ شَابٌّ عَاقِلٌ لَا نَتَّهِمُكَ وَقَدْ كُنْتَ تَكْتُبُ الْوَحْيَ لِرَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَتَتَبَّعِ الْقُرْاٰنَ فَاجْمَعْهُ فَوَاللّٰهِ لَوْ كَلَّفُونِي نَقْلَ جَبَلٍ مِنَ الْجِبَالِ مَا كَانَ اَثْقَلَ عَلَيَّ مِمَّا اَمَرَنِي بِهِ مِنْ جَمْعِ الْقُرْاٰنِ قُلْتُ كَيْفَ تَفْعَلُونَ شَيْئًا لَمْ يَفْعَلْهُ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ هُوَ وَاللّٰهِ خَيْرٌ فَلَمْ يَزَلْ اَبُوبَكْرٍ يُرَاجِعُنِي حَتّٰى شَرَحَ اللّٰهُ صَدْرِي لِلَّذِي شَرَحَ لَهُ صَدْرَ اَبِي بَكْرٍ وَعُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا فَتَتَبَّعْتُ الْقُرْاٰنَ اَجْمَعُهُ مِنَ الْعُسُبِ وَاللِّخَافِ وَصُدُورِ الرِّجَالِ حَتّٰى وَجَدْتُ اٰخِرَ سُورَةِ التَّوْبَةِ مَعَ اَبِي خُزَيْمَةَ الْاَنْصَارِيِّ لَمْ اَجِدْهَا مَعَ اَحَدٍ غَيْرِهِ لَقَدْ جَاءَكُمْ رَسُولٌ مِنْ اَنْفُسِكُمْ عَزِيزٌ عَلَيْهِ مَا عَنِتُّمْ حَتّٰى خَاتِمَةِ بَرَاءَةَ فَكَانَتِ الصُّحُفُ عِنْدَ اَبِي بَكْرٍ حَتّٰى تَوَفَّاهُ اللّٰهُ ثُمَّ عِنْدَ عُمَرَ حَيَاتَهُ ثُمَّ عِنْدَ حَفْصَةَ بِنْتِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ [ر: ٤٤٠٢]

حضرت زيد بن ثابت رضی الله عنه فرمائی دجنګ يمامه نه سمدستی پس حضرت ابو بکر رضی الله عنه يوه ورځ ماته پيغام راوليږل او زه ئې اوغوښتم زه چه هغوی ته ورغلم نو د هغوی سره حضرت عمر رضی الله عنه هم موجود وو حضرت ابو بکر رضی الله عنه ماته اوفرمائيل چه عمر رضی الله عنه راغلو او وس ئې

---

...دتيرمخ باقي حاشيه] نه پس حضرت علي رضی الله عنه بيا حضرت معاويه رضی الله عنه سره پاتې وه د هغې خايې نه اندلس او د اندلس نه د مراكش درالسلطنت فاس ته او د فاس نه بيا مدينې منورې ته اورسولې شوه په جنګ عظيم اول کښې د مدينې منورې ګورنر فخری پاشا دا د د نورور تبرکاتو سره قسطنطنيه ته يوړله اوهلته تر اوسه پورې موجود ده

مکي نسخه ۶۵۷ھ پورې په مکه معظمه کښې موجود وه بيا د دمشق جامع مسجد ته اورسيده د نورلسمې صدئ په آخر کښې مولانا شبلی نعمانی په جامع دمشق کښې ددې زيارت کړې وو د سلطان عبدالحميد په دور حکومت کښې کوم چه د ۱۸۷۶ء نه پس شروع کيږی مسجد جامع دمشق باندې اور اولګيدلو په هغې کښې دغه نسخه هم اوسوزيده

شامي نسخه د اندلس بادشاهانو قرطبه ته منتقل کړه او په جامع مسجد قرطبه کښې پاتې شوه د هغه ځائې نه مراکش ته او د مراکش نه د تلمان شاهی خزانې ته اورسيده بيا يو سوداګر واخسته او فارس ته ئې يوړله او هلته اوسه پورې موجود ده

يمنی نسخه د جامع ازهر مصر په کتب خانه کښې موجود ده د بحرين نسخه د فرانس په کتب خانه کښې موجود ده او د کوفي نسخه د قسطنطنيه په کتب خانه کښې موجود ده بصری نسخه په کتب خانه جديد مصر کښې وه او اوس معلومه نه ده چه کوم ځائې کښې ده د تفصيل دپاره اوګورئ (علوم القرآن از شمس الحق افغانی (۱۱۸-۱۱۹)_

ماته يوه خبره اوكړه چه په جنګ يمامه كښې د قرآن كريم د حافظانو يو لوئ تعداد شهيدان شو نو كه په مختلفو مقاماتو كښې د قرآن كريم حافظان هم دغه شان شهيدان كيږى نو ما سره ويره ده چه د قرآن كريم يوه حصه به ختمه شوه نو زما دا رائې ده چه ته په خپل حكم سره د قران كريم د جمع كولو كار شروع كړه .
ما عمر رضي الله عنه ته ووئيل كوم كار چه نبى ﷺ نه دې كړې مونږ هغه څنګه اوكړو؟ عمر رضي الله عنه جواب راكړو په الله قسم دا كار بس د خير دې ددې نه پس عمر رضي الله عنه ماته بار بار دا وئيل تردې چه په دې باندې زما شرح صدر اوشو او اوس زما رائې هم هغه شوه كومه چه د حضرت عمر رضي الله عنه وه ددې نه پس حضرت ابو بكر رضي الله عنه ماته اوفرمائيل چه ته ځوان او پوهه هلك ئې زمونږ په تا باندې څه بدګمانى نشته تاسو به د رسول الله ﷺ وړاندې د كتابت وحى كار هم كولو نو ته د قرآن كريم د آياتونو لټون كوه او دا جمع كړه
حضرت زيد بن ثابت رضي الله عنه فرمائى په الله قسم كه دې حضراتو ماته ددې حكم كړې وو چه يو غر د خپل ځائې نه اخوا كړه نو په ما باندې به دومره بوج نه وو څومره چه د قرآن پاك د جمع كولو د كار شو ما هغوى ته اووئيل تاسو هغه كار څنګه كوئ كوم چه رسول الله ﷺ نه دې كړې؟ حضرت ابو بكر رضي الله عنه اوفرمائيل په الله قسم په دې كښې بس خير دې حضرت ابوبكر رضي الله عنه ماته بار بار وئيل تردې چه الله تعالى زما سينه د هغه رائې دپاره پرانسته كومه چه د حضرت ابوبكر او عمر رضي الله عنهما رائې وه نو ما د قرآن آياتونه لټول شروع كړل اود كجورو شاخونو اود كانړود تختو اود خلقو د سينو نه مې قرآن جمع كړلو.
دا حديث په كتاب التفسير كښې د سورة براءت لاندې تير شوې دې ـ

**قوله:** فَتَتَبَّعْتُ الْقُرْآنَ أَجْمَعُهُ مِنَ الْعُسُبِ وَاللِّخَافِ وَصُدُورِ الرِّجَالِ: يعنى ما د قرآن كريم په لټون شروع اوكړه او د قجورو د شاخ او د كانړو د تختو نه اود خلقو د سينو نه مې قرآن راجمع كول شروع كړلو.

**الْعُسُبِ:** دا د عسيب جمع ده د قجورې شاخ ته وائى ـ

**وَاللِّخَافِ:** دا د «لخفه» جمع ده نرى سپين كانړى ته وائى ـ

حضرت زيد بن ثابت رضي الله عنه د قرآن په جمع كولو كښې ډير زيات احتياط كړې وو هغوى پخپله هم حافظ قرآن وو خو صرف په خپله يا د بل چا په حافظه ئې بسوالې نه كولو.
بلكه اعلان اوشو چه كوم كس سره د قرآن كريم څه حصه ليكلې شوې وى نو هغه دې زيد ته يوسى نو دا سلسله شروع شوه هيڅ يو ليكلې شوې آيت به تر هغه وخته پورې نشو قبلولې ترڅو پورې چه به دوو قابل اعتماد ګواهانو دا ګواهى ورنكړه چه دا آيت د نبى ﷺ په وړاندې ليكلې شوې دې هيڅ يو آيت د تواتر تحريرى او زبانى ګواهئ نه بغير نشو ليكلې هم په دې احتياط سره الله جل شانه د هغوى نه دا لوئې كار واخستلو او قرآن كريم په مختلفو صحيفو كښې دوى جمع كړل.(١)

---

١ ) فتح البارى (١٧١٩)ـ

دا صحيفې د حضرت صديق اکبر، بيا د حضرت عمر او ددې نه پس د حضرت حفصې رضي الله عنها سره وې بيا مروان په خپل دور حکومت کښې دا صحيفې دحضرت حفصې رضي الله عنها نه اوغوښتلې خو هغوی انکار اوکړو د حضرت حفصې رضي الله عنها د وفات نه پس مروان بن الحکم هغه صحيفې راوغوښتلې او هغه ئې په دې خيال اوسوزولې چه اوس په دې خبره باندې اجماع منعقد شوې ده چه د رسم الخط او د سورتونو د ترتيب په لحاظ سره د حضرت عثمان رضي الله عنه تيارشوی مصاحفو اتباع لازم ده د هغې د رسم الخط او ترتيب خلاف هيڅ يوه نسخ هم پاتې کول نه دی پکار.(١)

**قوله:** وأمر بما سواه من القرآن في كل صحيفة أو مصحف أن يحرق: حضرت عثمان رضي الله عنه نور مصاحف کوم چه د نورو لغاتو مطابق ليکلې شوی وو د هغې د سوزولو حکم اوکړو.

**د قرآن کريم د ضعيفو پاڼړو حکم:** ددې نه معلومه شوه که د قرآن مجيد پاڼړی ضعيفې او ناقابل قراءت شی نو د هغې د سوزولو ګنجائش شته (٢)

په بعضې رواياتو کښې «أن يخرق» په خاء معجمه سره راغلې دې يعنی هغې دې څيرې کولې شی (٣)

قاضی عياض رحمه الله فرمائی چه دغه مصاحف اول په اوبو سره اووينځلې شول او بيا اوسوزولې شو(٤)

د احنافو رحمهم الله په نيز د قرآن د ضعيفو پاڼړو د سوزولو او وينځلو په ځائې به هغه په پاك ځائې کښې دفن کړې شی د دوی په نيز سوزول مکروه دی (٥)

په درمختار کښې دا مسئله ذکر شوې ده (٦) په اصل کښې د ابراهيم نخعی په يو اثر کښې دی چه دفن کولې دې شی خو ابوبکر اثرم د امام احمد بن حنبل نه نقل کړی دی چه د هغوی نه تپوس اوشو چه آيا ابراهيم نخعی داسې فرمائيلی د نوهغوی اوفرمائيل «لا أصل له» يعنی خطيب بغدادی د ابوبکراثرم دا الفاظ نقل کړې دې (٧)

[٤٧٠٢] حَدَّثَنَا مُوسَى حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ حَدَّثَنَا ابْنُ شِهَابٍ أَنَّ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ حَدَّثَهُ أَنَّ حُذَيْفَةَ بْنَ الْيَمَانِ قَدِمَ عَلَى عُثْمَانَ وَكَانَ يُغَازِي أَهْلَ الشَّامِ فِي فَتْحِ إِرْمِينِيَةَ وَأَذْرَبِيجَانَ مَعَ أَهْلِ الْعِرَاقِ فَأَفْزَعَ حُذَيْفَةَ اخْتِلَافُهُمْ فِي الْقِرَاءَةِ فَقَالَ حُذَيْفَةُ لِعُثْمَانَ يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ أَدْرِكْ

---

١) فتح البارى (٩\٢٤)_
٢) فتح البارى (٩\٢٥)_
٣) فتح البارى (٩\٢٥)_
٤) فتح البارى (٩\٢٥)_
٥) عمدة القارى (٢٠\١٩) وامداد الأحكام (١١\٢٣٠)_
٦) الدرالمختار مع الرد المحتار (٦\٤٢٢)_
٧) ماوجدته فيما بين يدى من المراجع والمصادر)_

هَذِهِ الأُمَّةَ قَبْلَ أَنْ يَخْتَلِفُوا فِي الْكِتَابِ اخْتِلَافَ الْيَهُودِ وَالنَّصَارَى فَأَرْسَلَ عُثْمَانُ إِلَى حَفْصَةَ أَنْ أَرْسِلِي إِلَيْنَا بِالصُّحُفِ نَنْسَخُهَا فِي الْمَصَاحِفِ ثُمَّ نَرُدُّهَا إِلَيْكِ فَأَرْسَلَتْ بِهَا حَفْصَةُ إِلَى عُثْمَانَ فَأَمَرَ زَيْدَ بْنَ ثَابِتٍ وَعَبْدَ اللَّهِ بْنَ الزُّبَيْرِ وَسَعِيدَ بْنَ الْعَاصِ وَعَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ الْحَارِثِ بْنِ هِشَامٍ فَنَسَخُوهَا فِي الْمَصَاحِفِ وَقَالَ عُثْمَانُ لِلرَّهْطِ الْقُرَشِيِّينَ الثَّلَاثَةِ إِذَا اخْتَلَفْتُمْ أَنْتُمْ وَزَيْدُ بْنُ ثَابِتٍ فِي شَيْءٍ مِنَ الْقُرْآنِ فَاكْتُبُوهُ بِلِسَانِ قُرَيْشٍ فَإِنَّمَا نَزَلَ بِلِسَانِهِمْ فَفَعَلُوا حَتَّى إِذَا نَسَخُوا الصُّحُفَ فِي الْمَصَاحِفِ رَدَّ عُثْمَانُ الصُّحُفَ إِلَى حَفْصَةَ وَأَرْسَلَ إِلَى كُلِّ أُفُقٍ بِمُصْحَفٍ مِمَّا نَسَخُوا وَأَمَرَ بِمَا سِوَاهُ مِنَ الْقُرْآنِ فِي كُلِّ صَحِيفَةٍ أَوْ مُصْحَفٍ أَنْ يُحْرَقَ

قَالَ ابْنُ شِهَابٍ وَأَخْبَرَنِي خَارِجَةُ بْنُ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ سَمِعَ زَيْدَ بْنَ ثَابِتٍ قَالَ فَقَدْتُ آيَةً مِنَ الْأَحْزَابِ حِينَ نَسَخْنَا الْمُصْحَفَ قَدْ كُنْتُ أَسْمَعُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ بِهَا فَالْتَمَسْنَاهَا فَوَجَدْنَاهَا مَعَ خُزَيْمَةَ بْنِ ثَابِتٍ الْأَنْصَارِيِّ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ رِجَالٌ صَدَقُوا مَا عَاهَدُوا اللَّهَ عَلَيْهِ فَأَلْحَقْنَاهَا فِي سُورَتِهَا فِي الْمُصْحَفِ [ر: ٢٦٥٢و٣٣١٥و٣٣٠٢]

## ٣- بَابُ كَاتِبِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

[٤٧٠٣] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ يُونُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ أَنَّ ابْنَ السَّبَّاقِ قَالَ إِنَّ زَيْدَ بْنَ ثَابِتٍ قَالَ أَرْسَلَ إِلَيَّ أَبُو بَكْرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ إِنَّكَ كُنْتَ تَكْتُبُ الْوَحْيَ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاتَّبِعِ الْقُرْآنَ فَتَتَبَّعْتُ حَتَّى وَجَدْتُ آخِرَ سُورَةِ التَّوْبَةِ آيَتَيْنِ مَعَ أَبِي خُزَيْمَةَ الْأَنْصَارِيِّ لَمْ أَجِدْهُمَا مَعَ أَحَدٍ غَيْرِهِ لَقَدْ جَاءَكُمْ رَسُولٌ مِنْ أَنْفُسِكُمْ عَزِيزٌ عَلَيْهِ مَا عَنِتُّمْ إِلَى آخِرِهِ [ر: ٣٣٠٢]

[٤٧٠٤] حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُوسَى عَنْ إِسْرَائِيلَ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ عَنِ الْبَرَاءِ قَالَ لَمَّا نَزَلَتْ لَا يَسْتَوِي الْقَاعِدُونَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ وَالْمُجَاهِدُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ادْعُ لِي زَيْدًا وَلْيَجِئْ بِاللَّوْحِ وَالدَّوَاةِ وَالْكَتِفِ أَوِ الْكَتِفِ وَالدَّوَاةِ ثُمَّ قَالَ اكْتُبْ لَا يَسْتَوِي الْقَاعِدُونَ وَخَلْفَ ظَهْرِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَمْرُو بْنُ أُمِّ مَكْتُومٍ الْأَعْمَى قَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ فَمَا تَأْمُرُنِي فَإِنِّي رَجُلٌ ضَرِيرُ الْبَصَرِ فَنَزَلَتْ مَكَانَهَا لَا يَسْتَوِي الْقَاعِدُونَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ وَالْمُجَاهِدُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ غَيْرُ أُولِي الضَّرَرِ [ر: ٢٦٧٦]

دلته «كاتب» مفرد دې حافظ ابن کثير رحمه الله «كتاب» د جمعې صيغه نقل کړې ده او بيا ئې اشکال کړې دې چه امام بخارى په ترجمه کښې خو «كتاب» د جمعې صيغه استعمال کړې ده نو ددې لاندې ئې روايت صرف د يو کاتب حضرت زيد بن ثابت رضي الله عنه نوم اخستې دې فرمائى چه داسې معلوميږى چه امام بخارى رحمه الله ته د زيد بن ثابت نه علاوه د بل صحابى په باره کښې روايت د خپل شرط مطابق نه وو ملاؤ شوې

خوحافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه د بخاري په ټولو نسخو کښې ماته «كاتب» مفرد ملاؤ شوې دې جمعې سره راته چرته هم نه دې ملاؤ شوې ددې وجې په حديث او ترجمة الباب کښې مطابقت ښکاره دې (١)

خو دا خبره په خپل ځائې صحيح ده چه د وحی ليکونکې څو صحابه رضي الله عنهم وو صرف حضرت زيد بن ثابت رضي الله عنه نه وو حضرات خلفاء راشدين ، ابی بن کعب ،عبدالله بن سعد بن ابی سرح او حضرت زبيربن العوام صحابه کرام رضي الله عنهم نومونه هم په کاتبين وحی کښې شامل دی په مکه مکرمه کښې د ټولو نه وړاندې په قريشو کښې عبدالله بن سعد بن ابی سرح د وحی ليکل کړی وو په مدينه منوره کښې د ټولو نه وړاندې د وحی د کتابت سعادت حضرت ابی بن کعب رضي الله عنه ته حاصل شوې وو (٢)

## ٥=بَاب أُنْزِلَ الْقُرْآنُ عَلَى سَبْعَةِ أَحْرُفٍ

[٤٧٠٥] حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ عُفَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنِي اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِي عُقَيْلٌ عَنْ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ حَدَّثَنِي عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا حَدَّثَهُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أَقْرَأَنِي جِبْرِيلُ عَلَى حَرْفٍ فَرَاجَعْتُهُ فَلَمْ أَزَلْ أَسْتَزِيدُهُ وَيَزِيدُنِي حَتَّى انْتَهَى إِلَى سَبْعَةِ أَحْرُفٍ [ر:٣٠٤٧]

[٤٧٠٦] حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ عُفَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنِي اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِي عُقَيْلٌ عَنْ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ حَدَّثَنِي عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ أَنَّ الْمِسْوَرَ بْنَ مَخْرَمَةَ وَعَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ عَبْدٍ الْقَارِيَّ حَدَّثَاهُ أَنَّهُمَا سَمِعَا عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ يَقُولُ سَمِعْتُ هِشَامَ بْنَ حَكِيمِ بْنِ حِزَامٍ يَقْرَأُ سُورَةَ الْفُرْقَانِ فِي حَيَاةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاسْتَمَعْتُ لِقِرَاءَتِهِ فَإِذَا هُوَ يَقْرَأُ عَلَى حُرُوفٍ كَثِيرَةٍ لَمْ يُقْرِئْنِيهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَكِدْتُ أُسَاوِرُهُ فِي الصَّلَاةِ فَتَصَبَّرْتُ حَتَّى سَلَّمَ فَلَبَّبْتُهُ بِرِدَائِهِ فَقُلْتُ مَنْ أَقْرَأَكَ هَذِهِ السُّورَةَ الَّتِي سَمِعْتُكَ تَقْرَأُ قَالَ أَقْرَأَنِيهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ كَذَبْتَ فَإِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ أَقْرَأَنِيهَا عَلَى غَيْرِ مَا قَرَأْتَ فَانْطَلَقْتُ بِهِ أَقُودُهُ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ إِنِّي سَمِعْتُ هَذَا يَقْرَأُ بِسُورَةِ الْفُرْقَانِ عَلَى حُرُوفٍ لَمْ تُقْرِئْنِيهَا فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَرْسِلْهُ اقْرَأْ يَا هِشَامُ فَقَرَأَ عَلَيْهِ الْقِرَاءَةَ الَّتِي سَمِعْتُهُ يَقْرَأُ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَذَلِكَ أُنْزِلَتْ ثُمَّ قَالَ اقْرَأْ يَا عُمَرُ فَقَرَأْتُ الْقِرَاءَةَ الَّتِي أَقْرَأَنِي فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَذَلِكَ أُنْزِلَتْ إِنَّ هَذَا الْقُرْآنَ أُنْزِلَ عَلَى سَبْعَةِ أَحْرُفٍ فَاقْرَءُوا مَا تَيَسَّرَ مِنْهُ [ر:٢٢٨٧]

---

١ ) فتح البارى (٩\٢٧)_

٢ ) فتح البارى (٩\٢٧) وارشاد السارى (١١\٢٦٧)_

**قوله:** إِنَّ هَذَا الْقُرْآنَ أُنْزِلَ عَلَى سَبْعَةِ أَحْرُفٍ: علامه سیوطی رحمه الله لیکلی دی چه دا حدیث د ۲۱ صحابه کرامو رضی الله عنهم نه مروی دې (۱) ابو عبید قاسم بن سلام فرمائی چه دا حدیث متواتر دې (۲)
د سبعة احرف په تفسیر کښې دعالمانو لوئې اختلاف دې ابن حبان فرمائیلی دی چه په دې کښې د عالمانو ۳۵ اقوال دی (۳) تردې پورې چه محمد بن سعدان نحوی دا په متشابهاتو کښې ګرځولې دې او فرمائیلې ئې دی چه دا حدیث معلوم المعنی نه دې (۴) علامه سیوطی رحمه الله په «تنویر الحوالك» او «زهر الربی» کښې هم دا قول اختیار کړې دې (۵)
**د سبعة احرف په تفسیر کښې د عالمانو اقوال:** خو اکثر عالمانو دا معلوم المعنی ګرځولی نو بیا ددې په تفسیر او معنی کښې مختلف اقوال نقل کړې شوې ی دی په دې کښې یو څیز دلته ذکر کولې شی.

① بعضې حضرات فرمائی چه د «سبعة أحرف» نه د اووه قاریانو مشهور قراءتونه مراد دی خودا خیال غلط او باطل دې ځکه چه د قرآن کریم متواتر صرف ددې اووه قاریانو په قراءتونه کښې منحصر نه دی بلکه ددې نه سوا هم متواتر قراءتونه ثابت دی هم دا وجه دا چه ابو شامه دا قول رد کوی او فرمائی

«ظن قوم أن القراءات السبع الموجودة الآن هي التي اريدت في الحديث وهو خلاف إجماع أهل العلم قاطبة وإنما يظن ذلك بعض أهل الجهل» (۶)

② مشهور او متواتر قراءتونه چونکه د اووه نه زیات دی ددې وجې بعضې حضراتو فرمائیلی دی چه په حدیث کښې د «سبعة أحرف» نه ټول مشهور قراءتونه مراد دی او د «سبعة» یعنی اووه د لفظ نه مخصوص عدد مراد نه دې بلکه ددې نه مراد کثرت دې لکه څنګه چه په دهایون (چه دوه هندسې په کښې یعنی د لسو نه واخله تر یو کم سلو پورې) کښې د کثرت دپاره د سبعین لفظ استعمالیږی دغه شان په آحاد کښې د «سبعة» لفظ د کثر دپاره راځی قاضی عیاض او د دوی متبعینو دې قول ته رجحان ښکاره کړې دې (۷)
خودا قول دلته د حدیث باب په وجه صحیح نه معلومیږی ځکه چه امام بخاری دلته په باب کښې چه د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما کوم حدیث نقل کړې دې په دې کښې دی چه

---

۱) مباحث فی علوم القرآن لمناع القطان (۱۵۷) والإتقان فی علوم القرآن (۱۱۱/٤)_
۲) الإتقان فی علوم القرآن (۱۱۱/٤) وفضائل القرآن للإمام ابی عبید قاسم بن سلام (۲۰۳)_
۳) فتح الباری (۲۸/۹)_
٤) البرهان فی علوم القرآن القول فی القراءات السبع (۲۱۳/۱)_
۵ [زهر ربی علی امش نسائی جامع ما جاء فی القرآن (۱۵/۱) وتنویر الحوالک )_
۶) فتح الباری (۳۷/۹)_
۷) فتح الباری (۲۸/۹)_

نبی ﷺ فرمائیلی دی چه حضرت جبرئیل علیه السلام قرآن کریم په یو حرف باندې اولوستلو نو ما هغه ته مراجعت اوکړو او د زیادت طلب مې ترې کولو اوهغه به راته زیادت کولو تر دې چه اووه حرفونو ته اورسیدل ـ

ددې روایت نه ښکاره معلومیږی چه د «سبعة» لفظ د کثرت دپاره نه دې بلکه ددې نه عدد معین مراد دې

③ دریم قول د امام طحاوی رحمه الله دې علامه ابن عبدالبر رحمه الله دا اختیار کړې دې او دا ئې اکثرو عالمانو طرف ته منسوب کړې دې چه د «احرف» نه مراد معنی په مترادف لفظ سره ادا کول دی (۱)

دا حضرات فرمائی چه د قرآن کریم نزول صرف د قریشو په لغت سره شوې وو خو د اسلام په ابتداء کښې نورو قبیلو ته دا اجازت ورکړې شوې وو چه هغوی په خپله علاقائی ژبې مطابق په الفاظ مترادفؤ سره د قرآن کریم تلاوت کولې شی او دا مترادف الفاظ پخپله نبی کریم ﷺ متعین کړی وو لکه د «تعال» په ځائې «هلم» اود «أقبل» په ځائې «أدن» بیا چه کله د قران کریم د لغت نه نورې قبیلې په مزه مزه مانوس شوې نو رسول الله ﷺ د حضرت جبرئیل علیه السلام سره په خپل آخری دور(عریضه) کښې دا اجازت ختم کړو اوصرف هم هغه طریقه ئې باقی اوساتله په کومه چه قرآن نازل شوې وو

ددې قول مطابق د «سبعة احرف» حدیث د ابتداء اسلام سره متعلق وو او د نبی ﷺ په آخری دور کښې دا اجازت ختم کړې شوې وو د قرآن کریم په اووه حرفو باندې د نازلیدو مطلب ددې حضراتو په نیز دا دې چه دا په دې وسعت سره نازل شوې وو چه د یو مخصوص زمانې پورې دا په اووه حرفو سره لوستلې شو او د اووه حرفو نه دا مراد نه دې چه په هره کلمه کښې د اووه مرادفاتو اجازت وو بلکه مقصد دا وو چه زیات نه زیات د یو لفظ د معنی دپاره چه څومره مرادفات استعمالوې شی د هغې تعداد اووه وو اودا مرادفات هم نبی ﷺ متعین کړی وو د خلقو په مرضئ باندې ددې داروندار نه وو (۲)

ددې قول تائید د حضرت ابوبکره رضی الله عنه په دې روایت سره کیږی کوم چه امام احمد په مسند احمد کښې نقل کړې دې په هغې کښې دی

«إن جبرئيل علیه السلام قال یا محمد إقرأ القرآن علی حرف قال میکائیل استزده حتی بلغ سبعة أحرف قال کل شاف کاف مالم تختلط آیة عذاب برحمة و رحمة بعذاب نحو قولك تعال وأقبل وهلم واذهب واسرع وعجل»(۳)

ددې روایت نه ښکاره معلومیږی چه د سبعة احرف نه د الفاظ مترادفؤ په ذریعه د معنی ادا کول مراد دی.

دغه شان په یو بل روایت کښې دی چه د حضرت عمر رضی الله عنه او د یو بل صحابی د قرآن کریم

---

۱) مشکل الآثار للطحاوی (۱۸۶\۱٤) وفتح الباری (۳۲\۹)ـ
۲) مشکل الآثار للطحاوی (۱۸۶\۱٤- ۱۹۱) وفتح الباری (۳۲\۹و ۳٤)ـ
۳) أخرجه أحمد بأسناد جید وهذا اللفظ لأحمد (وانظر مباحث فی علوم القرآن ) (۱۶۲)ـ

د يو ايت په قراءت كښې اختلاف پيدا شو دواړه حضرات د نبى كريم ﷺ په خدمت كښې حاضر شو نو نبى ﷺ حضرت عمر رضی الله عنه ته اوفرمائيل «ياعمر، إن القرآن كله صواب مالم تجعل رحمة عذاباً أو عذاباً رحمة»(۱)

ددې وجې دا قول د دلائلو په اعتبار سره ډيره حده پورې وزنى دې خو په دې باندې دا اشكال باقى پاتې كيږى كه د «سبعة أحرف» اختلاف د نبى ﷺ په زمانه كښې ختم شوې وو نو بيا روسته د حضرت عثمان رضی الله عنه په زمانه كښې چه كوم اختلاف پيدا شوې وو د كوم په وجه چه هغوى مصاحف تيار كړل او نور ټول لغات ئې په هغې مصاحفو سره ختم كړل د هغې به څه توجيه وى؟ كه «سبعة أحرف» د نبى ﷺ په زمانه كښې ختم شوى وو نو روسته اختلاف په كوم څيز كښې باقى وو د كوم د ختمولو دپاره چه حضرت عثمان رضی الله عنه مصاحف تيار كړل ـ

④ علامه ابن جرير طبرى رحمه الله او د هغوى متبعينو د «سبعة أحرف» نه د عربو د قبيلو اووه لغات مراد اخستې دى بيا ددې قبيلو په تعيين كښې دوه مشهور قولونه دى يو قول دا دې چه د دې نه ① قريش ② هذيل ③ ثقيف ④ هوازن ⑤ كنانه ⑥ تميم ⑦ او يمن مراد دې او دويم قول دا دې چه ددې نه ① قريش ② هزيل ③ تميم رباب ④ ازد ⑤ ربيعه ⑥ هوازن ⑦ او سعد بن بكر مراد دى (۲)

په دې قول باندې يو اشكال دا كيږى چه د عربو لغات خو د اووه نه زيات دى ـ

ددې جواب دا وركړې شوې دې چه د عربو د قبيلو لغات اگرچه د اووه نه زيات وو خو په دې كښې فصيح اووه وو بيا په اووه لغات كښې د نازليدو مطلب دا نه دې چه هره يوه كلمه په اووه لغاتو كښې په مختلفو اندازونو باندې لوستلې شى بلكه مطلب دا دې چه متفرق طور باندې په ټول قرآن كښې اووه لغات دى (۳)

هم دا وجه دا چه امام ابوعبيد قاسم بن سلام ليكى.

«وليس معنى تلك السبعة أن يكون الحرف الواحد يقرأ على سبعة أوجه، هذا شيء غير موجود ولكنه عندنا أنه نزل على سبع لغات متفرقة في جميع القرآن من لغات العرب، فيكون الحرف منها بلغة قبيلة والثاني بلغة أخرى سوى الأول والثالث بلغة أخرى سواهما كذلك إلى السبعة وبعض الأحياء أسعد بها وأكثر حظاً فيها من بعض»(۴)

دسبعة احرف په سلسله كښې د علامه ابن جرير طبرى رحمه الله دا قول د ټولو نه زيات مشهور دې او اكثرو متاخرينو هم دا اختيار كړې دې مولانا ظفر احمد عثمانى رحمه الله په ,,امداد الاحكام،،

۱ ) أخرجه أحمد بأسناد رجاله ثقاة (وانظر مباحث فى علوم القرآن (۱۶۲)_
۲ ) فتح البارى (۹/۳۳) والبرهان فى علوم القرآن (۱/۲۱۷) ومباحث فى علوم القرآن (۱۵۸)_
۳ ) فتح البارى (۹/۳۲) وروح المعانى بيان المراد بالأحرف السبعة (۱/۲۱)
٤ ) فضائل القرآن للإمام أبى عبيد القاسم بن سلام باب لغات القرآن (۲۰۳)_

كښې هم دا قول اختيار كړې دې دوى ليكى
،،د محققين امت قول دا دې چه قرآن اول د قريشو په لغت نازل شوې وو كومه چه د رسول الله ﷺ د قوم ژبه وه په قرآن كريم هم ارشاد دې ((وما أرسلنا من رسول إلا بلسان قومه ليبين لهم)) اود نبى كريم ﷺ قوم قريش وو نو ضرور ده چه قرآن د قريشو په ژبه كښې نازل شوې وو ... دهجرت نه وړاندې چونكه اسلام راوړونكې زيات اهل مكه وودوى ټول قريش وو يا د قريشو په ژبه به ئې خبرې كولې ددې وجې د عربو په نورو ژبو كښې مسلمانانو ته د وئيلو ضرورت نه وو بيا د هجرت نه پس چونكه دعربو نورې قبيلې هم په اسلام كښې داخل شوې اولكه چه د عربو د ټولو قبيلو مشتركه ژبه عربى وه خو په تلفظ او اعراب وغيره كښې ډير اختلاف وو مثلاً قريشو به ((حتى حين)) په حاء سره وئيلې او هذيل به دا په ((عتى عين)) عين سره لوستله .. او ددې اختلاف نظير په هره ژبه كښې موجود دې مثلاً د دلى او لكهنو په اردو كښې اختلاف دې يو كهارا پانى وائى او بل كهارى پانى وائى (لكه په پښتو كښې قندهارئ پښتو يوشان ده او يوسف زئ پښتو بل شان ده) او قاعده ده چه مورنئ ژبه په سمدستى بدلول ډير گران وى بيا خاص كر داسې قوم چه په هغوى كښې د ليكلو لوستلو رواج هم نه وى بلكه صرف په اوريدو باندې مدار وى او د قرآن دارومدار په دوى كښې صرف هم په دې كښې اوريدو باندې وو ليكونكې او لوستونكى ډير كم وو بس چه څومره قرآن د چا سره وو هغه ئې ياد وواوهم په دې حالت كښې به نورو قبيلود خپل تلفظ موافق قرآن لوستل سمدستى ئې د قريشو لغت او د قريشو تلفظ نشو ادا كولې ددې وجې نبى كريم ﷺ (په مختلفو لغاتوكښې د لوستلو) درخواست اوكړو چه چونكه اهل عرب زيات اميان دى او د دوى تلفظ او اعراب مختلف دې نو سمدستى كه ټول د قريشو په لغت مكلف كولې شو په دې كښې د تكليف ويره وه چه په دې سره به دوى كښې كوتاهى وه او ددغه كوتاهئ په وجه به په گناه كښې اخته كيدل ددې وجې چه په دې كښې توسيع اوشى نو درخواست ئې منظور شو او په اووه طريقو سره د قرآن لوستو اجازت وركړې شو او د دې اووه طريقو نه مراد د عربو د قبيلو اووه لغات وو يعنى ددې اجازت وركړې شو چه كوم كس د قريش په لغت د قرآن تلفظ نشى كولې هغه دې په دې قبيلو كښې چه د كومې قبيلې په تلفظ سره چه غواړى د قرآن الفاظ ادا كوى اوغالباً په اووه لغاتو كښې د انحصار وجه دا ده چه د دوى نه سوا د نورو قبيلو تلفظ صحيح نه وويا دا چه د دې قبيلو د تلفظ نورې قبيلې تابع وې ددې وجې د زياتې توسيع ضرورت نه وو۔

ددې تقرير نه معلومه شوه چه د قريشو د لغت نه سوا چه كوم شپږ لغات وو په هغې كښې په حقيقت كښې قرآن نه وو نازل شوى بلكه حقيقى نزول د قريشو په لغت كښې وو خو د آسانتيا دپاره د نورو شپږو قبيلو په تلفظ كښې هم د قرآن لوستلو اجازت وركړې شوددې وجې حكماً هغه هم منزل من الله شوې دغه شان دا هم د رواياتو نه معلومه شوې ده چه په دغه اووه لغاتو كښې لوستل د هر يو كس په رائې باندې نه وو بلكه د رسول الله ﷺ نه د اوريدلې شوې تلفظ اجازت وونبى ﷺ به پخپله په نورو لغاتو كښې هغه لوستل او خودل چه د قريشو د لغت نه سوا په دې نورو لغاتو كښې داسې لوستل جائز دى حضرات صحابه

کرامﷺ ته معلومه وه چه د قرآن نزول اول د قریشو په لغت کښې شوې وو او د هجرت نه وړاندې زمانه کښې چه په مکه کښې دیارلس کاله قیام وو هم یو قراءت او یو لغت کښې به نبیﷺقرآن لوستل او نبیﷺ هم په یو لغت کښې مسلمانانو ته قرآن خودل بیا په مدینه کښې د هجرت نه پس نبیﷺ په دې کښې د توسیع درخواست اوکړو کوم چه منظور شو دا ټولې خبرې صحابوﷺپیژندلې چه د قرآن اصل لغت د قریشو لغت دې اودنورولغاتو اجازت د آسانتیا په غرض عارضی دې او کوم حکم چه عارضی د څه خاص غرض دپاره وی هغه د حصول غرض پورې محدود وی چه کله غرض حاصل شو او په اهل عرب کښې د لیکلو او لوستلو رواج شو بل طرف د قریشو سره د نورو قبیلو اختلاط هم زیات شواو اوس ټولو ته د قریشو په لغت د قرآن لوستل آسان شو بل طرف ته دا اوکتلې شو چه په کومو لغاتو کښې د قرآن د لوستلواجازت د آسانتیا او سهولت دپاره ورکړې شوې وو اوس د هغې باقی ساتل د اختلاف موجب او سبب جوړیدل چه د نورو قبیلو خلقو به خپله طریقه صحیح ګڼله اونورو طریقو ته به ئې غلطې وئیلې او د یوبل تکفیر به ئې کولو نو صحابوﷺ په اجماع سره په دې باندې اتفاق اوکړو چه اوس د نورو قراءتونو باقی پریخودل مناسب نه دی بلکه قرآن صرف د قریشو په لغت باندې جمع کول پکار دی د حضرت عثمانﷺ په زمانه کښې د ټولو لویو صحابه کرامو په اتفاق سره ضرف یو قراءت او یو صرف لغت باندې قرآن جمع کړې شو ځکه چه دا د قرآن اصلی ژبه وه و په باقی ژبو کښې قرآن وئیل بند کړې شول ځکه چه هغه عارضی وې کومې چه د خاص غرض دپاره جائز کړې شوې وې او اوس هغه غرض حاصل شو(۱)

**په دې قول باندې اشکال:** چه د اووه حرفو نه د عربو د اووه قبیلو لغات مراد اخستونکو په دې قول باندې د حدیث باب نه اشکال کیږی ځکه چه په دې کښې دی چه د حضرت عمرﷺ او حضرت هشام بن حکیم په منیځ کښې د قرآن کریم په تلاوت کښې اختلاف پیدا شو حال دا چه دا دواړه حضرات قریشی ووکه د اووه حروفو نه د اووه مختلفو قبیلو لغات مراد وو نو د حضرت عمر او حضرت هشامﷺ په مینځ کښې به دا اختلاف ولې راتلو حال دا چه دا دواړه قریشی وو۔

ددې اشکال جواب دا ورکړې شوې دې چه کیدې شی په دې دواړو کښې یو ته نبیﷺ د قریشو د لغت نه سوا د بل چا په لغت باندې قرآن لوستلې وو (۲)

په دې قول باندې یو مضبوط اشکال دا هم کیږی که اووه حروف د حضرت عثمانﷺ په زمانه کښې ختم کړې شوې وو او صرف یو حرف باقی پریخودې شوې وو نو د موجوده مشهور قراءتونو اختلاف به ولې پیدا کیدل ځکه چه د حدیث په ذخیره کښې د قرآن کریم د تلاوت په باره کښې د یو قسم اختلاف ،، سبعة احرف،، ذکر دې ددې نه علاوه د بل قسم اختلاف ذکر نشته او چه ذکر شوې قول اومنلې شی نو د قرآن کریم په قراءت دوه قسمه

---

۱ ) امداد الاحکام کتاب العلم فصل فی تعلیم القرآن وتلاوته (۱\٢٦٤و ٢٦٦)_
۲ ) روح المعانی ، بیان المراد بالأحرف السبعة (۱\۲۱)_



اختلاف منلو ته ضرورت پیښیږی یو اختلاف د سبعة احرف او بل اختلاف د قراءاتو.(۱)
ددې اشکال څه تسلی بخش جواب ددې قول د قائلینو سره نشته او اشکال داسې دې چه ددې نه نظر نشی اړولې ـ

⑤ د ((سبعة احرف)) په سلسله کښې چه محققینو عالمانو کوم قول اختیار کړي دې هغه دا دې چه ددې نه د اختلاف قراءاتو اووه نوعیتونه مراد دی قراءتونه اګر چه د اووه نه زیات دی خو په دې قراءتونو کښې چه کوم اختلافات موجود دی هغه په اووه قسمونو کښې منحصر دي امام مالك ،ابن قتیبه،امام ابوالفضل رازی ، قاضی ابو بکر باقلانی، علامه جزری او مولانا انور شاه کشمیری رحمهم الله هم دا قول اختیار کړې دې (۲)
داختلاف قراءات د اووه نوعیتونو تعیین مختلفو عالمانو کړې دې او ددې په تعیین کښې لږ ډیر اختلاف هم شته امام ابو الفضل رازی رحمه الله ددې تفصیل داسې بیان کړې دې

① د اسماؤ اختلاف ، د مفرد ،تثنیه ، جمع او تذکیر او تانیث په اعتبار سره لکه ((تمت کلمة ربك))او((تمت کلمات ربك))

② د افعال اختلاف: د ماضی ،مضارع او امر په اعتبار سره لکه ((ربنا باعد بین أسفارنا)) او((بعد بین أسفارنا))((باعد))امر دې او((بعد)) ماضی ده ـ

③ د وجوه اعراب اختلاف لکه ((ولا یضار کاتب))د راء نصب او رفع قراءت کښې ـ

④ د الفاظو د کمی بیشی په اعتبار سره لکه ((وما خلق الذکر والأنثی)) او ((والذکر والأنثی)) په نورو قراءتونو کښې ((ما خلق)) نشته

⑤ د تقدیم او تاخیر اختلاف لکه ((وجاءت سکرة الموت بالحق))او ((وجاءت سکرة الحق بالموت))

---

۱ ) مولانا محمد تقی عثمانی مد ظلهم لیکی بیا عجیب خبره دا ده چه د علامه ابن جریر د قول مطابق صحابو رضی الله عنهم شپږ حروف خو د اختلاف د ویرې د وجې ختم کړل او قراءتونه (کوم چه د هغوی په قول کښې دحروفو نه جدا دی) هم هغه شان باقی پاتې کړې شول هغه تر ننه پورې محفوظ راروان دی سوال دا دې چه د افتراق او اختلاف د ویرې په مختلفو حروفو کښې د قرآن پاك د تلاوت په جاری والی کښې وو آیا هم هغه ویره د قراءاتونو په اختلاف کښې نه وه ؟ حال دا چه ددې قراءتونو په رنړا کښې کله کله یو یو حرف په شلو شلو مختلفو طریقو سره لوستلې شی؟ که د شپږو حروفو ختمولو منشاء هم دا وه چه په مسلمانانو کښې اتفاق پیدا وی او دوی ټول په یوه طریقه د قرآن پاك تلاوت کوی نو د قراءتونو اختلاف آخر ولې ختم نه کړې شو هرکله چه د قراءتونو داختلاف باوجود امت د انتشار نه بچ کولې شو او مسلمانانو په دې باندې پوهولی شول چه په دې ټولو طریقو باندې تلاوت جائز دی نوهم دا تعلیم د حروف سبعه په باب کښې د فتنې سبب ولې ګڼړلې شی حقیقت دا دې چه د حافظ ابن جریر رحمه الله د قول مطابق د ،،حروف سبعه،، اود ،،قراءات ،، په باره کښې صحابه کرامو رضی الله عنهم ته د دوه داسې دوو حیرت انګیز عملونو منسوب کولو ضرورت پیښیږی چه دهغې څه معقوله توجیه په پوهه کښې نه راځی (علوم القران (۱۲۱-۱۲۲)ـ
۲ ) فتح الباری (۳۵\۹) والبرهان فی علوم القرآن (۲۲۳\۱) والنشر فی القراءات العشر (۳۱\۱) وفیض الباری (۳۲۱\۳- ۳۲۲) وغرائب القرآن للنیشابوری علی هامش ابن جریر (۲۱\۱)ـ

⑥ ابدال یعنی په یو قراءت کښې یو لفظ وی او په بل قراءت کښې بل لفظ وی لکه «تنشزها» او «ننشرها»

⑦ د لهجو او لغاتو اختلاف ادغام ،اظهار،ترقیق ، تفخیم، او اماله وغیره په اعتبار سره (١) لکه «موسیٰ او موسی» په اماله او غیر اماله سره .

دا قول څو محققینو عالمانو اختیار کړې دې امام مالك ،علامه جزری، مولا علی قاری او مولانا انورشاه کشمیری وغیره محققینو عالمانو ﷭اختیارکړې دې(لکه څنګه چه تیرشو)

ددې قول مطابق «سبعة أحرف» ختم شوي نه دی ا نه منسوخ شوی دی بلکه د قرآن مجید په تلاوت کښې چه کوم مختلف قراتونه مشهور دی هغه د «سبعة أحرف» مصداق دی

په دې قول باندې یو اشکال او د هغې حل خو په دې قول باندې دااشکال کیږی که د «سبعة أحرف» اختلاف اوس هم باقی وی او ختم شوې نه وی نو بیا هغه څنګه اختلاف وو د کوم د ختمولو دپاره چه حضرت عثمان﵁ قرآن کریم جمع کړلو اویو مصحف ئې تیار کړلو

ددې جواب دا ورکړې شوې دې حضرت عثمان په یو مصحف کښې قرآن جمع کړو او هغه اختلاف ئې ختم کړو کوم چه په هغه وخت کښې په انفرادی مصاحفو کښې موجود وو ند چا مصحف په یو حرف باندې وو او د چا په بل حرف باندې،دکوم په وجه چه دیوحرف لوستونکی به بعضې وخت د بل حرف لوستونکی.ته غلط وئیل د کومې په وجه چه به جنګ او فساد ته خبره اورسیده حضرت عثمان ﵁ یو داسې مصحف تیار کړو په کوم کښې چه ددې ټولو حروفو ګنجائش موجود وو دې دپاره چه په یو حرف باندې تلاوت کونکې د بل حرف لوستونکی قاری ته غلط اونه وائی دا داسې وه چه د یو څیز په باره کښې دوه اقوال وی او دواړه جائز وی یوه ډله یو قول او بله ډله بل قول اختیاروی او هره یوه ډله خپله غوره کړې قول ته صحیح وائی او د بلې ډلې قول ته غلط وائی نو په داسې صورت کښې که یو کس ذکر شوې دواړه قولونه ثابت کړی نو د هر قول ګنجائش او جواز معلومیږی او اختلاف ختمیږی حضرت عثمان ﵁ په یو مصحف کښې سبعة احرف جمع کړل او دغه شان ئې د اختلاف ختمولو کارنامه اوکړه (٢)والله اعلم

ددې قول مطابق سبعة احرف اوس هم باقی دی منسوخ نه دی ـ

د سبعة احرف په باره کښې دا څو مشهور اقوال دی ددې نه علاوه نور اقوال هم شته (مثلاً یوقول داهم دې چه ددې نه دکلام اووه اصناف محکم، متشابه ،ناسخ، منسوخ ، خصوص، عموم او قصص مراد دی یا امر، نهی ،وعد ،وعید ، اباحت، ارشاد او اعتبار مراد دې(٣)

---

١ ) فتح الباري (٣٥\٩)ـ
٢ ) علوم القرآن (١٤١-١٤٢)ـ
٣ ) روح المعانی (٢١\١)ـ

دغه شان یو قول دا نقل شوې دې چه ددې نه اقالیم سبعه مراد دی او حرف په معنی د غاړې دې او مطلب دا دې چه قرآن مجید د عالم د ټولو طرفونو د هدایت دپاره رالیږلې شوې دې) خو مشهور او راجح اقوال هم هغه دی کوم چه پورته ذکر شول.

## ۶=بَاب تَأْلِيفِ الْقُرْآنِ

د الفاظو په اعتبا سره په دې ترجمه او ماقبل «باب جمع القرآن» په ترجمه کښې فرق دې خو د معنی په اعتبار سره په جمع او تالیف کښې څه فرق نشته ددې وجې په ظاهره په دواړو ترجمو کښې تکرار دې

ددې جواب دا ورکړې شوې دې چه د ماقبل په ترجمه کښې امام بخاری رحمه الله د قرآن د آیاتونو او سورتونو مطلقاً په مصحف کښې د جمع کولو بیان کړې وو او په دې ترجمه کښې امام بخاری رحمه الله د سورتونو ترتیب بیانوی او دا خودل مقصود دې چه ترتیب وار سورتونه په مصحف کښې جمع شوی دی (۱)

ددې نقل کولو وجه دا پیښه شوه چه په اصل کښې څو مصاحف وو او د ټولو ترتیب د یو بل نه مختلف وو د حضرت علی رضي الله عنه د مصحف ترتیب د نزول مطابق وو په هغې کښې مکی سورتونه اول او مدنی سورتونه روسته وو د حضرت ابی بن کعب او حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنهما د مصاحفو ترتیب بل وو خو د مصحف عثمانی ترتیب د ټولو نه اکمل دې (۲)

**آیا د سورتونو ترتیب توقیفی دې؟** په دې خبره خو اتفاق دې چه د قرآن مجید د آیاتونو ترتیب توقیفی دې په دې کښې اجتهاد ته دخل نشته چه په نبی ﷺ به آیاتونه نازل شول د وحی کاتب به ئې راوغوښتلو او ورته به ئې خودل چه دا آیاتونه په فلانی فلانی ځائې کښې درج کړه (۳) خو په دې کښې اختلاف دې چه د سورتونو ترتیب توقیفی دې او که دا د حضرات صحابه کرامو اجتهادی عمل دې په دې کښې د عالمانو څلور اقوال دی

① د جمهورو عالمانو رائې دا ده چه د قرآن مجید د سورتونو ترتیب د صحابه کرامو په اجتهاد سره قائم شوې دې د امام مالك او قاضي ابوبکر هم دا رائې ده (٤)

ددې دلیل دا ورکولې شی چه د صحابه کرامو په مصاحفو کښې د ترتیب اختلاف وو که د سورتونو ترتیب توقیفی وونو بیا به د دوی په مصاحفو کښې څه اختلاف نه واقع کیدلو.

② ابن الانباری او علامه طیبی رحمهما الله فرمائیلی دی چه لکه څنګه د آیاتونو ترتیب توقیفی دې دغه شان د قرآن پاك د سورتونو ترتیب هم توقیفی دې په دې کښې د اجتهاد دخل نشته (۵)

---

۱) الأبواب والتراجم (۵۹/۲)_
۲) فتح الباری (۹/۵۰-۵۱)_
۳) فتح الباری (۵۱/۹)_
٤) البرهان في علوم القرآن فصل فی عدد سور القرآن وآیاته (۲۵۷/۱)_
۵) البرهان فی علوم القرآن (۲۶۰/۱)_

علامه بدرالدين زرکشي رحمه الله په «البرهان في علوم القرآن» کښې نقل کړي دي چه په ذکر شوو دواړو قولونو کښې واقع دا اختلاف لفظي دې معنى اختلاف نه دې کوم حضرات چه وائي چه د سورتونو ترتيب توقيفي دې د هغوى مراد فعلي توقيفي دې او کوم حضرات چه دې ته اجتهادي وائي هغوى د توقيفي قولي نفي کوي په دې معنى چه نبي کريم ﷺ په خپل قول او ارشاد په ذريعه ددې ترتيب نه دې متعين کړې خو په دې کښې څه شك نشته چه نبي ﷺ ديو خاص ترتيب مطابق قرآن مجيد لوستلې دې او صحابه کرامو رضي الله عنهم دهغه ترتيب مطابق قرآن مجيد اوريدلې دې اوهم دهغه ترتيب په مصحف عثماني کښې خيال ساتلې شوې دې(۱)

③ دريم قول د ابن عطيه دې هغوى فرمائي چه د ډيرو سورتونو ترتيب د نبي ﷺ په ژوند کښې معلوم شوې وو لکه سبع طوال ،حواميم ، او مفصل سورتونه ،ددې نه علاوه د باقي سورتونو ترتيب صحابو رضي الله عنهم ته حواله کړې شوې وو (۲)

④ امام بيهقي رحمه الله په ،،المدخل،، کښې يو څلورم قول اختيار کړې دې هغوى فرمائي چه د نبي ﷺ په زمانه کښې د قرآن مجيد ټول آياتونه او ټول سورتونه مرتب شوي وو صرف د سورة انفال او سورة براءت ترتيب باقي پاتې شوې وودا حضرت عثمان رضي الله عنه قائم کړې وو (۳)

[۴۷۰۷]حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى اَخْبَرَنَا هِشَامُ بْنُ يُوسُفَ اَنَّ ابْنَ جُرَيْجٍ اَخْبَرَهُمْ قَالَ وَاَخْبَرَنِي يُوسُفُ بْنُ مَاهَكٍ قَالَ اِنِّي عِنْدَ عَائِشَةَ اُمِّ الْمُؤْمِنِينَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا اِذْ جَاءَهَا عِرَاقِيٌّ فَقَالَ اَيُّ الْكَفَنِ خَيْرٌ قَالَتْ وَيْحَكَ وَمَا يَضُرُّكَ قَالَ يَا اُمَّ الْمُؤْمِنِينَ اَرِينِي مُصْحَفَكِ قَالَتْ لِمَ قَالَ لَعَلِّي اُوَلِّفُ الْقُرْآنَ عَلَيْهِ فَاِنَّهُ يُقْرَاُ غَيْرَ مُؤَلَّفٍ قَالَتْ وَمَا يَضُرُّكَ اَيَّهُ قَرَاْتَ قَبْلُ اِنَّمَا نَزَلَ اَوَّلَ مَا نَزَلَ مِنْهُ سُورَةٌ مِنَ الْمُفَصَّلِ فِيهَا ذِكْرُ الْجَنَّةِ وَالنَّارِ حَتَّى اِذَا ثَابَ النَّاسُ اِلَى الْاِسْلَامِ نَزَلَ الْحَلَالُ وَالْحَرَامُ وَلَوْ نَزَلَ اَوَّلَ شَيْءٍ لَا تَشْرَبُوا الْخَمْرَ لَقَالُوا لَا نَدَعُ الْخَمْرَ اَبَدًا وَلَوْ نَزَلَ لَا تَزْنُوا لَقَالُوا لَا نَدَعُ الزِّنَا اَبَدًا لَقَدْ نَزَلَ بِمَكَّةَ عَلَى مُحَمَّدٍ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاِنِّي لَجَارِيَةٌ اَلْعَبُ بَلِ السَّاعَةُ مَوْعِدُهُمْ وَالسَّاعَةُ اَدْهَى وَاَمَرُّ وَمَا نَزَلَتْ سُورَةُ الْبَقَرَةِ وَالنِّسَاءِ اِلَّا وَاَنَا عِنْدَهُ قَالَ فَاَخْرَجَتْ لَهُ الْمُصْحَفَ فَاَمْلَتْ عَلَيْهِ اَيَ السُّوَرِ[ر:۴۵۹۵]

يوسف بن ماهك فرمائي چه زه د حضرت عائشې سره ووم په دې کښې هغې ته يو عراقي کس راغلو (د هغه نوم معلوم نشو) (۴) او تپوس ئې اوکړو کوم يو کفن غوره دې ؟ يعنى د کومې جامې کفن غوره دې (کيدې شي چه دغه کس د حضرت سمره رضي الله عنه مرفوع حديث اوريدلى وو په کوم کښې چه د سپينې جامې د کفن حکم ورکړې شوې دې چه د حضرت

---

۱ ) البرهان في علوم القرآن (۲۵۷/۱)_

۲ ) البرهان في علوم القرآن (۲۵۷/۱)_

۳ ) علوم القرآن(۱۱۷)_

٤ ) قال الحافظ في الفتح (٤٧/٩) ولم أقف على إسمه)_

عائشې رضي الله عنها نه ني تپوس اوكړو كيدي شي دغه كس ددې تصديق كول غوښتل) (١)
حضرت عائشې ورته اوونيل هلاك شې تاته څه نقصان رسوى يعنى تاته چه كوم يو كفن هم واغوستولې شى هغه به كافى وى.

بيا هغه تپوس اوكړوام المومنين ماته خپل مصحف اوښايه دوى ترې تپوس اوكړو ولې ؟هغه اوونيل زه د هغې مطابق خپل قرآن مرتب كوم څكه چه قرآن په غير مرتب طريقه باندې لوستلې شى ((ممكن ده چه دا واقعه د حضرت عثمان رضي الله عنه د تيار كړى مصحف نه اوړاندې وه او دا هم ممكن دې چه روستنۍ واقعه وى خو چونكه دې د عراق وو او هلته د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه قراءت مشهور وو كيدې شى هغه د دهغوى نه ونيلې وو او چونكه د هغوى د مصحف ترتيب د مصحف عثمانى د ترتيب نه مختلف وو ددې وجې هغه اوونيل چه قرآن په غير مرتب طريقې سره لوستلې شى ((٢) حضرت عائشې رضي الله عنها اوفرمائيل ته چه كوم يو سورة هم وړاندې اووائې ستا په هغې كښې څه نقصان نشته كوم سورتونه چه په ابتداء كښې نازل شوى وو په هغې كښې يو سورة مفصل دې په هغې كښې د جنت او جهنم ذكر دې چه خلق اسلام طرف ته راغلو نو بيا د حلالو او حرامو احكام نازل شوكه د ټولو نه وړاندې دا حكم نازل شوې وو چه شراب مه څكئ نو خلقو به ونيل چه مونږ شراب بيخى نه پريږدو دغه شان كه د زنا ممانعت راغلې وو نو خلقو به د زنا پريخودو نه انكار كړې وو.په نبى كريم صلى الله عليه وسلم په مكه كښې د سورة قمر دا آيت نازل شو ((بل الساعة موعدهم والساعة أدهى وأمر)) زه په دغه وخت كښې وړه جينۍ ووم.چه لوبې به مې كولې (حضرت عائشې رضي الله عنها مطلب دا ووچه داحكامو په نزول كښې الله تعالى د حكمت او مصلحت د نظر وړاندې ساتلې دې او تدريجاً نزول اوشو په اول كښې د ترغيب او ترهيب آياتونه نازل شول بيا تدريجاً دحرامو او حلالو احكام نازل شول، په مكه كښې د سورة قمر نزول اوشو په دې كښې احكام نشته) حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائى د سورة بقرې او سورة نساء د نزول په وخت كښې زه د نبى صلى الله عليه وسلم سره ووم.(يعنى دا دواړه سورتونه په احكامو مشتمل دى ددې وجې ددې نزول د هجرت نه پس شوې دې كله چه زه د نبى صلى الله عليه وسلم په نكاح كښې راغلې ووم) ددې نه پس حضرت عائشې رضي الله عنها دعراقى كس دپاره مصحف راويستلو اود سورتونو د آياتونو املاء ني ورته اوكړه فأملت عليه اي السورة

دحديث ددې آخرى جملې نه معلوميږى چه ددې عراقى تپوس د آياتونو د ترتيب په باره كښې وو حال دا چه ددې نه وړاندې د حضرت عائشې رضي الله عنها د قول ((ومايضرك أية قرأت قبل)) نه

---

١) فتح البارى (٩/٤٧)_
٢) فتح البارى (٩/٤٧)_

معلومیږی چه د هغه تپوس د سورتونو دترتیب په باره کښې وو
حافظ ابن حجر رحمه الله لیکلی دی چه ممکن ده چه د هغه تپوس د آیاتونو او سورتونو دواړو د ترتیب په باره کښې وو.(۱)
شیخ الحدیث مولانا زکریا رحمه الله فرمائیلی دی چه دهغه تپوس د سورتونو د ترتیب په باره کښې وو د آیاتونو املاء حضرت عائشې رضی الله عنها ضمنا اوکړه. (۲)

**یو اشکال او دهغې حل:** په پورتنی روایت کښې دی «إنما نزل أول ما نزل منه سورة من المفصل فيها ذكر الجنة والنار» په دې باندې اشکال کیږی چه د «أول ما نزل» مصداق خو د سورة علق اولنی پنځه آیاتونه دی په دې کښې خو د جهنم او جنت ذکر نشته.

ددې یو جواب دا ورکړې شوې دې چه دلته «من» محذوف دې «أى من أول ما نزل» یعنی په اول کښې نازلیدونکی آیاتونود مفصل په یو سورت کښې د جنت او جهنم ذکر دې (۳)
او یا د «أول ما نزل» نه سورة مدثر مراد دې ځکه چه د فترة وحی نه پس دا د «أول ما نزل» مصداق دې او ددې په آخر کښې د جنت او جهنم ذکر شته (۴)

[۴۷۰۸] حَدَّثَنَا آدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنَ يَزِيدَ بْنِ قَيْسٍ سَمِعْتُ ابْنَ مَسْعُودٍ يَقُولُ فِي بَنِي إِسْرَائِيلَ وَالْكَهْفِ وَمَرْيَمَ وَطه وَالْأَنْبِيَاءِ إِنَّهُنَّ مِنَ الْعِتَاقِ الْأُوَلِ وَهُنَّ مِنْ تِلَادِي [ر:۴۴۳۱]

په دې روایت کښې حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه پنځه سورتونه خپله پخوانئ غوره سرمایه خودلې ده حال دا چه دا ذکر شوی سورتونه په مصحف عثمانی کښې په ابتداء کښې نشته بلکه په مینځ کښې دی البته ددې پنځو سورتونو په خپل مینځ کښې هم هغه ترتیب دې کوم چه په روایت کښې دې «عتاق» د «عتيق» جمع ده هرښه ځیز ته وائی «أول» د «أول» جمع ده «تلاد» زوړ موروثی مال.

[۴۷۰۹] حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ أَنْبَأَنَا أَبُو إِسْحَاقَ سَمِعَ الْبَرَاءَ بْنَ عَازِبٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ تَعَلَّمْتُ سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى قَبْلَ أَنْ يَقْدَمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [ر:۳۷۰۹]

حضرت براء رضی الله عنه فرمائی چه ما سورة الاعلی د نبی کریم ﷺ مدینې منورې ته د راتلو نه وړاندې زده کړې وو. سورة اعلی په اول کښې نازلیدونکی سورتونو کښې دې خو په مصحف عثمانی کښې په آخری پاره کښې وه معلومه شوه چه د سورتونو ترتیب د نزول د ترتیب نه مختلف دې

۱) فتح الباری (۹/۴۸)_
۲) الأبواب والتراجم (۱۲/۶۰)_
۳) فتح الباری (۹/۴۸)_
۴) فتح الباری (۹/۴۸)_



[۴۷۵۰] حَدَّثَنَا عَبْدَانُ عَنْ اَبِي حَمْزَةَ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ شَقِيقٍ قَالَ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ لَقَدْ تَعَلَّمْتُ النَّظَائِرَ الَّتِي كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَؤُهُنَّ اثْنَيْنِ اثْنَيْنِ فِي كُلِّ رَكْعَةٍ فَقَامَ عَبْدُ اللّٰهِ وَدَخَلَ مَعَهُ عَلْقَمَةُ وَخَرَجَ عَلْقَمَةُ فَسَأَلْنَاهُ فَقَالَ عِشْرُونَ سُورَةً مِنْ اَوَّلِ الْمُفَصَّلِ عَلَى تَأْلِيفِ ابْنِ مَسْعُودٍ اٰخِرُهُنَّ الْحَوَامِيمُ حم الدُّخَانِ وَعَمَّ يَتَسَاءَلُونَ [ر: ۷۴۲]

شقيق بن سلمه نه روايت دې چه حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه فرمائيلي دي چه زه هغه نظائر پيژنم كوم چه نبى كريم ﷺ په يو ركعت كښې دوه دوه لوستل (د نظائرو نه هغه سورتونه مراد دي كوم چه د مضمون ،طوالت اواختصارپه اعتبار سره يو د بل نظير او مشابه دي (١)

حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه دا اووئيل او پاسيدلو كورته لاړلوحضرت علقمه هم د دوى سره دننه لاړلو حضرت علقمه چه كله راووتلو نو مونږ دهغه نه تپوس اوكړو (چه هغه كوم سورتونه دى) نوهغه اووئيل هغه د ابن مسعود د مصحف د ترتيب مطابق د مفصل ابتدائى شل سورتونه دى د كوم په آخر كښې چه ((حم)) يعنى سورة دخان او عم يتسآءلون دى

ددې روايت نه معلومه شوه چه د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه د مصحف ترتيب د مصحف عثمانى د ترتيب نه خلاف ووځكه چه په هغې كښې ئې د مفصل ترتيب بيان كړې دې او ((حم الدخان)) او ((عم يتسآءلون)) ئې په آخر كښې بيان كړې دى په مصحف عثمانى كښې حم الدخان او عم يتساءلون متصل نه دى سورة دخان مجازاً په مفصل كښې شمارلې شوې دې ځكه چه د مفصل سورتونو ابتداء د سورة حجرات نه كيږى (٢)

د سورة حجرات نه تر آخره پورې سورتوتو ته مفصل ددې وجې وائى چه په دې كښې د بسم الله په ذريعه فصل زيات واقع دې په يو قول كښې سورة دخان هم په مفصل كښې داخل دې(٣)

په روايت باب كښې د مفصل د كومو شلو سورتونو ذكر دې چه نبى ﷺ دا په يو ركعت كښې دوه دوه ملاووهل او لوستل د ابوداود په روايت كښې د دغه سورتونو نومونه ذكر شوى دى په هغې كښې دى

((كان يقرأ النظائر السورتين فى ركعة الرحمن والنجم فى ركعة واقتربت والحاقة فى ركعة والذاريات والطور فى ركعة ، والواقعة ونون فى ركعة ، وسأل والنازعات فى ركعة ، وويل للمطففين وعبس فى ركعة ، والمدثر والمزمل فى ركعة ، وهل أتى ولا أقسم فى ركعة ، وعم يتساءلون والمرسلات فى ركعة ، وإذا الشمس كورت والدخان فى ركعة)) (٤)

روايت الباب په كتاب الصلاة كښې د ((باب الجمع بين السورتين)) لاندې تير شوې دې (٥)

---

١ ) ارشاد السارى (۲۷۳\۱۱)_
٢ ) ارشاد السارى (۲۷۳\۱۱)_
٣ ) فتح البارى كتاب الأذان باب الجمع بين السورتين فى الركعة (۲۵۹\۲)_
٤ ) فح البارى كتاب الأذان باب الجمع بين السورتين فى ركعة (۲۵۹\۲)_
٥ ) صحيح البخارى مع الفتح كتاب الأذان باب الجمع بين السورتين (۲۵۵\۲)_

## ۷=باب كان جبريل يعرض القرآن على النبي صلى الله عليه وسلم

په ترجمه كښې د مجرد صيغه ((يعرض)) ده او په كښې حديث د باب مفاعله صيغه ((يعارض)) استعمال شوې ده د دې نه معلوميږى چه د دواړو طرفونو به عرض كيدلو او حقيقت هم دا دې دلته د امام بخارى رحمه الله مقصد دا دې چه نبى كريم ﷺ به حضرت جبرئيل عليه السلام ته قرآن كريم تيرولو .

وَقَالَ مَسْرُوقٌ عَنْ عَائِشَةَ عَنْ فَاطِمَةَ عَلَيْهَا السَّلَامُ اَسَرَّ اِلَيَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّ جِبْرِيلَ كَانَ يُعَارِضُنِي بِالْقُرْاٰنِ كُلَّ سَنَةٍ وَاَنَّهُ عَارَضَنِي الْعَامَ مَرَّتَيْنِ وَلَا اُرَاهُ اِلَّا حَضَرَ اَجَلِي [ر:۳۴۲۶]

د حضرت فاطمې رضي الله عنها نه روايت دې چه نبى ﷺ ماته په پټه باندې اووئيل چه حضرت جبرئيل عليه السلام به هر كال د قرآن كريم يو دور ما سره كولو او سږ كال هغوى ماسره دوه خله دور اوكړو زما خيال دې ه زما د وفات وخت رانزدې شوې دې

د نبى ﷺ سره په آخرى رمضان كښې حضرت جبرئيل عليه السلام دوه خله د قرآن پاك دور كړې وو يو ځل خو ددې دپاره چه د هر آيت او هر سورت مقام او ترتيب متعين شى د منسوخ او غير منسوخ علم راشى اودوباره دور يا خو ددې دپاره وو چه د قرآن كريم نزول په رمضان كښې شروع شوې وو نو په اول كال كښې دور نه وو شوې او س د نبى ﷺ د دنيا نه د تشريف اوړلو وخت رانزدې شو نو د هغه اولنى كال تلافى په آخرى كال كښې داسې اوشوه چه دوه خله دور اوكړې شو اويا دا وئيلى شى چه صرف د تقرير او تاكيد دپاره دوباره دور اوكړې شو چه په ښه شان سره د آياتونو او سورتونو ترتيب متعين شى

د مسروق دا تعليق امام بخارى په ((علامات النبوة)) كښې موصولاً نقل كړې دې (۱)

[۴۷۰۷] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ قَزَعَةَ حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَجْوَدَ النَّاسِ بِالْخَيْرِ وَاَجْوَدُ مَا يَكُونُ فِي شَهْرِ رَمَضَانَ لِاَنَّ جِبْرِيلَ كَانَ يَلْقَاهُ فِي كُلِّ لَيْلَةٍ فِي شَهْرِ رَمَضَانَ حَتَّى يَنْسَلِخَ يَعْرِضُ عَلَيْهِ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْقُرْاٰنَ فَاِذَا لَقِيَهُ جِبْرِيلُ كَانَ اَجْوَدَ بِالْخَيْرِ مِنَ الرِّيحِ الْمُرْسَلَةِ [ر:۶]

ددې حديث پوره تفصيل په ((باب بدء الوحى)) كښې تير شوې دې هم هغه متعلق مباحث دې اوكتلې شى (۲)

---

۱) ارشاد السارى (۱۱\۲۷٤)_

۲) كشف البارى (۱\۶٦٤و ٤٧١)_

[۴۷۱۲] حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ يَزِيدَ حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرٍ عَنْ أَبِي حَصِينٍ عَنْ أَبِي صَالِحٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ كَانَ يَعْرِضُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْقُرْآنَ كُلَّ عَامٍ مَرَّةً فَعَرَضَ عَلَيْهِ مَرَّتَيْنِ فِي الْعَامِ الَّذِي قُبِضَ فِيهِ وَكَانَ يَعْتَكِفُ كُلَّ عَامٍ عَشْرًا فَاعْتَكَفَ عِشْرِينَ فِي الْعَامِ الَّذِي قُبِضَ فِيهِ [ر:۱۹۳۹ و ۳۰۴۸]

## ۸ = بَاب الْقُرَّاءِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

[۴۷۱۳] حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَمْرٍو عَنْ إِبْرَاهِيمَ عَنْ مَسْرُوقٍ ذَكَرَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَمْرٍو عَبْدَ اللَّهِ بْنَ مَسْعُودٍ فَقَالَ لَا أَزَالُ أُحِبُّهُ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ خُذُوا الْقُرْآنَ مِنْ أَرْبَعَةٍ مِنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ وَسَالِمٍ وَمُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ وَأُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ [ر:۳۵۴۸]

په دې حدیث کښې د څلورو قاریانو ذکر دې په حضرات صحابه کرامو رضي الله عنهم کښې هسې خو قاریان ډیر وو خو ددې څلورو ذکر د هغوی د اختصاص او د قرآن کریم د قراءت سره د زیات شغف په وجې کړې شوې دې (۱)

[۴۷۱۴] حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا أَبِي حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ حَدَّثَنَا شَقِيقُ بْنُ سَلَمَةَ قَالَ خَطَبَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْعُودٍ فَقَالَ وَاللَّهِ لَقَدْ أَخَذْتُ مِنْ فِي رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِضْعًا وَسَبْعِينَ سُورَةً وَاللَّهِ لَقَدْ عَلِمَ أَصْحَابُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنِّي مِنْ أَعْلَمِهِمْ بِكِتَابِ اللَّهِ وَمَا أَنَا بِخَيْرِهِمْ قَالَ شَقِيقٌ فَجَلَسْتُ فِي الْحِلَقِ أَسْمَعُ مَا يَقُولُونَ فَمَا سَمِعْتُ رَادًّا يَقُولُ غَيْرَ ذَلِكَ

واخذت من فی رسول الله صلی الله علیه وسلم سمعت منه مباشرة (بضعا) ما بین الثلاث الی التسع (الحلق) جمع حلقة وهی القوم المجتمعون مستدیرین. لیستمعوا العلم ونحوه (رادا) عالما یرد قول ابن مسعود رضی الله عنهما او یخالفه

[۴۷۱۵] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ عَنِ الْأَعْمَشِ عَنْ إِبْرَاهِيمَ عَنْ عَلْقَمَةَ قَالَ كُنَّا بِحِمْصَ فَقَرَأَ ابْنُ مَسْعُودٍ سُورَةَ يُوسُفَ فَقَالَ رَجُلٌ مَا هَكَذَا أُنْزِلَتْ قَالَ قَرَأْتُ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ أَحْسَنْتَ وَوَجَدَ مِنْهُ رِيحَ الْخَمْرِ فَقَالَ أَتَجْمَعُ أَنْ تُكَذِّبَ بِكِتَابِ اللَّهِ وَتَشْرَبَ الْخَمْرَ فَضَرَبَهُ الْحَدَّ

دلته دوه خبرې قابل غور دی اوله خو دا چه حضرت عبدالله بن مسعود دغه کس د کتاب په تکذیب کولو باندې موندلو خو د هغه تکفیر ئې اونکړلو او د هغه د څټ وهلو فیصله ئې اونکړله ددې وجه یا خو دا کیدې شی چه حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه د جهالت په وجه هغه معذور اوګرځولو او دا خیال ئې اوکړوچه دې چونکه ناواقف دې خکه

---

۱) عمدة القاری (۲۰\۲٤)_

تکذیب کوی په حقیقت کښې دده مقصد په قصد باندې تکذیب کول نه دی او یا دا وئیلې شی چه دا کس چونکه د نشې په حالت کښې وو اود هغه حواس صحیح نه وو ددې وجې حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه هغه غیر مکلف اوګنړلو د هغوی رائې د وه چه د بیهوشۍ او نشې په حالت کښې که سړې داسې قسم خبره اوکړی نو دهغې څه اعتبار نشته.(۱)

دویمه خبره دا ده چه حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه ته بوئې محسوس شو او په هغه ئې حد جاری کړو نو آیا که د شرابو بوئې د چا نه راځی په هغه باندې حد جاری کول جائز دی؟

امام مالك رحمه الله د جواز قائل دې (۲) امام ابوحنیفه او امام شافعی رحمه الله په داسې صورت کښې د حد د جواز قائل نه دی (۳) د امام احمد بن حنبل نه د جواز او عدم جواز دواړه روایتونه منقول دی (۴) حدیث باب د امام مالك مستدل دې

په حدیث باب باندې یو اشکال دا کیږی چه حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه په خپله څنګه حد جاری کړول د حد جاری کولو اختیار خو امام ته وی

ددې جواب دا دې چه کیدې شی د حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه مسلك دا وو چه حد هر څوك جاری کولې شی د امام شرط په کښې نشته .

او دا هم ممکن ده چه حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه د دغه ښار امیر یا د امیر نائب وو ددې وجې هغوی حد جاری کړی وی (۵)

اوچا وئیلی دی چه دا امام جاری کړې وو خود عبدالله بن مسعود رضی الله عنه په ګواهئ او وئیلو باندې ئې جاری کړې ووددې وجې هغوی طرف ته نسبت شوې دې (۶) والله اعلم

[۴۷۱٦] حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا أَبِي حَدَّثَنَا الأَعْمَشُ حَدَّثَنَا مُسْلِمٌ عَنْ مَسْرُوقٍ قَالَ قَالَ عَبْدُ اللَّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وَاللَّهِ الَّذِي لَا إِلَهَ غَيْرُهُ مَا أُنْزِلَتْ سُورَةٌ مِنْ كِتَابِ اللَّهِ إِلَّا أَنَا أَعْلَمُ أَيْنَ أُنْزِلَتْ وَلَا أُنْزِلَتْ آيَةٌ مِنْ كِتَابِ اللَّهِ إِلَّا أَنَا أَعْلَمُ فِيمَ أُنْزِلَتْ وَلَوْ أَعْلَمُ أَحَدًا أَعْلَمَ مِنِّي بِكِتَابِ اللَّهِ تُبَلِّغُهُ الإِبِلُ لَرَكِبْتُ إِلَيْهِ

دا دحضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه دحرص علی العلم حال دې او هم دا د عامو صحابه کرامو رضی الله عنهم کیفیت وو.

[۴۷۱۸\۴۷۱۷] حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ قَالَ سَأَلْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ مَنْ جَمَعَ الْقُرْآنَ عَلَى عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أَرْبَعَةٌ

---

۱) فتح الباری (۶۰۱۹)_
۲) فتح الباری (۶۰۱۹)_
۳) فتح الباری (۶۰۱۹) وعمدة القاری (۲۶\۲۰)_
٤) فتح الباری (۶۱۱۹)_
۵) عمدة القاری (۲۶\۲۰)_
۶) ارشاد الساری (۲۷۸\۱۱)_

كُلُّهُمْ مِنَ الْأَنْصَارِ أُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ وَمُعَاذُ بْنُ جَبَلٍ وَزَيْدُ بْنُ ثَابِتٍ وَأَبُوزَيْدٍ تَابَعَهُ الْفَضْلُ عَنْ حُسَيْنِ بْنِ وَاقِدٍ عَنْ ثُمَامَةَ عَنْ أَنَسٍ

په روايت كښې دى چه د رسول الله ﷺ په زمانه كښې څلورو صحابوؓ قرآن كريم جمع كړې وو ؓ ددې جمع نه «جمع في الصدور» يعنى حفظ مراد دې او حفظ كونكى صحابه هم په څلورو كښې منحصر نه وو بلكه د هغوى ډير شمارتقديم وتاخير وو په روايت باب كښې چه د دې څلورو كوم ذكر شوې دې ددې مختلف وجوهات بيان شوى دى

① دا عدد دې او د عدد د مفهوم اعتبار نه وى د څلورو په تذكرې سره د باقى نفى نه كيږى. ② د وجود قراءات جامع دا څلورحضرات وو ددې وجې د دوى ذكر شوې دې

③ دې څلورو ته د ناسخ او منسوخ دواړه قسمه آياتونه حفظ وو ددې وجې د دوى ذكر اوشو

④ ددې څلورو ذكر د دې وجې شوې دې چه هغوى د نبى ﷺ نه براه راست قرآن مجيد اوريدلې وواو د دوى نه علاوه نورو حضراتو څه د نبى ﷺ نه اوريدلې او ياد كړې وو اوڅه د نورو ذرائع نه ياد كړې وو.

⑤ ذكر شوې څلور حضرات چونكه د قرآن كريم په تعليم او تعلم كښې مشهور وود هغوى د انهماك او قرآن سره د شغف په نسبت سره زيات وو ددې وجې د دې څلورو ذكر اوشو.(١)

⑥ حافظ ابن حجرؒ په دې باره كښې يوه بله توجيه راجحه ګرځولې ده چه ددې څلورو ذكر د يو خاص ډلې او خاصو افرادو په مقابله كښې شوې دې ابن جرير طبرى د حضرت انس ؓ نه يه روايت نقل كړې دې چه يو ځل په قبيله اوس او قبيله خزرج كښې د افتخار خبره راغله د اوس قبيلې اووئيل چه مونږ سره څلور كسان داسې دې كوم چه په خاصو صفتونوموصوف دى په مونږ كښې يوكس داسې دې چه دهغه په مرګ باندې دالله تعالى عرش په حركت كښې راغلې وو.يعنى حضرت سعدبن معاذدويم كس داسې دې چه دهغه ګواهى نبى ﷺ د دوو كسانو د ګواهئ برابر كړې ده يعنى حضرت خزيمه بن ثابت .دريم كس داسې دې چا ته چه فرښتو غسل وركړې دې يعنى حضرت حنظله بن ابى عامر ، څلورم داسې دې چه ډنبرو يا د شاتو مچو دهغه د لعش حفاظت كړې دې يعنى حضرت عاصم بن ثابت انصارى ـ

ددې په جواب كښې د خزرج قبيلې اووئيل په مونږ كښې هم څلور كسان داسې دى چا چه قرآن مجيد جمع كړې دې اود ذكر شوو څلورو حضراتو نومونه ئې واخستل نو دلته د خزرج او اوس په مينځ كښې مقابله وه په خزرج كښې څلور كسان حافظان وو او په قبيله اوس كښې نه وو نو دوى په مقابله كښې د هغه څلورو ذكر راغلو خو كه د اوس په قبيله كښې حافظ نه وو نو ددې نه دا نه لازميږى چه نور صحابه هم حافظان نه وو.(٢)

د فضل بن موسى متابعت اسحاق بن راهويه په خپل مسند كښې موصولاً كړې دې(٣)

---

١ ) فتح البارى (٩/٦٢)ـ

٢ ) فتح البارى (٩/٦٢)ـ

٣ ) ارشاد السارى (١١/٢٧٩)ـ

[۴۷۱۸] حَدَّثَنَا مُعَلَّى بْنُ اَسَدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ الْمُثَنَّى قَالَ حَدَّثَنِي ثَابِتٌ الْبُنَانِيُّ وَثُمَامَةُ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ مَاتَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَمْ يَجْمَعِ الْقُرْاٰنَ غَيْرُ اَرْبَعَةٍ اَبُوالدَّرْدَاءِ وَمُعَاذُ بْنُ جَبَلٍ وَزَيْدُ بْنُ ثَابِتٍ وَاَبُوزَيْدٍ قَالَ وَنَحْنُ وَرِثْنَاهُ [ر:۳۵۹۹]

په دې روایت کښې د حضرت ابی بن کعب په ځائې د حضرت ابوالدرداء رضی الله عنه نوم راغلې دې امام بیهقی رحمه الله فرمائیلی دی چه دا وهم دې صحیح ابی بن کعب رضی الله عنه دې (۱)

**قوله:** وَنَحْنُ وَرِثْنَاهُ: حضرت انس رضی الله عنه فرمائی چه د ابوزید وارث مونږ شو ځکه چه هغه د دوی تره وو او د هغه خپل څه اولاد نه وو.(۲)

[۴۷۱۹] حَدَّثَنَا صَدَقَةُ بْنُ الْفَضْلِ اَخْبَرَنَا يَحْيَى عَنْ سُفْيَانَ عَنْ حَبِيبِ بْنِ اَبِي ثَابِتٍ عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ عُمَرُ اُبَيٌّ اَقْرَؤُنَا وَاِنَّا لَنَدَعُ مِنْ لَحْنِ اُبَيٍّ وَاُبَيٌّ يَقُولُ اَخَذْتُهُ مِنْ فِي رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَا اَتْرُكُهُ لِشَيْءٍ قَالَ اللّٰهُ تَعَالَى مَا نَنْسَخْ مِنْ اٰيَةٍ اَوْ نُنْسِهَا نَاْتِ بِخَيْرٍ مِنْهَا اَوْ مِثْلِهَا [ر:۴۲۱۱]

مطلب دا دې چه حضرت ابی بن کعب رضی الله عنه ډیر لوئې قاری دې خو مونږ د هغه ډیر قراءتونه پریږدو هغوی خو هم دا وائی چه ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم د خولې مبارکې نه دا اوریدلی دی ځکه ئې زه نه پریږدم.خو بعضې آیتونه منسوخ وی الله تعالی پخپله فرمائی ((ما ننسخ من آیة...))نو دا منسوخ آیتونه به پریخودل وی حال دا چه ابی بن کعب رضی الله عنه په خپل مصحف کښې د هغې تلاوت هم کولو د ((لحن)) نه مراد قراءت دې .(۳)

## ۹=بَابُ فَضْلِ فَاتِحَةِ الْكِتَابِ

[۴۷۲۰] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ حَدَّثَنِي خُبَيْبُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ حَفْصِ بْنِ عَاصِمٍ عَنْ اَبِي سَعِيدِ بْنِ الْمُعَلَّى قَالَ كُنْتُ اُصَلِّي فَدَعَانِي النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمْ اُجِبْهُ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ اِنِّي كُنْتُ اُصَلِّي قَالَ اَلَمْ يَقُلِ اللّٰهُ اسْتَجِيبُوا لِلّٰهِ وَلِلرَّسُولِ اِذَا دَعَاكُمْ ثُمَّ قَالَ اَلَا اُعَلِّمُكَ اَعْظَمَ سُورَةٍ فِي الْقُرْاٰنِ قَبْلَ اَنْ تَخْرُجَ مِنَ الْمَسْجِدِ فَاَخَذَ بِيَدِي فَلَمَّا اَرَدْنَا اَنْ نَخْرُجَ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ اِنَّكَ قُلْتَ لَاُعَلِّمَنَّكَ اَعْظَمَ سُورَةٍ مِنَ الْقُرْاٰنِ قَالَ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ هِيَ السَّبْعُ الْمَثَانِي وَالْقُرْاٰنُ الْعَظِيمُ الَّذِي اُوتِيتُهُ [ر:۴۲۰۴]

دا روایت په کتاب التفسیر کښې تیر شوې دې او هلته په دې باندې بحث شوې دې (٤)

---

۱ ) فتح الباری (۹\٦٤)_
۲ ) فتح الباری (۹\٦٤)_
۳ ) ارشاد الساری (۱۱\۲۸۱)_
٤ ) کشف الباری کتاب التفسیر:۸)_

[٤٧٢١] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى حَدَّثَنَا وَهْبٌ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ مُحَمَّدٍ عَنْ مَعْبَدٍ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ كُنَّا فِي مَسِيرٍ لَنَا فَنَزَلْنَا فَجَاءَتْ جَارِيَةٌ فَقَالَتْ إِنَّ سَيِّدَ الْحَيِّ سَلِيمٌ وَإِنَّ نَفَرَنَا غَيَبٌ فَهَلْ مِنْكُمْ رَاقٍ فَقَامَ مَعَهَا رَجُلٌ مَا كُنَّا نَأْبُنُهُ بِرُقْيَةٍ فَرَقَاهُ فَبَرَأَ فَأَمَرَ لَهُ بِثَلَاثِينَ شَاةً وَسَقَانَا لَبَنًا فَلَمَّا رَجَعَ قُلْنَا لَهُ أَكُنْتَ تُحْسِنُ رُقْيَةً أَوْ كُنْتَ تَرْقِي قَالَ لَا مَا رَقَيْتُ إِلَّا بِأُمِّ الْكِتَابِ قُلْنَا لَا تُحْدِثُوا شَيْئًا حَتَّى نَأْتِيَ أَوْ نَسْأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا قَدِمْنَا الْمَدِينَةَ ذَكَرْنَاهُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ وَمَا كَانَ يُدْرِيهِ أَنَّهَا رُقْيَةٌ اقْسِمُوا وَاضْرِبُوا لِي بِسَهْمٍ

دا روایت په کتاب الاجاره کښې تیر شوې دې (۱) «أبن» ‌ﻁ «أبنا بشئ» تهمت لګول ، عیب لګول «ما کنا نأبنه برقیة» مونږ په هغه باندې د منتر ونیلو عیب نه لګولو یعنی د هغه په باره کښې د منتر کولو علم مونږ ته نه وو هغه په دې حیثیت سره مشهور نه وو.

وَقَالَ أَبُو مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ حَدَّثَنَا هِشَامٌ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سِيرِينَ حَدَّثَنِي مَعْبَدُ بْنُ سِيرِينَ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ بِهَذَا [ر:٢١٥٦]

په پورتنې سند کښې عنعنه ده هشام د محمد بن سیرین نه په «عن» سره روایت نقل کړې دې په دې تعلیق کښې د تحدیث تصریح ده ددې وجې امام بخاری رحمه الله دا دلته ذکر کړې دې دا تعلیق اسماعیلی موصولاً نقل کړې دې (۲)

## ١٠- بَاب فَضْلِ سُورَةِ الْبَقَرَةِ

[٤٧٢٢] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ عَنْ سُلَيْمَانَ عَنْ إِبْرَاهِيمَ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ أَبِي مَسْعُودٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ قَرَأَ بِالْآيَتَيْنِ

وَحَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ مَنْصُورٍ عَنْ إِبْرَاهِيمَ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ يَزِيدَ عَنْ أَبِي مَسْعُودٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ قَرَأَ بِالْآيَتَيْنِ مِنْ آخِرِ سُورَةِ الْبَقَرَةِ فِي لَيْلَةٍ كَفَتَاهُ [ر:٣٧٨٦]

په دې روایت کښې د آیتین نه «آمن الرسول» نه واخله تر آخر د سورت پورې دوه آیاتونه مراد دی ددې دواړو آیاتونو په باره کښې راغلی دی چه د شپې کوم کس دا اولولی دا دواړه آیاتونه د هغه دپاره کافی کیږی

د کوم څیز دپاره کافی کیږی ؟ بعضو وئیلی دی چه د قیام اللیل نه کافی کیږی بعضو وئیلی دی چه د شیطان د شر نه کفایت کوی بعضو وئیلی دی چه د قرآن کریم د تلاوت دپاره ورله کافی کیږی بعضو وئیلی دی چه د هر شر نه د حفاظت دپاره ورله کافی کیږی(۳)

---

۱) فتح الباری (۶۶/۹)_
۲) ارشاد الساری (۲۸٤/۱۱)_
۳) فتح الباری (۶۸/۹)_

خو په دې اقوالو کښې څه تضاد نشته ټول جمع کيدې شي.

[۴۷۲۳] وَقَالَ عُثْمَانُ بْنُ الْهَيْثَمِ حَدَّثَنَا عَوْفٌ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيرِينَ عَنْ اَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ وَكَّلَنِي رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِحِفْظِ زَكَاةِ رَمَضَانَ فَاَتَانِي اٰتٍ فَجَعَلَ يَحْثُو مِنَ الطَّعَامِ فَاَخَذْتُهُ فَقُلْتُ لَاَرْفَعَنَّكَ اِلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَصَّ الْحَدِيثَ فَقَالَ اِذَا اَوَيْتَ اِلَى فِرَاشِكَ فَاقْرَاْ اٰيَةَ الْكُرْسِيِّ لَنْ يَزَالَ مَعَكَ مِنَ اللّٰهِ حَافِظٌ وَلَا يَقْرَبُكَ شَيْطَانٌ حَتّٰى تُصْبِحَ وَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَدَقَكَ وَهُوَ كَذُوبٌ ذَاكَ شَيْطَانٌ [ر:۲۱۸۷]

دا تعليق دې اسماعيلی او ابونعيم دا موصولاً نقل کړې دې (۱) دا په کتاب الوکالة کښې تير شوې دې او په دې کښې چه کومه واقعه ذکر ده هغه هم هلته تيره شوې ده (۲)

«يحثو من الطعام» يعنی هغه د طعام (دانو) نه لپه ډکوله.

## ۱۱= بَاب فَضْلِ سُورَةِ الْكَهْفِ

[۴۷۲۴] حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ خَالِدٍ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ حَدَّثَنَا اَبُو اِسْحَاقَ عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ كَانَ رَجُلٌ يَقْرَاُ سُورَةَ الْكَهْفِ وَاِلَى جَانِبِهِ حِصَانٌ مَرْبُوطٌ بِشَطَنَيْنِ فَتَغَشَّتْهُ سَحَابَةٌ فَجَعَلَتْ تَدْنُو وَتَدْنُو وَجَعَلَ فَرَسُهُ يَنْفِرُ فَلَمَّا اَصْبَحَ اَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرَ ذٰلِكَ لَهُ فَقَالَ تِلْكَ السَّكِينَةُ تَنَزَّلَتْ بِالْقُرْاٰنِ [ر:۳۴۱۸]

حضرت براء بن عازب رضی الله عنه فرمائی چه يو سړی سورة کهف وئيل او دده يوطرف ته يو اس په رسئ پورې تړلې شوې وو په هغه کس باندې وريځ راغله او چه هغه وريځ هغه ته ورنزدې شوه نو اس اووريدل صبا چه کله نبی صلی الله عليه وسلم ته دا واقعه بيان کړې شوه نو نبی صلی الله عليه وسلم اوفرمائيل دا سکينه وه کومه چه د قرآن پ وجه نازله شوې وه

«شطنين» دا د شطن تثنيه ده رسئ ته وائی سکينه يو مخلوق دې چه په هغې کښې رحمت ،وقار او فرشتې شامل وی رحمه الله د سکينه په باره کښې اقوال په کتاب التفسير کښې تير شوی دی.(۳)

## ۱۲= بَاب فَضْلِ سُورَةِ الْفَتْحِ

[۴۷۲۵] حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنْ زَيْدِ بْنِ اَسْلَمَ عَنْ اَبِيهِ اَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَسِيرُ فِي بَعْضِ اَسْفَارِهِ وَعُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ يَسِيرُ مَعَهُ لَيْلًا فَسَاَلَهُ عُمَرُ

---

۱) ارشاد الساری (۱۱\۲۸۵)_

۲) صحيح البخاری کتاب الوکالة باب إذا وکل الرجل (۳۱۰\۱)_

۳) کشف الباری کتاب ا لتفسير (۶۰۸) تفسير سورة الفتح)_

عَنْ شَيْءٍ فَلَمْ يُجِبْهُ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ سَأَلَهُ فَلَمْ يُجِبْهُ ثُمَّ سَأَلَهُ فَلَمْ يُجِبْهُ فَقَالَ عُمَرُ ثَكِلَتْكَ أُمُّكَ نَزَرْتَ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ كُلُّ ذٰلِكَ لَا يُجِيبُكَ قَالَ عُمَرُ فَحَرَّكْتُ بَعِيرِي حَتّٰى كُنْتُ أَمَامَ النَّاسِ وَخَشِيتُ أَنْ يَنْزِلَ فِيَّ قُرْآنٌ فَمَا نَشِبْتُ أَنْ سَمِعْتُ صَارِخًا يَصْرُخُ بِي قَالَ فَقُلْتُ لَقَدْ خَشِيتُ أَنْ يَكُونَ نَزَلَ فِيَّ قُرْآنٌ قَالَ فَجِئْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ فَقَالَ لَقَدْ أُنْزِلَتْ عَلَيَّ اللَّيْلَةَ سُورَةٌ لَهِيَ أَحَبُّ إِلَيَّ مِمَّا طَلَعَتْ عَلَيْهِ الشَّمْسُ ثُمَّ قَرَأَ إِنَّا فَتَحْنَا لَكَ فَتْحًا مُبِينًا [ر: ٣٩٤٣]

## ١٣ = بَابُ فَضْلِ قُلْ هُوَ اللّٰهُ أَحَدٌ

## فِيهِ عَمْرَةُ عَنْ عَائِشَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [ر: ٦٩٤٠]

د دې سورة په فضيلت كښې «عمرة عن عائشة» په طريق سره روايت وړاندې په كتاب التوحيد كښې امام بخارى رحمه الله موصولاً نقل كړې دې چه رسول الله ﷺ يو سړې په سريه باندې امير مقرر كړلو او وې ليږلو هغه به په مانځه كښې «قل هو الله أحد» لوستل د روايت په آخر كښې دى چه نبى كريم ﷺ اوفرمائيل دې كس ته خبر وركړئ چه الله تعالى ده سره محبت كوى (١)

[٤٧٢٧، ٦٢٦٣، ٧٠٣٦] (٢) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ أَبِي صَعْصَعَةَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ أَنَّ رَجُلًا سَمِعَ رَجُلًا يَقْرَأُ قُلْ هُوَ اللّٰهُ أَحَدٌ يُرَدِّدُهَا فَلَمَّا أَصْبَحَ جَاءَ إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرَ ذٰلِكَ لَهُ وَكَأَنَّ الرَّجُلَ يَتَقَالُّهَا فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ إِنَّهَا لَتَعْدِلُ ثُلُثَ الْقُرْآنِ وَزَادَ أَبُو مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ أَبِي صَعْصَعَةَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ أَخْبَرَنِي أَخِي قَتَادَةُ بْنُ النُّعْمَانِ أَنَّ رَجُلًا قَامَ فِي زَمَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ مِنَ السَّحَرِ قُلْ هُوَ اللّٰهُ أَحَدٌ لَا يَزِيدُ عَلَيْهَا فَلَمَّا أَصْبَحْنَا أَتَى الرَّجُلُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ (٣)

حضرت ابو سعيد خدرى رضي الله عنه فرمائى چه يو كس بل سړې اوليدل چه بار بار ئې «قل هو الله

---

١) فتح البارى (٧٢/٩)_

٢) أن رجلاً سمع رجلاً ) السامع هو ابوسعيد الخدرى والقارى قتادة بن النعمان رضي الله عنه (يرددها) يكررها (يتقالها)) يرى أن الإقتصار على قراءتها قليل (لتعدل ثلث القرآن) ثوابها يضاعف بقدر ثواب ثلث القرآن .وقيل غير ذلک (من السحر) فى السحر وهو وقت ما قبيل الفجر)_

٣ ) أخرجه البخارى أيضاً فى كتاب الأيمان والنذور باب كيف كانت يمين النبى ﷺ رقم الحديث ٦٦٤٣ وفى كتاب التوحيد باب ما جاء فى دعاء النبى ﷺ رقم الحديث (٧٣٧٤ الإام مالک فى الموطا فى كتب القرآن باب ما جآء فى قراءة قل هو الله أحد رقم الحديث (١٧)_

احد»وئيل ويونكې قتاده بن نعمان وو.اواوريدونكې د حديث راوى ابوسعيد خدرى ﷛ وو. «و:أن الرجل يتقالها» يعنى اوريدونكى سړى دا سورة كم اوګڼړلو چه دا خو وړكوټې سورة دې «يتقالها» ددې اصل «يتقاللها» دې «أى عدها قليلة»نو نبى كريم ﷺ اوفرمائيل قسم دې وى په هغه ذات باندې چه د هغه قدرت كښې زما روح دې دا سورة خو د ثلث القرآن سره برابر دې

**د سوره اخلاص د ثلث القرآن كيدو مطلب** : سورة اخلاص چه د ثلث القرآن برابر ګرځولې شوې دې عالمانو ددې مختلف وجوهات بيان كړى دى.

① ابوالعباس بن سريج فرمائيلى دى چه د قرآن كريم درې قسمونه دى

① په يو ثلث كښې احكام دى

② په دريم ثلث كښې وعد او وعيد دې

③او په دريم ثلث كښې اسماء او صفات دى او سورة اخلاص په دې دريم

قسم باندې مشتمل دې ددې وجې دا د ثلث القرآن سره برابرګرځولې شوې دې علامه ابن تيميه ﷫دا توجيه احسن ګرځولې ده.(١)

② علامه ابن جوزى ﷫فرمائيلى دى چه د الله تعالى معرفت په درې قسمه دې

① د الله تعالى د ذات معرفت

② د الله تعالى د صفاتو او اسماؤ معرفت

③ د الله تعالى د افعالومعرفت سورة اخلاص د الله تعالى د ذات په معرفت باندې مشتمل دې ددې وجې دا ثلث قرآن ګرځولې شوې دې (٢)

③ امام غزالى ﷫فرمائيلى دى چه د قرآن كريم ټول درې مهمات دى.

① د الله تعالى معرفت

② د آخرت معرفت

③ او د صراط مستقيم معرفت اصل معارف هم دا درې دى او باقى توابع دى او سورة اخلاص په دې كښې په يو يعنى دالله تعالى د ذات په معرف باندې مشتمل دې ددې وجې قرآن ته د ثلث القرآن مساوى ګرځولې شوې دې

④ علامه مازرى ﷫ فرمائى چه قرآن كريم په درې قسمه مضامينو باندې مشتمل دې

① قصص ② احكام ③ او دالله تعالى اوصاف سورة اخلاص په درې صفاتو باندې مشتمل دې ددې وجې دې ته ثلث القرآن وئيلې شوى دى(٣)

بهر حال عالمانو د سورة اخلاص د ثلث القرآن سره د مساوى ګرځولو دا مختلف وجوه بيان كړى دى او حقيقت دا دې چه په دې كښې څه قسم تضاد نشته ټولې جمع كيدې شى

---

١ ) مموع فتاوى ابن تيمية(١٠٣\١٧)_

٢ ) مجموع فتاوى شيخ الاسلام ابن تيميه (١٠٤\١٧)_

٣ ) مجموع فتاوى ابن تيمية (١٢٢\١٧)_

سورة اخلاص د ثلث القرآن مساوی ګرځولو مطلب دا دې چه ددې ثواب د ثلث القرآن د ثواب سره برابر دې (۱)

**يو اشكال او د هغې جوابونه:** په دې باندې دا اشكال كيدې شي كه يو كس درې ځله سورة اخلاص اووائي نو هغه ته د ټول قرآن ثواب ملاويږي نو بيا د ټول قرآن كريم د تلاوت څه ضرورت دې

① ددې يو جواب دا دې چه د ثواب دوه قسمونه دی يو ثواب اصلی او بل ثواب تضعيفی او فضلی ، د سورة اخلاص تلاوت چه كوم يو كس كوی ده ته د هغې اجر اصلی هم ملاويږي او دغه اصلی اجر زيات كړې شی تردې چه د ثلث قرآن د ثواب اصلی سره برابر شی او چه ددې اجر اصلی او تضعيفی ملاؤ شی نو د اجر اصلی سره برابر شی دا مطلب نه دې چه ددې اجر اصلی د ثلث قرآن د اجر اصلی سره برابريږي يا ددې اجر تضعيفی د ثلث قرآن د اجر تضعيفی سره برابريږي چه ددې اجراصلی او اجر تضعيفی ملاؤ شی نو د ثلث قرآن د اجر اصلی او اجر تضعيفی سره برابر شی ـ

② دويم جواب دا دې ه د سورة اخلاص د تلاوت ثواب په دې لحاظ سره د ثلث قرآن د تلاوت سره برابر اوګرځولې شو چه دا مضامين قرآن پاك كښې په يو قسم باندې مشتمل دې نو كه څوك يو ځل سورة اخلاص اووائی نو د يو ثلث ثواب ورته ملاويږي او چه دوباره ئې اووائی نو هم د هغه ثلث ثواب ملاويږي د باقی دوو مضامينو ثواب د سورة اخلاص په وئيلو سره نه حاصليږي په دې وجه دا نشی وئيلې درې ځله د سورة اخلاص په وئيلو سره د ټول قرآن د تلاوت ثواب ملاويږي بلكه د يو ثلث مكرر او درې كرته ثواب ملاويږي علامه ابن تيميه رحمه الله ليكی

«فإذا قرأ الإنسان «قل هو الله أحد» حصل له ثواب بقدر ثواب ثلث القرآن لكن لا يجب أن يكون الثواب من جنس الثواب الحاصل ببقية القرآن بل قد يحتاج إلى جنس الثواب الحاصل بالأمر والنهي والقصص فلا تسد «قل هو الله أحد» مسد ذلك ولا تقوم مقامه فلهذا لو لم يقرأ قل هو الله أحد فإنه ومن حصل له أجر عظيم لكن جنس الأجر الذي يحصل بقراءة غيرها لا يحصل له بقراءتها بل يبقى فقيراً محتاجاً إلى ما يتم به إيمانه من معرفة الأمر والنهي والوعد والوعيد ولم قام بالواجب عليه ، فالمعارف التي تحصل بقراءة سائر القرآن لا تحصل بمجرد قراءة هذه السورة فيكون من قرأ القرآن أفضل ممن قرأها ثلاث مرات من هذه الجهة لتنوع الثواب وإن كان قارئ «قل هو الله أحد» ثلاثاً يحصل له ثواب بقدر ذلك الثواب لكنه جنس واحد ليس فيه الأنواع التي يحتاج إليها العبد كمن معه ثلاثة آلاف دينار وآخر معه طعام ولباس ومساكن ولقد يعدل ثلاثة آلاف دينار فإن هذا معه ما ينتفق به في جميع أموره وذالك محتاج إلى ما مع هذا وإن كان معه يعدل ما مع هذا» (۲)

---

۱) فتح الباری (۹\۷۵)ـ
۲) مجموع فتاوی ابن تيمية (۱۷\۱۳۳)ـ

[۴۷۲۷] حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا اَبِي حَدَّثَنَا الاَعْمَشُ حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيمُ وَالضَّحَّاكُ الْمَشْرِقِيُّ عَنْ اَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِاَصْحَابِهِ اَيَعْجِزُ اَحَدُكُمْ اَنْ يَقْرَاَ ثُلُثَ الْقُرْاٰنِ فِي لَيْلَةٍ فَشَقَّ ذٰلِكَ عَلَيْهِمْ وَقَالُوا اَيُّنَا يُطِيقُ ذٰلِكَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ فَقَالَ اللّٰهُ الْوَاحِدُ الصَّمَدُ ثُلُثُ الْقُرْاٰنِ

قال ابوعبدالله عن ابراهيم مرسل وعن الضحاك المشرقي مسند [ر: ۶۶۴۳، ۶۹۳۹]

د امام بخاری رحمه الله مقصد دا دې چه اعمش د ابراهیم نه هم دا روایت نقل کوی او د ضحاك مشرقي نه هم دا نقل کوی خو د اعمش روایت کوم چه د ابراهیم نخعی نه دې هغه مرسل دې او کوم چه د ضحاك مشرقي نه منقول دې هغه مسند دې د ابراهیم نخعی په طریق د ابو سعید خدری رضی الله عنه ذکر نشته د دې وجې هغه مرسل دې او د ضحاك مشرقي په طریق کښې د «عن أبي سعيد الخدري» اضافه موجود ده نو هغه مسند دې د ابراهیم نخعی روایت ته امام بخاری رحمه الله منقطع ددې وجې وئیلې دې چه د دوی سماع د حضرت ابوسعید خدری رضی الله عنه نه ثابته نه ده.

## ۱۴=بَاب فَضْلِ الْمُعَوِّذَاتِ

[۴۷۲۸، ۴۷۲۹] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا اَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ اِذَا اشْتَكَى يَقْرَاُ عَلَى نَفْسِهِ بِالْمُعَوِّذَاتِ وَيَنْفُثُ فَلَمَّا اشْتَدَّ وَجَعُهُ كُنْتُ اَقْرَاُ عَلَيْهِ وَاَمْسَحُ بِيَدِهِ رَجَاءَ بَرَكَتِهَا

[۴۷۲۹] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا الْمُفَضَّلُ بْنُ فَضَالَةَ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ اِذَا اَوَى اِلَى فِرَاشِهِ كُلَّ لَيْلَةٍ جَمَعَ كَفَّيْهِ ثُمَّ نَفَثَ فِيهِمَا فَقَرَاَ فِيهِمَا قُلْ هُوَ اللّٰهُ اَحَدٌ وَقُلْ اَعُوذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ وَقُلْ اَعُوذُ بِرَبِّ النَّاسِ ثُمَّ يَمْسَحُ بِهِمَا مَا اسْتَطَاعَ مِنْ جَسَدِهِ يَبْدَاُ بِهِمَا عَلَى رَاْسِهِ وَوَجْهِهِ وَمَا اَقْبَلَ مِنْ جَسَدِهِ يَفْعَلُ ذٰلِكَ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ [ر: ۴۱۷۵]

په معوذات کښې تغليباً «قل هو الله احد» هم شامل کړې شوې دې

## ۱۵=بَاب نُزُولِ السَّكِينَةِ وَالْمَلَائِكَةِ عِنْدَ قِرَاءَةِ الْقُرْاٰنِ

[۴۷۳۰] وَقَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِي يَزِيدُ بْنُ الْهَادِ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ اِبْرَاهِيمَ عَنْ اُسَيْدِ بْنِ حُضَيْرٍ قَالَ بَيْنَمَا هُوَ يَقْرَاُ مِنَ اللَّيْلِ سُورَةَ الْبَقَرَةِ وَفَرَسُهُ مَرْبُوطَةٌ عِنْدَهُ اِذْ جَالَتِ الْفَرَسُ فَسَكَتَ فَسَكَتَتْ فَقَرَاَ فَجَالَتِ الْفَرَسُ فَسَكَتَ وَسَكَتَتِ الْفَرَسُ ثُمَّ قَرَاَ فَجَالَتِ الْفَرَسُ فَانْصَرَفَ وَكَانَ ابْنُهُ يَحْيَى قَرِيبًا مِنْهَا فَاَشْفَقَ اَنْ تُصِيبَهُ فَلَمَّا اجْتَرَّهُ رَفَعَ رَاْسَهُ اِلَى السَّمَاءِ حَتَّى مَا يَرَاهَا فَلَمَّا اَصْبَحَ حَدَّثَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اقْرَاْ يَا ابْنَ حُضَيْرٍ اقْرَاْ يَا ابْنَ حُضَيْرٍ قَالَ فَاَشْفَقْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ اَنْ تَطَاَ يَحْيَى وَكَانَ مِنْهَا قَرِيبًا فَرَفَعْتُ رَاْسِي فَانْصَرَفْتُ اِلَيْهِ فَرَفَعْتُ رَاْسِي اِلَى السَّمَاءِ

قال: وما ذاك قال: تلك الملائكة دنت لصوتك ولو قرأت لأصبحت ينظر الناس إليها لا تتوارى منهم قال ابن الهاد وحدثني هذا الحديث عبد الله بن خباب عن أبي سعيد الخدري عن أسيد بن حضير

د اس د توپ وهلو او د خاموش كيدو وجه دا وه چه كله به حضرت اسيد ﷺ د شپې په څه حصه كښې د قرآن كريم تلاوت كولو نو د قراءت اوريدو دپاره به فرښتې ښكته راتلې چه هغوى به نې اوكتل نو اس به د ويرې د وجې توپ كړې هم دا وجه وه چه چه د تلاوت پاك په بنديدو سره فرښتې پورته لاړلې او اس توپونه وهل پريخودل.

**قوله: اقرأ يا ابن حضير اقرأ يا ابن حضير:** علامه طيبى ﷫ فرمائى چه د امر د صيغې مقصد په زمانه ماضى كښې د طلب زيادت دې لكه چه نبى ﷺ د دغه عجيبه او ناشنا حالت استحضار اوكړو او حضرت اسيد بن حفير ته نې د ونيلو ترغيب وركولوچه حاصل نې دا دې چه «هلاوت» په دې باندې دليل دا دې چه پخپله وړاندې حضرت اسيد بن حضير په جواب كښې فرمائى «أشفقت يا رسول الله أن تطأيحيى» زه د دې خبرې نه اوويريدم چه هسې نه اس يحى پانمال كړى څكه چه اس د يحى سره نزدې وو(۱)

ملا على قارى ﷫ فرمائى چه د وريځې سره د تشبيه وجه دا ده چه فرښتې د قرآن كريم د اوريدو دپاره ډيرې په كثرت سره راتلې نو كله چه حضرت اسيد اوكتل نو داسې ورته محسوس شوه چه د پردې پشان څه څيز دې كوم چه د دوى او د آسمان په مينځ كښې حائل كيږى نو دهغې څيز نه نې په وريځې سره تعبير اوكړو او په هغې كښې چه كومه ډيوه بليدله هغه د فرښتو مخونه وو كوم چه د ډيوو پشان روښانه وو.(۲)

حاصل دا دې چه دلته د «اقرأ» نه د حكايت په وخت كښې لوستل مراد نه دى بلكه نبى ﷺ دهغه د اصلى حالت استحضار اوكړو او وې فرمائيل لكه چه نبى ﷺ حضرت حضير په هغه حالت كښې ليدل چه فرښتو په هغه باندې سيورې كړې وو او جمع شوې وې او په دغه حالت كښې ورته حكم وركوى چه ته لګيا اوسه دې دپاره د فرښتو د اوريدو او د هغوى د موجودګۍ په وجه په تا باندې بركت نازليږى (۳)

امام بخارى ﷫ دا روايت تعليقاً نقل كړې دې او ابوعبيد په فضائل القرآن كښې دا موصولاً نقل كړې دې (٤)

---

۱) شرح الطيبى (٢٢١١٤) كتاب فضائل القرآن)_

۲) مرقاة شرح مشكاة (٣٣٩١٤)_

۳) فتح البارى (٧٨١٩)_

٤) فضائل القرآن لابى عبيد :باب فضل قراءة القرآن والإستماع له (٢٥)_

## ١٦=بَابٌ مَنْ قَالَ لَمْ يَتْرُكِ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَّا مَا بَيْنَ الدَّفَّتَيْنِ

[٤٧٣١] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ رُفَيْعٍ قَالَ دَخَلْتُ أَنَا وَشَدَّادُ بْنُ مَعْقِلٍ عَلَى ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا فَقَالَ لَهُ شَدَّادُ بْنُ مَعْقِلٍ أَتَرَكَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ شَيْءٍ قَالَ مَا تَرَكَ إِلَّا مَا بَيْنَ الدَّفَّتَيْنِ قَالَ وَدَخَلْنَا عَلَى مُحَمَّدِ بْنِ الْحَنَفِيَّةِ فَسَأَلْنَاهُ فَقَالَ مَا تَرَكَ إِلَّا مَا بَيْنَ الدَّفَّتَيْنِ

دلته د روايت نه شبه پيدا كيږى چه قرآن كريم د نبى ﷺ په زمانه كښې په بين الدفتين كښې جمع كړې شوې ووحال دا چه داسې نه ده

جواب دا دې چه د «ماترك إلا مابين الدفتين» مقصد دا دې چه نن چه كوم «مابين الدفتين» موجود دى نبى ﷺ هم دا پريخودې وو او د دنيا نې ئې تشريف اوړې وودا مطلب نه دې چه د نبى كريم ﷺ په زمانه كښې قرآن كريم په «مابين الدفتين» كښې جمع شوې وو.

امام بخارى رحمه الله په اصل كښې د روافضو ترديد كول غواړى د هغوى نظريه ده چه د قرآن كريم نه حضرت عثمان رضي الله عنه وغيره ډير آياتونه ويستلى دى امام بخارى رحمه الله د حضرت على رضي الله عنه د رشته دارانو نه او هم خيالو كسانو حضرت عبدالله بن عباس، او دغه شان دهغوى د خامنو حضرت محمد بن حنفيه نه روايت نقل كړلو او د روافضو ترديد ئې اوكړو چه نبى ﷺ ما بين الدفتين پريخودې دى او تشريف ئې اوړې دې د دوى نه پس په دې كښې نه د څه آيت اضافه شوې ده او نه د دې نه يو آيت كم شوې دې (١)

## ١٧=بَابُ فَضْلِ الْقُرْآنِ عَلَى سَائِرِ الْكَلَامِ

امام بخارى رحمه الله دا خودل غواړى چه د كلام په ټولو قسمونو باندې قرآن مجيد ته كلى فضيلت حاصل دې امام ترمذى په دې مفهوم باندې يو روايت هم نقل كړې دې په هغې كښې دى «فضل كلام الله على سائر الكلام كفضل الله على خلقه» (٢)

[٤٧٣٢] (٣) حَدَّثَنَا هُدْبَةُ بْنُ خَالِدٍ أَبُو خَالِدٍ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ حَدَّثَنَا أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ

---

١ ) فيض البارى (٢٦٨\١٤)_

٢ ) سنن الترمذى قبيل كتاب القراءت بحديث (١٨٤\٥٢٩٢٦)_

٣ ) وأخرجه البخارى أيضاً فى كتاب فضائل القرآن باب إثم من رائ بقراءة القرآن أوتاكل به أو فجر به رقم الحديث (٥٠٥٩) وفى كتاب الأطعمة باب ذكر الطعام رقم الحديث (٥٤٢٧) وفى كتاب التوحيد باب قراءة العاجر ولامنافق وأصواتهم لا تجاوز حناجرهم رقم الحديث (٧٥٦٠) ومسلم فى كتاب صلاة المسافرين وقصرها باب فضيل- حافظ القرآن رقم الحديث (٧٩٧) والترمذى فى كتاب الأمثال باب ما جاء مثل المومن القارى وغير القارى رقم الحديث (٢٤٦٥) وأبوداود فى كتاب الأدب باب من يؤمر أن يجالس رقم الحديث (٤٨٢٩) وابن ماجه فى المقدمة باب فضل من تعلم القرآن وعلمه رقم الحديث (٢١٤) والدارمى فى كتاب فضائل القرآن باب مثل المومن الذى يقرأ القرآن رقم الحديث (٣٣٦٢)_

عَنْ اَبِى مُوسَى الاَشْعَرِيِّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَثَلُ الَّذِى يَقْرَأُ الْقُرْآنَ كَالاُتْرُجَّةِ طَعْمُهَا طَيِّبٌ وَرِيحُهَا طَيِّبٌ وَالَّذِى لَا يَقْرَأُ الْقُرْآنَ كَالتَّمْرَةِ طَعْمُهَا طَيِّبٌ وَلَا رِيحَ لَهَا وَمَثَلُ الْفَاجِرِ الَّذِى يَقْرَأُ الْقُرْآنَ كَمَثَلِ الرَّيْحَانَةِ رِيحُهَا طَيِّبٌ وَطَعْمُهَا مُرٌّ وَمَثَلُ الْفَاجِرِ الَّذِى لَا يَقْرَأُ الْقُرْآنَ كَمَثَلِ الْحَنْظَلَةِ طَعْمُهَا مُرٌّ وَلَا رِيحَ لَهَا [ر: ۴۷۷۲، ۵۱۱۱، ۷۱۲۱]

په دې روايت کښې مثال بيان شوې دې چه لکه څنګه د نارنج خوشبوئ ښه وی او د هغې خوند هم ښه وی نو د قرآن کريم لوستونکې هم دغه شان بهترين دې او چه کوم سړې مومن وی خو قرآن نه لولی د هغه مثال د قجورې پشان دې چه خوند خو ئې ښه وی خو خوشبو ئې نه وی نو د ايمان په‌وجه داسې کس خوښه دې خو د قرآن لوستلو خوشبوئ نه دې محروم دې او هغه ګناهګار چه قرآن لولی هغه د ګل ريحان پشان دې چه خوشبوئی خو ئې ښه وی خو خوند ئې تريخ وی او هغه فاجر چه قرآن نه لولی د هغه مثال د حنظله دتريخ پشان دې چه خوند ئې هم ترخ وی او خوشبوئی په کښې هم نه وی.

په دې روايت کښې چه نبی ﷺ د قرآن پاك د قاری کوم فضيلت بيان کړې دې هغه د قرآن په بنياد باندې دې ددې نه معلومه شوه‌قرآن مجيد د کلام په ټولو قسمونو کښې غوره دې.

[۴۷۳۳] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ عَنْ يَحْيَى عَنْ سُفْيَانَ حَدَّثَنِى عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ دِينَارٍ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّمَا اَجَلُكُمْ فِى اَجَلِ مَنْ خَلَا مِنَ الاُمَمِ كَمَا بَيْنَ صَلَاةِ الْعَصْرِ وَمَغْرِبِ الشَّمْسِ وَمَثَلُكُمْ وَمَثَلُ الْيَهُودِ وَالنَّصَارَى كَمَثَلِ رَجُلٍ اسْتَعْمَلَ عُمَّالًا فَقَالَ مَنْ يَعْمَلُ لِى اِلَى نِصْفِ النَّهَارِ عَلَى قِيرَاطٍ فَعَمِلَتِ الْيَهُودُ فَقَالَ مَنْ يَعْمَلُ لِى مِنْ نِصْفِ النَّهَارِ اِلَى الْعَصْرِ عَلَى قِيرَاطٍ فَعَمِلَتِ النَّصَارَى ثُمَّ اَنْتُمْ تَعْمَلُونَ مِنَ الْعَصْرِ اِلَى الْمَغْرِبِ بِقِيرَاطَيْنِ قِيرَاطَيْنِ قَالُوا نَحْنُ اَكْثَرُ عَمَلًا وَاَقَلُّ عَطَاءً قَالَ هَلْ ظَلَمْتُكُمْ مِنْ حَقِّكُمْ قَالُوا لَا قَالَ فَذَاكَ فَضْلِى اُوتِيهِ مَنْ شِئْتُ [ر: ۵۳۲]

دا روايت په کتاب الصلاة کښې تير شوې دې د ترجمة الباب سره ئې مطابقت داسې دې چه په دې روايت کښې د امت محمديه فضيلت بيان شوې دې او د امت محمديه فضيلت د قرآن کريم په وجه دې په کوم باندې د عمل کولو چه دوی ته حکم شوې دې (۱)

## ۱۸= بَابُ الْوَصِيَّةِ بِكِتَابِ اللّٰهِ عَزَّ وَجَلَّ

«وصاة» د وصيت په معنی کښې مصدر دې رسول الله ﷺ په کتاب الله باندې دعمل کولو دپاره وصيت کړې ووپه دې باب کښې ددې بيانول مقصود دی

[۴۷۳۴] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ مِغْوَلٍ حَدَّثَنَا طَلْحَةُ قَالَ سَأَلْتُ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ اَبِى اَوْفَى اَوْصَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لَا فَقُلْتُ كَيْفَ كُتِبَ عَلَى

۱) فتح البارى (۸۳/۹)_

النَّاسِ الْوَصِيَّةُ اُمِرُوا بِهَا وَلَمْ يُوصِ قَالَ اَوْصٰى بِكِتَابِ اللّٰهِ[ر:۲۵۸۹]
مطلب دا دې چه خلقو ته د وصیت کولو کوم حکم ورکړې شوې دې هغه د حقوقو متعلق دې او په نبی باندې چونکه د چا حق نه وو ددې وجې نبیﷺ د حقوقو په باره کښې وصیت نه وو کړې باقی دا چه په نبیﷺ باندې د امت د لارخودلو حق وو نو په ټول ژوند کښې نبیﷺ دا حق ادا کولو او خلقو ته به ئې لار خودله او د دنیا د تلو په وخت کښې نبیﷺ د امت ددې حق بیا خیال اوساتلونو دوی ته ئې تاکید اوکړواو وصیت ئې اوکړو چه په کتاب الله باندې عمل کوئ او په کتاب الله باندې عمل چونکه د رسول اللهﷺ د سنتو نه بغیر ممکن نه دې ددې وجې ئې په کتاب الله باندې د عمل کولو په وصیت کښې په سنت باندې عمل کول هم داخل کړو.(۱)

## ۱۹=بَابُ مَنْ لَمْ يَتَغَنَّ بِالْقُرْآنِ [ر:۷۰۸۹]

وَقَوْلُهُ تَعَالٰى اَوَلَمْ يَكْفِهِمْ اَنَّا اَنْزَلْنَا عَلَيْكَ الْكِتَابَ يُتْلٰى عَلَيْهِمْ(العنکبوت[۵۱]
امام بخاری ﷫ چه په ترجمه کښې کوم الفاظ ذکر کړی دی نو دا الفاظ وړاندې په کتاب التوحید کښې امام بخاری د ابن شهاب زهری په سند سره نقل کړی دی (۲)
حافظ ابن حجر ﷫ فرمائیلی دی چه امام بخاری ﷫ په کتاب الاحکام کښې دا الفاظ نقل کړی دی(۳) خودا دحافظ صاحب سهو دحدیث الفاظ دا دې ((من لم يتغن بالقرآن فليس منا))
**د تغنی بالقرآن په تفسیر کښې اقوال :** ددې په تفسیر او تشریح کښې اختلاف دې او د عالمانو مختلف اقوال دی:
① یو قول دا دې چه د تغنی نه استغناء مراد ده بیا ددې استغناء بالقرآن په مطلب کښې هم دوه اقوال دی :
① امام احمد بن حنبل ﷫ د وکیع بن جراح نه نقل کړی دی چه ددې نه مراد ((استغناء عن أخبار الأمم الماضية)) دې او مطلب دا دې چه کوم کس د قرآن مجید تلاوت کوی هغه ته پکار دې چه د تیرو شوو امتونو د حالاتو او واقعاتو په تحقیق او لټون کښې نه مشغوله کیږی هم قرآن مجید دده دپاره کافی دې که دې د یهودو او نصاری کتابونه لولی او د هغوی د صحیفیو مطالعه کوی اود قرآن مجید په بیان کړو واقعاتو باندې قناعت نه کوی نو دې زمونږ نه نۀ دې (۴)

---

۱ ) قال العینی فی عمدة القاری (۳۹\۱۲) والمراد بالوصیة بكتاب الله حفظه حسا ومعنى وإكرامه وصونه ولا يسافر به إلى أرض العدو ويتبع ما فيه . فيعمل بأوامره ويجتنب نواهيه . ويداوم على تلاوته وتعلمه وتعليمه)
۲ ) صحیح البخاری کتاب التوحید باب قول الله تعالى وأسروا قولكم .. وهو اللطيف الخبير .. رقم الحديث (۷۵۲۵ ص. ۱۵۸۱)_
۳ ) فتح الباری (۸٤\۹)_
٤ ) فتح الباری (۸٤\۹)_

ددې قول تائيد په هغه روايت سره کيږی کوم چه ابن جرير طبری د يحی بن جعده نه نقل کړې دې چه څو مسلمانانو څه کتابونه راوړل او حاضر شول په هغې کښې د يهودو نه اوريدلې خبرې ليکلې وې نبی چه هغه کتابونه اوليدل نو وې فرمائيل«كفى بقوم ضلالة أن يرغبوا عما جاء به نبيهم إليهم إلى ما جاء به غيره إلى غيرهم» يعنی د خپل نبی راوړې کتاب نه ډډه کول او د بل راوړې څيز کښې رغبت کول د ګمراهئ دپاره کافی دی په دې باندې د قرآن کريم دا آيت نازل شو (۱)

امام بخاری رحمه الله په ترجمة الباب کښې دا آيت ذکر کړې دې او د تغنی بالقرآن په باره کښې ئې د وکيع بن جراح ذکر شوی روايت راجح کيدو ته اشاره کړې ده

② دويم قول د سفيان بن عيينه دې بلکه څنګه چه امام بخاری رحمه الله ددې باب په آخر کښې ليکلی دې چه د استغناء بالقرآن نه مراد استغناء عن اكثار الدنيا ده او مطلب دادې چه کوم کس د قرآن کريم زده کولو نه د دنيا نه استغناء اختيار نکړی نو هغه زمونږ نه نه دې د ابوعبيد قاسم بن سالم رجحان دې قول طرف ته دې (۲) اګرچه امام شافعی رحمه الله ابن جرير طبری او ابوعاصم نبيل د سفيان بن عيينه قول رد کړې دې(۳)

امام شافعی رحمه الله فرمائی که د تغنی نه مراد استغناء وی نو نبی ﷺ به د «من لم يتغن بالقرآن» په ځائې «من لم يستغن بالقرآن» وئيلې وو (٤)

ابوعاصم نبيل فرمائيلی دی «لم يصنع سفيان بن عيينة شيئاً» يعنی سفيان بن عيينه چه دا مطلب بيان کړې دې څه ښه کارنامه ئې نه ده کړې بهر حال دا اولنې قول وو چه د تغنی نه مراد استغناء ده «الاستغناء عن إخبار الأمم الماضية»

③ دويم قول دا دې چ ددې نه تشاغل مراد دې عرب وائی «تغنى بالمكان» کله چه سړې په هغې کښې قيام او شغل اختيار کړی مطلب دا شوچه څوك د قرآن سره شوق او ددې شغل نه ساتی هغه زمونږ په طريقه نه دې زمونږ سره د هغه څه تعلق نشته (٥)

④ دريم قول د امام شافعی رحمه الله دې چه ددې نه درد او حزن سره د قرآن کريم وئيل مراد دې.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه د امام شافعی رحمه الله په کلام کښې د تغنی دا تفسير ماته ملاؤ نشوخو امام بيهقی په سنن کبری کښې د امام شافعی رحمه الله نه دا تفسير نقل کړې دې نو دهغوی الفاظ دا دی «أن يقرأه تحزيناً» (٦)

---

١ ) فتح البارى (۸٤\۹)_
٢ ) فتح البارى (۶۸\۹) فضائل القرآن لأبى عبيد باب فضل الحض على القرآن والإيصاء وإيثاره على ماسوا (۲۹)
٣ ) فتح البارى (۸۷\۹)_
٤ ) فتح البارى (۸۷\۹)_
٥ ) فتح البارى (۸۷\۹)_
۶ ) سنن كبرى للبيهقى كتاب الشهادات باب تحسين الصوت بالقرآن والذكر (۲۳۰\۱۰)_

④ څلورم قول دا دې چه ددې نه د تلذذ او حلاوت احساس مراد دې او مطلب دا دې چه كوم كس د قرآن كريم د تلاوت لذت او خوند نه محسوسوي نوهغه زمونږ سره متعلق نه دې لكه څنګه چه اهل عرب په غناء او ګانو سره لذت محسوسوي دغه شان اهل ايمان لره پكار دى چه د قرآن كريم په تلاوت سره لذت محسوسوي.

ابن الانباري په «الزاهر» كښې دا تفسير نقل كړې دې (۱)

⑤ پنځم قول دا دې چه د تغني نه مراد د قرآن مجيد هر وخت وئيل دى د عربو عادت وو چه هغوى به د سورلئ په حالت كښې او كه په كور كښې به ناست وو څه نه څه وئيل د قرآن كريم د نزول نه پس د نبي ﷺ خواهش وو چه مسلمانان د اشعارو وغيره په ځائې د قرآن كريم د آياتونو وئيل كوى ابن العربي دا تفسير نقل كړې دې (۲)

⑥ شپږم قول دا دې چه ددې نه مراد تحسين صوت او خوش آوازى ده يعنى د قرآن كريم تلاوت په ښكلى آواز سره كول د آواز په ښكلى والى كښې د لفظونو صحيح ادا كول اود لهجې صحت داخل دې .

ابن ابي مليكه ،عبدالله بن مبارك و نضر بن شميل دا قول اختيار كړې دې (۳)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه د تغني په تفسير كښې چه دا كوم اقوال ذكر شول په دې كښې تطبيق كيدې شي دا د يو بل سره جمع كيدې شي او مطلب دا دې چه د قرآن كريم تلاوت په درد او ښكلى آواز سره چه د استغناء صفت ئې په ځان كښې پيدا كړى وئيل پكار دى دوى ليكى

«الحاصل أنه يمكن الجمع بين أكثر التاويلات المذكورة وهو أنه يحسن به صوته جاهرا به مترنما على طريق التحزن، مستغنيا به عن غيره من الأخبار طالباً به غنى النفس، راجيا به غنى اليد وقد نظمت ذلك في بيتين

تغن بالقرآن حسن به الصوت حزيناً جاهرا رنم واستغن عن كتب الاولى طالباً غنى يدٍ به والنفس ثم الزم (۴)

[۴۷۳۶،۴۷۳۵] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنِي اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ أَخْبَرَنِي أَبُو سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّهُ كَانَ يَقُولُ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يَأْذَنِ اللَّهُ لِشَيْءٍ مَا أَذِنَ لِلنَّبِيِّ أَنْ يَتَغَنَّى بِالْقُرْآنِ وَقَالَ صَاحِبٌ لَهُ يُرِيدُ يَجْهَرُ بِهِ

[۴۷۳۶] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ أَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا أَذِنَ اللَّهُ لِشَيْءٍ مَا أَذِنَ

۱) فتح الباري (۸۶/۹)_
۲) فتح الباري (۸۶/۹)_
۳) فتح الباري (۸۷/۹)_
۴) فتح الباري (۸۸/۹)_

لِلنَّبِيِّ اَنْ يَتَغَنّٰى بِالْقُرْاٰنِ قَالَ سُفْيَانُ تَفْسِيْرُهُ يَسْتَغْنِيْ بِهِ(١)[ر: ٤٧٣٥، ٤٧٣٦، ٧٠٨٥]
نبى كريمﷺ فرمايلي دى چه الله تعالى هيڅ يو څيز دومره په توجه سره نه دي اوريدلي لکه څنګه چه ني په توجه سره اوريدل کړى دى دهغه پيغمبر نه چه قرآن کريم په خوش آوازئ سره وائي.

((اذن))د باب سمع نه راخى ددې مصدر ((إذن))دهمزه په کسره او دال په سکون سره راخي نو ددي معنى د اجازت ورکولو راخي او کله چه مصدر ((أذنٌ))د همزه او ذال په فتحه سره، راشي نو ددې معنى اوريدل او استماع ده دلته د اوريدو او استماع په معنى کښي دي(٢)

**قوله:** وَقَالَ صَاحِبٌ لَهُ يُرِيْدُ يَجْهَرُ بِهِ: ((له)) کښي ضمير ابوسلمه طرف ته راجع دي کوم چه د ابن شهاب زهرى شيخ دي او د صاحب نه مراد عبدالحميد بن عبدالرحمن بن زيد بن الخطاب دي او مطلب دا دي چه د ابوسلمه ملګرى عبدالحميد وئيلى دى چه د ((يتغنى بالقرآن))نه په اوچت آواز سره قرآن لوستل مراد دى

داتفسيرابن شهاب زهرى دخپل شيخ ابوسلمه نه اوريدلي دي بلکه عبد الحميد د هغه نه اوريدلي دي د ((زهريات)) په روايت کښي د عبدالحميد د نوم تصريح ده:

## ٢٠=بَابُ اغْتِبَاطِ صَاحِبِ الْقُرْآنِ

يعنى هغه کس چه حافظ قرآن او قاري او عالم وى هغه لائق د رشك او غبطه دي په ترجمة الباب کښي د اغتباط مصدر اضافت مفعول طرف ته شوي دي (٣)

[٤٧٣٧]حَدَّثَنَا اَبُوالْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ حَدَّثَنِيْ سَالِمُ بْنُ عَبْدِاللّٰهِ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ لَا حَسَدَ اِلَّا عَلَى اثْنَتَيْنِ رَجُلٌ اٰتَاهُ اللّٰهُ الْكِتَابَ وَقَامَ بِهِ اٰنَاءَ اللَّيْلِ وَرَجُلٌ اَعْطَاهُ اللّٰهُ مَالًا فَهُوَ يَتَصَدَّقُ بِهِ اٰنَاءَ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ[ر: ٧٠٩]

ددې دوه مطلبه بيانيدي شي يو دا که چرته حسد جائز او مستحب وي نود ذکر شوو دوو کسانو سره به پکار دد چه جائز وي (خو حسد جائز نه دي)

او دويم مطلب دا دي چه حسد مجازاً د غبطه او پسخيدلو په معنى دى چه د پسخيدو لائق دا ذکر شوي دوه کسان دى ددي دويم مطلب تائيد د باب په دويم روايت سره کيږي په دې کښي د ى((ليتنى أوتى مثل ما أوتى فلان فعملت مثل مايعمل))معلومه شوه چه حسد د رشك او

---

١ ) (يستغنى به ) يشغله عن غيره من الكتب وينفعه فى إيمانه ودنياه وآخرته)_
٢ ) ما أذن مثل إذنه (يتغنى بالقرآن) يحسن صوته به ويطرب له (صاحب له) أى لأبى سلمة بن عبدالرحمن وو عبدالحميد بن عبدالرحمن (يريد يجهر به) أى أيريد النبىﷺ بالتغنى بالقرآن الجهر به)_
٣ ) الأبواب والتراجم (٢)_

غبطه په معنی کښې دې څکه چه په غبطه کښې د بل سره د موجوده نعمت تمنا او ارزو کولې شی او په حسد کښې د بل سره چه کوم نعمت وی د هغې د زوال تمنا کولې شی (۱) په دې باندې تفصیلی بحث په کتاب العلم کښې په باب اغتباط العلم کښې تیر شوې دی.

[۴۷۳۸] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ اِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا رَوْحٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ سُلَيْمَانَ سَمِعْتُ ذَكْوَانَ عَنْ اَبِي هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا حَسَدَ اِلَّا فِي اثْنَتَيْنِ رَجُلٌ عَلَّمَهُ اللّٰهُ الْقُرْاٰنَ فَهُوَ يَتْلُوهُ اٰنَاءَ اللَّيْلِ وَاٰنَاءَ النَّهَارِ فَسَمِعَهُ جَارٌ لَهُ فَقَالَ لَيْتَنِي اُوتِيتُ مِثْلَ مَا اُوتِيَ فُلَانٌ فَعَمِلْتُ مِثْلَ مَا يَعْمَلُ وَرَجُلٌ اٰتَاهُ اللّٰهُ مَالًا فَهُوَ يُهْلِكُهُ فِي الْحَقِّ فَقَالَ رَجُلٌ لَيْتَنِي اُوتِيتُ مِثْلَ مَا اُوتِيَ فُلَانٌ فَعَمِلْتُ مِثْلَ مَا يَعْمَلُ [ر: ۶۸۰۵و۷۰۹۰]

**قوله:** حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ اِبْرَاهِيمَ: دعلی بن ابراهیم په باره کښې درې اقوال دی :
① یو دا چه ددې نه علی بن ابراهیم بن عبد الحمید واسطی مراد دې او هم دا د اکثرو حضراتو قول دې دې ثقه دې دامام بخاری د وفات نه پس شل کالو پورې ژوندې وو
② دویم قول دا دې چه ددې نه علی بن الحسن بن ابراهیم بن اشکاب مراد دې دلته په سند کښې د دوی نسبت د پلار په ځائې نیکه ، ،علی بن ابراهیم، ، ته شوې دې ابن عدی هم دا قول اختیار کړې دې ③ دارقطنی او ابوعبدالله بن منده فرمائیلی دی چه ددې نه علی بن عبدالله بن ابراهیم مراد دې (۲)

## ۲۱= بَابُ خَيْرُكُمْ مَنْ تَعَلَّمَ الْقُرْاٰنَ وَعَلَّمَهُ

«خیرکم من تعلم القرآن وعلمه» کښې دوه روایتونه دی یو په «واو» سره او بل په «او» سره امام بخاری رحمه الله په ترجمة الباب کښې په «واو» سره ذکر کړې دې او د «أو» روایت ته ئې د مرجوح کیدو په وجه اشاره کړې ده (۳) مطلب دا دې چه د قرآن کریم په تعلیم او تعلم دواړو باندې خیر مرتب کیږی صرف په یو باندې نه.

[۴۷۳۹و۴۷۴۰] حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ اَخْبَرَنِي عَلْقَمَةُ بْنُ مَرْثَدٍ سَمِعْتُ سَعْدَ بْنَ عُبَيْدَةَ عَنْ اَبِي عَبْدِ الرَّحْمٰنِ السُّلَمِيِّ عَنْ عُثْمَانَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ خَيْرُكُمْ مَنْ تَعَلَّمَ الْقُرْاٰنَ وَعَلَّمَهُ قَالَ وَاَقْرَاَ اَبُو عَبْدِ الرَّحْمٰنِ فِي اِمْرَةِ عُثْمَانَ حَتّٰى كَانَ الْحَجَّاجُ قَالَ وَذَاكَ الَّذِي اَقْعَدَنِي مَقْعَدِي هٰذَا
وَعَلَّمَهُ قَالَ وَاَقْرَاَ اَبُو عَبْدِ الرَّحْمٰنِ فِي اِمْرَةِ عُثْمَانَ حَتّٰى كَانَ الْحَجَّاجُ

سعدبن عبیده فرمائی چه ابی عبدالرحمن سلمی (خلقو ته) دحضرت عثمان رضی الله عنه په دور

---
۱) فتح الباری (۹۰/۱۹)-
۲) فتح الباری (۹۰/۱۹و ۹۱)_
۳) فتح الباری (۹۲/۱۹)_

حکومت کښې قران خودل شروع کړی وو او خودل به ئې تردې دحجاج بن یوسف زمانه راغله.
دحضرت عثمان ﷺ د ابتدائی دوراو د حجاج دآخری دور په مینځ کښې درې میاشتې کم ۷۲ کاله فاصله وه اود حضرت عثمان ﷺ د آخری دور او د حجاج د ابتدائی دور په مینځ کښې ۳۸ کاله فاصله وه په تعین سره نشی معلومیدې چه د کوم کال نه تر کوم کاله پورې به ئې خودل کول (۱) خو دومره خبره یقینی ده چه د دیرش څلوېښتو کالو نه کم دوی (قرآن پاک) نه دی خودلې

**قوله:** قَالَ وَذَاكَ الَّذِي أَقْعَدَنِي مَقْعَدِي هَذَا: ابوعبدالرحمن سلمی فرمائی چه د نبی کریم ﷺ دا وینا چه ((خیرکم من تعلم القرآن وعلمه)) زه داسې کینولې اووم.یعنی د نبی ﷺ بیان کړی فضیلت حاصلولو دپاره ما خپل ژوند د قرآن کریم د تعلیم او تعلم دپاره وقف کړې وو او مسلسل مې دا خدمت کولو.

[۴۷۴۰] حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ مَرْثَدٍ عَنْ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ السُّلَمِيِّ عَنْ عُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ أَفْضَلَكُمْ مَنْ تَعَلَّمَ الْقُرْآنَ وَعَلَّمَهُ

ددې نه وړاندې روایت د شعبه دې او دا روایت د سفیان ثوری نه منقول دې د شعبه په روایت کښې د علقمه او ابوعبدالرحمن سلمی په مینځ کښې د سعدبن عبیده واسطه ده او د سفیان په روایت کښې د سعد واسطه نشته.
حفاظ حدیث دسفیان ثوری روایت راجح ګرځولې دې په کوم کښې چه واسطه نشته او د شعبه روایت ئې د((مزید فی متصل الأسانید)) د قبیلې څخه شمارلې دې (۲)
امام بخاری رحمه الله د دواړو روایت ذکر کړې دې غالباً دې طرف ته ئې اشاره کړې ده چه ذکر شوې دواړه روایتونه محفوظ دی هغه داسې چه علقمه دا حدیث د سعدبن عبیده په واسطه سره هم اوریدلې دې او ددوی دواسطې نه بغیرئې براه راست دابوعبدالرحمن نه هم اوریدلې دې شعبه د واسطې روایت ذکر کړې دې او سفیان د غیرواسطې روایت نقل کړې دې (۳)

[۴۷۴۱] حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَوْنٍ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ أَبِي حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ أَتَتْ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ امْرَأَةٌ فَقَالَتْ إِنَّهَا قَدْ وَهَبَتْ نَفْسَهَا لِلَّهِ وَلِرَسُولِهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ مَا لِي فِي النِّسَاءِ مِنْ حَاجَةٍ فَقَالَ رَجُلٌ زَوِّجْنِيهَا قَالَ أَعْطِهَا ثَوْبًا قَالَ لَا أَجِدُ قَالَ أَعْطِهَا وَلَوْ خَاتَمًا مِنْ حَدِيدٍ فَاعْتَلَّ لَهُ فَقَالَ مَا مَعَكَ مِنْ الْقُرْآنِ قَالَ كَذَا وَكَذَا قَالَ فَقَدْ زَوَّجْتُكَهَا بِمَا مَعَكَ مِنْ الْقُرْآنِ [ر:۲۱۸۶]

---

۱) فتح الباری (۹۴/۱۹)_
۲) فتح الباری (۹۲/۱۹)_
۳) فتح الباری (۹۲/۱۹)_

په دې روايت باندې به وړاندې انشاء الله په کتاب النکاح کښې بحث راشي چونکه ددې روايت نه دعظمت قرآن اوفضيلت قرآن ثبوت ملاويږي ددې وجې امام بخاری دا دلته ذکر کړو(۱)

**قوله:** فاعتلى له: قال الکرمانی(اعتل) أی حزن وتضجرله(له) أی لأجل ذلك (۲) يعنی چه څه هم ورسره نه وو نو په دې وجه هغه پريشانه وو.

## ۲۲=بَاب الْقِرَاءَةِ عَنْ ظَهْرِ الْقَلْبِ

[۴۷۴۲]حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ أَبِي حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ أَنَّ امْرَأَةً جَاءَتْ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ يَا رَسُولَ اللَّهِ جِئْتُ لِأَهَبَ لَكَ نَفْسِي فَنَظَرَ إِلَيْهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَصَعَّدَ النَّظَرَ إِلَيْهَا وَصَوَّبَهُ ثُمَّ طَأْطَأَ رَأْسَهُ فَلَمَّا رَأَتْ الْمَرْأَةُ أَنَّهُ لَمْ يَقْضِ فِيهَا شَيْئًا جَلَسَتْ فَقَامَ رَجُلٌ مِنْ أَصْحَابِهِ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنْ لَمْ يَكُنْ لَكَ بِهَا حَاجَةٌ فَزَوِّجْنِيهَا فَقَالَ هَلْ عِنْدَكَ مِنْ شَيْءٍ فَقَالَ لَا وَاللَّهِ يَا رَسُولَ اللَّهِ قَالَ اذْهَبْ إِلَى أَهْلِكَ فَانْظُرْ هَلْ تَجِدُ شَيْئًا فَذَهَبَ ثُمَّ رَجَعَ فَقَالَ لَا وَاللَّهِ يَا رَسُولَ اللَّهِ مَا وَجَدْتُ شَيْئًا قَالَ انْظُرْ وَلَوْ خَاتَمًا مِنْ حَدِيدٍ فَذَهَبَ ثُمَّ رَجَعَ فَقَالَ لَا وَاللَّهِ يَا رَسُولَ اللَّهِ وَلَا خَاتَمًا مِنْ حَدِيدٍ وَلَكِنْ هَذَا إِزَارِي قَالَ سَهْلٌ مَا لَهُ رِدَاءٌ فَلَهَا نِصْفُهُ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا تَصْنَعُ بِإِزَارِكَ إِنْ لَبِسْتَهُ لَمْ يَكُنْ عَلَيْهَا مِنْهُ شَيْءٌ وَإِنْ لَبِسَتْهُ لَمْ يَكُنْ عَلَيْكَ شَيْءٌ فَجَلَسَ الرَّجُلُ حَتَّى طَالَ مَجْلِسُهُ ثُمَّ قَامَ فَرَآهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُوَلِّيًا فَأَمَرَ بِهِ فَدُعِيَ فَلَمَّا جَاءَ قَالَ مَاذَا مَعَكَ مِنْ الْقُرْآنِ قَالَ مَعِي سُورَةُ كَذَا وَسُورَةُ كَذَا وَسُورَةُ كَذَا عَدَّهَا قَالَ أَتَقْرَؤُهُنَّ عَنْ ظَهْرِ قَلْبِكَ قَالَ نَعَمْ قَالَ اذْهَبْ فَقَدْ مَلَّكْتُكَهَا بِمَا مَعَكَ مِنْ الْقُرْآنِ [ر:۲۱۸۶]

**دقرآن پاک تلاوت په کتلوافضل دې اوکه په ياد؟:** د امام بخاری رحمه الله ددې ترجمة الباب نه مقصد د قرآن پاك د زبانی ونيلو جوازخودل دی خو عالمانو ددې تصريح کړې د ه چه په قرآن کريم کښې په کتلو په يادو د تلاوت کولو نه افضل دی (۳)

ابوعبيد قاسم بن سلام په ،،فضائل القرآن ،، کښې يو مرفوع روايت نقل کړې دې ((فضل قراءة القرآن نظرا على من يقرءوه ظهرا کفضل الفريضة على النافلة))(۴)خو ددې سند کمزورې دې (۵)

۱ ) وفی الفتح (۹۶\۹) وجه ذخوله أن فضل القرآن ظهر على صاحبه فی العاجل بأن قام له مقام المال الذی يتوصل به إلى بلوغ الغرض وإما نفعه فی الأجل فظاهر لا خفاء به )_
۲ ) ارشاد الساری (۳۰٤\۱۱) مجمع بحار الأنوار(۶۵۹\۳)_
۳ ) فتح الباری (۹۷\۹)_
٤ ) فضائل القرآن لأبی عبيد :باب فضل قراءة الذی لا يقيم القرآن )_
۵ ) فتح الباری (۹۷\۹)_



هغوی د حضرت ابن مسعود رضی الله عنه نه یو موقوف روایت نقل کړې دې او د هغې سند صحیح دې د هغې الفاظ دی «أديموا النظر في المصحف»(۱)
په معنوی لحاظ سره کتل او لوستلو کښې یو فائده دا هم ده چه غلطی نه کیږی دویمه دا چه دې په حروفو او نقوشو باندې مسلسل نظر پریوځی.
بعضې حضراتو فرمائیلی دی چه قرآن کریم په یادو ونیل په مصحف کښې کتل او ونیلو نه افضل دې د دوی استدلال د ابن ابی داود په صحیح روایت سره دې کوم چه د ابوامامه نه منقول دې په هغې کښې د ی «اقرأوا القرآن ولا تغرنكم هذه المصاحف المعلقة فإن الله لا يعذب قلبا وعى القرآن»(۲) دغه شان په یادو ونیلو کښې استحضار زیات وی او په تلاوت کښې د ریا ویره کمه وی
خو حقیقت دا دې چه په دې کښې تفصیل دې که یو کس ته په کتلو او ونیلو کښې استحضار او خشوع زیاته محسوسیږی نو د هغه دپاره کتل غوره دی خو په دې شرط چه د ریا ویره نه وی خو که یو کس ته د ریا ویره وی نو بیا دهغه دپاره په یادو ونیل زیات غوره دی حاصل دا چه د افضلیت د اشخاصو او احوالو په اختلاف سره مختلف کیږی (۳)

## ۲۳=بَاب اسْتِذْكَارِ الْقُرْآنِ وَتَعَاهُدِهِ

دامام بخاری رحمه الله مقصد دا دې چه د قرآن مجید د حفظ نه پس ددې د تلاوت اهتمام کول پکار دی اوددې د حفاظت کوشش او سعی جاری ساتل پکار ده داسې نه چه د حفظ کولو نه پس دې ته شا کړی اودا هیر کړی «تعاهده أي تجديد العهد به بملازمة تلاوته»(۴)

[۴۷۴۳]حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّمَا مَثَلُ صَاحِبِ الْقُرْآنِ كَمَثَلِ صَاحِبِ الْإِبِلِ الْمُعَقَّلَةِ إِنْ عَاهَدَ عَلَيْهَا أَمْسَكَهَا وَإِنْ أَطْلَقَهَا ذَهَبَتْ

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه د قرآن ویونکی مثال د تړلی شوی اوښ پشان د خاوند پشان دې که هغه ددې خیال ساتی نوهغه به ئې راتینګ کړئی شی اوکه هغه پریږدی نو لاړبه شی.

[۴۷۴۵\۴۷۴۴]حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَرْعَرَةَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ مَنْصُورٍ عَنْ أَبِي وَائِلٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِئْسَ مَا لِأَحَدِهِمْ أَنْ يَقُولَ نَسِيتُ آيَةَ كَيْتَ وَكَيْتَ بَلْ نُسِّيَ وَاسْتَذْكِرُوا الْقُرْآنَ فَإِنَّهُ أَشَدُّ تَفَصِّيًا مِنْ صُدُورِ الرِّجَالِ مِنَ النَّعَمِ

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه دا خبره بده ده چه په تاسو کښې څوک اووائی چه ما فلانې

---

۱) فضائل القرآن لأبی عبید باب فضل قراءة القرآن نظراً وقراءة الذی لا یقیم ا للقرآن (۴۶)_
۲) فتح الباری (۹\۹۷)_
۳) فتح الباری (۹\۹۷)_
۴) الأبواب والتراجم (۲\۶۲)_

فلانۍ آيت هير کړو بلکه داسې دې وائي چه هغه آيت زما نه هير کړې شو تاسو خلق قرآن ياد ساتئ: ځکه چه دا د سړو د سينو نه په وتلو کښې د وحشي ځناور نه زيات په تيخته وتونکې دې

**قوله:** بِئْسَ مَا لِأَحَدِهِمْ أَنْ يَقُولَ نَسِيتُ آيَةَ كَيْتَ وَكَيْتَ بَلْ نُسِّيَ: ددې جملې په تشريح کښې مختلف اقوال دى :

① ددې يو مطلب دا بيان شوې دې چه دا قول نبى ﷺ د خپل ځان په باره کښې فرمائيلې دې چه کوم کس زما په باره کښې دا اووائى چه ما فلانې فلانې آيت هير کړو نو دده دا وئيل بد دى بلکه هغه دې وائي چه هغه آيت زما نه هير کړې شو د نسخ يو صورت دا هم وو چه منسوخ آيت به د نبى ﷺ نه هير کړې شوېه قرآن کريم کښې دى «ما ننسخ من آية أو ننسها نأت بخير منها» او بل ځائې کښې دى «سنقرئك فلا تنسى إلا ما شاء الله» په دې صورت کښې به دنسيت فاعل نبى کريم ﷺ وى اسماعيلى دا مطلب ليکلې دې

② دويم مطلب دا بيان شوې دې چه «نسيت» د «ترکت» په معنى شى او مطلب دا شى چه د يو کس دا وئيل چه ما فلانې آيت پريخودو ترک کړو لکه څنګه چه د قرآن کريم آيت «نسوا الله فنسيهم» کښې نسيان د ترک په معنى کښې دې ابوعبيد قاسم بن سلام او يوې ډلې دا قول اختيار کړې دې (۱)

③ علامه انور شاه کشميرى رحمه الله فرمائيلى دى چه د قرآن کريم هيرول يوه ګناه ده ددې معصيت د کولو نه پس ددې اعلان کول مذموم اوګرځولې شو ځکه چه د ګناه په اعلان کښې يو قسم زړه ورتيا او جسارت دې نو د ادب تقاضا دا ده چه خپل ځان طرفته دې د نسيان نسبت نه کوى دوى فرمائى

«يعني أما إذا ارتكبت معصية، وانسيت القرآن فال تجهر بها فإنك إن غفلت عنك الإستكار والإستظهار به فلا يفت عنك الأدب وهو أن لا ينسب النسيان إلى نفسه ليدل على تجاسره بل يقول نسى كأنه من سبب سماوى» (۲)

④ څلورم قول دا دې چه داسې اسباب دې اختيار نکړې شى چه د هغې په وجه د نسيان نسبت خپل ځان طرف ته د کولو ضرورت پيښ شى که يو کس داسې اسباب اختياروى نه تلاوت نه کوى د قرآن نه غفلت کوى نو ددې په نتيجه کښې هغه «نسيت آية كيت وكيت» اووائى نو دا مذموم دې بلکه ده لره پکار دى چه د قرآن پاك تلاوت مسلسل کوى ددې باوجود هم که دده نه هيريږى خو هغه د الله تعالى د طرف نه تنسه د ه نسيان نه دې حضرت ګنګوهى فرمائى :

«يعني بذلك أنه لا ينبغي له التغافل وعليه أن يتعاهد القرآن فإذا ذهب عنه مع تعاهده فهو تنسية من الله،

---

۱) فتح البارى (۱۹/۱۰۰)_
۲) فيض البارى (۱٤/۲۷۰)_

وليس بنسيان ولا مواخذة فيه ولا ينبغي له أن يغفل عنه حتى يلزم النوبة أن يقول نسيته»(۱)

[۴۷۴۵] حَدَّثَنَا عُثْمَانُ حَدَّثَنَا جَرِيرٌ عَنْ مَنْصُورٍ مِثْلَهُ تَابَعَهُ بِشْرٌ عَنِ ابْنِ الْمُبَارَكِ عَنْ شُعْبَةَ وَتَابَعَهُ ابْنُ جُرَيْجٍ عَنْ عَبْدَةَ عَنْ شَقِيقٍ سَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [ر: ۴۷۵۲]

**قوله:** تَابَعَهُ بِشْرٌ عَنِ ابْنِ الْمُبَارَكِ عَنْ شُعْبَةَ: دلته د باب په دويم روايت کښې د امام بخاری رحمه الله شيخ محمد بن عرعره دې امام بخاری رحمه الله فرمائی چه د شعبه په روايت کولو کښې د محمد بن عرعره متابعت عبدالله بن مبارك هم کړې دې بشر بن محمد مروزی دامام بخاری رحمه الله شيخ دې په بدء الوحی کښې امام بخاری ددوی نه روايت نقل کړې دې(۲)

**قوله:** وَتَابَعَهُ ابْنُ جُرَيْجٍ عَنْ عَبْدَةَ عَنْ شَقِيقٍ سَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ: د عبده نه عبده بن ابی لبابه مراد دې د شقيق نه شقيق بن سلمه اود عبدالله نه حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه مراد دې دا متابعت امام مسلم رحمه الله موصولاً نقل کړې دې (۳)

ددې متابعت په بيانولو کښې د امام بخاری رحمه الله مقصد دادې چه د منصور نه حماد بن زيد او عاصم دا روايت موقوفاً نقل کړې دې د بشر او ابن جرير په متابعت کښې دا روايت مرفوع دې دابن جرير په روايت کښې «سمعت النبی ﷺ» تصريح کړې ده امام بخاری رحمه الله چه دا ذکر کړې دې نو په دې سره ئې د هغه حضراتو تائيد کړې دې کوم چه روايت مرفوعاً نقل کوی(۴)

[۴۷۴۶] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ عَنْ بُرَيْدٍ عَنْ أَبِي بُرْدَةَ عَنْ أَبِي مُوسَى عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ تَعَاهَدُوا الْقُرْآنَ فَوَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَهُوَ أَشَدُّ تَفَصِّيًا مِنَ الْإِبِلِ فِي عُقُلِهَا

عُقُلِهَا: عقل (د قاف په ضمه او سكون سره) د عقال جمع ده عقال رسۍ ته وائی (۵)

## ۲۴=بَابُ الْقِرَاءَةِ عَلَى الدَّابَّةِ

[۴۷۴۷] حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ أَخْبَرَنِي أَبُو إِيَاسٍ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ مُغَفَّلٍ قَالَ رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ فَتْحِ مَكَّةَ وَهُوَ يَقْرَأُ عَلَى رَاحِلَتِهِ سُورَةَ الْفَتْحِ [ر: ۴۰۳۱]

---

۱) لامع الدراری (۲۴۹/۹)_
۲) فتح الباری (۱۰۱/۹)_
۳) فتح الباری (۱۰۱/۹)_
۴) فتح الباری (۱۰۱/۹)_
۵) فتح الباری (۱۰۳/۹)_

امام بخاری رحمه الله دا خودل غواړي چه په سورلئ باندې د سورلئ په حالت کښې د قرآن په تلاوت کښې څه قباحت نشته ابن ابی داود د بعضې سلفو نه ددې کراهت نقل کړې دې امام بخاری د هغوی رد عمل غواړی .(۱)

## ۲۵=بَاب تَعْلِيمِ الصِّبْيَانِ الْقُرْآنَ

**د ماشومانو د تعلیم قرآن مسئله:** دسعید بن جبیر او ابراهیم نخعی نه دا منقول دیٔ چه وړو ماشومانو ته د قرآن مجید تعلیم نه دی ورکول پکار، ځکه چه هغوی د قرآن مجید ادب نشی کولې . خو د جمهورو مسلك دا دې چه وړو ماشومانو ته هم د قرآن مجید تعلیم ورکول پکار دی په دې کښې څه حرج او بدوالې نشته

امام بخاری رحمه الله په دې ترجمه کښې د سعید بن جبیر او ابراهیم نخعی قول رد کړې دې او د جمهورو تائید ئې کړې دې (۲)

پاتې شوه دا خبره چه ماشوم خو یقینی ده چه ادب نشی کولې د دې جواب دا دې چه هغوی ددې مکلف هم نه دی استاذانو ته پکار دی چه هغوی ته ادب اوښائی ماشومانو ته د قرآن کریم د تعلیم ورکولو اهتمام د دې وجې کول پکار دی چه لوئې شی نو د سرې مشاغل زیات شی نورې ذمه دارئ ئې په سره شی بیا هغه د قرآن مجید د تعلیم دپاره خپل ځان نشی فارغ کولې لکه څنګه چه ورته ماشومان فارغ وی

[۴۷۴۸،۴۷۴۹] حَدَّثَنِي مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ عَنْ أَبِي بِشْرٍ عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ قَالَ إِنَّ الَّذِي تَدْعُونَهُ الْمُفَصَّلَ هُوَ الْمُحْكَمُ قَالَ وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ تُوُفِّيَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَنَا ابْنُ عَشْرِ سِنِينَ وَقَدْ قَرَأْتُ الْمُحْكَمَ

حضرت سعید بن جبیرفرمائیلی دی چه تاسو چاته مفصل وائې هم هغه محکم دی یعنی د مفصل دویم نوم محکم هم دې مفصل خو دې ته ځکه وائی چه د دې سورتونه جدا جدا دی او محکم د متشابه ضد نه دې بلکه د منسوخ ضد دې او مطلب دا دې چه دا ټول سورتونه منسوخ نه دی ددې تلاوت او ددې احکام باقی دی سوا د سورة کافرون د آخری آیت نه چه «لکم دینکم ولی دین» ځکه چه په دې کښې دوه قولونه دی د بعضې حضراتو په نیز دا آیت د جهاد دحکم نه وړاندې وو د جهاد د مشروعیت نه پس دا منسوخ شوې دې او د بعضو په نیز منسوخ نه دې بلکه په دې کښې زجر مقصود دې لکه څنګه چه په «فمن شاء فلیؤمن ومن شاء فلیکفر» کښې زجر مقصود دې (۳)

د صحیح قول مطابق مفصل د سورة حجرات نه تر آخر د قرآن پورې سورتونو ته وائی (۱)

**قوله:** قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ تُوُفِّيَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَنَا ابْنُ عَشْرِ سِنِينَ: د رسول الله صلی الله علیه وسلم د وفات په وخت کښې د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما په عمر کښې

---

۱) فتح الباری (۱۰۳/۹)-

اختلاف دې او په دې باره کښې شپږ اقوال دی

① لس کاله لکه څنګه چه په روایت باب کښې دی ② دولس کاله ③ دیارلس کاله ④ څوارلس کاله ⑤ پنځلس کاله ⑥ شپاړس کاله (۱)

په روایت باب کښې لس کاله خودلی شوی دی خو په دې باندې د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما د یو بل روایت په وجه اشکال کیږی په هغې کښې دوی فرمائیلی دی چه دحجة الوداع په موقع باندې دوی بلوغ ته نزدې وونو بیا د دوی عمر د نبی ﷺ د وفات په وخت کښې لس کاله څنګه کیدې شی ددې وجې بعضې حضراتو روایت باب ته وهم ونیلی دی (۲)

قاضی عیاض فرمائیلی دی چه دا ممکن ده چه «عشرسنین» د حفظ القرآن سره متعلق کړې شی د نبی ﷺ د وفات سره دا متعلق نکړې شی په دې صورت کښې به تقدیری عبارت داسې وی «توفی النبی ﷺ وقد جمعت المحکم وأنا ابن عشر سنین» یعنی دقرآن حفظ د لسو کالو په عمر کښې کړې وو (۳)

مشهوره هم دا ده چه د نبی ﷺ د وفات په وخت کښې د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما عمر دیارلس کاله وو. (٤)

[۴۷۴۹] حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ أَخْبَرَنَا أَبُو بِشْرٍ عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا جَمَعْتُ الْمُحْكَمَ فِي عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ لَهُ وَمَا الْمُحْكَمُ قَالَ الْمُفَصَّلُ

**قوله:** فَقُلْتُ لَهُ وَمَا الْمُحْكَمُ قَالَ الْمُفَصَّلُ: دقلت فاعل ابوبشر دې اوپه «له» کښې ضمیر سعید بن جبیر طرف ته راجع دې یعنی ابو بشردسعیدبن جبیر نه تپوس اوکړچه محکم څه دی نوهغوی اوفرمائیل مفصل چونکه د باب په اولنی روایت کښې سعید بن جبیر طرف ته دا قول صراحتاً منسوب دې په دې دویم روایت کښې د ظاهر سیاق نه معلومیږی چه حضرت سعید بن جبیر د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه تپوس اوکړو چه محکم څه څیز دې نو هغوی په جواب کښې «المفصل» اوونیل خو په حقیقت کښې داسې نه دی:

اودا هم ممکن ده چه په ابو بشر او سعیدبن کښې هر یو د خپل شیخ نه دا سوال کړې دې د ابوبشر شیخ سعید دې او د سعید شیخ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما دې (۵)

۱) فتح الباری (۱۰٤/۹)_
۲) فتح الباری (۱۰۳/۹و ۱۰٤)-
۳) فتح الباری (۱۰٤/۹)_
٤) فتح الباری (۱۰٤/۹)_
۵) فتح الباری (۱۰۳/۹)_

## ۲۶=بَاب نِسْيَانِ الْقُرْآنِ وَهَلْ يَقُولُ نَسِيتُ آيَةَ كَذَا وَكَذَا وَقَوْلِ اللَّهِ تَعَالَى سَنُقْرِئُكَ فَلَا تَنْسَى إِلَّا مَا شَاءَ اللَّهُ [۶]

د نسيان قرآ په مسئله كښې اختلاف دې

امام ابوالقاسم رافعي او امام نووي فرمائي چه د قرآن مجيد نسيان په لويو ګناهونو كښې شامل ده د احنافو او حنابلو هم دا مسلك دې (۱)

خو علامه سيوطي فرمائيلي دي چه دا به هغه وخت كښې په كبائرو كښې شامل وي چه د تساهل نه كار اخستې شوي وي (۲)

ملا علي قاري فرمائي چه د نسيان قرآن مطلب دا دې چه نه ئې په يادو وئيلى شى اونه ئې په كتلو سره وئيلى شي (۳)

امام مالك رحمه الله فرمائي چه قرآن شريف د يادولو نه پس هيرول مكروه دي

امام بخاري رحمه الله په ترجمة الباب كښې اجمال ساتلې دې اوڅه تفصيل ئې نه دې كړې چه د نسيان قرآن څه حكم دې خو دحديث نه ددې مذمت معلوميږي

**قوله:** وَهَلْ يَقُولُ نَسِيتُ آيَةَ كَذَا وَكَذَا: آيا سړې د نسيان نسبت خپل طرف ته كولې شي چه داسې اووائي چه ما فلانې فلانې آيت هير كړې دې امام بخاري رحمه الله دلته د «هل» لفظ استعمال كړې دې او په روايت كښې تير شوي دي چه «نسيت آية كيت وكيت» نه دي وئيلې پكاربلكه «نسى» وئيل پكار دي ځكه چه په «نسيت» كښې دا مفهوم وي چه قرآن شريف ئې غيراهم اوګڼړلو او هير ئې كړو اود قران مجيد عظمت او اهميت دده په زړه كښې نشته نو داسې عنوان چه د هغې نه دا ګمان كيږي هغه صحيح نه دې

خو سوال دا دې چه امام بخاري رحمه الله د «هل» لفظ ولې استعمال كړلو نو ددې وجه په اصل كښې دا ده چه چه د حديث باب نه ددې ګنجائش راوځي چه نبي كريم ﷺ د يو كس نه په جمات كښې واوريدل چه قرآن ئې لوستلونو وې وئيل چه ده فلانې فلانې آيت ماته ياد كړلوددې نه په ظاهر دا احتمال په نظر راځي چه سړې «نسيت آية كذا» وئيلى شي

حضرت ګنګوهي فرمائيلي دي چه د امام بخاري رحمه الله ددې باب نه مقصد دا دې چه د

---

۱) قال جلال الدين السيوطي في الإتقان (۱۰۵/۱) نسانه كبيرة صرح به النووي في الروضة وغيرها قال القاري في المرقات (۲/۵) قال ابن حجر أي إن الله سبحانه هو الذي أنساها له بسبب منه تارة بأن ترك تعهدالقرآن وقال القاري في المرقات (۳/۵) ثم النسان عند علماءنا محمول على حال لم يقدر عليه بالنظر سواء كان حافظاً أم لا وقال الحافظ في الفتح (۱۰۶/۹) ومن طريق ابن سيرين بإسناد صحيح في الذين ينسى القرآن كانوا يكرهونه ويقولو فيه قولاً شديداً۔

۲) حواله سابقه)۔

۳) حواله سابقه)۔

نسيان لفظ خپل خان طرف ته منسوب كړى او استعمال كړى په دې كښې څه كراهت نشته كراهت او ممانعت د قرآن نه په غفلت كولو او اهتمام نه كولو په باره كښې دې (۱)

خلاصه دا ده چه د نبى ﷺ «نسيت كذا وكذا» باندې انكار كول دالفاظو سره متعلق نه دې بلكه د قرآن كريم نه د تغافل او دهغه اسبابو سره متعلق دې د كومو په وجه چه د نسيان نسبت خپل خان ته كولې شى

۴۷۵۰/۴۷۵۱: حَدَّثَنَا رَبِيعُ بْنُ يَحْيَى حَدَّثَنَا زَائِدَةُ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا قَالَتْ سَمِعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلًا يَقْرَأُ فِي الْمَسْجِدِ فَقَالَ يَرْحَمُهُ اللَّهُ لَقَدْ أَذْكَرَنِي كَذَا وَكَذَا آيَةً مِنْ سُورَةِ كَذَا

حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدِ بْنِ مَيْمُونٍ حَدَّثَنَا عِيسَى عَنْ هِشَامٍ وَقَالَ أَسْقَطْتُهُنَّ مِنْ سُورَةِ كَذَا تَابَعَهُ عَلِيُّ بْنُ مُسْهِرٍ وَعَبْدَةُ عَنْ هِشَامٍ

مطلب دادې چه دباب د ړومبى روايت په متن كښې محمد بن عبيد په دې طريقه كښې د لفظ «اسقتهن» اضافه ده. په شهادات كښې هم په دې طريقه دا روايت تيرشوې دې. په هغه ځائې كښې الفاظ دى چه «فقال رحمه الله لقد اذكرنى كذا و كذا اية اسقطتهن من سورة كذا و كذا» (۲) يعنى حضور ﷺ دهغه سړى تلاوت واوريدو نو وې فرمائيل ،الله ﷻ دې په ده رحم اوكړى ، ده ماته فلانې فلانې آيت راياد كړو، حالانكه مادا آيت د(نسيان په وجه) ساقط كړې وو.تابعه على بن مسهرو عبدة عن هشام يعنى دمحمد بن عبيد متابعت دوؤ حضراتو كړې دې. يو على به مسهر او بل عبده بن سليمان .

دعلى بن مسهرروايت امام بخارى رحمه الله ددې نه د مخكښې باب په آخر كښې موصولا نقل كړې دې اور د عبده بن سليمان متابعت ئې په دعوات كښې موصولا نقل كړې دې. (۳)

[۴۷۵۱] حَدَّثَنَا أَحْمَدُ ابْنُ أَبِي رَجَاءٍ حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ سَمِعَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلًا يَقْرَأُ فِي سُورَةٍ بِاللَّيْلِ فَقَالَ يَرْحَمُهُ اللَّهُ لَقَدْ أَذْكَرَنِي كَذَا وَكَذَا آيَةً كُنْتُ أُنْسِيتُهَا مِنْ سُورَةِ كَذَا وَكَذَا [ر: ۲۵۱۲]

(۴۷۵۲) : حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ مَنْصُورٍ عَنْ أَبِي وَائِلٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِئْسَ مَا لِأَحَدِهِمْ يَقُولُ نَسِيتُ آيَةَ كَيْتَ وَكَيْتَ بَلْ هُوَ نُسِّيَ [ ر: ۴۷۴۴]

---

۱) لامع الدرارى (۲۵۰/۱۹)_
۲) فتح البارى : ۱۰۴/۹۰)
۳) فتح البارى :۱۰۵/۹)

## ۲۷- باب من لم ير بأسا أن يقول سورة البقرة وسورة كذا وكذا

[۴۷۵۳] حدثنا عمر بن حفص حدثنا أبي حدثنا الأعمش قال حدثني إبراهيم عن علقمة وعبد الرحمن بن يزيد عن أبي مسعود الأنصاري قال قال النبي صلى الله عليه وسلم الآيتان من آخر سورة البقرة من قرأ بهما في ليلة كفتاه [ر: ۳۷۸۶]

[۴۷۵۴] حدثنا أبو اليمان أخبرنا شعيب عن الزهري قال أخبرني عروة بن الزبير عن حديث المسور بن مخرمة وعبد الرحمن بن عبد القاري أنهما سمعا عمر بن الخطاب يقول سمعت هشام بن حكيم بن حزام يقرأ سورة الفرقان في حياة رسول الله صلى الله عليه وسلم فاستمعت لقراءته فإذا هو يقرؤها على حروف كثيرة لم يقرئنيها رسول الله صلى الله عليه وسلم فكدت أساوره في الصلاة فانتظرته حتى سلم فلببته فقلت من أقرأك هذه السورة التي سمعتك تقرأ قال أقرأنيها رسول الله صلى الله عليه وسلم فقلت له كذبت فوالله إن رسول الله صلى الله عليه وسلم هو أقرأني هذه السورة التي سمعتك فانطلقت به إلى رسول الله صلى الله عليه وسلم أقوده فقلت يا رسول الله إني سمعت هذا يقرأ سورة الفرقان على حروف لم تقرئنيها وإنك أقرأتني سورة الفرقان فقال يا هشام اقرأها فقرأها القراءة التي سمعته فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم هكذا أنزلت ثم قال اقرأ يا عمر فقرأتها التي أقرأنيها فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم هكذا أنزلت ثم قال رسول الله صلى الله عليه وسلم إن القرآن أنزل على سبعة أحرف فاقرءوا ما تيسر منه [ر: ۲۲۸۷]

[۴۷۵۵] حدثنا بشر بن آدم أخبرنا علي بن مسهر أخبرنا هشام عن أبيه عن عائشة رضي الله عنها قالت سمع النبي صلى الله عليه وسلم قارئا يقرأ من الليل في المسجد فقال يرحمه الله لقد أذكرني كذا وكذا آية أسقطتها من سورة كذا وكذا [ر: ۲۵۱۲]

دبعضو اسلافو نه نقل دى چه "سورة البقرة، سورة النسا" نه دى وئيل پكار بلكه «السورة التي تذكر فيها البقرة، والتي تذكر فيها النسا» وئيل پكار دى. د دې مستدل د حضرت انس رضي الله عنه يو مرفوع حديث دې چه هغه ابن قانع او طبراني موصولا نقل کړې دې. «لا تقولوا سورة البقرة، ولا آل عمران، ولا سورة النساء وكذلك القرآن كله» . (۱)

ليکن جمهور علماء کرام په داشان وئيلو کښې څه حرج نه ګڼړى ، امام بخاری رحمه الله په دې ترجمه کښې د جمهورو تائيد او د مذکوره بعضو حضراتو ترديد کول غواړى . او هغوى فرمائى چه سورة البقره وئيلو کښې څه حرج نشته دې.

امام بخاری رحمه الله په ترجمة الباب کښې د ثبوت دپاره درې روايتونه فرمائيلى دى. په رومبى

---

۱- فتح الباري: ۱۰۸/۹).

کښې «سورة البقرة» او دویم روایت کښې د «سورة الفرقان» تصریح ده. داشان په دریم روایت کښې «سورة کذا» ده. معلوم شو چه د سورة اضافت دې څیزطرف ته په کولوکښې هیڅ حرج نشته چه دهغې ذکر په دې سورت کښې وارد شو.

تر کومې چه د حضرت انس رضی الله عنه د روایت تعلق دې نوهغه ضعیف ګرزولې شوې دې. ددې په سند کښې یو راوی عیسی بن میمون عطار ضعیف دې.(۱)ابن الجوزی رحمه الله په کتاب الموضوعات کښې ددې ذکر کړې دې او د امام احمد قول ئې ددې متعلق نقل کړې دې چه دا حدیث منکر دې ، لهذا قابل د استدلال نه دې. (۲)

حافظ ابن حجر رحمه الله اوفرمائیل چه د دواړو په شان روایات جمع کولې شی. روایات باب په جواز اود حضرت انس رضی الله عنه روایت په خلاف اولی باندې محمول کړې شی یعنی «سورة البقرة» وغیره وئیل جائز خو دی لیکن خلاف اولی دی. عبدالرازق ، کلبی ، ابومحمد بن حاتم او حکیم ترمذی به احتیاطاً دا شان نه وئیل .(۳)

په دې مسئله باندې څه تفصیل د کتاب التفسیر په شروع کښې هم تیر شوې دې.(۴)

## ۲۸=بَاب التَّرْتِيلِ فِي الْقِرَاءَةِ

وَقَوْلِهِ تَعَالَى: ﴿وَرَتِّلِ الْقُرْآنَ تَرْتِيلًا﴾(المزمل:۴)
وَقَوْلِهِ: ﴿وَقُرْآنًا فَرَقْنَاهُ لِتَقْرَأَهُ عَلَى النَّاسِ عَلَى مُكْثٍ﴾(الاسراء:۱۰۶).
وَمَا يُكْرَهُ أَنْ يُهَذَّ كَهَذِّ الشِّعْرِ
فِيهَا ﴿يُفْرَقُ﴾(الدخان:۴). يُفَصَّلُ: قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ فَرَقْنَاهُ فَصَّلْنَاهُ

دترتیل مطلب دادې چه حرفونه (توری) په واضحه طور ادا کړې شی او په ادا کولو کښې عجلت (تیزی) نه وی چه معنې په فهم کښې آسانتیا وی. (۵)په قرآن پاك کښې الله جل جلاله د «وَقُرْآنًا فَرَقْنَاهُ لِتَقْرَأَهُ عَلَى النَّاسِ عَلَى مُكْثٍ» حکم رسول کریم صلی الله علیه وسلم ته ورکړې دې.

داشان په قرآن پاك کښې سورة مزمل کښې دی چه ((وَرَتِّلِ الْقُرْآنَ تَرْتِيلًا)) یعنی قرآن پاك مونږ بیل بیل کړې دې . (سورتونه او آیتونه جدا جدا اوساتی). چه ستاسو په مخکښې ئې په اطمینان سره اولولی.

---

۱ ) فتح الباری :۱۰۸/۹).
۲ ) فتح الباری : ۱۰۸/۹- والموضوعات لابن الجوزی ، ابواب تتعلق باالقران ، باب لا یقال سوره کذا/۱ ،۲۵۰، ۲۴۱).
۳) فتح الباری ۱۰۸/۹).
۴ ) کشف الباری، کتاب التفسیر : ۱۰، ۱۱)
۵) فتح الباری : ۱۰۹/۹).

**قوله**: وَمَا يُكْرَهُ أَنْ يَهُذَّ كَهَذِّ الشِّعْرِ: قرآن کریم د شعر په شان په دې انداز سره تیز وئیل چه د حرفونو ادا کول صحیح نه وی مکروه دی . «هذ(ن)هذا» تیزئ سره وئیل.
په دې خائې کښې داشبه کیدیشی چه عموماً شعر ترنم او په مزه وئیل کیږی.
جواب دادې چه په مجلس کښې شعر ترنم سره او په مزه وئیلې کیږی لیکن کله چه سړې خپل محفوظ شوی شعرونه دوباره وائی نو بیا هغه په تیزئی سره وائی. قرآن کریم داشان وئیل نه دی پکار.

**قوله**: فِيهَا يُفْرَقُ : يُفَصَّلُ : دا په سورة دخان کښې دی. «فیها یفرق کل امرحکیم» په دې «لیلة القدر» کښې هریو کارجداجدا وی.تللې شوې، په دې آیت کریمه کښې «یفرق»«یفصل» یعنی د جدا کیدو په معنی ده ،دا دحضرت ابوعبیده تفسیر دې.(۱) په مناسبت سره ئې دا په دې خائې ذکر کړو.

**قوله**: قَالَ ابن عباس : فرقناه: فصلناه: ابن جریر د حضرت ابن عباس ﷠ دا تعلیق موصولا نقل کړې دې.

قرآن پاك په مزه مزه وئیل افضل دی یا تیزئی سره ؟

په دې کښې اختلاف دې چه قرآن پاك په مزه مزه وئیل افضل دی او یا په تیزئی سره تلاوت کول افضل دی.

حضرت ابن عباس ﷠ لره یو سړې راغلو او وې وئیل چه څه په دریو ورځو کښې قرآن پاك ختموم. حضرت ابن عباس ﷠ په جواب کښې اوفرمائیل «لان اقرا القرة ارتلها فاتدبرها خیر من ان اهقرا کما تقول» یعنی د پوره قرآن کریم (بغیر د سوچ فکر) نه وئیلو کښې دا څه بهتر گرم صرف سورة بقره اووایم په ترتیل او غور و فکر سره اووایم. (۲)

لیکن حقیقت دادې چه په مزه وئیلو او تیز وئیلو دواړو کښې د هر یو دپاره د فضیلت یو اړخ دې. دداسې سړو په حق کښې په مزه وئیل افضل دی چه د قرآن کریم په معنو باندې پوهیږی او چه هغوی ته په مزه مزه وئیلو کښې حلاوت محسوسیږی او په تلاوت کښې زړه بنه لگی. خو څه خلق داسې وی چه هغوی ته په مزه مزه وئیلو کښې خو استحضار وی ، په تیزه وینا کښې هغوی خائې په خائې انخلی نو د هغوی دپاره تیز وئیل افضل دی. په دې شرط د مخارجولحاظ به ساتی او یو حرف د بل حرف په وجه مخفی او پټ نه وی.(۳)

۴۷۵۶: حَدَّثَنَا أَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا مَهْدِيُّ بْنُ مَيْمُونٍ حَدَّثَنَا وَاصِلٌ عَنْ أَبِي وَائِلٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ غَدَوْنَا عَلَى عَبْدِ اللَّهِ فَقَالَ رَجُلٌ قَرَأْتُ الْمُفَصَّلَ الْبَارِحَةَ فَقَالَ هَذًّا كَهَذِّ الشِّعْرِ إِنَّا

۱) فتح الباری : ۱۰۹/۹)
۲) فتح الباری : ۱۱۰/۹).
۳) فتح الباری : ۱۱۰/۹).

قَدْ سَمِعْنَا الْقِرَاءَةَ وَإِنِّي لَأَحْفَظُ الْقُرَنَاءَ الَّتِي كَانَ يَقْرَأُ بِهِنَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَمَانِيَ عَشْرَةَ سُورَةً مِنَ الْمُفَصَّلِ وَسُورَتَيْنِ مِنْ آلِ حم (ر: ٧٣٠).

په دې روايت باندې يو اشكال خو دادې چه ذكر شوې روايت د اعمش په طريقې سره په «باب تأليف القرآن» كښې تير شوې دې. په هغه ځاى كښې «عشرين سورة من اول المفصل آخرهن من الحاميم حم الدخان و عم يتساءلون» ونيلي شوي دى. يعنى هغه ځاى كښې د مفصل شل سورتونه او په دې ځاى كښې د مفصل اتلس سورتونه ذكر كړى دى. په هغه ځاى كښې سورة دخان په مفصل كښې شمار كړې شوې دې او په دې ځاى كښې نه دې شمار كړې شوې.

د دې جواب دادې چه په هغه ځاى كښې «عشرين» تغليبا ونيلي شوى وو، سورة دخان او دې سره متصل چه كوم سورة په مصحف ابن مسعود كښې وو هغه مفصل كښې شامل نه دې ليكن تغليبا دا دواړه هم ورسره شامل كړې شو او ورته عشرين اوونيلي شو. (١)

دويم اشكال دا كيږى چه د «سورتين من آل حم» نه معلوميږى چه دې شلو سورتونو كښې حواميم نه دوه سوتونه داخل دى. حالانكه ټول روايات په دې متفق دى چه په دې شلو سورتونو كښې صرف سورة دخان شامل وو، باقى د حم هيڅ يو سورت شامل نه وو.

حافظ ابن حجر رحمه الله اوفرمائيل چه په دې كښې لفظ د «احدهما» محذوف دې او اصل عبارت دې. «وسورتين احدهما من آل حاميم» (٢)

او دا هم ممكن دى چه د دې نه سورة جاثية او دخان مراد وى. او د دې دواړو په شروع كښې «حم» دې. د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه مصحف د مصحف عثمانى نه مختلف وو. په دې كښې سورة جاثية مقدم او سورة دخان موخر دې. د مفصل شروع د سورة جاثية نه ده. علامه قسطلانى ليكى چه :

«يحتمل أن يكون تاليف مصحف ابن مسعود على خلاف تاليف مصحف غيره، فيكون اول المفصل عند ابن مسعود اول الجاثية، والدخان متاخرة فى ترتيبه من الجاثية» (٣)

هذا كهذ الشعر: هذا مفعول مطلق دې. أى هذذت هذا كهذا الشعر

٤٧٥٧: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا جَرِيرٌ عَنْ مُوسَى بْنِ أَبِي عَائِشَةَ عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا فِي قَوْلِهِ لَا تُحَرِّكْ بِهِ لِسَانَكَ لِتَعْجَلَ بِهِ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا نَزَلَ جِبْرِيلُ بِالْوَحْيِ وَكَانَ مِمَّا يُحَرِّكُ بِهِ لِسَانَهُ وَشَفَتَيْهِ فَيَشْتَدُّ عَلَيْهِ وَكَانَ يُعْرَفُ مِنْهُ فَأَنْزَلَ اللَّهُ الْآيَةَ الَّتِي فِي لَا أُقْسِمُ بِيَوْمِ الْقِيَامَةِ لَا تُحَرِّكْ بِهِ

---

١) فتح البارى : ٩/١١٠).
٢) فتح البارى، كتاب الصلوة باب الجمع بين السورتين فى الركعة : ٢/٢٥٩)
٣) ارشاد السارى : ١١/ ٣١٦).

لِسَانَكَ لِتَعْجَلَ بِهِ اِنَّ عَلَيْنَا جَمْعَهُ فَاِنَّ عَلَيْنَا اَنْ نَجْمَعَهُ فِي صَدْرِكَ وَقُرْآنَهُ فَاِذَا قَرَاْنَاهُ فَاتَّبِعْ قُرْآنَهُ فَاِذَا اَنْزَلْنَاهُ فَاسْتَمِعْ ثُمَّ اِنَّ عَلَيْنَا بَيَانَهُ قَالَ اِنَّ عَلَيْنَا اَنْ نُبَيِّنَهُ بِلِسَانِكَ قَالَ وَكَانَ اِذَا اَتَاهُ جِبْرِيلُ اَطْرَقَ فَاِذَا ذَهَبَ قَرَاَهُ كَمَا وَعَدَهُ اللّٰهُ (ر:٥).

## ٢٩- بَاب مَدِّ الْقِرَاءَةِ

٤٧٥٩/٤٧٥٨: حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ اِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا جَرِيرُ بْنُ حَازِمٍ الْاَزْدِيُّ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ قَالَ سَاَلْتُ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ عَنْ قِرَاءَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ كَانَ يَمُدُّ مَدًّا

٤٧٥٩: حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَاصِمٍ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ عَنْ قَتَادَةَ قَالَ سُئِلَ اَنَسٌ كَيْفَ كَانَتْ قِرَاءَةُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ كَانَتْ مَدًّا ثُمَّ قَرَاَ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيمِ يَمُدُّ بِبِسْمِ اللّٰهِ وَيَمُدُّ بِالرَّحْمٰنِ وَيَمُدُّ بِالرَّحِيمِ

په دې خائې کښې داوئيل غواړی چه قرآت کښې د مد رعايت ډير ضروری دې. په دې خائې کښې د مد نه مراد مداصلی دې يعنی هغه حرف چه دهغې نه پس الف ، واو، يا ياء وی. (١)

حضور عليه‌السلام به په ((بسم الله)) کښې مد فرمائيلو او ((الرحمان، الرحيم)) کښې هم يعنی ((بسم الله)) او د ((الرحمان، الرحيم)) الف اود ((الرحيم)) ياء به ئې واضحه کوله او وئيله.

## ٣٠- بَاب التَّرْجِيعِ

٤٧٦٠: حَدَّثَنَا آدَمُ بْنُ اَبِي اِيَاسٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا اَبُو اِيَاسٍ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ مُغَفَّلٍ قَالَ رَاَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَاُ وَهُوَ عَلَى نَاقَتِهِ اَوْ جَمَلِهِ وَهِيَ تَسِيرُ بِهِ وَهُوَ يَقْرَاُ سُورَةَ الْفَتْحِ اَوْ مِنْ سُورَةِ الْفَتْحِ قِرَاءَةً لَيِّنَةً يَقْرَاُ وَهُوَ يُرَجِّعُ (ر:٤٠٣١).

د مکې د فتحې په وخت کښې حضرت رسول کريم ﷺ سورة فتح لوستله او ترجيع ئې کوله. د ترجيع معنی داده چه د قرآن پاك د تلاوت په وخت کښې په آواز کښې امتداد او تيزوالې اوروالې اومونديې شی، چه ددې کيفيت د بخاری شريف په کتاب التوحيد کښې په يو روايت کښې د حضرت معاويه بن قره نه داشان منقول دې ((ءآ ، ءآ، ءآ)) (د همزه مفتوحه نه پس آواز اوږدول) . (٢)

چونکه حضرت نبی کريم ﷺ په اوښ باندې سور وو ددې و جې د حرکت په وجه ددوی ﷺ په آواز کښې تيز والې او رووالې وو. بعضو وئيلی دی چه د ترجيع نه تحسين التلاوة مراد ده. (٣) ددې څه تفصيل په کتاب المغازی کښې تير شوې دې . (٤)

---

١) فتح الباری ١١٢/٩).
٢) صحيح البخاری ، کتاب التوحيد ، باب ذکر النبی ﷺ و رواية عن ربه : ١١٢٥/٢).
٣) فتح الباری : ١١٣/٩).
٤) کشف الباری ، کتاب المغازی : ٥١٠)

## ۳۱_ بَاب حُسْنِ الصَّوْتِ بِالْقِرَاءَةِ لِلْقُرْآنِ

د امام بخاری رحمه الله مقصد دادي چه قرآن مجيد په ښكلى آواز سره ونيل پكار دى. د قرآت په وخت كښې د تحسين صوت اهتمام كول مستحب دى. او غالبا امام بخارى رحمه الله د حضرت براء بن عازب رضي الله عنه حديث طرف ته اشاره كړې ده، چه په دې كښې فرمائيلې شوى دى چه «زينوا القرآن باصواتكم» امام احمد او ابو داود او نسائى او امام ابن ماجه ددې تخريج كړې دې. (۱)

علامه نووى رحمه الله په «التبيان فى اداب حملة القران» كښې نقل كړې دى چه په دې خبره باندې اجماع ده چه د قرآن پاك په تلاوت كښې دې د حسن صوت اهتمام اوكړې شى. ليكن د تحسين صوت په رعايت كښې دې په مخارجو باندې دې څه اثر اونه غورزولې شى. داسې تحسين صوت چه په هغې كښې د اظهار و اخفاء وغيره لحاظ اونه ساتلې شى. علامه نووى رحمه الله دې ته ناجائزه ونيلى دى. (۲)

علامه ابن قيم رحمه الله ليكلى دى چه ډير قراء د تلاوت كولو په وخت كښې تكليف كوى. او ددوى قراء ت د غنا شكل اختياروى. دا ډير زيات خراب او مكروه دى. البته كه تكليف نه وى اود قرآت د حدودو او احكامو رعايت وى نو بيا په تحسين صوت او تطريب كښې څه حرج نشته دې. (۳)

۴۷۶۱: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ خَلَفٍ أَبُو بَكْرٍ حَدَّثَنَا أَبُو يَحْيَى الْحِمَّانِيُّ حَدَّثَنَا بُرَيْدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي بُرْدَةَ عَنْ جَدِّهِ أَبِي بُرْدَةَ عَنْ أَبِي مُوسَى رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَهُ يَا أَبَا مُوسَى لَقَدْ أُوتِيتَ مِزْمَارًا مِنْ مَزَامِيرِ آلِ دَاوُدَ

د محمد بن خلف كنيت ابوبكر دې. دوى د بغداد اوسيدونكى دى او قارى دى. د امام بخارى رحمه الله په صغار شيوخ كښې دې. د امام بخارى رحمه الله د وفات نه پس پنځه كاله پورې ژوندي وو. ددوى شيخ ابوحمانى دې. د هغوى نوم عبدالحميد بن عبدالرحمان دې، د كوفې اوسيدونكې دې. په صحيح بخارى كښې ددې دواړو صرف هم دا يو حديث دې. (۴)

**قوله:** لَقَدْ أُوتِيتَ مِزْمَارًا مِنْ مَزَامِيرِ آلِ دَاوُدَ: «ال داود» كښې لفظ د «ال» زائد دې، مراد پخپله حضرت داود عليه السلام دې، ځكه چه دهغوى آواز ډير خوږ وو. دهغوى په اولاد او خپلو كښې هيچا ته دا صفت نه وو وركړې شوې. «مزمار» ديو آلې نوم دې ليكن مراد ددې نه خوش آوازى ده. (۵) حضرت ابوموسى رضي الله عنه ډير خوش آوازه وو.

---

۱) اخرجه ابوداود رقم (۱۴۶۸) فى الصلوة، باب استحباب الترتيل فى القرآن، والنسائى (۱۷۹/۲، ۱۸۰) فى الصلوة، باب تزين القرآن بالصلوة، واحمد (۲۸۳/۴، ۲۹۶، ۳۰۴) و ابن ماجه رقم (۱۳۴۲).
۲) شرح مسلم للنووى: كتاب فضائل القران، باب تحسين باالقران: ۱۳۴۲/۱)
۳) راجع للتفصيل زاق المعاد، فصل فى هديه صلى الله عليه وسلم فى قراه باالقران: ۴۸۴/۱-۴۹۳).
۴) فتح البارى: ۱۱۴/۹).
۵) فتح البارى: ۱۱۵/۹).

## ۳۲_ بَاب مَنْ أَحَبَّ أَنْ يَسْمَعَ الْقُرْآنَ مِنْ غَيْرِهِ

۴۷۶۳: حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصِ بْنِ غِيَاثٍ حَدَّثَنَا أَبِي عَنِ الْأَعْمَشِ قَالَ حَدَّثَنِي إِبْرَاهِيمُ عَنْ عَبِيدَةَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ لِي النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اقْرَأْ عَلَيَّ الْقُرْآنَ قُلْتُ أَقْرَأُ عَلَيْكَ وَعَلَيْكَ أُنْزِلَ قَالَ إِنِّي أُحِبُّ أَنْ أَسْمَعَهُ مِنْ غَيْرِي [ ر: ۴۳۰۶]

مطلب دادې چه كه څوك سړې د بل چا نه قرآن پاك آوريدل غواړى نو په سنتوكښې ددې اصل موجود دې. بعضې وختونو كښې قرآن پاك لوستلو ته د سړى زړه نه كيږى بلكه دنورو نه آوريدو ته ئې زيات زړه كيږى ،ددې باب نه ددې ثبوت مقصود دې.

## ۳۳_ بَاب قَوْلِ الْمُقْرِئِ لِلْقَارِئِ حَسْبُكَ

۴۷۶۳: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ الْأَعْمَشِ عَنْ إِبْرَاهِيمَ عَنْ عَبِيدَةَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ قَالَ لِي النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اقْرَأْ عَلَيَّ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَقْرَأُ عَلَيْكَ وَعَلَيْكَ أُنْزِلَ قَالَ نَعَمْ فَقَرَأْتُ سُورَةَ النِّسَاءِ حَتَّى أَتَيْتُ إِلَى هَذِهِ الْآيَةِ فَكَيْفَ إِذَا جِئْنَا مِنْ كُلِّ أُمَّةٍ بِشَهِيدٍ وَجِئْنَا بِكَ عَلَى هَؤُلَاءِ شَهِيدًا قَالَ حَسْبُكَ الْآنَ فَالْتَفَتُّ إِلَيْهِ فَإِذَا عَيْنَاهُ تَذْرِفَانِ (۴۳۰۶).

امام بخارى رحمه الله دا وئيل غواړى چه بعضې وخت كښې استاد شاګرد ته وائى چه " بس كړه " نو ددة دا وينا منع من الخير كښې داخل نه ده ،په سنت كښې ددې اصل موجوق دې چه داسې وئيلې شى.

## ۳۴_ بَاب فِي كَمْ يُقْرَأُ الْقُرْآنُ

وَقَوْلِ اللَّهِ تَعَالَى: فَاقْرَءُوا مَا تَيَسَّرَ مِنْهُ (المزمل: ۲۰)

**ختم قرآن دې په څومره موده كښې اوكړې شى:** قرآن مجيد په څومره موده كښې ختمول پكار دى . په دې كښې دحضرات علماء كرام اختلاف دې.

① امام احمد بن حنبل او ابوعبيد قاسم بن سلام فرمائي چه ددريو ورځو نه كمه موده كښې قرآن پاك ختمول پكار دى. (۱) ابوعبيده قاسم بن سلام د حضرت معاذ بن جبل متعلق روايت نقل كړې دې چه هغه به د دريو ورځو نه په كمه موده كښې قرآن پاك ختمول مكروه ګڼړل (فضائل القرآن، باب القارى يقرأ القرآن من سبع ليال الى ثلاث : ۸۹)

دهغوى استدلال دحضرت عبدالله بن عمرو بن العاص روايت دې چه دا ترمذى او ابو داود نقل كړې دې. ((لم يفقه القرآن من قرأ القرآن في أقل من ثلاث)) (۲)

---

۱) فتح البارى : ۱۱۹/۹_

۲) الحديث اخرجه الترمذى فى سننه . فى كتاب القرأات : ۱۹۷/۵، رقم الحديث : ۲۹۴۹ واخرجه ابوداود، باب فى كم يقرأ القرآن : ۵۴/۳ . رقم الحديث : ۳۹۰، واخرجه ايصال الدارمى . باب ختم القرآن : ۵۶۲/۲، رقم الحديث : ۳۴۸۷)

بعضو ظاهریه ددې روایت په پیش نظر د دریو ورځو نه په کمه موده کښې دقرآن پاك ختمولو ته حرام ونیلی دی.(۱)

② لیکن د جمهور علماء کرامو ائې داده چه په دې کښې د شریعت د طرف نه دڅه وخت تحدید او تعیین نشته . (۲)

دهغه دقاری قوت او تازګۍ باندې ده ، که یو سړې ددریوورځو نه په کمه موده کښې قران پاك په تازګۍ سره ختمولې شی او هغه دحرفونو په ادا کولوکښې دتجوید د اصولو رعایت سره تلاوت جاری ساتلې شی نوپه کښې څه حرج نشته. (۳)

په اسلافوکښې ډیر حضرات داسې تیر شوی دی چه هغوی به په شپه ورځ کښې یو (ختم) کولو، دصوفی ابن الکاتب باره کښې مشهوردی چه هغوی به څلور ختمونه په ورځ کښې او څلور په شپه کښې یعنی شوارورزکښې به ئې اته ختمونه کول. (۴)

علامه قسطلانی لیکلی دی چه په ۸۲۷ هجرئی کښې په قدس شریف کښې یو سړې ما اوکتلو، دده کنیت ابوطاهر وو او هغه دشیخ شهاب الدین بن رسلان دملګرو نه وو. دده په باره کښې ماته اوونیلې شو چه هغوی په شپه ورځ کښې پنځلس ختمونه کول. (۵)

حضرت عثمان، تمیم داری ، سعید بن جبیر په باره کښې لیکلی دی چه دا حضراتو به په یو رکعت کښې پورا قرآن پاك ختمولو.(۶)

حضرت شیخ الحدیث مولانا زکریا رحمه الله به هم په رمضان کښې شپه ورځ کښې دیو ختم کولو معمول وو. (۷)

امام ابوحنیفه رحمه الله نه منقول دی چه کوم سړې په کال کښې دوه ځله قرآن پاك ختموی نو هغه دقرآن پاك حق ادا کولو والا دې ، ځکه چه حضور ﷺ د وفات په کال حضرت جبریل علیه السلام سره دود ځله قرآن پاك ختم کړې وو. (۸)

اسحاق بن راهویه او امام احمد بن حنبل نه نقل شوی دی چه سړې دې کم از کم په څلویښتو ورځو کښې یو ځل قرآن پاك ختم کړی یعنی روزانه دې پاؤ کم یو پاره لولی.(۹)

---

۱ فتح الباری : ۱۲۰/۹)

۲ ( فتح الباری : ۱۲۰/۹)

۳ ( فتح الباری : ۱۲۰/۹)

٤ ( شرح الطیبی : ۲۸۱/٤ ، وارشاق الساری : ۳۲۵/۱۱).

۵ ) ارشادالساری : ۳۲۵/۱۱).

۶ ) ارشادالساری : ۳۲۵/۱۱).

۷ ) اوګورئ آپ بیتی.

۸ ) الابواب والترجم : ۶۳/۲).

۹ ) فتح الباری : ۹/ ، وفی کنز الدقائق : ولحافظ القرأن ان یختم کل اربعین یوما" لان المقصود من قرأة القران فهم معانیه والاعتبار بما فیه لا مجرد التلاوة قال الله تعالی : افلا یتدبرون القرأن ام علی قلوب اقفالها" وذالک یحصل باالثانی لا باالتوانی فی المعانی . فقد الختم اقله اربعون یوما کل یوما حزب و نصف او ثلثا حزب او اقل (البحر الرائق شرح کنز الدقائق . مسائل شتی : ۴۸۲/۸)

په دې څائې کښې د باب په آخرې روایت کښې حضور ﷺ حضرت عبدالله بن عمرو بن العاص ته اوفرمائيل ((اقرأه في سبع ولا تزد على ذالك)) يعنى په اووۀ ورځو کښې ختموه. ملا علي قاري ليکلى دى چه په اووه ورځو کښې ختم داکثرو صحابه کرامو ﷺ معمول وو .دقرآن پاك اووه احزاب دى.ددې اووۀ احزابو ترتيب حضرت على ﷺ منسوب دى. يو قول ((فمي بشوق)) کښې داشان وارد دى چه د فاءنه((فاتحة))ميم نه ((مائدة)) يا نه((يونس)) باء نه((بنى اسرائيل))شين نه ((شعراء)) ،واؤ نه ((والصافات)) او د قاف نه ((سورة ق))طرف ته اشاره ده.(۱) داشان قرآن كريم په اووۀ ابوابو کښې دې تقسيم کړې شى او يو باب دې روزانه اولوستلې شى نو په هفته کښې به د قرآن پاك ختم مکمل کړې شى.

امام بخاري ﷫ په ترجمة الباب کښې د ((فاقروا ما تيسر منه)) آيت نقل کړې دې او دې طرف ته ئې اشاره کوى چه په دې کښې هيڅ تحديد نشته دې ، چه څومره سهولت سره کيديشى نوسړې دې هغه هومره قرآت کوى.

۴۷۶۳: حَدَّثَنَا عَلِيٌّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ لِي ابْنُ شُبْرُمَةَ نَظَرْتُ كَمْ يَكْفِي الرَّجُلَ مِنْ الْقُرْآنِ فَلَمْ أَجِدْ سُورَةً أَقَلَّ مِنْ ثَلَاثِ آيَاتٍ فَقُلْتُ لَا يَنْبَغِي لِأَحَدٍ أَنْ يَقْرَأَ أَقَلَّ مِنْ ثَلَاثِ آيَاتٍ قَالَ عَلِيٌّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ أَخْبَرَنَا مَنْصُورٌ عَنْ إِبْرَاهِيمَ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ يَزِيدَ أَخْبَرَهُ عَلْقَمَةُ عَنْ أَبِي مَسْعُودٍ وَلَقِيتُهُ وَهُوَ يَطُوفُ بِالْبَيْتِ فَذَكَرَ قَوْلَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ مَنْ قَرَأَ بِالْآيَتَيْنِ مِنْ آخِرِ سُورَةِ الْبَقَرَةِ فِي لَيْلَةٍ كَفَتَاهُ (ر:۳۷۸۶).

عبدالله بن شبرمه دکوفې قاضى وو ، فقيه وو ،په تابعينو کښې دهغوى شمار کيږى،امام احمد ،ابو حاتم اونسائى ددې توثيق کړې دې. ابن حبان په کتاب الثقات کښې ددوى ذکر کړې دې، امام بخاري ﷫ ددوى روايات استشهاداذکر کوى او په کتاب الادب کښې ددوى يو روايت هم ذکر کوى. امام ترمذى نه علاوه باقى اصحاب سته ددوى نه روايات اخستى دى. په کال ۱۴۴ هجرئى کښې دوى وفات شو.(۲)

هغوى فرمائى چه ما غور اوکړو دسړى دپاره( په مونځ ما شپه ورځ کښې )

دقرآن پاك چه څومره حصه کافى کيدل پکار دى نو ما اوکتل چه د قرآن پاك هيڅ يو سورة د دريو آيتونونه کم نه دې ، ددې وجې ما اووئيل چه ديو سړى دپاره مناسب نه دى چه هغه (په مونځ کښې ) درې آياتونو نه کم اولولى.

قال على .... دا ما قبل سند سره متصل دې ، تعليق نه دې ،داحديث تيرشوې دې.

۴۷۶۴/۴۷۶۵ : حَدَّثَنَا مُوسَى حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ عَنْ مُغِيرَةَ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ أَنْكَحَنِي أَبِي امْرَأَةً ذَاتَ حَسَبٍ فَكَانَ يَتَعَاهَدُ كَنَّتَهُ فَيَسْأَلُهَا عَنْ بَعْلِهَا فَتَقُولُ نِعْمَ

۱ ) مرقاه شرح مشکوه : ۵/۱۰) .

۲ ) ددې ذکر شوى تفصيل دپاره اوګورئ تهذيب الکمال : ۱۵/۷۶ ، رقم الترجمه : ۳۳۲۸ و عمده القارى: ۲۰/۵۷)

الرَّجُلِ مِنْ رَجُلٍ لَمْ يَطَأْ لَنَا فِرَاشًا وَلَمْ يُفَتِّشْ لَنَا كَنَفًا مُنْذُ اَتَيْنَاهُ فَلَمَّا طَالَ ذٰلِكَ عَلَيْهِ ذَكَرَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ الْقَنِي بِهِ فَلَقِيتُهُ بَعْدُ فَقَالَ كَيْفَ تَصُومُ قَالَ كُلَّ يَوْمٍ قَالَ وَكَيْفَ تَخْتِمُ قَالَ كُلَّ لَيْلَةٍ قَالَ صُمْ فِي كُلِّ شَهْرٍ ثَلَاثَةً وَاقْرَأِ الْقُرْاٰنَ فِي كُلِّ شَهْرٍ قَالَ قُلْتُ اُطِيقُ اَكْثَرَ مِنْ ذٰلِكَ قَالَ صُمْ ثَلَاثَةَ اَيَّامٍ فِي الْجُمُعَةِ قُلْتُ اُطِيقُ اَكْثَرَ مِنْ ذٰلِكَ قَالَ اَفْطِرْ يَوْمَيْنِ وَصُمْ يَوْمًا قَالَ قُلْتُ اُطِيقُ اَكْثَرَ مِنْ ذٰلِكَ قَالَ صُمْ اَفْضَلَ الصَّوْمِ صَوْمَ دَاوُدَ صِيَامَ يَوْمٍ وَاِفْطَارَ يَوْمٍ وَاقْرَأْ فِي كُلِّ سَبْعِ لَيَالٍ مَرَّةً فَلَيْتَنِي قَبِلْتُ رُخْصَةَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَذَاكَ اَنِّي كَبِرْتُ وَضَعُفْتُ فَكَانَ يَقْرَأُ عَلَى بَعْضِ اَهْلِهِ السُّبْعَ مِنَ الْقُرْاٰنِ بِالنَّهَارِ وَالَّذِي يَقْرَؤُهُ يَعْرِضُهُ مِنَ النَّهَارِ لِيَكُونَ اَخَفَّ عَلَيْهِ بِاللَّيْلِ وَاِذَا اَرَادَ اَنْ يَتَقَوَّى اَفْطَرَ اَيَّامًا وَاَحْصَى وَصَامَ مِثْلَهُنَّ كَرَاهِيَةَ اَنْ يَتْرُكَ شَيْئًا فَارَقَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَيْهِ قَالَ اَبُو عَبْدِ اللّٰهِ وَقَالَ بَعْضُهُمْ فِي ثَلَاثٍ وَفِي خَمْسٍ وَاَكْثَرُهُمْ عَلَى سَبْعٍ

مخکښې چه کوم روایت نقل شوې دې ، په هغې کښې دحضور نبی کریم ﷺ ارشاد نقل کړې شوې دې چه حضور علیه السلام حضرت عبدالله بن عمرو بن العاص ته اوفرمائیل چه«اقرأه فی کل سبع لیال مرة» امام ابوعبدالله بخاری فرمائی چه بعضو راویانود«سبع» په ځائې «اقرأه فی کل ثلاث» اوبعضو «اقرأه فی کل خمس» نقل کړې دې.لیکن اکثرو راویانو«سبع»نقل کړې دې.نوهم ددې باب په آخری روایت کښې دی«فاقرأه فی سبع ولاتزد علی ذالك».

۴۷۶۶ : حَدَّثَنَا سَعْدُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا شَيْبَانُ عَنْ يَحْيَى عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ اَبِي سَلَمَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ لِي النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي كَمْ تَقْرَأُ الْقُرْاٰنَ حَدَّثَنِي اِسْحَاقُ اَخْبَرَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ مُوسَى عَنْ شَيْبَانَ عَنْ يَحْيَى عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ مَوْلَى بَنِي زُهْرَةَ عَنْ اَبِي سَلَمَةَ قَالَ وَاَحْسِبُنِي قَالَ سَمِعْتُ اَنَا مِنْ اَبِي سَلَمَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اقْرَأِ الْقُرْاٰنَ فِي شَهْرٍ قُلْتُ اِنِّي اَجِدُ قُوَّةً حَتَّى قَالَ فَاقْرَأْهُ فِي سَبْعٍ وَلَا تَزِدْ عَلَى ذٰلِكَ [ر:۱۰۷۹]

**قوله: عن ابی سلمة قال:وأحسبی قال : سمعت أنا من أبی سلمة:** دا د یحیی بن ابی کثیر قول دې،مخکښې سند کښې د یحیی شیخ محمد بن عبد الرحمان دې اودمحمد بن عبدالرحمان شیخ ابوسلمه دې نو یحیی د ابوسلمه نه د محمد بن عبدالرحمانه نه نقل کوی ، لیکن دوی ته په دې کښې تامل دې.نوهغوی اوفرمائیل چه ځما خیال دادې چه ما دا حدیث نیغ په نیغه د ابوسلمه نه پخپله آورېدلې دې یعنی د محمد بن عبدالرحمان واسطه نشته . (۱)

۱) عمده القاری : ۶۰/۲ ، وفتح الباری : ۱۲۰/۹).

# ۳۵_ بَابُ البُكَاءِ عِندَ قِرَاءَةِ القُرآنِ

مطلب دادې چه دقرآن کريم دتلاوت په وخت ژړا ثابت ده .امام نووی رحمه الله فرمائيلی دی چه دقرآن پاك دقراءت په وخت كښې ژړل د عارفانو صفت دې او دصالحانو شعار دې.(۱) امام غزالی رحمه الله فرمائی چه دقرآن پاك د تلاوت په وخت كښې ژړل مستحب دی. (۲)

ددې طريقه داده چه د قرآن پاك د بيان شوی وعيد اوتهديد او وعدې اود ترغيب استحضار اوكړنې اوپه خپل غفلت باندې نظر واچولې شی‌نوداشان به زړه غمگمين شی.ا وكه بيا هم ژړا رانشی نود ژړاكوونكی كيفيت جوړول پكار دی.

امام ابن ماجه دحضرت سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه نه روايت كړې دې چه حضور اكرم ﷺ اوفرمائيل «ان هذا القرآن نزل بحزن فاذا قرأتموه فابكوا، فان لم تبكوا فتباكوا». (۳)

۴۷۶۸/۴۹۶۹ : حَدَّثَنَا صَدَقَةُ اخبَرَنَا يَحيَى عَن سُفيَانَ عَن سُلَيمَانَ عَن ابرَاهِيمَ عَن عَبِيدَةَ عَن عَبدِ اللَّهِ قَالَ يَحيَى بَعضُ الحَدِيثِ عَن عَمرِو بنِ مُرَّةَ قَالَ لِي النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ عَن يَحيَى عَن سُفيَانَ عَن الاعمَشِ عَن ابرَاهِيمَ عَن عَبِيدَةَ عَن عَبدِ اللَّهِ قَالَ الاعمَشُ وَبَعضُ الحَدِيثِ حَدَّثَنِي عَمرُو بنُ مُرَّةَ عَن ابرَاهِيمَ وَعَن ابِيهِ عَن ابِي الضُّحَى عَن عَبدِ اللَّهِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ اقرَا عَلَيَّ قَالَ قُلتُ اقرَا عَلَيكَ وَعَلَيكَ انزِلَ قَالَ انِّي اشتَهِي ان اسمَعَهُ مِن غَيرِي قَالَ فَقَرَاتُ النِّسَاءَ حَتَّى اذَا بَلَغتُ فَكَيفَ اذَا جِئنَا مِن كُلِّ امَّةٍ بِشَهِيدٍ وَجِئنَا بِكَ عَلَى هَؤُلَاءِ شَهِيدًا قَالَ لِي كُفَّ اوامسِك فَرَايتُ عَينَيهِ تَذرِفَانِ

امام بخاری رحمه الله داحديث د دوو حضراتونه نقل كړې دې، يو د شيخ،دده صدقة بن الفضل مروزی دې او دويم شيخ مسدد دې.د صدقة بن الفضل مروزی دطريقې متن امام په تفسير كښې ذكر كړې دې. په دې‌ځاې كښې‌چه كوم متن دحديث دې دا دمسدد د طريقې دې.(۴)

دصدقة بن الفضل په طريق كښې يحيى القطان فرمائی «قال يحيى : بعض الحديث عن عمرو بن مرة» يعنی د حديث بعضې حصه سليمان‌اعمش د عمرو بن مرو نه نقل كړې ده.دسليمان شيخ ابراهيم نخعی دې . ليكن‌دا پوره حديث هغوی د ابراهيم نخعی نه نيغ په نيغه نه دې نقل كړې ، بلكه څه حصه ئې نيغ په نيغه دهغوی نه نقل كړې ده او څه ئې دعمرو بن مره په واسطې سره د ابراهيم نخعی نه‌نقل كړې ده.نو دمسدد په طريق كښې تصريح ده.«قال

---

۱ ) فتح الباری : ۱۲۱/۹).

۲ ) فتح الباری : ۱۲۱/۹).

۳ ) سنن ابن ماجه كتاب اقامة الصلوة والسنة فيها، باب حسن الصوت بالقرآن ، رقم الحديث : ۱۳۳۷ )فی الزوائد فی اسناده ابو رافع ، اسمه اسماعيل بن رافع ضعيف متروک).

۴ ) فتح الباری : ۱۲۱/۹).

الاعمش : «بعض الحديث حدثنى عمرو بن مرة، عن ابراهيم» سليمان اعمش فرمائي چه د حديث څه حصه دعمروبن مره په واسطې سره د ابراهيم نخعي نه نقل کړې ده.
حاصل دادې چه سليمان څه حصه د اعمش نه نيغ په نيغه نقل کوی او څه حصه عمرو بن مره په واسطه. حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه د «فقرأت النساء .....» نه دحديث تر آخره پورې حصه ابراهيم نه منقول ده لکه څنګه چه دباب په بل حديث کښې صرف هم دا حصه منقول ده. (۱)

**قوله: وعن ابيه : عن ابى الضحى عن عبدالله:** ددې عطف «عن سليمان» باندې کيږی يعنی سفيان ثوری دا روايت د اعمش نه هم نقل کوی او دخپل پلار (سعيد بن مسروقه ثوری) نه هم نقل کوی ، ليکن دده دپلار طريق منقطع دې ځکه چه ددوی پلار ابو الضحى(مسلم بن صبيح)نه نقل کوی اوابو الضحى حضرت عبدالله بن مسعود نه وو ليدلې، ددې وجې دابوالضحى روايت منقطع دې . (۲)

**قوله: فرأيت عينيه تذرفان:** دحضور نبی کريم ﷺ د ژړا وجه ابن بطال دا ليکلې ده چه کله حضور نبی کريم ﷺ «فكيف اذا جئنا من كل امة بشهيد» والا آيت واوريدو نو د قيامت منظر او ددې ويره ددوی ﷺ په مخکښې شوه نوددې وجې حضور ﷺ اوژړل. (۳)
حافظ ابن حجر رحمه الله اوفرمائيل چه حضور ﷺ په خپل امت باندې د شفقت کولو په وجه اوژړل ، ځکه چه امت محمديه به دخپل عمل په بناء ګواهي ورکوې او کله چه هم دده عمل صحيح نه وی چه ددې په وجې سره به ورته عذاب ورکولې شی. ددې وجې نې اوژړل. (۴)
علامه زمحشری رحمه الله فرمائي چه دا ژړا د غم او حزن په وجه نه وه بلکه دخوشحالئ او مسرت په وجه وه ،مسرت ددې خبرې چه الله ﷻ امت محمديه په ټولو امتونو باندې ګواه جوړ کړو ، د خوشحالئ د وجې نه هم سړې ژاړی. شاعر وائي :

طفح السرور على حتى انه — من فرط ما قد سرنى ابكانى (۵)

ترجمه: ماباندې دمسرت داسې دوران راغلو چه د خوشحالئ دلاسه مې اوژړل.

۴۷۶۹: حَدَّثَنَا قَيْسُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ عَنْ اِبْرَاهِيمَ عَنْ عَبِيدَةَ السَّلْمَانِيِّ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ لِي النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اقْرَأْ عَلَيَّ قُلْتُ اَقْرَأُ عَلَيْكَ وَعَلَيْكَ اُنْزِلَ قَالَ اِنِّي اُحِبُّ اَنْ اَسْمَعَهُ مِنْ غَيْرِي (ر:۴۳۰۶).

---

۱) فتح البارى : ۱۲۱/۹).
۲) فتح البارى : ۱۲۱/۹).
۳) فتح البارى : ۱۲۲/۹).
٤) فتح البارى : ۱۲۲/۹).
۵) ارشاد السارى : ۳۶۶/۱۱ -۳۶۷).

## ۳۶_ بَابُ إِثْمِ مَنْ رَاءَى بِقِرَاءَةِ الْقُرْآنِ أَوْ تَأَكَّلَ بِهِ أَوْ فَخَرَ بِهِ

په دې خانې کښې دهغه سړي د مذمت (غندنې) بيان کول مقصود دی چه د قرآن په قرآت کښې ښودنه کوی يا دا چه هغه په دې سره دنيا کټل غواړی او ددنيا مال او متاع حاصلول مقصدوی يا دا چه هغه د فخراو غرور دپاره دقرآن پاك تلاوت کوی.«راءی_ مراءاة» دباب مفاعله نه ده ، ښودنه کول ، په يو روايت کښې دی چه راياء ياء سره ده ، ددې هم دا معنی ده. «تاکل»د باب تفعل نه دې ، اکل طلب کول . «فخربه»فخر کول ، بعضو نسخو کښې فجربه دی. (۱)

۴۷۷۰ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا الأَعْمَشُ عَنْ خَيْثَمَةَ عَنْ سُوَيْدِ بْنِ غَفَلَةَ قَالَ عَلِيٌّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ يَأْتِي فِي آخِرِ الزَّمَانِ قَوْمٌ حُدَثَاءُ الأَسْنَانِ سُفَهَاءُ الأَحْلاَمِ يَقُولُونَ مِنْ خَيْرِ قَوْلِ الْبَرِيَّةِ يَمْرُقُونَ مِنَ الإِسْلاَمِ كَمَا يَمْرُقُ السَّهْمُ مِنَ الرَّمِيَّةِ لاَ يُجَاوِزُ إِيمَانُهُمْ حَنَاجِرَهُمْ فَأَيْنَمَا لَقِيتُمُوهُمْ فَاقْتُلُوهُمْ فَإِنَّ قَتْلَهُمْ أَجْرٌ لِمَنْ قَتَلَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ (ر:۳۴۱۵).

په دې کښې قلب دې .اصل عبارت دې «يقولون من قول خير البرية» يعنی هغه دخير البريه قول بيانوی.

د خير البريه نه مراد يا حضور اکرم ﷺ دې چه هغه خلق به درسول کريم ﷺ حديث بيانوی. او يا ددې نه الله ﷻ مراد دې چه هغه خلق به دقرآن پاك تلاوت کوی اوهم دا هغه بل مطلب دې چه دترجمة الباب مناسبت سره دې. (۲)

۴۷۷۱ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ بْنِ الْحَارِثِ التَّيْمِيِّ عَنْ أَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّهُ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ يَخْرُجُ فِيكُمْ قَوْمٌ تَحْقِرُونَ صَلاَتَكُمْ مَعَ صَلاَتِهِمْ وَصِيَامَكُمْ مَعَ صِيَامِهِمْ وَعَمَلَكُمْ مَعَ عَمَلِهِمْ وَيَقْرَءُونَ الْقُرْآنَ لاَ يُجَاوِزُ حَنَاجِرَهُمْ يَمْرُقُونَ مِنَ الدِّينِ كَمَا يَمْرُقُ السَّهْمُ مِنَ الرَّمِيَّةِ يَنْظُرُ فِي النَّصْلِ فَلاَ يَرَى شَيْئًا وَيَنْظُرُ فِي الْقِدْحِ فَلاَ يَرَى شَيْئًا وَيَنْظُرُ فِي الرِّيشِ فَلاَ يَرَى شَيْئًا وَيَتَمَارَى فِي الْفُوقِ (ر:۳۴۴۳).

حضرت ابوسعيد خدری ﷺ فرمانی چه ما د حضرت رسول کريم ﷺ نه آوريدلی دی چه په تاسوکښې به يو قوم راوزی چه هغوی مقابله کښې به تاسو خپل مونځ ، روژه او اعمال حقيرګنړنی ، هغوی به قرآن پاك لولی چه دابه دهغوی د مرئی او حلق نه لاندې نه کوزيږی ، دوی به ددين نه داسې اورخی لکه څنګه چه غشی د ښکار نه اوخی چه ښکاری ته نه معلوم

(۱) ددې پورتنی تفصيل دپاره اوګورئ فتح الباری : ۱۲۳/۹ ، وارشاد االساری : ۱۱).
(۲) ارشاد الساری : ۳۲۷/۱۱).

وى‌اونه نې ډنډې پورې څه لګيدلى وى اونه څه محسوس شوى وى‌اونه په دې څه اثر وى البته سوفار (د غشى خله) باندې څه شك وى.

«نصل: حديد السهم» يعنى پيكان. «قدح» «بكسر القاف» غشى، پيكان او دريش په مينځ كښې ډنډا. «يتمارى» شك كول. «فوق» سوفار، دغشى خله. (۱)

مطلب دادې چه څنګه هغه غشى د ښكار نه صفا اوځى و داشان په دې خلقو باندې هم داسلام هيڅ اثر به نه كيږى.

حديث كښې چه كوم قوم ذكر شوې دې، ددې نه خوارج مراد دى، ددې حديث متعلق تفصيلى بحث مخكښې په كتاب المحاربين‌په باب قتال الخوارج كښې راخى.

په دې ذكر شوؤ دوؤ احاديثونه‌د ترجمة الباب جزء «او فجربه» ثابتيږى. څكه چه په دې د كوم قوم ذكردې هغوى خو به قرآن پاك لولى ليكن ددې نه باوجود فسق وفجور نه به‌خالى نه وى (۲)

۴۷۷۲: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ شُعْبَةَ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ عَنْ أَبِي مُوسَى عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْمُؤْمِنُ الَّذِي يَقْرَأُ الْقُرْآنَ وَيَعْمَلُ بِهِ كَالْأُتْرُجَّةِ طَعْمُهَا طَيِّبٌ وَرِيحُهَا طَيِّبٌ وَالْمُؤْمِنُ الَّذِي لَا يَقْرَأُ الْقُرْآنَ وَيَعْمَلُ بِهِ كَالتَّمْرَةِ طَعْمُهَا طَيِّبٌ وَلَا رِيحَ لَهَا وَمَثَلُ الْمُنَافِقِ الَّذِي يَقْرَأُ الْقُرْآنَ كَالرَّيْحَانَةِ رِيحُهَا طَيِّبٌ وَطَعْمُهَا مُرٌّ وَمَثَلُ الْمُنَافِقِ الَّذِي لَا يَقْرَأُ الْقُرْآنَ كَالْحَنْظَلَةِ طَعْمُهَا مُرٌّ أَوْ خَبِيثٌ وَرِيحُهَا مُرٌّ (۴۷۳۲).

دا روايت‌په «باب فضل القرآن على سائر الكلام» كښې تير شوې دې، هغه‌ځائې كښې الفاظ وو «ولا ريح لها» او په دې‌ځائې كښې الفاظ دى «وريحها مر».

علامه بدالدين زركشى رحمه الله فرمائى چه «لا ريح لها» والا روايت راجح دې. (۳) باندې اشكال كيږى چه په دې كښې څه دتريخ والى بوئى نشته بلكه داخودمطعوماتو صفت دې، په دې ځائې كښې ريح ته څنګه «مر» اووئيل.

ددې جواب دا وركړې شو چه‌حلاوت او مرارت اګر چه دمطعوماتود صفاتونه دى ليكن په دې ځائې كښې د استعارې په طور دمرارت اطلاق په ريح باندې اوكړې شو چه دحنظله دپاره د ذائقې په شان ددې بو هم ښه نه وى، نوعلامه قسطلانى رحمه الله فرمائى چه:

«واستشكل من حيث أن المرارة من اوصاف الطعوم، فكيف يوصف بها الريح، وأجيب بأن ريحها لما كان كطعمها، أستعيرله وصف المرارة» (۴)

---

۱) ارشاد السارى: (۳۲۹/۱۱).
۲) فتح البارى ۱۲۴/۹).
۳) فتح البارى: باب فضل القران على سائر الكلام: ۱۲/۹).
۴) ارشاد السارى: ۳۲۹/۱۱).

**ترجمة الباب سره مناسبت:** ددې حدیث مناسبت ترجمة الباب واضحه دی ځکه چه په دې کښې قرآن پاك لوستونکی دمنافق ذکر دې اوظاهر دی چه منافق قران کریم یا خو دښودنې په طور لولی او یا دا د خوراك څکاك ذریعه جوړولو دپاره لولی . حافظ ابن حجر داحادیث او دترجمة الباب په مناسبت کښې لیکی

((فالاحادیث الثلاثة دالة لارکان الترجمة لان منهم من رایابه والیه الاشارة فی حدیث ابی موسی ، ومنهم من تاکل به ، وهو مخرج من حدیثه ایضا ، ومنهم من فجربه ، وهو مخرج من حدیث علی وابی سعید))(۱)

## ۳۷_ بَاب اقْرَءُوا الْقُرْآنَ مَا ائْتَلَفَتْ عَلَيْهِ قُلُوبُكُمْ

۴۷۷۳/۴۷۷۳ : حَدَّثَنَا أَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ أَبِي عِمْرَانَ الْجَوْنِيِّ عَنْ جُنْدَبِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اقْرَءُوا الْقُرْآنَ مَا ائْتَلَفَتْ قُلُوبُكُمْ فَإِذَا اخْتَلَفْتُمْ فَقُومُوا عَنْهُ(۲)

(۴۷۷۴) : حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ حَدَّثَنَا سَلَّامُ بْنُ أَبِي مُطِيعٍ عَنْ أَبِي عِمْرَانَ الْجَوْنِيِّ عَنْ جُنْدَبٍ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اقْرَءُوا الْقُرْآنَ مَا ائْتَلَفَتْ عَلَيْهِ قُلُوبُكُمْ فَإِذَا اخْتَلَفْتُمْ فَقُومُوا عَنْهُ

**دحدیث په باب کښې مختلف مطالب:** ددې حدیث ډیر مطلبونه بیان شوی دی.

① یو معنی ئې دا بیان شوې ده چه تر کومې پورې مو زړه غواړی نو دقرآن پاك تلاوت کوئی او کله چه موزړه تنګ شی نو دتلاوت سلسله موقوف کړئی ، ځکه چه بغیر د زړه نه دقرآن پاك تلاوت کوی څه خوښ عمل نه دې.(۳)

② دویم مطلب دادې که یو ډله په تلاوت کښې مشغوله وی یا دقرآن پاك معنانی او علوموپه غور او فکر کښې مشغول وی نو ده دوی تر هغه وخته پورې خپل تلاوت اومذاکره جاری ساتل پکار دی چه ترکومې چه په خپلو کښې د اختلافات او یو بل سره متشابهات وغیره کښې دنزاع او تردیدسلسله شروع نشی ، که د اختلاف نوبت راشی نوبیا دې دا موقوف کړې شی. (۴)

---

۱ ) فتح الباری : ۱۲٤/۹)

۲ (٤۷۷۳) واخرجه البخاری ایضا متصلا بهذالحدیث ، رقم الحدیث : ٤۷۷٤ ، وفی کتاب الاعتصام باب کراهیة الاختلاف ، رقم الحدیث : ۷۳٦٤ ، ۷۳٦۵، ومسلم فی کتاب العلم ، باب النهی عن اتباع متشابه القران ، رقم الحدیث : ۲٦٦۷ ، والنسائی فی کتاب فضائل القران ،باب ذکر الا ختلاف ، رقم الحدیث : ۸۰۹۹، ۷۰۹۷).

۳ ) فی الباری : ۲۷۲/٤ ، ارشاد الساری : ۳۳۰/۱۱).

٤ ) فتح الباری : ۱۲۵/۹).

قاضی عیاض فرمائیلی دی چه ممکن دی چه دا حکم دحضور ﷺ د زمانې سره خاص وی ځکه چه د حضور ﷺ په زمانه کښې داشان صورت کښې د څه داسې حکم د نازلیدو امکان وو چه هغه داختلاف کوونکو دپاره د غم باعث شی ، چه څنګه دالله ﷻ قول دې چه ﴿لَا تَسْئَلُوْا عَنْ اَشْيَآءَ اِنْ تُبْدَ لَكُمْ تَسُؤْكُمْ﴾(۱)

④ اودا هم ممکن دی چه دا حدیث د اختلاف قرآت سره متعلق وی ، قرآن پاك په مختلفو لغاتوکښې دوئیلو جواز وو او په یو لغت باندې دویونکو دبل لغت ویونکو والو سره د اختلاف اندیښنه وه ،نو دې نه پس دا اختلاف زیات شو.په دې صورت کښې به د حدیث مطلب دا وی چه دقرآن پاك تلاوت خپل قرآءت مطابق تر هغه وخته پورې جاری ساتئ چه تر کومې څه اختلاف راپیښ نه شي. لیکن که څوك ستاسو په قرآءت باندې نه نکیر کوی او داختلاف صورت پیدا شی نو تلاوت بس کول پکار دی.

امام بخاری رحمه الله ددې باب په آخر کښې داختلاف قرآءت متعلق دحضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه روایت ذکر کوی او غالبًا هم دې مطلب طرف ته ئې اشاره کړې ده.(۲)

تَابَعَهُ الْحَارِثُ بْنُ عُبَيْدٍ وَسَعِيدُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ أَبِي عِمْرَانَ وَلَمْ يَرْفَعْهُ حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ وَأَبَانُ

یعنی دسلام بن ابی مطیع متابعت حارث بن عبید او سعید بن زید هم کړې دې ،چه څنګه سلام دا حدیث مرفوعًا نقل کړې دې دې دواړو هم مرفوعا نقل کړې دې.

دحارث متابعت دارمی او دسعید متابعت حسن بن سفیان موصولاً نقل کړې دې . (۳)

**قوله: ولم یرفعه حماد بن سلمه و ابان:** حماد بن سلمه اوابان ابن یزید عطار دا حدیث مرفوعا نه دې نقل کړې بلکه موقوفا ئې نقل کړې دې.حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه ماته د حماد روایت چرته هم موصولاً ملاؤ نشو.او د ابان روایت دحباب بن هلال په طریق باندې په صحیح مسلم کښې موصولاً ذکر دې.خو په هغه ځائې کښې موقوف نه دې بلکه مرفوع دې. ممکن دی چه امام بخاری رحمه الله ته څه بلې طریقې سره دهغه روایت موقوف معلوم شوې وی.(۴)

**قوله: وَقَالَ غُنْدَرٌ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ أَبِي عِمْرَانَ سَمِعْتُ جُنْدَبًا قَوْلَهُ:** یعنی غندر هم داروایت موقوفًا نقل کړې دې.«سمعت جندبا قوله» یعنی دا حدیث ئې دجندب دقول په طور آوریدلې وی ، حضرت رسول الله ﷺ طرف ته ددې نسبت په دې طریق کښې نشته دې.

دغندر دا تعلیق اسماعیلی موصولاً نقل کړې دې. (۵)

---

۱ ) فتح الباری : ۱۲۵/۹).
۲ ) فتح الباری : ۱۲۵/۹).
۳ ) فح الباری : ۱۲۵/۹).
٤ ) فح الباری : ۱۲۵/۹).
۵ ) فتح الباری : ۱۲۵/۹).

**قوله:** وَقَالَ ابْنُ عَوْنٍ عَنْ أَبِي عِمْرَانَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ الصَّامِتِ عَنْ عُمَرَ قَوْلَهُ وَجُنْدَبٌ أَصَحُّ وَأَكْثَرُ:(٦٩٣٠ ، ٦٩٣١): يعنى عبدالله بن عون هم دا روايت موقوفا نقل كړې دې . ليكن دجندب په ځائې حضرت عمر رضي الله عنه سره داموقوفًا نقل كړې دې . ابو عبيده رحمه الله دا روايت موصولاً نقل كړې دې.(١)

**قوله:** وجندب أصح وأكثر: يعنى دجندب روايت د سند لحاظ سره اصح او د طرق لحاظ سره كثير دې.مطلب دادې چه موقوف على جندب دې.

خلاصه دادده چه په تير شوى روايت كښې اختلاف دې چه دا موقوف دې يامرفوع دې. كه مرفوع وى نو بيا دحضرت جندب رضي الله عنه په مسند كښې شمارلې شى اوكه‌دا موقوف وى‌نو په دې كښې دوه اقوال دى.يو دا چه‌دا موقوف‌على جندب دې او دويم دادې چه‌دا موقوف‌على عمر دې.امام بخارى رحمه الله ((وجندب أصح وأكثر))ونيلو سره ئې ترجيح وركړې ده. دا خبره چه دا موقوف على جندب دې.

٤٧٧٥ : حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ مَيْسَرَةَ عَنْ النَّزَّالِ بْنِ سَبْرَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ أَنَّهُ سَمِعَ رَجُلًا يَقْرَأُ آيَةً سَمِعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خِلَافَهَا فَأَخَذْتُ بِيَدِهِ فَانْطَلَقْتُ بِهِ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ كِلَاكُمَا مُحْسِنٌ فَاقْرَآ أَكْبَرُ عِلْمِي قَالَ فَإِنَّ مَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ اخْتَلَفُوا فَأَهْلَكُوا(ر:٢٢٧٩).

**قوله:** انه سمع رجلا يقرأ:حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه‌ممكن دى چه‌درجل نه حضرت ابى بن كعب رضي الله عنه مراد وى .

**قوله:** اكبر علمي قال: داد شعبه قول دې هغه فرمائى چه‌ځما غالب گمان دادې چه حضور اكرم صلى الله عليه وسلم دا فرمائيلى دى چه((فان من كان قبلكم اختلفوا فاهلكهم)) باقى دحديث باره كښې خو هغه ته يقين دې ، ليكن ددې جملې متعلق هغه ته يقين نشته دې ، بلكه غالب گمان دې.

الحمد لله الذى بنعمته تتم الصالحات

وصلى الله تعالى على خير خلقه محمد وعلى آله واصحابه اجمعين

---

١) فتح البارى : ١٢٥/٩).

# کتاب النکاح

## کتاب النکاح: الأحادیث (۴۷۷۶-۴۹۵۲)

په کتاب النکاح کښې امام بخاری رحمه الله یو سل شپږ ویشت (۱۲۶) بابونه قائم کړی دی په دې کښې دوه بابونه بلا ترجمه دی د کتاب النکاح د مرفوع احادیثو شماردوه سوه اتلس (۲۱۸) دې په دې کښې پنځه څلویښت (۴۵) تعلیقات او متابعات دی او باقی یو سل درې اتیا (۱۸۳) احادیث موصول دی په دې کښې یو سل دوه شپیته احادیث مکرر دی او شپږ شپیته (۶۶) احادیث داسې دی چه هغه امام په کتاب النکاح کښې په اول کښې ذکر کړی دی په دې کښې د دویشت (۲۲) احادیثو نه سوا باقی ټول احادیث متفق علیه دی یعنی امام مسلم رحمه الله هم هغه ذکر کړی دی د صحابو رضی الله عنهم او سلفو رحمهم الله (۳۶) آثار امام بخاری رحمه الله په کتاب النکاح کښې ذکر کړی دی په کتاب النکاح کښې امام بخاری رحمه الله د شلو بابونو نه پس د رضاعت مسئلې هم ذکر کړی دی په بعضې نسخو کښې د دې دپاره مستقل د کتاب الرضاع عنوان هم شته

# ٧٠_ كتاب النكاح

## ١= باب= الترغيب في النكاح.

لقوله تعالى ﴿فَانْكِحُوا مَا طَابَ لَكُمْ مِنَ النِّسَاءِ﴾ (النساء :٣)

په لغت کښې دنکاح معنی ضم هم راځي. او د وطی هم ، وطی دضم ذریعه ده ، دې نه پس د نکاح دلفظ په تزویج باندې اطلاق کوی ځکه تزویج د «ضم بین الرجل والمراة» سبب دی.

په دې کښې اختلاف دې دنکاح لفظ داصل وضع اعتبار سره عقد دپاره دې یا وطی دپاره ، په دې سلسله کښې دعلماء درې قولونه دی.

①دحضرات شوافع قول اصح او د حضرات مالکیه راجح مذهب دادې چه لفظ دنکاح په عقد کښې حقیقت دې او وطی کښې هم مجاز ده. (١)

②دحضرات حنفیه مسلك دادې چه لفظ دنکاح دوطی په معنی کښې حقیقت دې او په عقد کښې مجاز ، دحضرات شوافع هم دا یو روایت دې . (٢)

③دریم قول دادې لفظ دنکاح وطی او عقد دواړو دپاره علی السواء استعمالیږی. او دواړو کښې بالاشتراك حقیقت دې (٣)

حنابله کښې قاضی ابویعلی هم دا اختیار کړې دې ، شوافع نه هم یو روایت هم د نقل شوې دې او حافظ ابوالقاسم زجاجی هم ددې تائید کړې دې. (٤)

**نکاح باب د عبادات نه دې یا مباحات نه ؟** دې نه پس په دې کښې اختلاف دې چه نکاح آیا په باب دعبادات کښې شامل دې یا مباحات کښې ؟ حضرات حنفیه او حنابله په نیز داپه عبادات کښې شامل دی. (٥) او حضرات شوافع دا په مباحات کښې شمیری. (٦)

دمالکیه نه دواړه قولونه منقول دی. یو دا چه نکاح «اقوات» کښې نه ده ، «قوت» هغه څیز ته ونیلې شي چه دهغې نه بغیر ژوند تیرول مشکل وی او نکاح داسې څیز دې چه ددې نه بغیر ژوند مشکل دی ، دویم قول دادې نکاح دتفکهات دقبیل نه ده او دفواکه شان داوی که استعمال شي نو ډیره ښه ، که نه وی نو هیڅ حرج نشته. (٧)

---

١) او جز المسالک ٦٢٥/٩_ والحاوی الکبیر للماوردی ، کتاب النکاح :١١/٩).
٢) فتح الباری :١٢٨/٩_ اوجز المسالک الی موطا الامام مالک :٦٢٥/٩).
٣) اوجز المسالک :٦٢٥/٩ ، وفتح الباری : ١٢٨/٩ ).
٤) اوجز المسالک :٩/ ٦٢٥ وفی اصطلاح الشریعة (عقد یفید ملک المتعة قصدا کذافی در المختار : ٢٥٨/٢)
٥) فتح التقدیر : ٩٨/٣).
٦) اوجز المسالک : ٢٦٦/٩_ وفتح التقدیر :١٠١/٣).
٧) فتح التقدیر: ١٠١/٣ : اوجز المسالک : ٢٦٧/٩_ المغنی لابن قدامة: ٤/٧).

تخلى للنوافل افضل دى يا نكاح ؟ بيا په دې كښې اختلاف دې چه نكاح كول سنت دى يا واجب ؟دجمهور علماء كرام مسلك دادې چه نكاح كول سنت دى . اود داود ظاهرى رحمه الله ، علامه ابن حزم رحمه الله او امام احمد بن حنبل رحمه الله يو قول دادې چه نكاح كول واجب دى. (۱)

دا اختلاف دعامو حالاتو په اعتبار سره دې ، كله چه انسان ته په زنا وغيره كښې دمبتلا كيدو ويره نه وى ، كه ددې ويره وى نو ((عندالتوقان)) بيا دټولو دپاره نكاح كول واجب دى (۲) البته حضرات شوافع په دې صورت كښې هم دوجوب قائل نه دى ، بلكه هغوى ورته صرف مستحب وائى. (۳)

چه كوم حضرات دوجوب نكاح قائل دى لكه څنګه چهد داود ظاهرى رحمه الله وغيره مذهب دې(۴)

هغوى دقران عظيم الشان آيت مبارك ﴿فَانْكِحُوْا مَا طَابَ لَكُمْ مِّنَ النِّسَآءِ﴾ نه استدلال كوى چه ((فَانْكِحُوْا)) دامر صيغه ده ، داشان په حديث كښې ((تزوجوا الولود الودود فانى مكاثر بكم الامم)) (۵) كښې واردشوى دى او په دې كښې هم ((تزوجوا)) دامر صيغه ده.داشان په بخارى شريف كښې يو حديث رازى ، ددې په آخر كښې دى چه ((فمن رغب عن سنتى فليس منى)) ، ددې نه هم وجوب ثابتيږى.

ليكن جمهور عالمان فرمائى چه دا دلائل دوجوب دپاره كافى نه دى ، آيت كريمه چه ((فَانْكِحُوْا)) دامر صيغه دې ليكن امر هر ځائې كښې دوجوب دپاره نه رازى،د آيت كريمه سياق وسباق هم په دې باندې دلالت كوى چه نكاح واجب نه ده.داشان ((تزوجوا الولود الودود)) ، كښې دامر صيغه خوده ليكن مخكښې چه په ((مكاثر بكم الامم)) سره كوم علت بيان فرمائيلې دې،دې نه متبادر هم دا كيږى چه وجوب لره بيانول مقصود نه دې.

او((من رغب عن سنتى فليس منى)) دهغه سړى دپاره بيان فرمائيلې شوى دى چه د حضرت نبى كريم دسنتومبارك نه اعراض اوكړى، بيا هم كه يو سړې دسنت نه اعراض نه كوى او هغه نكاح صرف په دې وجه نه كوى چه ده ته دنكاح كولو ضرورت او حاجت نشته نو دا وعيد دهغه دپاره نه دې.

دشام مشهور عالم شيخ عبدالفتاح ابوغده په يوكتاب د ((العلماء العزاب الذين آثروا العلم على الزواج)) نوم سره تحرير فرمائيلى دى ، په دې كښې هغوى دهغه عالمانو مختصر حالات جمع كړى دى چه هغوى دعلمى مصروفياتو په وجه د ازواج ضرورت محسوس نه كړو .

۱ ) تفصيل دپاره اوګورئ اوجزالمسالک: ۲۶۶/۹؛ وبدائع الصنائع : ۲۲۸/۲).
۲ ) اوجزالمسالک: ۲۶۶/۹).
۳ ) شرح مسلم للنوى : چه/۸ ٤٤٠ ، كتاب النكاح ، باب استحباب النكاح).
٤ ) اوجزالمسالک: ۲۶۶/۹).
۵ ) مجمع الزوائد: ۲۵۲/٤ ، باب الحث على النكاح وما جاء فى ذالک ، وفتح البارى: ۱۳۸/۹)

اوپه دې کښې هغوی تقریبا د شپږدیرشو (۳۶) عالمانو ذکر فرمائیلې دې چه په هغوی کښې ابن تیمیه رحمه الله او علامه نووی رحمه الله پشان اساطین علم نومونه شامل دی. ظاهره ده چه ددې اهل علم متعلق خودا نشی وئیلې کیدې چه هغوی یو واجب عمل پرېښودو.

پخپله دامام بخاری رحمه الله دصنیع اوطرزنه معلومیږی چه هغه هغوی مطلقا دنکاح دوجوب قائل نه دې ځکه د«فَانْكِحُوا» والاآیت هغوی په«باب الترغيب في النكاح» لاندې ذکرکړې دې. دې خبرې طرفته داشارې کولو دپاره دا په وجوب باندې دال نه دې ، صرف دترغیب دپاره دې.

[۴۷۷۶] حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ أَبِي مَرْيَمَ أَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ أَخْبَرَنَا حُمَيْدُ بْنُ أَبِي حُمَيْدٍ الطَّوِيلُ أَنَّهُ سَمِعَ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يَقُولُ جَاءَ ثَلَاثَةُ رَهْطٍ إِلَى بُيُوتِ أَزْوَاجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْأَلُونَ عَنْ عِبَادَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا أُخْبِرُوا كَأَنَّهُمْ تَقَالُّوهَا فَقَالُوا وَأَيْنَ نَحْنُ مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ وَمَا تَأَخَّرَ قَالَ أَحَدُهُمْ أَمَّا أَنَا فَإِنِّي أُصَلِّي اللَّيْلَ أَبَدًا وَقَالَ آخَرُ أَنَا أَصُومُ الدَّهْرَ وَلَا أُفْطِرُ وَقَالَ آخَرُ أَنَا أَعْتَزِلُ النِّسَاءَ فَلَا أَتَزَوَّجُ أَبَدًا فَجَاءَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَيْهِمْ فَقَالَ أَنْتُمُ الَّذِينَ قُلْتُمْ كَذَا وَكَذَا أَمَا وَاللَّهِ إِنِّي لَأَخْشَاكُمْ لِلَّهِ وَأَتْقَاكُمْ لَهُ لَكِنِّي أَصُومُ وَأُفْطِرُ وَأُصَلِّي وَأَرْقُدُ وَأَتَزَوَّجُ النِّسَاءَ فَمَنْ رَغِبَ عَنْ سُنَّتِي فَلَيْسَ مِنِّي.

درې سړی د حضرت نبی کریم ﷺ کور والو ته راغلل اود حضرت نبی کریم ﷺ دعبادت حال د معلومولو په غرض سره راغلل،هرکله چه کوروالو هغوی ته صورت حال اووئیلو هغوی داعبادت کم اوګڼړلو، خو بیا هغوی اووئیل زمونږ او د حضرت نبی کریم ﷺ په مینځ څه نسبت کیدې شی ؟ د حضرت نبی کریم ﷺ خو ټول مخکښی روستی ګناهونه معاف شوی دی. په هغوی کښې یو اوئیل چه څه پوره شپه په په مونځ کښې مشغول اوسم ، دویم اووئیل څه به همیشه روژدار یم ،او هېڅکله بهنه بې روژې کیږم ،دریم اووئیل څه دښځو نه جدا یم ،واده به نه کوم بالکل ، په دې کښې حضرت نبی کریم ﷺ تشریف راوړو ، وې فرمائیل تاسو خلقو داسې داسې اووئیل ، والله څه په تاسو د الله ﷻ نه ډیر زیات ویریدونکې یم ، زه خو روژه نیسم او افطار هم کوم ،دشپې مونځ کوم اوآرام هم کوم ،ښځو سره واده کوم ،نو څوک چه څما نه اعتراض کوی هغه بهڅما نه نه وی.

**قوله: جاءرهط......:** امام عبدالرزاق د سعید المسیب نه مرسلاًنقل کړی دی چه په دې دریو واړو سړو کښې یو علی رضي الله عنه بن ابوطالب، دویم عبدالله بن عمرو بن العاص او دریم عثمان بن مظعون وو. (۲)

خو په دې د دریو واړو کښې د عثمان بن مظعون رضي الله عنه ذکر مشکوک اومتکلم فیه دې. او وجه ددې داده چه د عثمان بن مظعون رضي الله عنه وفات په دوئمه هجرئی کښې شوې وو.په مدینه منوره کښې دهغوی انتقال دټولو نه مخکښې شوې وو.

---

۱) فتح الباري : ۱۲۹/۹_ چه ۳۰ وارشادالساري : ۲۳۴۲/۱۱).

«فهواول من مات بالمدينة من دفن بالبقيع....»(۱)او حضرت عبدالله بن عمربن العاص دهغوی دوفات نه پس مدینې منورې ته هجرت کړې دې. (۲) ځکه ددې دواړو جمع کیدل په ظاهر پوهه کښې نه راځي.

**قوله: والله اني لاخشاكم الله واتقاكم له:** مطلب دادې چه دطاعات دکثرت دپاره ددې خبرې ضرورت کیږی چه قوت علمیه وعملیه داعلی درجې وی او څما قوت علمیه وعملیه ستاسو په مقابله کښې زیاته ده. ددې باوجود څما طریقه داده چه څه روژه نیسم او افطار هم کوم ،دشپې تهجد هم کوم او آرام هم کوم او ښځو سره نکاح هم کوم ، نو تاسوته پکار دی چه څما تابعداری اوکړئی. ځکه چه کله یو سړی روژه نیسی او کله افطار کوی نو په دې سره په روژه کښې دطبعی مزې کیفیت برقرار پاتې کیږی ،هم دا حال دشپې د عبادت هم دې چه څه حصه آرام اوکړې شی او څه حصه د تهجدو دپاره خاص کړی نو په عبادت کښې نشاط پاتې شی، داشان نکاح سره دشرمګاه حفاظت او د عفت سامان هم پیدا کیږی.

**قوله: كانهم تقالوها:**«تقالو»د«قلة» نه دې او د باب تفاعل نه د جمع غائب صیغه ده ، اصل کښې «تقالو»په وزن د «تفاعلوا»دې، لام اول لام ثانی کښې ادغام شو ... «تقالوهاای عدوهاقليلة»(۳) یعنی هغوی دا عبادت کم اوګنړلو.

**قوله: من رغب عن سنتي:** په دې کښې " سنت " د طریقې په معنی کښې دې ، دفرضو په مقابله کښې اصطلاحی دسنت مراد نه ده ،دسنت نکاح پرېښودو دوه صورتونه کیدشی ① یو صورت دادې چه سړی ته څه عذر وی چه دهغې په وجه هغه نکاح نه کوی. داسې سړې ته ذکر شوی وعید نه دې شامل ، دا وعید دهغه سړی دپاره دې چه دقدرت او استطاعت او ضرورت نه باوجود دې اعراض کوی اووائی ۱ دا یو فضول او لایعنی څیز دې ، دې نه خوښوی ، داسې سړې په دې وعید کښې داخل دې.

**فائده :** دنکاح په خطبه کښې دې الفاظو سره یو مشهور حدیث وئیلې کیږی «النكاح من سنتي فمن رغب عن سنتي فليس مني»بعينه هم داالفاظ په حدیثو کښې نه ملاویږی، په دې ځائې کښې په بخاری شریف کښې دومره دی چه «فمن رغب عن سنتي فليس مني».

امام ابن ماجه رحمه الله د حضرت عائشه رضي الله عنها یو حدیث نقل فرمائیٔ چه ددې الفاظ دادی:

«النكاح من سنتي، فمن لم يعمل بسنتي فليس مني، وتزوجوا فاني مكاثربكم الامم، ومن كان ذا طول

---

۱) الاصابة تميز الصحابة: ۲/۴۶۴) وفيه "عن عائشه رضى الله عنها قالت قبل النبى ﷺ عثمان بن بن مظعون ،وقالت امراة ترثية، وهو يبكى وعيناه تذر فان ،ولما توفى ابراهيم بن النبى ﷺ قال: الحق بسلفنا الصالح عثمان بن مظعون ، وقالت امراة ترثية ، باعين جودى بدمع غير ممنون على رزية عثمان بن مظعون).

۲) فتح البارى : ۹/۱۳۰).

۳) عمده القارى : ۲۰/۶۵).

فلینکح ومن لم یجد فعلیه بالصیام فان الصوم له وجاء)) (۱)
ددې روایت سند کښې عیسی بن میمون یو ضعیف راوی دې ، حافظ ابن حجر رحمه الله په تلخیص دالحبیر کښې دابن ماجه ددې الفاظو سره یوشان الفاظ نقل کړی دی(۲) خو مشهور الفاظ هغه هم نه دی ذکر کړی البته امام ابوالقاسم الرافعی د ((النکاح من سنتی فمن رغب عن سنتی فلیس منی)) الفاظ نقل کړی دی. (۳)

[۴۷۷۷] :حَدَّثَنَا عَلِيٌّ سَمِعَ حَسَّانَ بْنَ اِبْرَاهِيمَ عَنْ يُونُسَ بْنِ يَزِيدَ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِي عُرْوَةُ اَنَّهُ سَاَلَ عَائِشَةَ عَنْ قَوْلِهِ تَعَالَى وَاِنْ خِفْتُمْ اَلَّا تُقْسِطُوا فِي الْيَتَامَى فَانْكِحُوا مَا طَابَ لَكُمْ مِنَ النِّسَاءِ مَثْنَى وَثُلَاثَ وَرُبَاعَ فَاِنْ خِفْتُمْ اَلَّا تَعْدِلُوا فَوَاحِدَةً اَوْ مَا مَلَكَتْ اَيْمَانُكُمْ ذَلِكَ اَدْنَى اَلَّا تَعُولُوا قَالَتْ يَا ابْنَ اُخْتِي الْيَتِيمَةُ تَكُونُ فِي حَجْرِ وَلِيِّهَا فَيَرْغَبُ فِي مَالِهَا وَجَمَالِهَا يُرِيدُ اَنْ يَتَزَوَّجَهَا بِاَدْنَى مِنْ سُنَّةِ صَدَاقِهَا فَنُهُوا اَنْ يَنْكِحُوهُنَّ اِلَّا اَنْ يُقْسِطُوا لَهُنَّ فَيُكْمِلُوا الصَّدَاقَ وَاُمِرُوا بِنِكَاحِ مَنْ سِوَاهُنَّ مِنَ النِّسَاءِ[ر:۲۳۶۲].

دامام بخاری رحمه الله دشیخ نه په دې خائې کښې مراد عبدالله مدینی دې ، دا حدیث په سورة النساء تیر شوې دې.

## ۲-بَاب قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنِ اسْتَطَاعَ مِنْكُمُ الْبَاءَةَ فَلْيَتَزَوَّجْ لِاَنَّهُ اَغَضُّ لِلْبَصَرِ وَاَحْصَنُ لِلْفَرْجِ وَهَلْ يَتَزَوَّجُ مَنْ لَا اَرَبَ لَهُ فِي النِّكَاحِ

امام بخاری رحمه الله دترجمة الباب نه په دې خبره باندې تنبیه ورکول غواړی کوم سړی ته په نکاح کولو قدرت حاصل وی نوهغه ته نکاح کول پکار دی ځکه په دې کښې دوه فائدې دی.

① یو فائده خودادہ چه نظرئی لاندې وی.

② دونمه فائده دادہ چه شرمګاه دګناه نه محفوظ وی. دې نه پس ئې اوفرمائیل چه ((وهل یتزوج من لا ارب له فی النکاح)) آیا هغه سړې دې نکاح اوکړی چه نکاح کولو حاجت نه وی ، حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه امام بخاری رحمه الله غالبًا یو اختلافی مسئلې طرفته اشاره کول غواړی او هغه داچه یو سړی ته د نکاح کولو شدیده تقاضا نه وی نو دهغه دپاره نکاح کول مندوب دې یا نه؟ دجمهورو عالمانو په نیز سنت دی. او دشوافع په نیز مباح ، امام بخاری رحمه الله د ((هل یتزوج ....)) الفاظ راوړی او همدې اختلاف طرفته اشاره کوی.

---

۱ ) سنن ابن ماجه ، کتاب النکاح ، باب ماجاء فی فضل النکاح : ۵۹۲/۱ ، رقم الحدیث : ۱۸۶۴).
۲ ) حافظ دا الفاظ نقل کړی دی ، ((النکاح سنتی فمن رغب عن سنتی فلیس منی (تلخیص الجیر کتاب النکاح رقم الحدیث:۱۴۳۵ ج/۳/۱۱۶) رحمه الله
۳ ) هذ الکتاب ا لیس بموجود لدینا).

[۴۷۷۸] حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا أَبِي حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ قَالَ حَدَّثَنِي إِبْرَاهِيمُ عَنْ عَلْقَمَةَ قَالَ كُنْتُ مَعَ عَبْدِ اللَّهِ فَلَقِيَهُ عُثْمَانُ بِمِنًى فَقَالَ يَا أَبَا عَبْدِ الرَّحْمَنِ إِنَّ لِي إِلَيْكَ حَاجَةً فَخَلَوَا فَقَالَ عُثْمَانُ هَلْ لَكَ يَا أَبَا عَبْدِ الرَّحْمَنِ فِي أَنْ نُزَوِّجَكَ بِكْرًا تُذَكِّرُكَ مَا كُنْتَ تَعْهَدُ فَلَمَّا رَأَى عَبْدُ اللَّهِ أَنْ لَيْسَ لَهُ حَاجَةٌ إِلَى هَذَا أَشَارَ إِلَيَّ فَقَالَ يَا عَلْقَمَةُ فَانْتَهَيْتُ إِلَيْهِ وَهُوَ يَقُولُ أَمَا لَئِنْ قُلْتَ ذَلِكَ لَقَدْ قَالَ لَنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا مَعْشَرَ الشَّبَابِ مَنِ اسْتَطَاعَ مِنْكُمُ الْبَاءَةَ فَلْيَتَزَوَّجْ وَمَنْ لَمْ يَسْتَطِعْ فَعَلَيْهِ بِالصَّوْمِ فَإِنَّهُ لَهُ وِجَاءٌ [ر: ۱۸۰۶].

دې سند اصح الاسانيد وئيلې شوى دى. (۱)

حضرت ابراهيم نخعي رحمه الله. حضرت علقمه بن قيس نه نقل كوى چه هغوى اوفرمائيل چه عبدالله بن مسعود رضي الله عنه سره اووم نوپه منى كښې حضرت عثمان رضي الله عنه هغوى سره ملاو شو. وې وئيل اې ابو عبدالرحمان! (دا دحضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه كنيت دې) جما تاسره يو كار دې. نودواړه جدا شول. حضرت عثمان رضي الله عنه اوفرمائيل ابوعبدالرحمان! كه ستاسو خوښه وى نو مونږ به ستاسو نكاح يوپيغلې جينۍ سره اوكړوچه هغه به ستاد تير شوى دور خواهشات پوره كړى. حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه چه اوكتل د حضرت عثمان رضي الله عنه سوا ددې نه (دنكاح دمشورې نه) بل څه كار نشته دې نو ماته ئې اشاره اوكړه او وې فرمائيل اې عقلمه! نو څه هغه لره ورغلم. په دې حال كښې چه هغوى (دحضرت عثمان رضي الله عنه په جواب كښې) هغوى ته وئيل چه واوره كه تاسو دا فرمائې نومونږ ته حضرت نبى كريم صلى الله عليه وسلم فرمائيلى دى چه «يامعشر الشباب» چه په تاسو كښې څوك دنكاح طاقت لرى نو هغه دې واده اوكړى او چه څوك استطاعت نه لرى نو هغه دې روژې نيسى ځكه روژه شهوت لره ختموى.

«فخلينا» دا لفظ محل داشكال دې ځكه ددې ماده «خلو» دې واوى دې ځكه «فخلوا» كيدل پكار دى. دابومحمد اصيلى په نسخه كښې «فخلوا» وارد شوى دى. اوابن التين هم دا صحيح فرمائيلې دې. (۲) يعنى هغوى دواړه خالى ځائې ته لاړل.

**قوله: هل لك يا أبا عبدالرحمان:** حضرت عثمان رضي الله عنه حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه ته د پيغلې ښځې دنكاح پيشكش اوكړو. د حضرت عثمان رضي الله عنه خيال ووچه دښځې نه بغير وخت تيروى. ښه ده چه دده سره د وخت تيرولو دپاره څوك ښځه وى نوده ته به راحت وى. بعضې حضراتو وئيلى دى چه حضرت عثمان رضي الله عنه په د جمع قران پاك كښې حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه وو شامل كړې، نودهغه خيال وو شائد دې خما نه خفه دې. دده د خفګان لرې كولو دپاره حضرت عثمان رضي الله عنه دوى ته دا خبره اوكړه، بهر حال حضرت عبدالله رضي الله عنه دنكاح دپاره تيار نه وو.

---

۱) عمدة القارى: ۶۷/۲۰).

۲) فتح البارى: ۱۳۳/۹، وارشاد السارى: ۳۳۷/۱۱).

**قوله:** تذكرك ما كنت تعهد: دعهد (س) عهدا ډيري معنې دي. حفاظت كول ، پرورش كول ، مطلب دادې چه مونږ به ستا نكاح ديو پيغلې ښځې سره اوكړو چه تاسو د پرورش كولو وخت درياد كړي يعني ځنګه ستاسو په طبيعت كښې به ماضي كښې دقوت نشاط او بدن اولباس باندې مو زيب وزينت آثار ښكاره به وو ، په نوې نكاح سره به هم هغه وخت درياد شي.

**قوله:** من استطاع منكم الباءة: لفظ د «الباءة» كښې درې لغتونه دي . ① الباءة (همزه اوهاء سره). ② الباة (بغير دهمزه نه) الباء (بغير دهاء نه) (۱) اوددې دوه معنې دي.

① بعضې حضراتو اووئيل چه ددې نه مراد جماع ده او مطلب دادې چه كوم سړې په جماع باندې قادر وي او نان ونفقه اداكولې شي ، هغه ته پكار دي چه هغه نكاح اوكړي. (۲) خو علامه انورشاه كشميرى رحمه الله فرمائيلي دي كه «الباءة» نه په دې ځائې كښې مراد جماع واخستلې شي نو دحديث په آخرى حصه كښې بيا صحيح نه ښكارى ځكه چه په دې صورت كښې به دحديث دوه معنې وي . ① چه كوم سړې په جماع باندې قدرت لرى نو هغه دې نكاح اوكړي ② او چه كوم قدرت نه لرى نوهغه دې روژې نيسى. حالانكه كله چه جماع باندې قادر وي هغه نو هغه ته د روژې نيولو ضرورت نشته دې .علامه كشمير رحمه الله ليكى :

«وقيل : المراد به الجماع قلت : وحينئذ لا يلائمه اخر الحديث لان الحديث هذا من استطاع منكم الباءة فليتزوج ومن لم يستطع فعليه بالصوم فلو اردنا من الباءة الجماع ، كان المعنى : من لم يستطع الجماع فعليه بالصوم ومعلوم انه اذن لا حاجة له الى الصوم ، لان الحاجة اليه لانكسار الشهوة ومن لا يقدر على الجماع يستغنى عنه لا محالة» (۳)

خو علامه نووى رحمه الله دې ړومبئ معنى ته اصح وئيلي دى. نو فرمائى چه «اصحها ان المراد معناه اللغوى وهو الجماع فتقديره من استطاع منكم الجماع لقدرته على مونه _ وهى مون النكاح _ فليتزوج ، ومن لم يستطع الجماع لعجزه عن مونه فعليه بالصوم ليدفع شهوته ويقطع شر منيه كم يقطعه الوجاء» (۴)

يعنى چه كوم سړې په جماع باندې قادر وي كه هغه ته په نان نفقه قدرت حاصل وي نو هغه دې نو هغه دې نكاح اوكړي او چه چاته استطاعت حاصل نه وي نو هغه دې روژه اونيسى (۵)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه دا لفظ په عامه معنى باندې محمول كولې شي كه د «الباءة» نه قدرت على الوطى اوقدرت على النفقه دواړه مراد واخستلې شي. په دې صورت

---

۱ ) فتح البارى :۹/ ۱۳٤).
۲ ) ارشاد السارى : ۱۱/ ۳۳۷).
۳ ) فيض البارى: ٤/ ۲۷٤).
٤ ) عمدة القارى : ۲۰/ ۲۸).
۵ ) عمدة القارى :۲۰/ ٦۸ . وفتح البارى :۹/ ۱۳٤).

کښې مطلب به دا وي چه کوم سړي قادر علی الجماع او قادر علی النفقه دواړه وي نو هغه دې نکاح اوکړي او چه کوم سړي په دې دواړو باندې قادر نه وي هغه دې روژه اونیسي.

**قوله: فانه له وجاء:** د «وجاء» لغوي معنی د «رض الخصیتین» ده. (۱) یعنی خصیتین ټکول او ضائع کول او مطلب دادې داشان په روژه نیولو سره به دده شهوت مغلوب وي. او دحرام واقع کیدو اندیښنه به نه وي.

خو دا کیفیت هله پیدا کیږي چه کله یو مودې پورې مسلسل روژې اونیسي ګنې څو ورځو روژو نیولو سره شهوت کاذبه نور هم رابیداریږي ، خصوصا په ځوانانو کښې . چونکه د حرارت غزیزیه غلبه وي ځکه مسلسل روژې نیولو سره شهوت صادقه کښې فتور اوکمی واقع کیږي.

## ۳_ بَابٌ مَنْ لَمْ يَسْتَطِعْ الْبَاءَةَ فَلْيَصُمْ

[۴۷۷۹]: حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصِ بْنِ غِيَاثٍ حَدَّثَنَا أَبِي حَدَّثَنَا الأَعْمَشُ قَالَ حَدَّثَنِي عُمَارَةُ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ يَزِيدَ قَالَ دَخَلْتُ مَعَ عَلْقَمَةَ وَالأَسْوَدِ عَلَى عَبْدِ اللَّهِ فَقَالَ عَبْدُ اللَّهِ كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَبَابًا لاَ نَجِدُ شَيْئًا فَقَالَ لَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا مَعْشَرَ الشَّبَابِ مَنِ اسْتَطَاعَ الْبَاءَةَ فَلْيَتَزَوَّجْ فَإِنَّهُ أَغَضُّ لِلْبَصَرِ وَأَحْصَنُ لِلْفَرْجِ وَمَنْ لَمْ يَسْتَطِعْ فَعَلَيْهِ بِالصَّوْمِ فَإِنَّهُ لَهُ وِجَاءٌ [ر: ۱۸۰۶].

## ۴_ بَابُ كَثْرَةِ النِّسَاءِ

ددې ترجمة الباب نه امام بخاري رحمه الله دوه ملطلبونه کیدیشي . ① یو دا که د نکاح کثرت طرفته ترغیب ورکول مقصود دی ، ځکه چه په حدیث مبارك کښې راځي «فانی مکاثرکم الامم». او ظاهره ده چه دنکاح په کثرت سره به اولاد کښې به کثرت وي. ② دوئم مطلب داهم کیدیشي امام بخاري رحمه الله ددې نه یو زائد نکاح په جواز کښې ثابتول غواړي که یو سړي په عدل بین الازواج باندې قادر دې نوهغه دیو نه زیاتې نکاح کولې شي او دده دپاره کثرت نساء جائز دی.

[۴۷۸۰] حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى أَخْبَرَنَا هِشَامُ بْنُ يُوسُفَ أَنَّ ابْنَ جُرَيْجٍ أَخْبَرَهُمْ قَالَ أَخْبَرَنِي عَطَاءٌ قَالَ حَضَرْنَا مَعَ ابْنِ عَبَّاسٍ جِنَازَةَ مَيْمُونَةَ بِسَرِفَ فَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ هَذِهِ زَوْجَةُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَإِذَا رَفَعْتُمْ نَعْشَهَا فَلاَ تُزَعْزِعُوهَا وَلاَ تُزَلْزِلُوهَا وَارْفُقُوا فَإِنَّهُ كَانَ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تِسْعٌ كَانَ يَقْسِمُ لِثَمَانٍ وَلاَ يَقْسِمُ لِوَاحِدَةٍ.

عطاء بن ابی رباح فرمائي چه مونږ په مقام سرف کښې د ام المومنین حضرت میمونه رضي الله عنها په جنازه کښې حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما سره وو،نوهغوی اوفرمائیل چه دا رسول الله صلی الله علیه وسلم بی بی ده،هرکله چه تاسو ددې نعش مبارك اوچت کړئ نو دا ډیر مه خوزوئ او نرمئ

---

۱) فتح الباری : ۱۳۵/۹).

سره ددې جنازه ويسئ . ځکه چه د حضرت نبی کريم نهه (۹) بيبيانې وې چه په هغوی کښې اتو (۸) دپاره هغوی نمبر مقرر کړې وو ، حضرت ميمونه رضي الله عنها په هغه اتو (۸) کښې شامله وه. اودرسول کريم ﷺ دې سره محبت وو نوددې وجې ددې جنازه په احترام سره اوړنې. چه دکومو دپاره حضرت نبی کريم ﷺ نمبر نه وو مقرر کړی ، په هغوی کښې حضرت سوده رضي الله عنها وه چه هغې خپل نمبر حضرت عائشه رضي الله عنها ته هبه کړې وو. دترجمة الباب مناسبت دحديث سره نه ظاهر دی.

**نكته** د حضرت ميمونه رضي الله عنها په باره کښې يو عجيبه خبره ده چه هغې نکاح هم د حضرت نبی کريم سره په مقام سرف کښې شوې وه. اوبيا دې سره بنااو زفاف هم په مقام سرف کښې شوې وو. انتقال ئې هم په مقام سرف کښې اوشو، اوددوی قبرمبارک هم په مقام سرف کښې دې.(۱) دمدينې منورې په لار کښې مکې مکرمې ته نزدې دوی قبر مبارک اوس هم ښکاری.

**تنبيه : وَلَا يَقْسِمُ لِوَاحِدَةٍ:** امام مسلم رحمه الله په روايت کښې دومره زياتوالئ دې چه «قال عطاء : التی لايقسم لها صفية بنت حيی بن اخطب» (۲)

امام طحاوی رحمه الله فرمائي چه دا وهم دې ، صحيح دادی چه «واحدة» نه حضرت سوده بنت زمعه مراد ده. هغوی خپل نمبر حضرت عائشه رضي الله عنها ته ورکړې وو. ددې وجې دوی به دهغې دپاره قسم خوړو. (۳)

حافظ ابن حجر رحمه الله هم دحضرت سوده رضي الله عنها دنوم تشريح کړې ده ، دعطاء نه ابن جريج دا نقل کړی دی او دا وهم دې چه په حقيقت کښې دابن جريج نه شوې دې.(۴)

**فائده** : دوفات په وخت کښې د حضرت نبی کريم ﷺ نهه (۹) بيبيانې وې ، چه هغوی نومونه مبارک دادی:

① حضرت سوده رضي الله عنها ② حضرت عائشه رضي الله عنها ③ حضرت حفصه رضي الله عنها ④ حضرت ام سلمه رضي الله عنها ⑤ حضرت زينب بنت جحش رضي الله عنها ⑥ حضرت ام حبيبه رضي الله عنها ⑦ حضرت جويريه رضي الله عنها ⑧ حضرت صفيه رضي الله عنها ⑨ حضرت ميمونه رضي الله عنها. (۵)

[۴۷۸]: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ حَدَّثَنَا سَعِيدٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَطُوفُ عَلَى نِسَائِهِ فِي لَيْلَةٍ وَاحِدَةٍ وَلَهُ تِسْعُ نِسْوَةٍ وَقَالَ لِي خَلِيفَةُ حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ حَدَّثَنَا سَعِيدٌ عَنْ قَتَادَةَ أَنَّ أَنَسًا حَدَّثَهُمْ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [ر:۲۶۵]

---

۱ ) ارشادالساری : ۳۳۷/۱۱).

۲ ) الاصابه فی تمييز الصحابه: ۴۱۳/۴).

۳ ) فتح الباری: ۱۴۱/۹).

٤ ) فتح الباری :۱۴۱/۹)

۵ ) فتح الباری : ۱۴۱/۹ . عمدة القاری : ۶۹/۲۰ . دامذکوره ترتيب دنومونو دهغوی د نکاح په اعتبار سره دې).

داحديث ددې نه زيات په تفصيل سره په كتاب الغسل كښې تير شوې دې . په هغې كښې دى چه دحضرت نبى كريم ﷺنهه (٩) بيبيانې وې او داسې هم شوى دى حضرت نبى كريم ﷺ دې ټولو كره په شپه كښې لاړل. دځلورونه زياتو ښځو سره نكاح كول د حضرت نبى كريم ﷺ خصوصيت وو او په دې كښې داسلام ډير مصلحتونه او حكمتونه پټ وو.

**دازواجو په تعداد كښې حكمتونه او مصلحتونه:** يو حكمت داوو چه احكام اسلام چه څنګه د سړى متعلق دى ، همداشان دښځو متعلق هم دى. دسړى دپاره د كورنى ژوند داحكامو او تعليماتو وضاحت او دهغې اشاعت دپاره تعدد ازواج كيدل ضرورى وو چه ډيرې ښځې دژوند په دې ډكر كښې داحكام او تعليماتو دبيان ذريعه جوړې شى ځكه حضرت نبى كريم ﷺته ددې خصوصيت اجازت وركړې شو.

دبيبيانو په تعداد كښې يو حكمت دا هم وو چه حضرت نبى كريم په باره كښې اعداء الاسلام به پروپيګنډه كړې وه چه معاذ الله حضرت نبى كريم ﷺ كاهن اوساحردې،د مختلفو قبائلو مختلفو ښځو نكاح كولو كښې ددې پروپيګنډې توړ هم راغلو چه يو ښځه دخاوند حالت په ښه شان پيژندلې شى. هركله چه مختلفو كورنو دې ښځو د نبى كريم ﷺد ذاتى ژوند مشاهده اوكړه او حضرت نبى كريم ﷺ نې د نزدې نه اوكتلو نوهغه پروپيګنډه په شاه شوه چه كوم اعداء الاسلام كړې وه او دا خبره ښكاره مخكښې راغله چه دكهانت اوسحر په دې ځائې كښې هيڅ تصور صحيح نه دې.

دې سره تعدد ازواج كښې داسلام نشرواشاعت حكمت هم پټ دې. دمختلفو قبائلو ښځو سره حضرت نبى كريم ﷺ ودونه اوكړل ، دې سره فطرى طور ددې قبائلو رجحان اسلام او حضرت نبى كريم ﷺ طرفته شو. اودا ودونه داسلام په اشاعت كښې مددګار ثابت شو.داد رشتې خصوصيت وى چه.ددې په وجه د انسان ميلان كيږى.

[٤٧٨٢] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ الْحَكَمِ الْأَنْصَارِيُّ حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ عَنْ رَقَبَةَ عَنْ طَلْحَةَ الْيَامِيِّ عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ قَالَ قَالَ لِي ابْنُ عَبَّاسٍ هَلْ تَزَوَّجْتَ قُلْتُ لَا قَالَ فَتَزَوَّجْ فَإِنَّ خَيْرَ هَذِهِ الْأُمَّةِ أَكْثَرُهَا نِسَاءً

حضرت سعيد بن جبير رحمه الله نه روايت دې چه ما نه حضرت ابن عباس رضى الله عنهما تپوس اوكړو تاسو واده كړې دې ؟ما اووئيل نه .نوهغوى اوفرمائيل واده اوكړه ځكه چه ددې امت دټولو نه بهترين سړې هغه دې چه دهغه بيبيانې ډيرې وى.

«خَيْرَ هَذِهِ الْأُمَّةِ» نه يا خو حضرت نبى كريم ﷺ مراد دې او دحديث مطلب دادې چه ددې امت دټولونه بهترين سړې حضرت محمد ﷺ دې. او دهغوى نهه (٩) بيبيانې وې. ځكه تاسو هم واده اوكړئى او يا ددې نه حضرت محمد ﷺمراد نه دې بلكه عام ا متى مراد دې. په دې صورت كښې به دحديث مطلب داوى چه دچا ښځې زياتې وى هغه به بهتر سړې وى. (په دې شرط چه هغه عدل بين الازواج كولو والاوى) ځكه هغه به د حضرت نبى كريم ﷺ په امت دزياتى سبب جوړيږى. (١)

---

١) فتح البارى : ٩/١٤٢، وارشاد السارى: ١١/٣٤١).

## ۵_ بَاب مَنْ هَاجَرَ أَوْ عَمِلَ خَيْرًا لِتَزْوِيجِ امْرَأَةٍ فَلَهُ مَا نَوَى

[۴۷۸۳]: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ قَزَعَةَ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ ابْرَاهِيمَ بْنِ الْحَارِثِ عَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ وَقَّاصٍ عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْعَمَلُ بِالنِّيَّةِ وَاِنَّمَا لِامْرِءٍ مَا نَوَى فَمَنْ كَانَتْ هِجْرَتُهُ الَى اللَّهِ وَرَسُولِهِ فَهِجْرَتُهُ الَى اللَّهِ وَرَسُولِهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَنْ كَانَتْ هِجْرَتُهُ الَى دُنْيَا يُصِيبُهَا اَوِ امْرَاَةٍ يَنْكِحُهَا فَهِجْرَتُهُ الَى مَا هَاجَرَ الَيْهِ [ر:۱].

امام بخاری رحمه الله ددې ترجمة الباب نه دا ثابتول غواړی که سړې يو نيکی اوکړی نو په دې کښې ده لره ددې نيکۍ نيت کول هم پکار دی، لکه که څوك دنکاح کولو اراده کوی نو په دې کښې هم د سنت اتباع ، تکثير امت او دخپلې شرمګاه دحرام نه محفوظ کولو نيت کول پکار دی. پاتې شوه خبره چه نکاح از قبيل عبادت دې يا از قبيل مباحات ؟ دا خبره مخکښې تيره شوې ده.

ددې حديث مکمل تفصيل په باب بدء الوحی کښې تير شوې دې.

## ۶_ بَاب تَزْوِيجِ الْمُعْسِرِ الَّذِي مَعَهُ الْقُرْآنُ وَالْإِسْلَامُ فِيهِ سَهْلُ بْنُ سَعْدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

دامام بخاری رحمه الله مقصد دادې که څوك سړې غريب وی او ده سره څه مال نه وی ليکن هغه مسلمان دې او هغه ته قران پاك ياد دې که پوره قران پاك هغه ته ياد وی اوکه څه حصه ورته يادہ وی ، نوهغه ته نکاح کول پکار دی. دمال څه حقيقت دې؟ په ايمان او قران پاك کښې ډير نعمتونه دی ، ددې نعمتونو په موجودګۍ کښې دا حقير نه دی ګنړل پکار او نکاح کول پکار دی.

**قوله:** فيه سهل عن النبی ﷺ: يعنی په دې باب کښې دحضرت سهل بن سعد انصارساعدی رضی الله عنه نه حديث نقل شوې دې چه په کتاب فضائل القرآن کښې دې، «باب القراءة عن ظهر القلب» لاندې تير شوې دې. په دې کښې دی چه «ما ذا معك من القران قال: معی سورة كذا وكذا: قال: اتقرؤهن عن ظهر قلبك، قال: نعم قال: فقد ملكتكها بما معك من القران» (۱)

[۴۷۸۴]: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى حَدَّثَنَا يَحْيَى حَدَّثَنَا اسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي قَيْسٌ عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ كُنَّا نَغْزُو مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْسَ لَنَا نِسَاءٌ فَقُلْنَا يَا رَسُولَ اللَّهِ الَا نَسْتَخْصِي فَنَهَانَا عَنْ ذَلِكَ [ر:۴۳۳۹].

---

۱) عمدة القاری: ۲۰/ ۷۱).

په روایت کښې دی چه «لیس لنا نساء»سوال دادې چه ددې نه د «تزویج معسر» مسئله څنګه ثابته شوه ،ددې جواب دادې چه مخکښې بل روایت راځی په هغې کښې د«لیس لنا شیٔ»الفاظ دی، د«لیس لنا نساء»دالفاظونه هم ترجمه ثابتیدې شی ، داسې به ونیلې شی چه د حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ مقصد دا وو چه مونږ چونکه دنان نفقه بندوبست نه وو نو ځکه بیبیانې هم نه وې ، دقران پاك او د اسلام د دولت نه خودا خلق بهر حال مالامال وو ،د خصی کیدو اجازت حضرت نبی کریم ﷺ نه دې ورکړې حالانکه هغوی ته د ښځو ضرورت وو،ځکه د دلالة النص په طور ددې نه معلومیږی چه حضرت نبی کریم ﷺ دوی ته دقران په بدله کښې دنکاح کولو اجازت ورکړې وو ، چنانچه علامه قسطلانی لیکی :

«ومطابقة الحدیث للترجمة کما قال ابن المنیر انه علیه الصلاة والسلام نهاهم عن الاستخصاء ، ووکلهم الی النکاح ،فلوکان المعسر لاینکح وهو ممنوع من الاستخصاء لکلف شططا ، وکان کل منهم لا بدأن یحفظ شیئا من القران فتعین التزویج بما معهم من القران فحکم الترجمة من حدیث سهل بالتنصیص ومن حدیث ابن مسعود بالاستدلال» (۱)

## ۷_ بَاب قَوْلِ الرَّجُلِ لِأَخِيهِ انْظُرْ أَيَّ زَوْجَتَيَّ شِئْتَ حَتَّى أَنْزِلَ لَكَ عَنْهَا رَوَاهُ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَوْفٍ [ر: ۱۹۴۳].

حضرت شیخ الحدیث مولانا زکریا رحمه الله فرمائی چه امام بخاری رحمه الله دا ونیل غواړی که دیو سړی دوه ښځې وی او اوهغه دخپل یو دوست دپاره قربانی کول غواړی او وائی چه ته څما دواړه ښځې اوګوره اوکومه یوه چه دې خوښه وی نو څه به هغې ته طلاق ورکړم اوته هغې سره نکاح اوکړه. امام ونیل غواړی چه دا د «خطبة علی الخطبة» په باب کښې داخل نه دی ځکه چه په دې ځائې کښې دخطبې نه زیاته نکاح شوې ده. په داسې صورت کښې ددې سړی دنکاح په خاطر دښځو کتل درست دی. (۲)

دې سره سره امام بخاری رحمه الله دښځې به باب کښې داشان دایثار دجواز طرفته اشاره هم کول غواړی ، که ښځې دوه وی اوکه یو،که دوه وی نو خبره بالکل ښکاره ده اوکه یو وی نو بیاهم جائز دی لکه دسړی عمر دشپیتو کالونه زیات دې اودده دښځې عمر شل پنځویشت کاله دې ،هغه ګنړی چه څه خوهسې هم نزدې وفات کیدو والایم نو په دې وجه که دې چاته داشان پیشکش اوکړی نو دا جائز دی.

[۴۷۸۵]: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ عَنْ سُفْيَانَ عَنْ حُمَيْدٍ الطَّوِيلِ قَالَ سَمِعْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ قَالَ قَدِمَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَوْفٍ فَآخَى النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَهُ وَبَيْنَ سَعْدِ

۱) ارشادالساری: ۱۱/ ۳۴۴، المتواری علی تراجم البخاری : ۲۸۰).
۲) الابواب والتراجم لصحیح البخاری: ۲/ ۶۴).

بْنِ الرَّبِيعِ الْأَنْصَارِيِّ وَعِنْدَ الْأَنْصَارِيِّ امْرَأَتَانِ فَعَرَضَ عَلَيْهِ أَنْ يُنَاصِفَهُ أَهْلَهُ وَمَالَهُ فَقَالَ بَارَكَ اللَّهُ لَكَ فِي أَهْلِكَ وَمَالِكَ دُلُّونِي عَلَى السُّوقِ فَأَتَى السُّوقَ فَرَبِحَ شَيْئًا مِنْ أَقِطٍ وَشَيْئًا مِنْ سَمْنٍ فَرَآهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدَ أَيَّامٍ وَعَلَيْهِ وَضَرٌ مِنْ صُفْرَةٍ فَقَالَ مَهْيَمْ يَا عَبْدَ الرَّحْمَنِ فَقَالَ تَزَوَّجْتُ أَنْصَارِيَّةً قَالَ فَمَا سُقْتَ إِلَيْهَا قَالَ وَزْنَ نَوَاةٍ مِنْ ذَهَبٍ قَالَ أَوْلِمْ وَلَوْ بِشَاةٍ [ر: ۱۹۴۴].

حضرت انس بن مالك رضی الله عنه نه روایت دې چه حضرت عبدالرحمان بن عوف رضی الله عنه چه کله مدينې منورې ته هجرت اوکړو او راغلل نو حضرت نبی کریم ﷺ دده او د حضرت سعدبن الربیع انصاری په مینځ کښې زوروليٰ قائمه کړه ،د حضرت سعد رضی الله عنه دوه ښځې وې ، حضرت سعد رضی الله عنه حضرت عبدالرحمان بن عوف رضی الله عنه ته اووئیل چه څما په مال او ښځو کښې نیم‌نیم واخله ،هغوی جواب ورکړو الله ﷻ دې ستا په مال او په کوروالوکښې برکت واچوی،ماته بازار اوښایه . نوبازار ته لاړو او په پنیر او غوړو کښې فائده حاصله کړه ، څو ورځې پس حضرت نبی کریم ﷺ دده په کپړو باندې زیړوالئ اوکتلو نووې فرمائیل ائې عبدالرحمان دا څه خبره ده ؟هغوی اوفرمائیل چه ما یو انصاری ښځې سره نکاح کړې ده . حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل په څومره مهر سره ؟عرض ئې اوکړو چه تقریبا په څلور توله سرو زرو، حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه ولیمه هم اوکړه اګر که یو چیلئ وی.

«أَقِطٍ» پنير ته وائي. «وَضَرٌ» نه یو خاص قسم خوشبومراد ده.چه دزیړ رنګ به وه او عام طور به دواده په موقع باندې استعمالیده. «مَهْيَمْ»(دمیم په فتحه ، دهاء په سکون اود یا په فتحه سره) «ای ماحالك وماشانك ؟ فما سقت»: بروزن ، قلت ،ساق ، (ن) سوقا: راښکل ، راښکل او اوړل، «فما سقت الیها» یعنی تا هغه ښځې ته څه ورکړل. «وزن نواة من ذهب : وهو اسم لخمسة دراهم ای مقدار خمسة دراهم وزنا من الذهب». (۱)

داحدیث به کتاب البیوع کښې تیر شوې دې اوپه هغه ځائې کښې په دې باندې بحث تیر شوې دې.

## ۸=بَاب مَا يُكْرَهُ مِنْ التَّبَتُّلِ وَالْخِصَاءِ

امام بخاری رحمه الله په دې ځائې کښې دتبتل مکروه صورت بیانول غواړی ، دتبتل معنی راځی د ښځو نه انقطاع اوجدائی اختیارول اودخصاء معنی راځی د خصیتین اوښکل ، حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی‌چه امام بخاری رحمه الله په دې سره ددې تبتل دمکروه کیدو طرفته اشاره کړې ده چه دا «تحریم ما احل الله» طرفته ته مفضی وی یعنی چه کوم حلال دحرامیدو ذریعه جوړ شی ګنی عام تبتل او عبادت دپاره انقطاع عن الخلق اختیاورولوکښې هیڅ باك نشته یعنی تبتل فی حدذاته مکرونه نه دې. (۲)

---

۱) عمدة القاری : ۲۰/۷۲).
۲) فتح الباری :۹/۱۴۶).

خو په دې باندې اشكال كيدېشي چه تبتل نه بعد مخكښې د «خصاء» هم ذكر دې. ددې مطلب به بيا دا وى چه «خصاء» هم مكروه ده چه «تحريم ما احل الله» طرفته مفضى وى گنى فى حد ذاته هغه مكروه نه دې. ددې جواب به وركولې شى چه امام بخارى رحمه الله لفظ دتبتل نه پس لفظ د «خصاء» اضافه په حقيقت كښې دتبتل مكروه صورت متعين كولو دپاره فرمائيلى دى چه تبتل به مكروه وى ، كله چه په دې كښې «خصاء» والى كيفيت اختيار كړې شى نوكه ددې د اختيارولونوبت رانشى نو بيا تبتل كښې هيڅ مضائقه نشته دې.

[۴۷۸۶]: حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ أَخْبَرَنَا ابْنُ شِهَابٍ سَمِعَ سَعِيدَ بْنَ الْمُسَيَّبِ يَقُولُ سَمِعْتُ سَعْدَ بْنَ أَبِي وَقَّاصٍ يَقُولُ رَدَّ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى عُثْمَانَ بْنِ مَظْعُونٍ التَّبَتُّلَ وَلَوْ أَذِنَ لَهُ لَاخْتَصَيْنَا

حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي سَعِيدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ أَنَّهُ سَمِعَ سَعْدَ بْنَ أَبِي وَقَّاصٍ يَقُولُ لَقَدْ رَدَّ ذَلِكَ يَعْنِي النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى عُثْمَانَ بْنِ مَظْعُونٍ وَلَوْ أَجَازَ لَهُ التَّبَتُّلَ لَاخْتَصَيْنَا

**قوله:** وَلَوْ أَذِنَ لَهُ لَاخْتَصَيْنَا ....: په دې ځائې كښې اشكال كيږى چه دسياق دكلام تقاضا خوداوه چه ونيلې شوې وې چه «ولواذن له لتبتلنا "اختصينا"» ولې اوونيلې شو. جواب دادې چه دتبتل اصل مقصد حاصلولو دپاره محض انقطاع عن النساء كافى نه ده ، ښځونه جدائى او انقطاع كه اختيار كړې شى خوكله چه محل دشهوت موجود وى نو ظاهره ده چه په شهود كښې بهجوش پيدا او اشتعال پيدا كيږى نوداسې تبتل اختيارولو نه آخر څه فائده به وى ، ددې وجې د «لاختصينا» لفظ استعمال كړې شو. يعنى دتبتل مقصد حاصولو دپاره مونږ خپل ځان لره خصى كوو چه محل دشهوت د بيخه ختم شى خوحضرت نبى كريم صلى الله عليه وسلم ددې اجازت نه دې وركړې.(۱)

[۴۷۸۷] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا جَرِيرٌ عَنْ إِسْمَاعِيلَ عَنْ قَيْسٍ قَالَ قَالَ عَبْدُ اللَّهِ كُنَّا نَغْزُو مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَيْسَ لَنَا شَيْءٌ فَقُلْنَا أَلَا نَسْتَخْصِي فَنَهَانَا عَنْ ذَلِكَ ثُمَّ رَخَّصَ لَنَا أَنْ نَنْكِحَ الْمَرْأَةَ بِالثَّوْبِ ثُمَّ قَرَأَ عَلَيْنَا يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تُحَرِّمُوا طَيِّبَاتِ مَا أَحَلَّ اللَّهُ لَكُمْ وَلَا تَعْتَدُوا إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ الْمُعْتَدِينَ [ ر: ۴۳۳۹]

---

۱ ) قال الطيبى قوله : ولو اذن له لاختصينا كان الظاهر ان يقول ولو اذن له لتبتلنا لكنه عدل عن هذا الظاهر الى قوله لاختصينا لارادة المبالغة الى لبالغنا فى التبتل حتى يفضى بناالامر الاختصاء ولم يردبه حقيقة الاختصاء لانه حرام وقيل بل هو على ظاهره وكان ذالك قبل النهى عن الاختصاء (فتح البارى : ۱۴۷/۹؛ شرح الطيبى:۸۱۲/۶).

[۴۷۸۸] وَقَالَ اَصْبَغُ اَخْبَرَنِي ابْنُ وَهْبٍ عَنْ يُونُسَ بْنِ يَزِيدَ عَنْ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ اَبِي سَلَمَةَ عَنْ اَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قُلْتُ يَارَسُولَ اللّٰهِ اِنِّي رَجُلٌ شَابٌّ وَاَنَا اَخَافُ عَلَى نَفْسِي الْعَنَتَ وَلَا اَجِدُ مَا اَتَزَوَّجُ بِهِ النِّسَاءَ فَسَكَتَ عَنِّي ثُمَّ قُلْتُ مِثْلَ ذٰلِكَ فَسَكَتَ عَنِّي ثُمَّ قُلْتُ مِثْلَ ذٰلِكَ فَسَكَتَ عَنِّي ثُمَّ قُلْتُ مِثْلَ ذٰلِكَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا اَبَا هُرَيْرَةَ جَفَّ الْقَلَمُ بِمَا اَنْتَ لَاقٍ فَاخْتَصِ عَلَى ذٰلِكَ اَوْذَرْ (۱)

حضرت ابوهريره رضي الله عنه فرمائي چه ما حضرت نبى كريم ﷺ ته اووئيل خه خوان يم اوخه ويريږم چه په زنا كښې به اخته شم او مال سره مال هم نشته چه ددې په ذريعه واده اوكړې شم (نوددې وجې تاسو ماته دخپل ځان دخصى كيدو اجازت راكړئى) حضرت نبى كريم ﷺ په دې آوريدو سره خاموش شول ، حضرت ابوهريره رضي الله عنه درې ځل بيا دا سوال اوكړو نو حضرت نبى كريم ﷺ ورته اوفرمائيل ((يا اباهريرة جف القلم بما انت لاق فاختص على ذالك اوذر)) يعنى ائې ابوهريره رضي الله عنه ! چه څه ستا په تقدير كښې وو او ستامناسب وو قلم دهغې په ليكلو اوچ شو نوپه داسې صورت كښې اوس ستا مرضى ده كه خصې كيږې او كه نه.

**قوله:** أَخَافُ عَلَى نَفْسِي الْعَنَتَ: ((الْعَنَتَ)) د تهمت او شدت او زنا په معنى كښې رازى. (۲) ددې نه په دې ځائې كښې مراد زنا ده.

**قوله:** وَلَا أَجِدُ مَا أَتَزَوَّجُ بِهِ النِّسَاءَ: دحرمله په روايت كښې دى چه دې نه پس دا اضافه ده ((فاذن لى ان اختصى)). (۳) يعنى تاسوماته دخصى كيدو اجازت راكړئى ، مخكښې كلام هم په دې جمله باندې مرتب دې چه په دې ځائې كښې دبخارى په روايت كښې نشته دې.

**قوله:** جَفَّ الْقَلَمُ بِمَا انت لاق: يعنى ستاسو دپاره چه كوم مناسب وو چه څه ستا په تقدير كښې وو هغه ئې اوليكل او اوچ شو ، قاعده ده چه كله قلم كښې سياهى وى نو په تحرير كښې تغير او تبديلى كيديشى خو د سياهئ اوچيدو نه پس په دې كښې تبديلى نه شى كيدې. منشا دا وه چه تقدير په ازل كښې ليكلې شوې دې او په دې كښې اوس دتغيرامكان نشته دې، چه څه په تقدير كښې اوليكلې شو هغه به ضرور كيږى.

**قوله:** فاختص على ذالك اوذر: اختص دا خبره دباب افتعال نه اختصاء نه دامر صيغه ده: خصى كيدل ، دمصابيح په روايت كښې د ((فاختص)) لفظ دې. (۴)
او حافظ ابن حجر رحمه الله دمصابيح په حواله د ((فاقتصر)) لفظ نقل كړې دې. (۵)

---

۱ ( لم يخرجه احد عن من اصحاب الصحاح الستة سوى البخارى-قال العينى الحديث من افراده (عمدة القارى ۷٤/۲۰).
۲ ) فتح البارى : ۱٤۸/۹).
۳ ) ارشادالسارى :۳٤٤/۱۱ و فتح البارى :۱٤۸/۹).
٤ ) اوګورئ التعليق الصحيح على مشكاة المصابيح ،باب الايمان باالقدير: ۸۳/۱).
٥ ) فتح البارى : ۱٤۸/۹).

د«فاختص» او «فاختصر» يو معنى ده يعنى يا خو دې تقدير باندې اكتفاء او اعتماد اوكړه اوخپل ځان لره خصى مه جوړوه اويا تقدير پريږده او خپل ځان لره خصى جوړ كړه.«ذر»دا دامرصيغه ده، په معنى دپريښودو، ترك كولو. «فاختص» كښې امر دترغيب دپاره نه دې بلكه تهديد دپاره دې ، لكه څنګه چه په قران پاك كښې آيت ﴿ فَمَنْ شَآءَ فَلْيُؤْمِنْ وَّمَنْ شَآءَ فَلْيَكْفُرْ﴾ كښې امر دلته دې دپاره دې. (۱) اوددې نه خصى كيدل جوازنه مستنبط كيږى بلكه ددې د نهى مفهوم بالكل خارجيږى چه تقدير نشى بدليدې نوپه خصى كيدو كښې آخر بيا څه فائده ده؟مخكښې د عثمان بن مظعون په روايت كښې تير شوى دى چه حضرت نبى كريم ﷺ هغه دخصى كيدو نه منع كړې وو. «على ذالك»جار مجرور متعلق محذوف دې. «اى اختص حال استعلائك على العلم بأن كل شئ بقضاء الله وقدره»

**يو اشكال اودهغې جوابات:** په دې باندې اشكال كيديشى چه حضرت نبى كريم ﷺ حضرت ابوهريره رضي الله عنه ته دروژې نيولوحكم ولې اونكړو لكه څنګه چه مخكښې حديث تير شوې دې،

**قوله:** ومن لم يستطع بالصوم: ① ددې يو جواب دا وركړې شو چه حضرت ابوهرير رضي الله عنه به اكثر روژې نيولې او كثير الصيام وو ليكن ددې باوجود هغوى رضي الله عنه ته دخپل شهوانى قوت په وجه په فتنه كښې د اخته كيدو انديښنه وه. (۲)

② دويم جواب داوركړې شو چه حضرت ابوهريره رضي الله عنه داسوال ديو غزوه په موقع باندې كړې وو او دجنګ او غزوې په موقع باندې نفلى روژې نيول دضعف وكمزورنى باعث جوړيدې شى ، په دې موقع باندې افطار ته ترجيح وركولې شى ، ځكه د روژې حكم ورنكړې شو. حضرت حافظ ابن حجر رحمه الله ليكلى :

«قلت : ويحتمل أن يكون أبوهريرة سمع يامعشر الشباب من استطاع منكم الباءة فليتزوج " الحديث ، لكنه انما سأل عن ذالك فى حال الغزو كما وقع لابن مسعود، وكانوا فى حال الغزو يؤثرون الفطر على الصيام للتقوى على القتال، فأداه اجتهاده الى حسم مادة الشهوة بالاختصاء كما ظهر لعثمان فمنعه ﷺ من ذالك»(۳)

## ۹ـ بَابُ نِكَاحِ الْأَبْكَارِ

وَقَالَ ابْنُ أَبِي مُلَيْكَةَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ لِعَائِشَةَ لَمْ يَنْكِحِ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِكْرًا غَيْرَكِ [ر:۴۴۷۶]

دې نه پس د «تزويج الثيبات» ترجمه راځى. مقصد دادې چه پيغلې جينۍ سره هم نكاح كول جائز دى او ثيبه سره هم جائز دى.حضرت امام بخارى رحمه الله «نكاح الابكار» په«نكاح الثيبات»

---

۱) ارشادالسارى : ۳۴۸/۱۱_ وفتح البارى : ۱٤۸/۹).

۲) فتح البارى: ۱٤۹/۹).

۳) فتح البارى :۱٤۹/۹).

باندې مقدم کړو نو لکه چه په دې کښې دابکار سره دنکاح کولو ترغیب او فضیلت طرفته امام اشاره اوفرمائیله.

حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما مقام مدح کښې حضرت عائشه رضي الله عنها ته اوفرمائیل «لم ینکح النبی ﷺ بکرا غیرك» یعنی ستاسو نه علاوه حضرت نبی کریم ﷺ هیڅ باکرې سره واده نه وو کړې. دسورت نور په تفسیر کښې دا تعلیق امام بخاری رحمه الله موصولا نقل کړی دی. (۱)

[۴۷۸۹]: حَدَّثَنَا اسْمَاعِيلُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِي اخِي عَنْ سُلَيْمَانَ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ ابِيهِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ ارَايْتَ لَوْ نَزَلْتَ وَادِيًا وَفِيهِ شَجَرَةٌ قَدْ اكِلَ مِنْهَا وَوَجَدْتَ شَجَرًا لَمْ يُؤْكَلْ مِنْهَا فِي ايِّهَا كُنْتَ تُرْتِعُ بَعِيرَكَ قَالَ فِي الَّذِي لَمْ يُرْتَعْ مِنْهَا تَعْنِي انَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يَتَزَوَّجْ بِكْرًا غَيْرَهَا

حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائی چه ما اووئیل یارسول الله ﷺ! تاسو لږ اووائې چه تاسو په یو وادئ کښې راکوز شئ اوپه هغه ځائې کښې څه داسې ونې وی چه هغې نه خوراك کړې شوې وی ، او څه ونې داسې ملاؤ شوې وی چه دهغې نه خوراك نه وی کړې شوې ، نو تاسو به خپل اوښ په دې ونو کښې کوم ځائې کښې څروئې ؟نو حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه دهغه ونو نه چه دهغې نه خوراك نه دې شوې. دحضرت عائشه رضي الله عنها مطلب ددې سوال نه دا وو چه حضرت نبی کریم ﷺ ددوی نه علاوه هیڅ باکره سره واده نه وو کړې.

حضرت عائشه رضي الله عنها دکنایه په انداز کښې ددې خبرې ذکر اوکړو چه تاسو ماسره کوم واده اوکړو دنورو ازاوجو په واده کښې ددې نظیر نشی ملاویدې، دا شدت محبت په وجه حضرت عائشه رضي الله عنها ذکر کړې وو ، حافظ لیکی چه:«ویحتمل أن تکون عائشه کنت بذالك عن المحبة بل عن أدق من ذالك» (۲)

[۴۷۹۰]: حَدَّثَنَا عُبَيْدُ بْنُ اسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا ابُو اسَامَةَ عَنْ هِشَامٍ عَنْ ابِيهِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ارِيتُكِ فِي الْمَنَامِ مَرَّتَيْنِ اذَا رَجُلٌ يَحْمِلُكِ فِي سَرَقَةِ حَرِيرٍ فَيَقُولُ هٰذِهِ امْرَاتُكَ فَاكْشِفُهَا فَاذَا هِيَ انْتِ فَاقُولُ انْ يَكُنْ هٰذَا مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ يُمْضِهِ [ر: ۳۶۸۲]

حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائی چه حضرت نبی کریم ﷺ ما ته اوفرمائیل چه ما ته دوه ځل په خوب کښې کتلې وې چه یوسړی ستا صورت په ریښمی ټکړه کښې راخستې دې او وائې چه دا ستا زوجه ده. ما چه دا پرانیسته نوهغه ستاصورت وو. بیا ما اووئیل که دا خبره دالله ﷻ دجانب نه وی نو دا به جاری کړی.

**قوله:** إِذَا رَجُلٌ يَحْمِلُكِ: رجل نه مراد فرښته ده، دترمذی په روایت کښې دی چه دا فرښته

---

۱) عمده القاری: ۷۴/۲۰).
۲) فتح الباری : ۱۵۰/۹) .

حضرت جبرئيل علیه السلام وو. (١)

**قوله:** سَرَقَةٍ حَرِيرٍ: دريښمو كپړا ، د«سرقة» معنى ټكړه ده ، «يمضه» مضارع مجزوم دې ، خكه چه جواب واقع كيږى ، «امضى، امضاء» كول .

په دې خاني كښې اشكال دادې چه دنبيانو خوب خو وحى وى ، بيا دوى ته په دې كښې تردد ولې اوشو چه دوى د «أن يكن» شكى لفظ استعمال كړو؟

① ددې يو جواب داوركړې شو چه دا خوب دوى دنبوت نه مخكښې كتلې وو اودنبوت نه مخكښې خوب وحى نه وى.

② دويم جواب دادې چه دا جمله دوى دشك په طور او ترددپه طور نه وه وئيلې بلكه د يقين په طور وئيلې وه كه دا دالله ﷻ طرفنه دى ، او يقينا دالله ﷻ دطرفنه دې. نو هغه پاك ذات به دا پوره كوى، (٢) والله اعلم

## ١٠_ بَاب تَزْوِيجِ الثَّيِّبَاتِ

وَقَالَتْ أُمُّ حَبِيبَةَ قَالَ لِي النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَعْرِضْنَ عَلَيَّ بَنَاتِكُنَّ وَلَا أَخَوَاتِكُنَّ [ر: ٤٨١٣].

دابوذر په نسخه كښې «باب تزويج الثيبات» دى ، (٣)

حضرت امام بخارى رحمه الله دترجمة الباب نه د كونډو ښځو سره دجواز نكاح ثابتول غواړى . دې نه پس متصل حضرت امام بخارى رحمه الله دحضرت ام حبيبه رضي الله عنها قول نقل كړېدې چه حضرت نبى كريم ﷺ هغې ته اوفرمائيل «لاتعرضن على بناتكن ولا اخواتكن» يعنى خپلې لونړه او خپلې خوئندې ماته مه وړاندې كوه ځكه چه هغوى شرعى طور په ما باندې حرامې دى ، دې قول سره ضمنى طور معلوميږى چه حضور نبى كريم ﷺ لونړووالا ښځې سره نكاح كړې وه او هم په دې مناسبت سره ددې قول لاندې دا باب ذكر فرمائيلې شوې دې.

[٤٧٩٢/٤٧٩١] : حَدَّثَنَا أَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ حَدَّثَنَا سَيَّارٌ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ قَفَلْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ غَزْوَةٍ فَتَعَجَّلْتُ عَلَى بَعِيرٍ لِي قَطُوفٍ فَلَحِقَنِي رَاكِبٌ مِنْ خَلْفِي فَنَخَسَ بَعِيرِي بِعَنَزَةٍ كَانَتْ مَعَهُ فَانْطَلَقَ بَعِيرِي كَأَجْوَدِ مَا أَنْتَ رَاءٍ مِنَ الْإِبِلِ فَإِذَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ مَا يُعْجِلُكَ قُلْتُ كُنْتُ حَدِيثَ عَهْدٍ بِعُرُسٍ قَالَ أَبِكْرًا أَمْ ثَيِّبًا قُلْتُ ثَيِّبًا قَالَ فَهَلَّا جَارِيَةً تُلَاعِبُهَا وَتُلَاعِبُكَ قَالَ فَلَمَّا ذَهَبْنَا لِنَدْخُلَ قَالَ أَمْهِلُوا حَتَّى تَدْخُلُوا لَيْلًا أَيْ عِشَاءً لِكَيْ تَمْتَشِطَ الشَّعِثَةُ وَتَسْتَحِدَّ الْمُغِيبَةُ

---

١) عمده القارى: ٧٥/٢٠، وسنن ترمذى: ٢٢٦/٢ ، ابواب المناقب من فضل عائشه رضى الله عنها).

٢) مذكوره دواړوجوابونودپاره اوګورئ عمده القارى: ٧٥/٢٠).

٣) ارشاد السارى: ٣٤٩/١١، په دې خاني كښې دتقرير نسخه هم دابوذر دنسخې مطابق ده).

په دې ځائې کښې دامام بخاري رحمه الله شيخ ابو نعمان دې چه د هغوی نوم محمد بن الفضل سدوسی دې. حضرت جابر رضي الله عنه فرمائی چه یو غزوه نه مونږ واپس راتلو،حضرت نبی کریم ﷺ مونږ سره وو،ما کوشش کولو چه څما سست اوښ تيز لاړشی، نوپه دې څما نه يوس روستو رأروان وو هغوی ماسره يو ځائې شو او څما اوښ ئې دروستو نه په نيزه باندې اووهلو نو څما اوښ داسې تيز شو لکه څنګه چه ښه نه ښه اوښ وی ، ما چه کله روستو اوکتلنو هغه حضور نبی کریم ﷺ وو ، وې فرمائیل چه اې جابر رضي الله عنه ! ته ولې دومره تيزی کوې ؟ ما اووئيل چه څما نوې واده شوې دې . حضور نبی کریم ﷺ اوفرمائيل چه پيغله يا کونډې سره.مااووئيل کونډه ده. حضور نبی کریم ﷺ اوفرمائيل چه يو پيغلې کم عمروالا جينۍ سره ولې واده نه کوې چه هغه به تاسره او ته به هغې سره لوبې کوې. حضرت جابر رضي الله عنه فرمائی چه کله مونږ مدينې ته نزدې شو نو حضور نبی کریم ﷺ اوفرمائيل چه اودريږه او دشپې يعنی دماسختن په وخت کښې مدينې منورې ته داخل شه چه خرابو ويښتو والا ښځې خپلو ويښتو کښې ږمنځې اووهي اوهغه ښځې خپل (زيرناف) ويښته صفا کړی ، دکومو خاوند چه دهغې نه غائب وو.

**قوله: أَمْهِلُوا حَتَّى تَدْخُلُوا لَيْلًا أَيْ عِشَاءً:** يعنی في الحال اودريږه او دشپې په وخت کښې کورته داخل شه، د دې حديث مبارك په ظاهر مخکښې راتلونکی حديث سره تعارض دې.چه په هغې کښې دی «لايطرق احدكم اهله ليلا» يعنی کور والوته دشپې راتلل نه دې پکار. د دواړو په مينځ کښې دتطبيق صورت دادې چه ممانعت په هغه وخت کښې دې چه کله سړې ناڅاپه راشی اوکور والو ته دده دراتلو خبر نه وی دمخکښې نه. خوکه کوروالو ته د سړی دراتګ خبر مخکښې نه وی نوبيا دشپې په راتګ کښې هيڅ باك نشته دې.(١)

**قوله: لِكَيْ تَمْتَشِطَ الشَّعِثَةُ وَتَسْتَحِدَّ الْمُغِيبَةُ:** چه ګنده ښځې خپلو ويښتوکښې ګومنځ اووهی «شعثة» داسې ښځې چه دهغوی ويښته ږمنځ شوې نه وی يعنی خراب وی او پريشانې وی،«تستحد أی تستعمل الحديد وهی الموسى» يعنی چه هغوی خپل زير ناف ويښته په استرې بليډ وغيره سره صفا کړې شی ، د «تستحد» معنی ده اوسپنه استعمالول،مراد ترې د ويښتو صفائی دپاره استعمالولو والا داوسپنې آله ده لکه څنګه چه نن سبا بليډ وغيره ددې دپاره استعماليږی . «المغيبة» هغه ښځه چه دهغې خاوند غائب وی.

دا حديث په کتاب البيوع اوکتاب الجهاد کښې تير شوې دې.

[٤٧٩٢] : حَدَّثَنَا آدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا مُحَارِبٌ قَالَ سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا يَقُولُ تَزَوَّجْتُ فَقَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا تَزَوَّجْتَ فَقُلْتُ تَزَوَّجْتُ ثَيِّبًا فَقَالَ مَا لَكَ وَلِلْعَذَارَى وَلِعَابِهَا فَذَكَرْتُ ذَلِكَ لِعَمْرِو بْنِ دِينَارٍ فَقَالَ عَمْرٌو سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ يَقُولُ قَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَلَّا جَارِيَةً تُلَاعِبُهَا وَتُلَاعِبُكَ [ر: ٤٣٢]

١ ) فتح الباري: ٩/١٥٢).

**قوله: مَالَكَ وَلِلْعَذَارَيْ وَلِعَابِهَا:** یعنی تاسوته د پیغلو او ددوی د لوبو رغبت نشته دې ، «لعاب» د لام په کسره سره دباب مفاعله نه مصدر دې «لاعب ...ملاعبه ولعابا» دمستملی په روایت کښې «لعاب» دلام په ضمه سره دې . چه ددې نه ریق الفم مراد دې ،په دې صورت کښې دې خبرې طرفته به اشاره وی که تاسو باکره سره واده کوئی نو ددوی د شونډو او ژبو نه به مو انتفاع حاصلوله ، علامه قسطلانی لیکی :

«وفی روایة المستملی : ولعابها ، بضم اللام والمراد به الریق وفیه اشارة الی مص لسانها ورشف شفتها وذالك یقع عند الملاعبة والتقبیل» (۱)

**قوله: فَذَكَرْتُ ذَلِكَ لِعَمْرٍو:** دادشعبه قول دې هغه فرمائی چه ما دا قول «مالك وللعذاری....» عمرو بن دینار په مخکښې ذکر کړو نو عمرو بن دینار اووئیل چه ما دحضرت جابر رضی الله عنه نه دحضرت نبی کریم صلی الله علیه وسلم کوم الفاظ آوریدلی دی هغه الفاظ دادی «هلاجاریة تلاعبها وتلاعبك».

دشعبه شیخ مذکوره روایت کښې محارب بن دثارسدوسی دې ، د محارب الفاظ پورته حدیث کښې ذکر شوی دی «مالك وللعذاری ولعابها» شعبه دا الفاظ دعمرو بن دینار په مخکښې ذکر کړل نوهغوی «هلاجاریة تلاعبها وتلاعبك» والا الفاظ بیان کړل اووې وئیل چه ما دا الفاظ آوریدلی دی.

فائده په دې حدیث کښې چه دکومې کونډې سره دحضرت جابر رضی الله عنه دنکاح ذکر دې،ابن سعد په طبقات کښې دهغې نوم سهله بنت مسعود بن اوس بن مالك لیکلې دې (۲)

## ۱۱_ بَاب تَزْوِيجِ الصِّغَارِ مِنْ الْكِبَارِ

[۴۷۹۳] : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ يَزِيدَ عَنْ عِرَاكٍ عَنْ عُرْوَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَطَبَ عَائِشَةَ إِلَى أَبِي بَكْرٍ فَقَالَ لَهُ أَبُو بَكْرٍ إِنَّمَا أَنَا أَخُوكَ فَقَالَ أَنْتَ أَخِي فِي دِينِ اللَّهِ وَكِتَابِهِ وَهِيَ لِي حَلَالٌ

دامام بخاری مقصد دادې چه دزیات عمر والا سړې د کم عمر والا جینۍ سره واده کولې شی. ابن بطال فرمائی چه دا مسئله اجماعی ده . (۳)

حضور نبی کریم صلی الله علیه وسلم حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه له دحضرت عائشه رضی الله عنها سلسله کښې دنکاح پیغام اولیږلو نو حضرت ابوبکر صدیق اوفرمائیل خه ستارورور یم نو حضور نبی کریم صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه ته خما دینی رور ئې حضرت عائشه رضی الله عنها خما دپاره حلاله ده.

---

۱) ارشادالساری: ۱۱/۳۵۱).
۲) ارشادالساری : ۱۱/۳۵۱).
۳) فتح الباری : ۹/۱۵٤).

يعنى اخوت الدينيه مانع عن النكاح نه ده. ځکه چه ټول مسلمانان په خپلوکښې رونړه رونړه دى ﴿إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ إِخْوَةٌ﴾

داحديث په ظاهره مرسل دې ،ځکه چه عروه تابعى دې او هغوى دصحابى نوم نه دې ذکر کړې ، ممکن دى چه هغوى دا حديث دخپلې ترور حضرت عائشه رضي الله عنها نه يا د خپلې مور حضرت اسماء بنت ابى بکر نه آوريدلې وى ځکه چه عام طور هغه داقسمه روايات دحضرت عائشه رضي الله عنها او حضرت اسماء نه بيانوى ،علامه قسطلانى ليکى:

((وهذالحديث صورته صورة المرسل ويحتمل انه حمله عن خالته عائشة اوعن امه اسماء بنت ابى بكر وقال ابو عمربن عبدالبر: اذاعلم لقاء الراوى لمن اخبرعنه، ولم يكن مدلسا، حمل ذالك على سماعه اخبرعنه ولولم يات بصيغه تدل على ذالك))(١)

## ١٢=بَاب إِلَى مَنْ يَنْكِحُ وَأَيُّ النِّسَاءِ خَيْرٌ وَمَا يُسْتَحَبُّ أَنْ يَتَخَيَّرَ لِنُطَفِهِ مِنْ غَيْرِ إِيجَابٍ

[٤٧٩٤]: حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ حَدَّثَنَا أَبُو الزِّنَادِ عَنْ الْأَعْرَجِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ خَيْرُ نِسَاءٍ رَكِبْنَ الْإِبِلَ صَالِحُ(٢) نِسَاءِ قُرَيْشٍ أَحْنَاهُ عَلَى وَلَدٍ فِي صِغَرِهِ وَأَرْعَاهُ عَلَى زَوْجٍ فِي ذَاتِ يَدِهِ[ر:٣٢٥١].

امام بخارى رحمه الله په دې ځائې د ترجمة الباب درې احکام ذکر کړى دى .

① ړومبئ مسئله ده ((إِلَى مَنْ يَنْكِحُ)) کومې ښځې سره نکاح اوکړې شى

② دويمه مسئله ((وَأَيُّ النِّسَاءِ خَيْرٌ)) کومې ښځې بهترې دې

③ اودريمه مسئله ده ((وَمَا يُسْتَحَبُّ أَنْ يَتَخَيَّرَ لِنُطَفِهِ))او کوم مستحب دى چه خپله نطفه او نسل دپاره اختيار کړې يعنى خپل نسل دپاره ښه قسمه ښځې منتخب کولويان دې.

((الى ماينکح))نه مکښې عبارت محذوف دې ((أى اذا اراد أن يتزوج ينتهى أمره الى من ينكح))(٣) يعنى کوم سړې چه دواده اراده لرى نو دهغه انتهائى امر داوى چه هغه کومې ښځې سره نکاح اوکړى ((فى ذات يده أى فى ماله))

((من غير ايجاب))يعنى په ترجمة الباب کښې چه کوم درې احکام ومسائل بيان شوى دى دا

---

١ ) ارشاد السارى ( ٣٥٢/١١ ).

٢) (صالح) من صلاح الدين . وصلاح المخالفة للزوج وغيره ممن تجوز مخالفته وذكر اللفظ باعتبار لفظ الحبر المقدم خير (احناه) من الحنو وهو الشفقة : والحانية هى التى تقوم على ولدها بعد يتمه ولا تتزوج (ارعاه) احفظه واصونه (فى ذات يده) ماله المضاف اليه . وذالک بالامانة فيه . والصيانة له وترک التبذير فى الانفاق فيه).

٣ ) عمده القارى : ٧٨/٢٠ ).

داستحباب په درجه کښې دی واجب نه دی.

امام بخاری رحمه الله ددې لاندې دحضرت ابوهریره رضی الله عنه روایت ذکر کړې دې «خیر النساء رکبن الابل» یعنی دټولو نه ښه ښځې په اوښانو سورلی کونکې دقریشو ښځې دی. ددې نه دترجې دوه جزونه ثابت شو ، هرکله چه دقریشو ښځې د ټولو نه ښه دې نو معلومه شوه چه قریشی ښځو سره نکاح کول پکار دی. اود خیرالنساء اطلاق هم صراحتاً په هغوی باندې اوکړې شو ، دریم حکم وو چه خپل نسل او نطفې دپاره کومه یوه ښځه منتخب کړی. دا حکم په طریق دلزوم ثابتیږی چه دقریشو ښځې د نکاح دپاره خوښې ګنړلې شی. او هغه خیر ا لنساء دی نو ددې نه په خپله دا خبره په پوهه کښې راځی چه دنسل دپاره اونطفې دپاره هم ددې ښځو انتخاب به بهتر اومستحب وی. (۱)

بعضې حضراتو وئیلی دی چه امام بخاری رحمه الله «مایستحب أن یتخیر لنطفه» نه دحضرت عائشه رضی الله عنها دې روایت طرفته ارشاره کړې ده چه کوم حاکم او ابن ماجه ذکر کړې دې یعنی «تخیروا لنطفکم وانکحوا الاکفاء» (۲) یعنی خپله نطفې دپاره ښه ښځې منتخب کړئی او په کفو کښې واده اوکړئی. دا روایت هشام بن عروه عن ابیه عن عائشه په سند سره روایت شوی دې. حاکم ددې تصحیح کړې ده (۳) خو علامه ذهبی رحمه الله په دې باندې نقد کړې دې او حافظ ابوالفضل ابن طاهر فرمائی چه هشام نه روایت کولو والا ددې حدیث ټول راویان ضعیف دی. (۴)

**قوله:** صَالِحُ نِسَاءِ قُرَيْشٍ: دا په اصل کښې «صالحون» دې. نون جمع داضافت په وجه حذف کړې شوې دې. داصیلی په روایت کښې صلح (دصادضمه اولام تشدید سره ) دې. (۵) چه دا د صالح جمع ده.

**قوله:** أَحْنَاهُ عَلَى وَلَدٍ فِي صِغَرِهِ: یعنی کومې چه په خپل بچی باندې دهغه په وړوکوالی کښې ډیرې شفقت کوونکې وی، او دخپل خاوند دمال حفاظت کولو والاوی.

په دې حدیث باندې یو اشکال واردیږی چه په دې ځائې کښې دقریشو ښځو ته خیر النساء اووئیلې شو حالانکه خیرالنساء حضرت مریم علیها السلام ته وئیلې شوی دی ،نو په ظاهره په دواړو کښې تعارض دې.

① ددې جواب وې دا ورکړې شو چه په دې ځاې کښې ددې ښځو خپل مینځ کښې د فضیلت بیان دې ، چه په اوښ باندې سورلی کوی ، «رکبن الابل» چه عام طور سره د عربو

۱ ) عمده القاری: ۷۸/۲۰).
۲ ) مستدرک حاکم : ۱۶۳/۲ ، کتاب النکاح ،وسنن ابن ماجه ۱۴۱ ، کتاب النکاح ، باب الاکفاء).
۳ ) مستدرک حاکم ۱۶۳/۲).
٤ ) حاشیه مستدرک حاکم : ۱۶۳/۲).
۵) ارشاد الساری: ۳۵۲/۱۱).

ښځې کوی. دعربو په دغه ښځوکښې دقریشو ښځې بهترې دی. حالانکه حضرت مریم علیها السلام هیڅکله هم په اوښ باندې نه وه سوره شوې. په کتاب الانبیاء کښې دحضرت ابوهریره رضی الله عنه قول تیر شوی دې «ولم ترکب مریم بعیرا قط»(۱)

② دویم جواب دادې چه دقریشو ښځو ته دخپلې زمانې په اعتبار سره خیر النساء وئیلې شوی دی. مطلقا ورته خیر النساء نه دی وئیلې شوی، نودې سره حضرت مریم علیها السلام باندې د قریشې ښځو فضیلت لازم نه رازی (۲) والله اعلم.

## ۱۳- باب اتخاذ السراري ومن أعتق جاريته ثم تزوجها

[۴۷۹۵]: حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ اسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ حَدَّثَنَا صَالِحُ بْنُ صَالِحٍ الْهَمْدَانِيُّ حَدَّثَنَا الشَّعْبِيُّ قَالَ حَدَّثَنِي ابُوبُرْدَةَ عَنْ ابِيهِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ايُّمَا رَجُلٍ كَانَتْ عِنْدَهُ وَلِيدَةٌ فَعَلَّمَهَا فَاحْسَنَ تَعْلِيمَهَا وَادَّبَهَا فَاحْسَنَ تَادِيبَهَا ثُمَّ اعْتَقَهَا وَتَزَوَّجَهَا فَلَهُ اجْرَانِ وَايُّمَا رَجُلٍ مِنْ اهْلِ الْكِتَابِ امَنَ بِنَبِيِّهِ وَامَنَ بِي فَلَهُ اجْرَانِ وَايُّمَا مَمْلُوكٍ ادَّى حَقَّ مَوَالِيهِ وَحَقَّ رَبِّهِ فَلَهُ اجْرَانِ

«السراری:» دا د«سرية»(دسین په ضمه ، را مشدد مکسوره سره )جمع ده.دا لفظ د«تسر» نه ماخوذ دې. ددې اصل«سر»دې. اوسر دجماع په نومونوکښې یو نوم دې (۳)

«سر» رازاوهغه څیز ته هم وئیلې شی چه هغه پټ کړې شی چونکه وینځې سره نکاح د ښځې نه په پټه کولې شی نو په دې مناسبت سره وینځې ته «سرية» وئیلې شی. (۴)

بعضې حضراتو وئیلی دی چه دا دسرور نه ماخوذ دې چه ددې معنی خوشحالی ده ، چونکه داشان وینځه دسړی دپاره دخوشحالۍ باعث وی نو ددې وجې دې ته «سرية» وئیلې شی.

امام بخاری رحمه الله د ترجمة الباب نه دجماع دپاره خپل ځان سره دوینځو ساتلو دجواز طرفته اشاره کول غواړی.امام ابو داود په «مراسیل» کښې دزبیر بن سعد په طریق روایت نقل کړې دې چه حضور نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمائی چه «علیکم بامهات الاولاد فانهن مبارکات الارحام»(۵)

خو ددې روایت سند کمزورې دې. امام احمد بن حنبل رحمه الله هم په مسند کښې یو روایت ددې مفهوم نقل کړې دې چه د حضرت عبدالله بن عمرو بن العاص نه روایت دې ، دهغې الفاظ دی چه «انکحوا امهات الاولاد فانی اباهی بکم یوم القیامة» ددې سند داول حدیث نه قوی دې.(۶)

---

۱) فتح الباری: ۹/۱۵٤).
۲) عمده القاری : ۲۰/۷۸).
۳) ارشادالساری: ۱۱/۳۵۳).
٤) عمده القاری: ۲/۷۹).
۵) ارشادُ الساری : ۱۱/۳۵۳) .
۶) فتح الباری: ۹/۱۵۷).

**قوله:** وَمَنْ أَعْتَقَ جَارِيَةً ثُمَّ تَزَوَّجَهَا: دائې په ترجمة الباب كښې دويمه مسئله ذكر اوفرمائيله ،چه يوسړې وينځه ازاده كړى اوبيا دې سره نكاح اوكړى ،دا جائز بلكه بهتر دى. دراتلونكې باب په ړومبى روايت كښې ددې فضيلت راغلې دې. بعضو حضرات صحابه كرام ﷡ ته شائد دا حديث معلوم نه وو، ځكه هغوى په شروع كښې دا مكروه اوګنړل. حضرت عبدالله بن مسعود ﷜ ،حضرت عبدالله بن عمر ﷜ ، حضرت انس بن مالك ﷜ او تابعينو كښې حضرت سعيد بن ا لمسيب او حضرت ابراهيم نخعى ﷮ به دې ته مكروه وئيل. (۱)

امام بخارى رحمة ا لله عليه دكراهت ددې نقطې ترديد كول غواړى او دروايت نه ثابتوى چه وينځه آزادول او بيا دې سره نكاح كولوكښې نه صرف دا چه حرج پكښې نشته دې بلكه په دې كښې دوچند ثواب دې.

دحضرت ابوموسى اشعرى ﷜ روايت ئې دليل پيش كړې دې چه په كتاب العلم كښې تير شوې دې.

**قوله:** قَالَ الشَّعْبِيُّ خُذْهَا بِغَيْرِ شَيْءٍ قَدْ كَانَ الرَّجُلُ يَرْحَلُ فِيمَا دُونَهَا إِلَى الْمَدِينَةِ: عامر شعبى چه دصالح بن صالح شيخ دې،دا دهغه قول دې. هغوى دا حديث بيان كړو اوابيا ئې اوفرمائيل چه دا روايت په مفتو كښې واخله،بغير دځه دنياوى بدلې نه حاصل كړه،حالانكه سړى به ددې نه دكمې درجې والا حديث دپاره دمدينې منورې سفر كولو.

په دې ځائې كښې دظاهر عبارت نه دا غلط فهمى كيږى چه حضرت عامر شعبى داخبره خپل شاګرد صالح بن صالح ته اووئيله. خو حقيقت دې چه دا خبره دوى يو خراسانى سړى ته وئيلې ده .خراسانى حضرت شعبى ته وئيلې وه كه يوسړې خپله وينځه آزاده كړى او بيا هغې سره واده اوكړى نوزمونږ خلق دا ښه نه ګنړى،نودده په سوال باندې حضرت شعبى دا روايت واورولو اوهغه ته ئې اووئيل چه دا قيمتى روايت بغير دعوض نه واخله . (۲)

**قوله:** وَقَالَ أَبُوبَكْرٍ عَنْ أَبِي حَصِينٍ عَنْ أَبِي بُرْدَةَ عَنْ أَبِيهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَعْتَقَهَا ثُمَّ أَصْدَقَهَا: [ر:۹۷]: دا تعليق دې ،ابوداود طيالسى په خپل مسند كښې دا تعليق موصولا نقل كړې دې(۳) د ابوبكر نوم شعبه بن عياش دې چه مشهور قارى او داحاديثو حفاظو نه دې ،ددوى شيخ ابوحصين دې ، دهغه نوم عثمان بن عاصم دې ، (۴)

پورته چه دموسى بن اسماعيل روايت تير شوې دې ، په هغې كښې د «ثم أعتقها تزوجها» الفاظ دى او ابوبكر په روايت كښې«ثم اعتقها ثم أصدقها» الفاظ دى. يعنى دا آزاده كړه او

---

۱) فتح البارى:۱۵۲/۹).
۲) فتح البارى: ۱۵۸/۹ ، وعمده القارى : ۷۹/۲).
۳) ارشاد السارى : ۳۵٤/۱۱).
٤) عمده القارى: ۸۰/۲۰).

بیا دې ته مهر ورکړه ،په دې روایت کښې دمهر ورکولو تصریح ده. د ړومبی روایت نه ظاهراً دا مفهوم دې چه آزادی او عتق لره مهر ګرزولې شوې دې ، خو په دې روایت کښې تصریح شوې ده چه عتق سره سره دې ته مهر هم ورکړې نو دده دپاره دوه اجرونه دی ،عتق مهر جوړیدېشی که نه ؟ په دې سلسله کښې عالمانو او آئمه کرام اختلاف مخکښې رازی.

[۴۷۹۶]: حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ تَلِيدٍ قَالَ اَخْبَرَنِي ابْنُ وَهْبٍ قَالَ اَخْبَرَنِي جَرِيرُ بْنُ حَازِمٍ عَنْ اَيُّوبَ عَنْ مُحَمَّدٍ عَنْ اَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ح حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ عَنْ حَمَّادِ بْنِ زَيْدٍ عَنْ اَيُّوبَ عَنْ مُحَمَّدٍ عَنْ اَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يَكْذِبْ اِبْرَاهِيمُ اِلَّا ثَلَاثَ كَذَبَاتٍ بَيْنَمَا اِبْرَاهِيمُ مَرَّ بِجَبَّارٍ وَمَعَهُ سَارَةُ فَذَكَرَ الْحَدِيثَ فَاَعْطَاهَا هَاجَرَ قَالَتْ كَفَّ اللَّهُ يَدَ الْكَافِرِ وَاَخْدَمَنِي آجَرَ قَالَ اَبُو هُرَيْرَةَ فَتِلْكَ اُمُّكُمْ يَا بَنِي مَاءِ السَّمَاءِ [ر:۲۱۰۴]

امام بخاری رحمه الله ددې حدیث دوه سندونه ذکر فرمائیلی دی . ړومبې سند د سداسی دې یعنی په دې کښې دامام بخاری رحمه الله اود حضور نبی کریم په مینځ کښې شپږ واسطې دی او دویم سند دخماسی دې ، امام په دې ځائې کښې چه کوم الفاظ نقل کړی دی ،هغه دونم سند دی. (١)

داحدیث په کتاب احادیث الانبیاء کښې تیر شوې دې . اودحضرت ابراهیم علیه السلام ثلاث کذبات بیان په کتاب التفسیر کښې تفصیل سره تیر شوې دې. (٢)

دحدیث مناسبت دترجمة الباب نه ظاهر دی چه دخدمت په طور ساره ته بادشاه حضرت هاجره ورکړې وه ،حضرت ساره دا حضرت ابراهیم علیه السلام ته هبه کړې وه ، اوحضرت ابراهیم علیه السلام داخپل ځان سره اوساتلهنو «اتخاذ سریه» ددې نه ثابت شو.

«اجر» په دې کښې هاء همزه سره بدل کړې شو ، مراد حضرت هاجره ده.(٣)

**قوله:** فَتِلْكَ اُمُّكُمْ يَا بَنِي مَاءِ السَّمَاءِ: داجمله حضرت ابوهریره رضی الله عنه دحضرت هاجره متعلق اهل عرب ته خطاب اوکړو او وې فرمائیل چه حضرت اسماعیل علیه السلام د حضرت هاجره د بطن نه وو. او عرب د حضرت اسماعیل علیه السلام اولاد دی. یعنی د «انکم تتعاظمون فی انفسکم وتلك امکم» مطلب دادې چه تاسو خپل ځان ډیر عظیم ګڼرئی ، حالانکه ستاسو مور یو وینځه وه ، «بنو ماء السماء» ئې په دې وجه اوفرمائیل چه دحضرت اسماعیل علیه السلام نسب ډیر پاك او طاهر وو نو لکه څنګه چه دآسمان اوبه دهر قسم آلودګئ نه پاکې وی ، داشان ددې اهل عرب نسب هم پاك ، طاهر او دشکوك وشبهات نه صفا دې.

---

١) فتح الباری: ١٥٩/٩).
٢) اوګورئ کشف الباری کتاب التفسیر:٣٧٣).
٣) ارشاد الساری : ٣٥٥/١١).

بعضې حضراتو اوفرمائیل چه «بنو ماء السماء» ئې په دې مناسبت سره اوفرمائیل چه الله ﷻ دحضرت اسماعیل علیه السلام دپاره د آب زمزم اوبه جاری اوفرمائیلې اوهغه دآسمان اوبه دی، (۱)خو دا توجیه مستبعده ده. زمزم ته آسمانی اوبه څنګه وئیلې شی.
بعضو ددې یوبله وجه لیکلې ده چه عرب به په اصل کښې داوبو په تلاش کښې وو، چه کوم ځائې کښې به باران کیدو او اوبه په جمع کیدې نو هغه ځائې کښې به ئې پړاؤ کولو ، دې مناسبت سره هغوی ته «بنوماء سماء» اووئیلې شو. (۲)

[۳۸۹۷]: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا اسْمَاعِيلُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ حُمَيْدٍ عَنْ انَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ اقَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ خَيْبَرَ وَالْمَدِينَةِ ثَلَاثًا يُبْنَى عَلَيْهِ بِصَفِيَّةَ بِنْتِ حُيَيٍّ فَدَعَوْتُ الْمُسْلِمِينَ الَى وَلِيمَتِهِ فَمَا كَانَ فِيهَا مِنْ خُبْزٍ وَلَا لَحْمٍ امَرَ بِالْانْطَاعِ فَالْقَى فِيهَا مِنَ التَّمْرِ وَالْاقِطِ وَالسَّمْنِ فَكَانَتْ وَلِيمَتَهُ فَقَالَ الْمُسْلِمُونَ احْدَى امَّهَاتِ الْمُؤْمِنِينَ اوْمِمَّا مَلَكَتْ يَمِينُهُ فَقَالُوا انْ حَجَبَهَا فَهِيَ مِنْ امَّهَاتِ الْمُؤْمِنِينَ وَانْ لَمْ يَحْجُبْهَا فَهِيَ مِمَّا مَلَكَتْ يَمِينُهُ فَلَمَّا ارْتَحَلَ وَطَّى لَهَا خَلْفَهُ وَمَدَّ الْحِجَابَ بَيْنَهَا وَبَيْنَ النَّاسِ [ر:۳۶۴].

په دې حدیث کښې حضرت صفیه رضی الله عنها سره دحضور نبی کریم ﷺ د واده بیان دې . تفصیل په کتاب المغازی کښې تیر شوې دې. د ترجمة الباب ددې حدیث نه دا ثابتیږی چه صحابه کرام رضی الله عنهم اووئیل چه «ان حجبها فهی من أمهات المومنین وان لم یحجبها فهی مما ملکت یمینه» دحضرات صحابه کرام رضی الله عنهم وینا هم په دې بنیاد ده چه «اتخاذ سراری» جائز وو.

## ۱۴=بَاب مَنْ جَعَلَ عِتْقَ الْأَمَةِ صَدَاقَهَا

[۴۷۹۸] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ ثَابِتٍ وَشُعَيْبِ بْنِ الْحَبْحَابِ عَنْ انَسِ بْنِ مَالِكٍ انَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اعْتَقَ صَفِيَّةَ وَجَعَلَ عِتْقَهَا صَدَاقَهَا [ر: ۳۶۴]

**أیا عتق لره مهر جوړولې شی؟**: ① دوینځې آزادی دهغې مهر جوړولې شی که نه ؟په دې کښې اختلاف دې ، حضرت سعید بن المسیب ، طاؤس ، ابن شهاب زهری ، اسحاق بن راهویه ،امام احمد بن حنبل ،سفیان ثوری اوقاضی ابویوسف رحمهم الله فرمائی چه آزادی اوعتق لره مهر جوړولې شی(۳)دا حضرات دحدیث دباب نه استدلال کوی.
② دامام ابوحنیفه رحمه الله ، امام مالك او امام شافعی رحمهم الله په نیز عتق لره مهر جوړول جائز نه دی. (۴) امام ترمذی او علامه ابن حزم د امام شافعی رحمه الله قول جواز نقل کړې دې. (۵) خو

۱ ) الکرمانی: ۶۸/۲۱).
۲ ) عمده القاری: ۸۰/۲۰).
۳ ) عمدة القاری : ۱۶/۲۰، وبدایه المجتهد: ۱۶/۲ الباب الثانی فی موجبات صحه النکاح).
٤ ) عمدة القاری : ۸۱/۲۰).
٥ ) سنن الترمذی : ۲۱۱/۱ ، باب ماجاء فی الرجل یعتق الامه ثم یتزوجها وفتح الباری : ۱۶۱/۹).

علماء شافعيه دا قول ضعيف ګڼړلې دې. او دهغوی صحیح مسلك ئې عدم جواز نقل کړې دې. (۱) داحضرات د حدیث دباب نه مختلف جوابات ورکوی.

① يو جواب دا ورکړې شوې دې چه «وجعل عتقها صداقها» دحضرت انس رضي الله عنه خپل قول دې، هغوی خپله رائې او ظن په بناء باندې دا جمله وئیلې ده (۲)
خودا جواب ضعيف دې. ځکه چه دطبرانی په روايت کښې پخپله دحضرت صفيه رضي الله عنها قول دې چه «اعتقنی النبی ﷺ وجعل عتقی صداقی» (۳) دل روايت د حضرت انس رضي الله عنه د حديث موافق دې.
② امام مزنی رحمه الله د امام شافعی او امام بيهقی او يحيى بن اكثم نه نقل کړی دی چه عتق لره مهر جوړل د حضرت نبی کريم ﷺ په خصائص کښې داخل دی. (۴) امام طحاوی رحمه الله هم دا د حضرت نبی کريم په خصوصياتو کښې شمارلې دې. (۵) نو دوی نه پس دا دهيچا دپاره جائز نه دی.
③ حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه دا اعتاق علی شرط التزويج وو يعنی حضور نبی کريم ﷺ دې شرط سره حضرت صفيه رضي الله عنها آزاده کړې وه چه حضرت نبی کريم ﷺ سره به واده کوی او کله چه داشان کيږی نو د وينځې قيمت مهر شمارلې کيږی. حضور نبی کريم ﷺ د حضرت صفيه قيمت دهغې مهر جوړ کړو. او چونکه قيمت معلوم وو ځکه ددې دمهر په جوړولو کښې څه باقی نه وو، حافظ ابن حجر دا جواب حديث ته نزدې ترين جواب ګڼړلې دې. نو هغه ليکی:

«واجاب الباقون عن ظاهر الحديث باجوبة اقربها الى لفظ الحديث انه اعتقها بشرط ان يتزوجها فوجبت له عليها قيمتها وكانت معلومة فتزوجها بها» (۶)

## ۱۵=بَاب تَزْوِيجِ الْمُعْسِرِ

### لِقَوْلِهِ تَعَالَى ﴿إِنْ يَكُونُوا فُقَرَاءَ يُغْنِهِمُ اللَّهُ مِنْ فَضْلِهِ﴾ (النور:۳۲)

ددې نه مخکښې يو ترجمه د «باب تزويج المعسر معه القرآن والاسلام» عنوان لاندې تيره شوې ده، په دواړو ترجمو کښې فرق ظاهر دې. چه ماقبل والا ترجمه خاص ده. ځکه چه په هغې کښې د «الذی معه القرآن والاسلام» قيد دې او مذکوره ترجمه عام ده. د امام بخاری رحمه الله مقصد دادې که څوك غريب سړی سره نکاح اوکړی جائز دی. په استدلال کښې دسورت نور آيت پيش کوی، په سورت نور کښې دی چه ﴿وَأَنْكِحُوا الْأَيَامَىٰ مِنْكُمْ وَالصَّالِحِينَ مِنْ عِبَادِكُمْ وَإِمَائِكُمْ﴾

---

۱) فتح الباری: ۱۶۱/۹).
۲) فتح الباری: ۱۶۰/۹).
۳) فتح الباری: ۱۶۰/۹).
٤) فتح الباری: ۱۶۱/۹).
۵) شرح معانی الاثار للطحاوی: ۱۲/۲)
۶) فتح الباری: ۱۶۰/۹).

إِن يَكُونُوا فُقَرَاءَ يُغْنِهِمُ اللَّهُ مِن فَضْلِهِ ۗ وَاللَّهُ وَاسِعٌ عَلِيمٌ﴾
علامه شبیر احمد عثمانی رحمه الله ددې آیت لاندې فائده کښې لیکي چه:
"بعضې خلق په نکاح کښې په دې وجه پس پیش کوي چه دنکاح کولو نه پس به دښځې اوبچوبار څنګه اوچتوي، نودوي پوهه کړې شو چه د داسې مهمو خطراتو په وجه نکاح مه پریږدئې. روزي ستاسواو ستاسو د بچو دالله ﷻ سره ده، څه معلوم چه دهغوي د قسمت په وجه ستارزق فراخه کړي، نه مجرد پاتې کیدل نه دغنا موجب دې، اونه نکاح کول فقرو افلاس لره مستلزم دی. دا خبرې الله ﷻ په مشیت باندې دی.لکه څنګه چه په بل ځائې کښې فرمائي ﴿وَإِنْ خِفْتُمْ عَيْلَةً فَسَوْفَ يُغْنِيكُمُ اللَّهُ مِن فَضْلِهِ إِن شَاءَ ۚ﴾ اوظاهري اسبابو اعتبار سره هم دا خیزونه معقول دي چه نکاح کولو سره یا دداسې ارادې کولو سره په سړي باندې بوج رازي ، اوهغه دمخکښې نه زیات دګټې وټې کوشش کوي ،بل طرفته چه کله دښځې اولاد اوشي نو بالکل بعضې وختونو کښې خاندان والا هم په کسب معاش کښې دهغه سره مددکوي، بهر حال دروزۍ تنګسیا یا وسعت په نکاح یا تجردباندې موقوف نه دی. نو دا خیال دنکاح کولو نه ولې منع کوي". (۱)

[۴۷۹۹] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ أَبِي حَازِمٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ السَّاعِدِيِّ قَالَ جَاءَتْ امْرَأَةٌ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ يَا رَسُولَ اللَّهِ جِئْتُ أَهَبُ لَكَ نَفْسِي قَالَ فَنَظَرَ إِلَيْهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَصَعَّدَ النَّظَرَ فِيهَا وَصَوَّبَهُ ثُمَّ طَأْطَأَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأْسَهُ فَلَمَّا رَأَتْ الْمَرْأَةُ أَنَّهُ لَمْ يَقْضِ فِيهَا شَيْئًا جَلَسَتْ فَقَامَ رَجُلٌ مِنْ أَصْحَابِهِ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنْ لَمْ يَكُنْ لَكَ بِهَا حَاجَةٌ فَزَوِّجْنِيهَا فَقَالَ وَهَلْ عِنْدَكَ مِنْ شَيْءٍ قَالَ لَا وَاللَّهِ يَا رَسُولَ اللَّهِ فَقَالَ اذْهَبْ إِلَى أَهْلِكَ فَانْظُرْ هَلْ تَجِدُ شَيْئًا فَذَهَبَ ثُمَّ رَجَعَ فَقَالَ لَا وَاللَّهِ مَا وَجَدْتُ شَيْئًا فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ انْظُرْ وَلَوْ خَاتَمًا مِنْ حَدِيدٍ فَذَهَبَ ثُمَّ رَجَعَ فَقَالَ لَا وَاللَّهِ يَا رَسُولَ اللَّهِ وَلَا خَاتَمًا مِنْ حَدِيدٍ وَلَكِنْ هَذَا إِزَارِي قَالَ سَهْلٌ مَا لَهُ رِدَاءٌ فَلَهَا نِصْفُهُ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا تَصْنَعُ بِإِزَارِكَ إِنْ لَبِسْتَهُ لَمْ يَكُنْ عَلَيْهَا مِنْهُ شَيْءٌ وَإِنْ لَبِسَتْهُ لَمْ يَكُنْ عَلَيْكَ مِنْهُ شَيْءٌ فَجَلَسَ الرَّجُلُ حَتَّى إِذَا طَالَ مَجْلِسُهُ قَامَ فَرَآهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُوَلِّيًا فَأَمَرَ بِهِ فَدُعِيَ فَلَمَّا جَاءَ قَالَ مَاذَا مَعَكَ مِنْ الْقُرْآنِ قَالَ مَعِي سُورَةُ كَذَا وَسُورَةُ كَذَا عَدَّدَهَا فَقَالَ تَقْرَؤُهُنَّ عَنْ ظَهْرِ قَلْبِكَ قَالَ نَعَمْ قَالَ اذْهَبْ فَقَدْ مَلَّكْتُكَهَا بِمَا مَعَكَ مِنْ الْقُرْآنِ [ر: ۲۱۸۶]

حضرت سهل بن سعدی ساعدی رضی الله عنه نه روایت دې چه دحضرت رسول کریم ﷺ په خدمت کښې یو ښځه راغله او وې وئیل یارسو الله ﷺ! ماخپل نفس تاسو لره هبه کړې دې. حضرت رسول کریم ﷺ هغې ته دپورته نه لاندې پورې اوکتل بیا ئې سربنکته کړو ،ښځې چه کله اوکتل چه حضرت رسول کریم ﷺ څه فیصله نه کوي نو کیناسته،په صحابه کرام

---

۱) تفسیر عثمانی : ۲۵۲ سورت التوبه).

ﷺ كنبې يو سړې پاسيدواو وې وئيل ، يارسول الله ﷺ كه تاسو ته ددې ښځې ضرورتنه وى نو ماسره دې واده اوكړئى ، حضرت نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چه آيا تاسره څه شته دې ؟ نوهغه اووئيل چه ماسره خو هيڅ نشته دې ، حضرت رسول كريم ﷺ ورته اوفرمائيل چه كورته لاړشه او اوګوره چه څه شته دې كه نه ؟هغه كور ته څې او واپس راځي او فرمائى چه ما خو هيڅ اونه موندل ،حضرت رسول كريم ﷺ ورته اوفرمائيل چه اوګوره كه داوسپنې يو ګوتمه هم وى نو هغه راوړه ، هغه لاړو او واپس راغلو اووې وئيل چه يارسول الله ﷺ ماته د اوسپنې يو ګوتمه هم ملاؤ نشوه. او داځما ازار دې دا به نيم ددې شى. حضرت سهل ﷺ اوفرمائيل چه هغه صرف يو ازار وو، رداء ورسره نه وه ، يعنى صرف لنګ وو بل څادر نه وو چه دقميص په ځائې ئې استعمالولې شى. حضرت رسول كريم ﷺاوفرمائيل چه دا ښځه به ستا ازار سره څه اوكړى، كه دا ته اغوندې نو دې ته به هيڅ ملاؤ نشى. او كه هغه ئې اغوندى نه تاته به هيڅ ملاؤ نشى. ( يعنى دا يوسړې استعمالولې شى د دوؤ سړو داستعمال دپاره كافى نه دې)نو هغه سړې كيناستواو ډير ساعت كيناستو نه پس پاسيدو او روان شو . حضرت‌رسول كريم ﷺ چه هغه واپس په تلو اوليدو نو هغه ته ئې راواپس كيدو حكم اوكړو ، هركله چه هغه راغلو نوحضرت رسول كريم ﷺ هغه اووئيل چه دقران پاك نه تاسره څه دى؟هغه اووئيل ماسره فلانې فلانې سورت دې . حضرت رسول كريم ﷺ ورته اووئيل چه ته دا سورتونه زبانى وئيلې شې . هغه اووئيل آوجى. حضرت رسول كريم ﷺ ورته اوفرمائيل څه د قران پاك څومره حصه چه تاسره ده دهغې په بدله كنبې ما ته ددې ښځې مالك كړې.

**قوله:** جَاءَتْ امْرَأَةٌ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ددې ښځې باره كنبې حافظ ابن حجر ﷺ لاعلمى ظاهره كړې ده اوليكلى ئې دى((وهذا المرأة هذه لم أقف على اسمها)) (۱) او ابن قصاع ددې نوم ليكلې دې.چه دامذكوره ښځه خوله بنت حكيم يا ام شريك وه. (۲)

**قوله:** فَصَعَّدَ النَّظَرَ فِيهَا وَصَوَّبَهُ: يعنى حضرت نبى كريم ﷺ نظر پورته كړو اوبيائې لاندې طرفته ته ،مقصد دادې چه حضرت نبى كريم ﷺ هغه‌ښځې ته دپورته نه لاندې پورې اوكتل. ((صوب)) لاندې كول ، دباب تفعيل نه دې او د ((طأطأ)) معنى هم لاندې كول دى.

**قوله:** فَقَامَ رَجُلٌ مِنْ أَصْحَابِهِ: دا سړې څوك وو ،دده نوم معلوم نشو، البته دطبرانى يو روايت كنبې دى چه ((فقام رجل احسبه من الانصار))(۳) څوك انصارى سړې وو.

**قوله:** انْظُرْ وَلَوْ خَاتَمًا مِنْ حَدِيدٍ: ددې نه بعضې حضرات استدلال كوى چه داوسپنې

۱ ) فتح البارى : ۲٥۷/۹).
۲ ) فتح البارى: ۲٥۷/۹).
۳ ) فتح البارى: ۲٥۹/۹).

په گوتمه اچولو کښې هیڅ حرج نشته دې ،دامام شافعی رحمه الله هم دا مسلك دې (۱) خو حنفیه او جمهور عالمان داوسپنې گوتمه مکروه تحریمي گڼې. (۲) ددې وجې دابو دواود په یو روایت کښې راغلی دی چه حضرت نبی کریم ﷺ یو سړې اوکتلو چه هغه داوسپنې گوتمه اغوستې وه نو وې فرمائیل «مالی اری علیك حلیة اهل النار» دې نه پس هغه سړی دپیتلو گوتمه واچوله، حضرت نبی کریم ﷺ چه اوکتلو نو وې فرمائیل چه «مالی أجد منکم ریح الاصنام» بیا هغه تپوس اوکړو چه کومه یوه گوتمه استعمال کړم ، حضرت نبی کریم اوفرمائیل چه دچاندئی گوتمه واچوه (۳)

دحدیث باب د جواب ورکړې شوې دې چه داوسپنې د گوتمې ذکر نه دا لازم نه دی چه حضرت نبی کریم ﷺ ددې داستعمال اجازت ورکوی ، دحضرت نبی کریم ﷺ دا مقصد وو چه دمعمولی نه معمولی قمیت والا څیز که وی نو هغه راوړه (۴)ددې مزید تفصیل به مخکښې په کتاب اللباس کښې رازی.

**قوله: وَلٰكِنْ هٰذَا إِزَارِي قَالَ سَهْلٌ مَالَهُ رِدَاءٌ فَلَهَا نِصْفُهُ:** اصل عبارت دې «ولکن هذا ازاری فلها نصفه» یعنی ماسره دا ازار دې ، ددې نیمه به دې ښځې ته ورکړې شی ،«قال سهل ماله رداء» دا په مینځ کښې جمله معترضه ده ، راوی دحدیث حضرت سهل بن سعدساعدی رضی الله عنه فرمائی چه د دې سړی دغربت دا حالت وو چه هغه سره رداء هم نه وه ، صرف ازاربند اوتهبند وو.

**قوله: قَالَ اذهب فقد ملکتها بمَا ذَا مَعَكَ مِنَ الْقُرْآنِ:** دحدیث باب ددې مذکوره جملې نه استدلال کوی او حضرات شافعیه د تعلیم القران مهر جوړول جائز گڼی(۵) دجمهور اوحنفیه په نیز تعلیم القران مهر جوړول جائزنه دی. (۶)

دجمهورو استدلال دقرآن پاك آیت دې ﴿وَأُحِلَّ لَكُمْ مَا وَرَاءَ ذٰلِكُمْ أَنْ تَبْتَغُوا بِأَمْوَالِكُمْ﴾ په دې کښې د ابتغاء بالمال حکم ورکړې شوې دې . چه ددې مطلب دادې چه دمهردپاره د مال متقوم کیدل ضروری دی او چه کوم مال نه وی نوهغه مهر نه شی جوړیدې ، اوتعلیم القران هم مال نه دې ،څکه ددې مهر جوړول جائز نه دی.ترڅو چه تعلق دې دحدیث باب نو ددې مختلف جوابونه ورکړې شوی دی.

① یو جواب دا ورکړې شو چه تعلیم القران لره مهر جوړول دمتعلقه صحابی رضی الله عنه خصوصیت

---

۱) المجوعه شرح المهذب: ۳٤٤/٤، باب مایکره لبسه ومالایکره).
۲) البحر الرائق : ۱۹۱/۸ ، کتاب الکراهیه فصل فی اللبس ، فتح التقدیر:٤٥٧/٨، کتاب الکراهیه).
۳) سنن ابی داود: ۵۸۰/۲_ باب ماجاء فی خاتم حدید).
٤) فتح الباری:٢٦٤/٩).
۵) المجوع شرح المهذب: ٤٨٦/١٥، کتاب الصداق، مساله اذا تزوجها واصدقها تعلیم القران).
۶) المغنی لابن قدامه:٦٨٣/٦_ کتاب الصداق).

وو. نو دده دا خصوصيت په بعضو رواياتوكښې تصريح دې. «ان رسول الله ﷺ زوج رجلا على سورة من القران ثم قال: لاتكون لاحد بعدك مهرا» دا روايت ابن قدامه په «المغنى» كښې نقل كړې دې، (۱)

② دويم جواب دادې وركړې شو چه «بما معك من القران» كښې باء عوض لره نه ده بلكه باء سببيت دپاره ده او مطلب دادې چه «ملكتكها لانك من اهل القران» يعنى دا اهل قران كيدو په وجه په تا باندې مهر معجل واجب نه دې البته مهر موجل دقواعدو مطابق به واجب وى.(۲)

## ۱۶=بَابُ الْأَكْفَاءِ فِي الدِّينِ

﴿وَقَوْلُهُ: وَهُوَ الَّذِي خَلَقَ مِنَ الْمَاءِ بَشَرًا فَجَعَلَهُ نَسَبًا وَصِهْرًا ۗ وَكَانَ رَبُّكَ قَدِيرًا﴾ (الفرقان: ۵٤).(۳)

دحضرت امام بخارى رحمه الله مقصد ددې ترجمې نه دادې چه دنكاح په سلسله كښې په دين كښې دښه مشاركت اومماثلت مطلوب دى.

په دې باندې خو دټولو اتفاق دې چه دين كښې كفاءت ضرورى دې ، د مسلمانې ښځې ديو كافر سړى سره او دمسلمان سړى ديو كافرې ښځې سره نكاح كول جائزنه دى. البته كتابيات ددې حكم نه مستثنى دى.

ددين نه علاوه څه بل څيز هم داسې دې چه په هغې كښې كفاءت مطلوب دې. په دې كښې اختلاف دې ،د امام مالك رحمه الله په نيزصرف دين كښې دښه كفاءت ضرورى دې ،ددې نه علاوه باقى په يو څيز كښې هم كفو كيدل ضرورى نه دى. امام احمد رحمه الله نه هم يو روايت داشان منقول دې.

جمهور علماء فرمائى چه څلور څيزونه داسې دى چه په هغې كښې به دكفاءت اجازت كيدلې شى. ① دين ② نسب ③ حرفت وصنعت ④ حريت(۴)

باقى پاتې شو مال كښې كفاءت ، په دې كښې اختلاف دې ، بعضې حضرات ددې اعتبار كوى او بعضې نه كوى ،مخكښې دا بحث رازى.

امام بخارى رحمه الله چونكه د كفاءت فى النسب قائل نه دې ددې وجې هغوى دقران مجيد چه

---

۱) اوګورئ المغنى لابن قدامه ۶/۶۸۴_ كتاب الصداق).

۲) اوجزالمسالك:۹/۲۹۴_ كتاب النكاح باب ماجاء الصداق والاباء).

۳) (الاكفاء) جمع كفء . وهوالمثل والنظير (من الماء) من النطفة) (فجعله) قسمين (نسبا) ذوى نسب . أى ذكورا ينسب اليهم . (وصهرا) ذوات صهر .أى اناثا يصاهر بهن . والاتيان بالاية . يفيد . أن البشر من منشأ واحد . فلا تمايز بينهم من حيث الجنس . وانما ينبغى أن يكون التمايز من حيث الدين ولذالك كانت الكفارة بين الزوجين معتبرة الدين لا بغيره).

۴) دمذكوره تفصيل دپاره اوګورئ الفقه الاسلامى وادلته :۷/۲۴۰_۲۴۱، المبحث الخامس ماتكون فيه الكفاءه).

كوم آيت منتخب كړو «وَهُوَ الَّذِي خَلَقَ مِنَ الْمَآءِ بَشَرًا فَجَعَلَهُ نَسَبًا وَّصِهْرًا» دې نه ثابتول غواړي چه الله ﷻ مطلقًا دبشر متعلق دا اوفرمائيل «فَجَعَلَهُ نَسَبًا وَّصِهْرًا» چه بعضې خلق داسې وی چه هغوی سره دنسب تعلق وی، هغوی سره دنكاح كول حلال نه دی ، او دبعضو سره دصهر تعلق قائمولې شی. يعنی هغوی سره نكاح كول حلال دی. امام فراء فرمائی چه «النسب من لايحل نكاحه والصهر من يحل نكاحه» (۱) په آيت كريمه كښې بشر لره په دوؤ قسمونو كښې تقسيم كړې شوې دې چه ددې نه معلوميږی چه هر بشر د بل دپاره كفو دې، دين نه پس په څه بل څيز كښې دكفاءت ضرورت نشته.

او واقعه هم داده چه كفاءت فی الانساب باره كښې چه څومره روايتونه هم پيش كولې شی په هغې يو هم داسې نه دې چه نقد او كلام نه خالی وی. (۲) دكفاءت انساب باره كښې دټولو نه قوی دليل دحضرت علی ﷺ دې چه په ترمذی كښې دې. «ياعلی، ثلاث لاتوخرها: الصلاة اذا انت والجنازة اذا حضرت، والايم اذا وجدت لها كفوا» (۳) امام بيهقی فرمائی چه دكفاءت په باب كښې دټولو نه امثل هم دادې (۴)

**څوک دچا كفو دې؟:** امام اعظيم رحمه الله فرمائی چه قريش ديو بل دباره كفو دی. دقريشونه علاوه عام عرب ديو بل دپاره كفو دی ،او هيڅ يو عجمی د عربی دپاره كفو نه دې. «لان العجم ضيعوا انسابهم» شوافع نه هم يو روايت كښې دا تفصيل منقول دې. ليكن دهغوی صحيح قول دادې چه بنو هاشم اوبنو المطلب خلقو باندې مقدم دی اوددوی نه علاوه باقی بعضی د بعضو دپاره كفو دی . (۵)

**كفاءت حق الله دې يا حق المراه:** كفاءت حق الله دې يا حق المراة والاولياء ،دجمهور علماء مسلك دادې چه كفاءت حق الله نه دې دا حق المراة والاولياء دې ، اوچونكه دا دهغوی حق دې ، خكه جمهور علماء او ائمه ثلاثه فرمائی چه كفاءت صحت نكاح دپاره شرط نه دی ، دبنځې اواولياء په رضا مندئی سره غير كفو كښې كه نكاح اوشی نودرست دی ، امام احمد بن حنبل رحمه الله هم يو روايت داشان دې او ددوی بل روايت دادې چه كفاءت صحت نكاح دپاره شرط دې . (۶)

---

۱ ) فتح الباری: ۱٦٤/۹).
۲ ) وفی الفتح :۱٦٤/۹ ، ولم يثبت فی اعتبار الكفاءه باالنسب حديث).
۳ ) عمده القاری : ۸۷/۲۰).
٤ ) السنن الكبری للبيهقی ، كتاب النكاح ، باب اعتبار الكفاءه : ۱۳۲/۷).
۵ ) فتح الباری : ۱٦٤/۹).
٦ ) اوګورئ المغنی لابن قدامه : كتاب النكاح : رقم المساله: ۵۱۸۹، : ۲٦/۷ مختصر العلماء للطحاوی كتاب النكاح :۲۵۳/۲).

امام بخاری رحمه الله چونکه صرف دین کښې دننه کفاءت اختیاروی. نسب وحریت وغیره کښې دکفاءت اعتبار دهغوی په نیز درست نه ده. ددې وجې هغوی په دې باب کښې خپل مذهب لره دثابتولو دپاره داسې روایتونه پیش کړی دی چه دهغې نه معلومیږی چه خاندانی لحاظ سره د اوچتې درجې ښځه غیر کفو کښې نکاح شوې ده . لکه په رومبی حدیث کښې دی چه د هندبنت الولید بن عتبه بن ربیعه نکاح حضرت سالم سره اوشوه ،چه دې د یو انصاری ښځې آزاد شوې غلام وو او هند بنت الولید قریشیه وه. داشان دباب په دریم روایت کښې دی چه ضباعه بنت الزبیر حضرت مقداد بن الاسودپه نکاح کښې وه ، حضرت مقداد غیر قریشی وو.حالانکه حضرت ضباعه قریشیه وه.

[۴۸۰۰] حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِي عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا اَنَّ اَبَا حُذَيْفَةَ بْنَ عُتْبَةَ بْنِ رَبِيعَةَ بْنِ عَبْدِ شَمْسٍ وَكَانَ مِمَّنْ شَهِدَ بَدْرًا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَبَنَّى سَالِمًا وَاَنْكَحَهُ بِنْتَ اَخِيهِ هِنْدَ بِنْتَ الْوَلِيدِ بْنِ عُتْبَةَ بْنِ رَبِيعَةَ وَهُوَ مَوْلًى لِامْرَاَةٍ مِنَ الْاَنْصَارِ كَمَا تَبَنَّى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زَيْدًا وَكَانَ مَنْ تَبَنَّى رَجُلًا فِي الْجَاهِلِيَّةِ دَعَاهُ النَّاسُ اِلَيْهِ وَوَرِثَ مِنْ مِيرَاثِهِ حَتّٰى اَنْزَلَ اللّٰهُ ادْعُوهُمْ لِآبَائِهِمْ اِلَى قَوْلِهِ وَمَوَالِيكُمْ فَرُدُّوا اِلَى آبَائِهِمْ فَمَنْ لَمْ يُعْلَمْ لَهُ اَبٌ كَانَ مَوْلًى وَاَخًا فِي الدِّينِ فَجَاءَتْ سَهْلَةُ بِنْتُ سُهَيْلِ بْنِ عَمْرٍو الْقُرَشِيِّ ثُمَّ الْعَامِرِيِّ وَهِيَ امْرَاَةُ اَبِي حُذَيْفَةَ بْنِ عُتْبَةَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ يَا رَسُولَ اللّٰهِ اِنَّا كُنَّا نَرَى سَالِمًا وَلَدًا وَقَدْ اَنْزَلَ اللّٰهُ فِيهِ مَا قَدْ عَلِمْتَ فَذَكَرَ الْحَدِيثَ [ر:۳۷۷۸].

امام بخاری رحمه الله داحدیث په دوه ځایونوکښې ذکرکړې دې . یوپه دې ځائې کښې او یو په کتاب المغازی «باب شهود الملائکة بدرا» نه پس «باب بلاترجمة» کښې او په هغه ځائې کښې مونږ ددې حدیث تفصیل بیان کړې دې.

[۴۸۰۱] حَدَّثَنَا عُبَيْدُ بْنُ اِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا اَبُو اُسَامَةَ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ دَخَلَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى ضُبَاعَةَ بِنْتِ الزُّبَيْرِ فَقَالَ لَهَا لَعَلَّكِ اَرَدْتِ الْحَجَّ قَالَتْ وَاللّٰهِ لَا اَجِدُنِي اِلَّا وَجِعَةً فَقَالَ لَهَا حُجِّي وَاشْتَرِطِي وَقُولِي اللّٰهُمَّ مَحِلِّي حَيْثُ حَبَسْتَنِي وَكَانَتْ تَحْتَ الْمِقْدَادِ بْنِ الْاَسْوَدِ

حضرت عائشه رضی الله عنها نه روایت دې چه حضرت نبی کریم صلی الله علیه وسلم ضباعه بنت الزبیر بنت عبدالمطلب لره راغلواو تپوس ئې ترې اوکړو چه شائد تاسودحج کولو اراده کړې ده؟نوهغې اووئیل چه څه په خپل بدن کښې درد محسوسوم (یعنی بیماره یم ، په بدن کښې مې درد اوتکلیف ) حضرت نبی کریم صلی الله علیه وسلم ورته اوفرمائیل تاسو حج ته لاړ شئ،او شرط اوکړئ او دا اووائې چه ائې الله ﷻ ا خما په احرام کښې دحلالیدو ځائې هغه دې چه په کوم ځائې کښې ته مالره دبیمارئې په وجه منع کړې ، (یعنی په کوم مقام باندې چه ماته کوم غذریا بیماری راپیښه شی نو په هغه ځائې کښې به ماته داحرام نه دوتلو اختیار وی) اوضباعه(قریشیه)

حضرت مقداد بن الاسود (غیرقریشی) په نکاح کښې وه (هم دا جمله ترجمة الباب لره ثابتوی).
امام بخاری رحمه الله علهې دا حدیث په دې ځائې کښې په رومبی ځل ذکر اوفرمائیلو. دکتاب الحج متعلق دا حدیث هغوی په هغه ځائې کښې ذکر نه کړو، په دې ځائې کښې هغه دا کفاءت فی النسب غیرمعتبر کیدو او صرف کفاءت فی الدین معتبر کیدو باندې په طور استدلال پیش کړې دې.

**قوله:** دَخَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى ضُبَاعَةَ بِنْتِ الزُّبَيْرِ: ضباعه بن الزبیر بن عبدالمطلب دحضور اکرم ﷺ د تره لور وه.

**قوله:** وَاللَّهِ لَا أَجِدُنِي إِلَّا وَجِعَةً: «وجعه» (د واوفتحه او دجیم کسرې سره) صفت مشبه صیغه ده «ای ذات الوجع» یعنی ځه خپل ځان بیماره او مرض والا محسوسوم.

**قوله:** حُجِّي وَاشْتَرِطِي: داحرام په وخت کښې سړې داشان شرط لګولې شی که نه؟ ددې پوره تفصیل په کتاب الحج کښې «ابواب المحصر» لاندې تیر شوې دې چه دامام ابوحنیفه رحمة الله علیه، امام مالک رحمه الله، اود سفیان ثوری په نیز داسې شرط اعتبار نشته دې، امام شافعی رحمه الله قول هم دا دې. دحنابله، امام اسحاق او دشافعیه دقول قدیم کاکره کښې داشان شرط لګول دحدیث باب په وجه جائز دې. او چه په کوم ځائې کښې ځه عذر راپیش کیږی په هغه ځائې کښې به محرم بغیر ددم نه حلال وی. (۱)
حضرات حنیفه دحدیث باب جواب دا ورکوی دا د ضباعه بنت الزبیر خصوصیت وو. (۲)
امام بخاری رحمه الله په دې مذکوره باب کښې کفاءت فی الدین دمعتبرکیدو او کفاءت فی النسب غیرمعتبر کیدو استدلال کړې دې ځکه چه په دواړو روایتونوکښې د قریشی ښځو دغیر قریشی سړو سره دنکاح کولو ذکر دې.
خو کوم حضرات چه د کفاءت فی النسب اعتبار کوی، هغوی ددې حدیثونو متعلق وائی چه په دې دواړو صورتونوکښې زوجه او ددې اولیاء راضې وو. هغوی په خپلې رضا سره خپل حق ساقط کړو. او که یو ښځه اودهغې اولیاء په خپل کفاءت فی النسب اعتبار نه کوی نو جائز دی.
**تنبیه:** امام بخاری رحمه الله دا حدیث د کتاب الحج په ځائې په دې مقام باندې په کتاب النکاح کښې ذکر کړې دې. په دې بناء بعض حضراتو ته ددې روایت په صحیح بخاری کښې د کیدو علم اونشو. حضرت مولانا محمد یوسف بنوری رحمه الله په معارف السنن کښې لیکلی دی چه مولانا ظفر احمد عثمانی رحمه الله ته هم دا حدیث په صحیح بخاری کښې نه وو ملاؤ شوې. (۳)

---

۱) عمد القاری: ۸۵/۲۰، ومعارف السنن: ۵۸۵/۶).
۲ ([عمدة القاری: ۱۴۷/۱۰، باب الاحصارفی الحج).
۳) علامۀ بنوی رحمه الله لیکلی: وقدخفی علی کثیر محله فی الصحیح لاخراجه فی غیر محله وفی عندالقوم. فانکروه وادعوه انه لیس متفقا علیه کالشیخ احمد شاکر، والشیخ العثمانی صاحب اعلاء السنن وغیرهما (معارف السنن: ۵۷٤/۶).

خو په دې کښې امام بنوری رحمه الله نه تسامح شوې ده ، ځکه چه علامه ظفر احمد عثمانی رحمه الله اعلاء السنن کښې صراحتًا ليکلی دی «اخرجها البخاری فی کتاب النکاح لا فی الحج»(١)

[٣٨٠٢] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ قَالَ حَدَّثَنِي سَعِيدُ بْنُ أَبِي سَعِيدٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ تُنْكَحُ الْمَرْأَةُ لِأَرْبَعٍ لِمَالِهَا وَلِحَسَبِهَا وَجَمَالِهَا وَلِدِينِهَا فَاظْفَرْ بِذَاتِ الدِّينِ تَرِبَتْ يَدَاكَ

حضرت ابوهريره رضی الله عنه نه روايت دې چه حضرت نبی کريم صلی الله عليه وسلم اوفرمائيل چه دڅلورو څيزونو په وجه ښځې سره نکاح کول پکار دی. ① مال ② حسب ③ ښائست ④ ديندارى. او تاسو ددين والا په ذريعه کاميابی حاصله کړئ. (که په چا کښې دا ټول صفات وی نو سبحان الله! اوکه ټول نه وی نو بيا ديندارئ باندې دارومدار کول پکار دی.

**قوله: فَاظْفَرْ بِذَاتِ الدِّينِ:** امام بخاری رحمه الله هم په دې جمله کښې خپل مذهب ثابت کړې دې چه دحضرت نبی کريم صلی الله عليه وسلم دا ارشاد دې خبرې طرفته مشير دې چه اصل څيز هم دين دې. هم ددې اعتبار اهم او ضروری دې. امام ابن ماجه دحضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه نه داقسمه يوروايت نقل فرمائيلې دې.

«لاتزوجوا النساء لحسنهن فعسى حسنهن أيرديهن .. أی يهلکهن ... ولاتزوجوهن لأموالهن فعسى أموالهن أن تطغيهن ولکن تزوجوهن على الدين ولأمة سوداء ذات دين أفضل» (٢)

**قوله: لابد ... ملابدة:** تيتيدل ، «ورهاء» بيوقوفه ښځه يعنی دبيوقوفې ښځې مال عقل مند سړې لره ددې مخکښې ټيټوی او دې دکم عقلې ښځې لره تابع کوی.

**قوله: تَرِبَتْ يَدَاكَ:** «تَرِبَتْ» باب سمع نه دې ، په معنی دخيرن ، د جمله دفقرئی نه کنايه ده، او په طور د بددعاء استعماليږی، علامه ابن العربی رحمه الله فرمائی چه په دې مقام باندې دې جملې لره به جزا جوړولې شی اوددې دپاره به شرط محذوف وی «أی ان لم تظفر بذات الدين تربت يداك»(٣)

---

١ ) اوګورئ اعلاء السنن: ٤٣٧/١٠ ، باب الاشتراط فی الحج والعمرة).

٢ ) فتح البارى: ١٦٨/٩ ـ وقال بکير الاسدی:

| | |
|---|---|
| و اول خبث المرء خبث ترابه | و اول لوم المرء لوم المناکح |

وقال آخر:

| | |
|---|---|
| واذا کنت تبغی ايما بجهالة | من الناس فانظر من ابوها وخالها |
| فانهما منها کما هی منهما | کقدك تعلان اريد مثالها |
| ولاتطلب البيت الذی فعاله | و لابد ذا عقل لورهاء مالها |
| فان الذی ترجو من المال عندها | سيأتی عليه شومها و عيالها |

٣ ) فتح البارى: ١٦٨/٩).

حضرت حسن بصرى رحمه الله ته يوسړى اووئيل چه خما يولور ده ، خمادې سره ډير زيات محبت دې. مختلفو خلقو راته دنكاح پيغام راليږلى دې ، تاسواووائې چه څه ددې واده كوم سړى سره اوكړم؟حضرت حسن بصرى رحمه الله اوفرمائيل چه ددې واده داسې سړى سره اوكړه چه دالله ﷻ نه ويريږى او كه د هغه ستادلورنه نفرت وى نو په هغې به ظلم نه كوى (١)

[٤٨٠٣] حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيمُ بْنُ حَمْزَةَ حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِي حَازِمٍ عَنْ اَبِيهِ عَنْ سَهْلٍ قَالَ مَرَّ رَجُلٌ عَلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ مَا تَقُولُونَ فِي هٰذَا قَالُوا حَرِيٌّ اِنْ خَطَبَ اَنْ يُنْكَحَ وَاِنْ شَفَعَ اَنْ يُشَفَّعَ وَاِنْ قَالَ اَنْ يُسْتَمَعَ قَالَ ثُمَّ سَكَتَ فَمَرَّ رَجُلٌ مِنْ فُقَرَاءِ الْمُسْلِمِينَ فَقَالَ مَا تَقُولُونَ فِي هٰذَا قَالُوا حَرِيٌّ اِنْ خَطَبَ اَنْ لَا يُنْكَحَ وَاِنْ شَفَعَ اَنْ لَا يُشَفَّعَ وَاِنْ قَالَ اَنْ لَا يُسْتَمَعَ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هٰذَا خَيْرٌ مِنْ مِلْءِ الْاَرْضِ مِثْلَ هٰذَا [٦٠٨٢] (٢)

په سندكښې د «ابن ابى حازم» نه مراد عبدالعزيز دې ، دابوحازم نوم سلمه بن دينار دې ، عبدالعزيز خپل پلار سلمه بن دينار نه روايت كوى.

حضرت سهيل بن سعد رضي الله عنه نه روايت دې چه دحضور اكرم ﷺ سره يوسړې تير شو نو حضرت نبى كريم ﷺ دحضرات صحابه كرام رضي الله عنهم نه تپوس اوكړو چه تاسوددې سړې په باره كښې څه وائې ؟نوهغوى اوفرمائيل چه داسړې ددې خبرې مستحق اوسزاوار دې چه كه چرته دده دنكاح پيغام اوليږلې شى نو نكاح به ئې اوكړې شى ،كه سفارش اوكړى نو دده سفارش به قبول كړې شى ، اوكه خبره اوكړى نو دده خبره آوريدلې شى ، حضرت سهل فرمائى چه حضور نبى كريم ﷺ خاموش شو،په دې كښې يو فقيرمسلمان تيرشو، حضرت نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چه تاسو ددې سړى په باره كښې څه وائې؟هغوى عرض اوكړو چه دې ددې مستحق دې كه دې دنكاح پيغام اوليږى نو نكاح به ئې اونه شى او كه سفارش اوكړى نو هغه به قبول نشى اوكه خبره اوكړى نو دده خبره نه آوريدلې كيږى ، په دې باندې حضرت نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چه دا فقير ددغه رنګ ټولو مالدارو نه بهتر دې .

امام بخارى رحمه الله ددې حديث نه ترجمة الباب ثابت كړې دې او فرمائى چه اصل اعتبار دين او ديندارى ده ،ددې نه علاوه دمال اوحسب هيڅ اعتبار نشته دې څكه چه حضور نبى كريم ﷺ يو دينداري فقير سړى لره ديو مالدارنه بهتر او افضل خودلې دې.

حضور اكرم ﷺ سره دوه سړى چه تير شوى وو دا څوك وو؟حافظ ابن حجر رحمه الله وائى چه ماته ددې دواړونومونه معلوم نه دى. (٣) بعضې حضراتو ددې فقير مسلمان نوم جعيل بن سراقه رضي الله عنه خودلې دې(٤)

---

١ ) ارشاد السارى: (١١/٣٦٥).
٢ ) واخرجه البخارى ايضافى كتاب الرقاق باب فضل ا لفقر رقم الحديث :٦٠٨٢، وابن ماجه فى كتاب الزهد . باب فضل الفقراء رقم الحديث : ٤١٢٠).
٣ ) فتح البارى : ٩/١٦٩).
٤ ) فتح البارى:٩/١٦٩).

علامه قسطلاني رحمه الله لیکي . ((واطلاقه التفضیل علی الغنی المذکور لایلزم منه تفضیل کل فقیر علی کل غني... کما لایخفی.. نعم فیه تفضیله مطلقا فی الدین فیطابق الترجمة)). (۱)
په دې باندې به تفصیلي کلام به مخکښې په په کتاب الرقاق کښې د "باب فضل الفقر" لاندې راشي.

## ۱۷= بَابُ الْأَكْفَاءِ فِي الْمَالِ وَتَزْوِيجِ الْمُقِلِّ الْمُثْرِيَةَ

[۴۸۰۴] حَدَّثَنِي يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ أَخْبَرَنِي عُرْوَةُ أَنَّهُ سَأَلَ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا وَإِنْ خِفْتُمْ أَلَّا تُقْسِطُوا فِي الْيَتَامَى قَالَتْ يَا ابْنَ أُخْتِي هَذِهِ الْيَتِيمَةُ تَكُونُ فِي حَجْرِ وَلِيِّهَا فَيَرْغَبُ فِي جَمَالِهَا وَمَالِهَا وَيُرِيدُ أَنْ يَنْتَقِصَ صَدَاقَهَا فَنُهُوا عَنْ نِكَاحِهِنَّ إِلَّا أَنْ يُقْسِطُوا فِي إِكْمَالِ الصَّدَاقِ وَأُمِرُوا بِنِكَاحِ مَنْ سِوَاهُنَّ قَالَتْ وَاسْتَفْتَى النَّاسُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدَ ذَلِكَ فَأَنْزَلَ اللَّهُ وَيَسْتَفْتُونَكَ فِي النِّسَاءِ إِلَى وَتَرْغَبُونَ أَنْ تَنْكِحُوهُنَّ فَأَنْزَلَ اللَّهُ لَهُمْ أَنَّ الْيَتِيمَةَ إِذَا كَانَتْ ذَاتَ جَمَالٍ وَمَالٍ رَغِبُوا فِي نِكَاحِهَا وَنَسَبِهَا وَسُنَّتِهَا فِي إِكْمَالِ الصَّدَاقِ وَإِذَا كَانَتْ مَرْغُوبَةً عَنْهَا فِي قِلَّةِ الْمَالِ وَالْجَمَالِ تَرَكُوهَا وَأَخَذُوا غَيْرَهَا مِنَ النِّسَاءِ قَالَتْ فَكَمَا يَتْرُكُونَهَا حِينَ يَرْغَبُونَ عَنْهَا فَلَيْسَ لَهُمْ أَنْ يَنْكِحُوهَا إِذَا رَغِبُوا فِيهَا إِلَّا أَنْ يُقْسِطُوا لَهَا وَيُعْطُوهَا حَقَّهَا الْأَوْفَى فِي الصَّدَاقِ [ر: ۲۳۶۲].

((المقل)) : فقیر. ((المثریة)) (دمیم په ضمه ، دثاء په سکون ، دراء په کسر او د یاء په فتحه سره). ((هی التی لها ثراء)) : یعني مالداره ښځه.
دامام بخاري رحمه الله په نیز مال کښې دکفاءت اعتبار نشته دې.
((الاکفاء فی المال)) نه پس د ((تزویج المقل المثریة)) اضافه دې طرفته اشاره کولو دپاره ده چه یو فقیر اومسکین سړې د مالدارې ښځې سره نکاح کولې شي.
دکفاءت فی المال په سلسله کښې حضرات آئمه کرام کښې اختلاف دې.
حضرات حنفیه اوحنابله دکفاءت فی المال اعتبار کوي.(۲) دابن قاسم مالکي هم دامسلك دې .(۳) اود امام شافعي رحمه الله هم صحیح مسلك همدا دې.(۴)
دامام مالك رحمه الله مسلك هم دا دې چه کفاءت فی المال غیر معتبر دې. (۵)

۱ ) ارشاد الساري: ۳۶۶/۱۱).
۲ ) الفقهه الاسلامي وادلته: ۲٤۰/۷).
۳ ) اوګورئ الشرح الصغیر علی اقرب المسالک الی المذهب الامام مالک للدر دیر ، کتاب النکاح :۴۰۰/۲ ، خو هغوی د ابن قاسم دنوم تصریح نه ده کړې).
٤ ) فتح الباري : ۱۷۰/۹).
۵ ) اختلاف ا لعلماء :۲۵۲/۲ ، فی الاکفاء فی النکاح والمدونة الکبری ، کتاب ا لنکاح :۱۶۳/۲_۱۶٤، والحاوي ا لکبیر للماوردي:۱٤۱/۱۱).

دامام احمد بن حنبل رحمه الله يودا قول هم ددې مطابق دې (۱) اودامام شافعي رحمه الله هم دا مسلك دې. (۲)

دكفاءت في المال مطلب دادې چه سړې په نفقه او مهر دواړوباندې قادر وى .دحنيفه‌هم دا ظاهر روايت دې (۳) البته امام يوسف رحمه الله فرمائى چه كفاءت في المال نه‌دسړى په نفقه باندې قادر كيدل مراد دى. كه په مهر باندې قادر وى اوكه نه وى. (۴)

اويودادى چه ((كفاءت في المال في اليسار والغنى)) ددې مطلب دادې چه‌په مالدارئى او غناء كښې مساوات دى . امام ابوحنيفه رحمه الله او امام محمد رحمه الله هم دا اعتباركړې دې .دا حضرات فرمائى چه‌كه ښځه مالداره وى اوسړې سره ددې په مقابله كښې مال كم وى‌نودښځې دپاره داخبره عموماً د شرم سبب گرځى اوبيا هغه دتفوق او تعلى اظهار كوى(۵)چه دهغې په وجه‌دزوجين په مينځ كښې ناگوارى پيداشى او ازدواجى ژوند كامياب پاتې نشى.

امام بخارى رحمه الله دكفاءت في المال اعتبار نه كوى ، دهغوى په نيز صرف كفاءت في الدين معتبر دې . هغوى په دې باب كښې په دې ځاې كښې چه كوم روايت ذكر فرمائيلې دې دهغې تشريح په كتاب التفسير كښې د سورة النساء په تفسير كښې تير شوې دې. په هغې كښې دى چه ((الا ان يقسطوا فى اكمال الصداق)) ددې نه امام بخارى رحمه الله ترجمة الباب ثابتوى ، چونكه دا عام دى اوهر هغه سړى دپاره دى چه‌پوره مهر ادا كړى كه هغه مقل وى يا مكثر ، مال ده سره زيات وى اوكه كم ، په دې كښې د((مكثر)) هيڅ قيد نشته دې ، ددې نه معلوميږى چه د كفاءت في المال‌هيڅ اعتبار نشته دې.

## ۱۸=بَاب مَا يُتَّقَى مِنْ شُؤْمِ الْمَرْأَةِ وَقَوْلِهِ تَعَالَى

﴿إِنَّ مِنْ أَزْوَاجِكُمْ وَأَوْلَادِكُمْ عَدُوًّا لَكُمْ﴾ [التغابن: ۱۴]

دامام بخارى رحمه الله مقصد دادې چه‌په ښځه كښې بعضې صفات دنحوست هم كيديشى . لكه ژبه ئې خرابه وى ، په خبره خبره باندې دشور او جنگ عادت وى ، ددې نه بچ كيدل پكار دى. دقرآن پاك آيت ﴿إِنَّ مِنْ أَزْوَاجِكُمْ وَأَوْلَادِكُمْ عَدُوًّا لَكُمْ﴾ نه مراد دې طرفته اشاره كړې ده چه‌ستاسو بعضې ښځې ستاسو دښمنانې دى ، رشته دارو سره تعلقات خرابوى ، جنگ او فساد كوى او په خاندان كښې دتلخئ سبب جوړيږى.

---

۱ ) المغنى لابن قدامه: ۲۹/۷ ، شرط الكفاءه ، كتاب النكاح).

۲ ) فتح البارى: ۱۷۰/۹ ، داشان اوگورئ العزيز شرح الوجيز للرافعى ، كتاب النكاح :۵۷۶/۷ ، القول فى الكفاء ه فى النكاح والحاوى الكبير: ۱٤۷/۱۱).

۳ ) الهدايه: ۲۹۰/۲. كتاب النكاح).

٤ ) الهداية : ۲۹۰/۲ ، كتاب النكاح).

۵ ) الهداية: ۲۹۰/۲ ، كتاب النكاح).

[٤٨٠٥] حَدَّثَنَا اسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنْ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ حَمْزَةَ وَسَالِمٍ ابْنَيْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا انَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الشُّؤْمُ فِي الْمَرْاةِ وَالدَّارِ وَالْفَرَسِ

[٤٨٠٦] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مِنْهَالٍ حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ مُحَمَّدٍ الْعَسْقَلَانِيُّ عَنْ ابِيهِ عَنْ ابْنِ عُمَرَ قَالَ ذَكَرُوا الشُّؤْمَ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ انْ كَانَ الشُّؤْمُ فِي شَيْءٍ فَفِي الدَّارِ وَالْمَرْاةِ وَالْفَرَسِ [ر: ١٩٩٣]

[٤٨٠٧] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوسُفَ اخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ ابِي حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ انَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ انْ كَانَ فِي شَيْءٍ فَفِي الْفَرَسِ وَالْمَرْاةِ وَالْمَسْكَنِ [ر: ٢٧٠٣]

[٤٨٠٨] حَدَّثَنَا ادَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ سُلَيْمَانَ التَّيْمِيِّ قَالَ سَمِعْتُ ابَا عُثْمَانَ النَّهْدِيَّ عَنْ اسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا تَرَكْتُ بَعْدِي فِتْنَةً اضَرَّ عَلَى الرِّجَالِ مِنْ النِّسَاءِ

حضرت عبدالله بن عمر ﷺ نه روايت دې چه حضرت رسول كريم ﷺ فرمائيلي دى چه نحوست په ښځه كښې اوكور كښې او آس كښې وى. (١)

په دويم روايت كښې دى چه دحضرت نبى كريم ﷺ په مخكښې دنحوست ذكر اوشو نو حضرت نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چه كه نحوست دې نو په كور كښې دې او په ښځه كښې دې او په آس كښې دې.

په دې رواياتوكښې اشكال كيږى چه دحضرت نبى كريم ﷺ په يو روايت كښې دى چه «لاعدوى ولا طيرة» (٢)

په دې كښې بدشګونئ نه منع فرمائيلې شوې ده ، ښځه ، كوراوآس كښې دننه د شوم داتصور بدفالي او بدشګونى ده. په ظاهره په دواړه قسمه روايتونوكښې تعارض دې.

① امام مالك ﷫ احاديث باب‌په خپله ظاهرى معنى باندې محمول كړې دې . او فرمائيلي ئې دى چه دا احاديث دعام قانون نه مستثنى دى.(٣)

② بعضې حضرات فرمائى چه‌دا احاديث د قران پاك دآيت «مَا أَصَابَ مِن مُّصِيبَةٍ فِي الْأَرْضِ وَلَا فِي أَنفُسِكُمْ إِلَّا فِي كِتَابٍ مِّن قَبْلِ أَن نَّبْرَأَهَا» سره منسوخ دى.(٤)

---

١ ) نقل ا لحافظه ابوذر الهروى عن البخارى ان شوم الفرس اذا كان حزونا وشوم المرأة سوء خلقها وشوم الدار سوء جارها وقال غيره . شوم الفرس ان لا يغزى عليها وشوم ا لمرأة لا تلد وشوم الدار ضيقها وقيل شوم المرأة غلامهرها_ (ارشادلسارى:١١/٣٦٨).

٢ ) صحيح مسلم مع تكملة فتح المهلم . كتاب الطب باب لاعدوى ولا طيرة: ٣٧٠).

٣ ) تكملة ا لمهلم :٤/٣٨٠ كتاب الطب).

٤ ) تكملة فتح الملهم : ٤/٣٨٠ ، كتاب الطب).

③ بعضوحضراتو دا جواب كړې دې چەدا كلام شرط سره دې . لكه څنګه چەپه دې خانې كښې د باب په دويم حديث كښې دى((ان كان الشوم))حرف شرط سره دې اومطلب دادې چه شوم ونحوست كەپه څه څيز كښې كيديشى نو هغه ښځه ، كور او آس كښې كيديشى .(۱)
ليكن‌شوم په څه څيز كښې نه وى ددې وجې په دې دريو څيزونوكښې ددې تصور نشى كيدې.
④ بعضې عالمانو فرمائيلى دى چەپه حقيقت كښې دشوم دوه قسمونه دى. يو شوم په معنى د عدم موافقت او دويم شوم په معنى دنحوست ، حديث باب كښې شوم بمعنى عدم موافقت دې او((لاعدوى ولاطيرة)) كښې شوم دنحوست په معنى كښې دى. په دې صورت كښې به د شوم دار مطلب داوى چەهغه تنګ وى او په هغه خانې كښې ګاونډيانو ښه نه وى يا په هغه خانې كښې آب وهوا خرابه وى ، داشان د شوم مراة مطلب دادې چه دهغه اولادنه وى . ژبه ئې ګز وى ، دعفت اوپاكدامنۍ خيال نه ساتى، او دشوم فرس مطلب دادې چەهغه په جهاد كښې په كار رانشى ،سركشه وى يا ددې قيمت زيات وى. (۲)
امام بخارى رحمه الله دا روايت په دې خانې كښې دحضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه نه نقل كړې دې . امام مسلم رحمه الله دحضرت ابوهريره رضي الله عنه نه نقل كړې دې .امام طحاوى رحمه الله دحضرت عائشه رضى الله عليه نه نقل كړې دې چه كله هغې د حضرت ابوهريره رضي الله عنه دا روايت واوريدو نو خفه شوه او وې فرمائيل چەد احضرت ابوهريره رضي الله عنه تەصحيح ياد نه دې پاتې شوې ، حضرت نبى كريم صلى الله عليه وسلم داشان نه دى فرمائيلى چەپه زمانه دجاهليت كښې په خلقو ښځه ، كور اوآس كښې د بدشګونۍ عقيده لرله . حضرت رسول الله صلى الله عليه وسلم ددې عقيدې ترديد فرمائيلې وو. امام طحاوى رحمه الله خپل رجحان دې طرفته ظاهر كړې دې. (۳)

## ۱۹=بَابُ الْحُرَّةِ تَحْتَ الْعَبْدِ

[۴۸۰۹] (۴) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ رَبِيعَةَ بْنِ اَبِى عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ الْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا قَالَتْ كَانَ فِي بَرِيرَةَ ثَلَاثُ سُنَنٍ عَتَقَتْ فَخُيِّرَتْ وَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْوَلَاءُ لِمَنْ اعْتَقَ وَدَخَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ

---

۱) تكملة فتح الملهم: ۳۸۱/٤، كتاب الطب).
۲) لامع لدرارى: ۲۶۷/۹).
۳) فتح البارى: ۶۲/۶ ، باب الجهاد).
٤) اخرجه مسلم فى العتق : باب : انماالولاء لمن أعتق: رقم: ۱۵۰٤. (سنن) طرائق وأحكام شرعية استفادمنها الناس جميعا (فخيرت) خيرها رسول الله صلى الله عليه وسلم فى البقاء عنه زوجهااوفراقه وفسخ نكاحه (الولاء لمن أعتق) انظر كتاب العتق . (برمة) قدر متخذ من حجر وقيل من غيره (أدم البيت ) ما يوتدم به مما يوجد فى البيت عادة(الم‌ءار البرمة)أى اين الطعام الذى كان يطبخ فيها(هوعليها..)أى هى ملكته بسبب التصدق به عليها ، ونحن نملكه بسبب اهدائها لنامنه وعليه فقد اختلف سبب الملك فاختلف الحكم وجازلنا أكله).

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَبُرْمَةٌ عَلَى النَّارِ فَقُرِّبَ إِلَيْهِ خُبْزٌ وَأُدْمٌ مِنْ أُدْمِ الْبَيْتِ فَقَالَ أَلَمْ أَرَ الْبُرْمَةَ فَقِيلَ لَحْمٌ تُصُدِّقَ بِهِ عَلَى بَرِيرَةَ وَأَنْتَ لَا تَأْكُلُ الصَّدَقَةَ قَالَ هُوَ عَلَيْهَا صَدَقَةٌ وَلَنَا هَدِيَّةٌ [ر: ٤٩٧٥، ٥١١٤]

د امام بخاري رحمه الله مقصد دادي چه د آزادې ښځې غلام سره نکاح جائز ده. دليل کښې هغوی دحضرت بريره عنهما حديث پيش کړی دی. چه دهغې خاوند مغيث غلام وو. اوبريره رضي الله عنها وينخه وه . روستو بيا حضرت بربره ته آزادی ملاؤ شوه او خيار عتق هم ملاؤ شو ، دااختيار ملاويدل ددې خبرې دليل دې چهآزاده ښځه دغلام په نکاح کښې پاتې کيديشي.

ليکن ظاهر دی چه دا استدلال په هغه وخت کښې صحيح او مکمل کيديشي چه کله مخکښې دا ثابت شی چهد حضرت بريره د آزادئ په وخت کښې حضرت مغيث رضي الله عنه غلام وو. او دا قطعی طور باندې ثابتيدلې نشی . ځکه چهپه دې سلسله کښې روايات مختلف دی. بعضو رواياتو نه معلوميږی چهدبريره دآزادئ په وخت کښې حضرت مغيث رضي الله عنه آزاد وو. او دبعضې رواياتو نه معلوميږی چههغه غلام وو. دحضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما او حضرت عائشه رضي الله عنها روايتونه په دې سلسله کښې نقل کيږی . حضرت مغيث رضي الله عنه د بريره د آزادئ په وخت کښې غلام وو.(۱)

البته دحضرت عائشه رضي الله عنها روايت کښې اختلاف دی. بعضو روايتونو نه دبريره د آزادئی په وخت کښې د حضرت مغيث رضي الله عنه غلام کيدل معلوميږی او بعضو نه آزادی. (۲) ګنی د ترجمة الباب دثبوت دپاره به دا روايت نه پيش کولې. دخيارمسئله مخکښې کتاب الطلاق کښې مستقل باب لاندې رازی ، د مذاهب آئمه تفصيل به په هغه ځائې کښې بيانيږی.

دحديث مفهوم دادې چهدحضرت بريره په واقعه کښې شرعی مسئلې دی. ړومبی مسئله داد چه«الولاء لمن اعتق» يعنی حق ولاء دآزاد کننده حق دی ، دوئمه مسئله داده چهخيار عتق يعنی بريره ته دآزادئی نهاختيار ورکړې شوې وو که غواړې نو مغيث سره اوسيږې يا نه . اودريمه مسئله داده چه«هوعليها ولنا هدية» چه حضرت رسول کريم ﷺ کور ته داخل شو . انډئی په اور باندې پرته وه ، حضرت نبی کريم ﷺ لره روټئ او دکور سالن راوړې شو . حضرت نبی کريم ﷺ تپوس اوکړو چهددې څه وجه ده چه په دسترخوان باندې دانډئی سالن په نظرنه راځی نو جواب ورکړې شو چهپه دې کښې دحضرت بريره ورکړې شوې صدقې غوښه ده. اوحضرت نبی کريم ﷺ صدقه نه خوری ، نو په دې باندې حضرت نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چههغه دده دپاره صدقه زمونږ دپاره هديه ده. (نو داشان تبدل ملك نه تبدل عين مسئله هم ددې واقعې نه معلومه شوه).

## ۲۰=بَاب لَا يَتَزَوَّجُ أَكْثَرَ مِنْ أَرْبَعٍ لِقَوْلِهِ تَعَالَى :

﴿ مَثْنَى وَثُلَاثَ وَرُبَاعَ ﴾ (النساء: ۳). وَقَالَ عَلِيُّ بْنُ الْحُسَيْنِ عَلَيْهِمَا السَّلَام يَعْنِي مَثْنَى أَوْ ثُلَاثَ أَوْ رُبَاعَ وَقَوْلُهُ جَلَّ ذِكْرُهُ أُولِي أَجْنِحَةٍ مَثْنَى وَثُلَاثَ وَرُبَاعَ يَعْنِي مَثْنَى أَوْ ثُلَاثَ أَوْ رُبَاعَ.

---

۱ ) فتح الباری: ۵۱/۹ ، کتاب النفقات).

۲ ) ارشاد الساری: ۱۱/۳۷۱).

[۴۸۱۰] حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ اخبَرَنَا عَبدَةُ عَنْ هِشَامٍ عَنْ ابِیهِ عَنْ عَائِشَةَ وَاِنْ خِفْتُمْ اَلَّا تُقْسِطُوا فِی الْیَتَامٰی قَالَتْ الْیَتِیمَةُ تَکُونُ عِنْدَ الرَّجُلِ وَهُوَ وَلِیُّهَا فَیَتَزَوَّجُهَا عَلٰی مَالِهَا وَیُسِیءُ صُحْبَتَهَا وَلَا یَعْدِلُ فِی مَالِهَا فَلْیَتَزَوَّجْ مَا طَابَ لَهُ مِنَ النِّسَاءِ سِوَاهَا مَثْنٰی وَثُلَاثَ وَرُبَاعَ [ر: ۲۳۶۲].

د څلورو نه دزیاتو ښځو سره دنکاح عدم جواز متعلق تفصیل دسوره نساء په تفسیر کښې تیر شوې دې. په هغه ځائې کښې وئیلې شوی وو چه اهل ظاهر او بعضې خارجی دڅلورونه دزیاتو ښځو د جواز قائل دی. علامه عبدالحیٔ لکهنوی رحمة ا لله علیه د شرح وقایه په حاشیه کښې په " عمدة الرعایه " کښې دقاضی شوکانی د طرف نه دڅلورو نه دزیاتو ښځو سره دنکاح دجواز قول منسوب کړې دې او لیکلی ئې دی چه «وقد زاد بعضهم أفاضل الیمن وهو محمد بن علی الشوکانی نغمة فی الطنبور، فأباح نکاح النساء من غیر حصر» . (۱) خو حقیقت دادی چه علامه شوکانی طرفته دا نسبت کول درست نه دی. ځکه چه هغوی په «نیل الاوطار» کښې په دې مسئله باندې بحث کړې دې. او صفائی سره ئې لیکلی دی چه دقران پاک په آیت باندې اګر چه دڅلورو نه زیاتو ښځو سره دنکاح په جواز باندې استدلال کولې شی لیکن دحضرت رسول کریم ﷺ احادیث او اجماع امت د څلورو نه زیاتو ښځو سره دنکاح اجازت ندې ورکړې ، ددې وجې دڅلورو نه زیاتو ښځو سره نکاح کول جائز نه دی. (۲)

## ۲۱=بَاب

﴿وَأُمَّهَاتُکُمُ اللَّاتِی أَرْضَعْنَکُمْ (النساء: ۲۳). وَیَحْرُمُ مِنَ الرَّضَاعَةِ مَا یَحْرُمُ مِنَ النَّسَبِ﴾

امام بخاری رحمه الله په دې ځائې کښې درضاعت مسائل بیان فرمائی . په بعضو نسخو کښې په دې ځائې کښې د «کتاب الرضاع» عنوان هم قائم کړې شوې دې . (۳) «رضاعت» د راء په کسره او فتحه د دواړو رنګه لوستلې کیږی (۴)

په لغت کښې د «رضاعت» معنی رازی «مص الصبی اللبن من الثدی» یعنی د سینو نه دبچی پیٔ رودل او په اصطلاح کښې «رضاعت» وائی «مص الصبی لبن المرأة فی مدة مخصوصة» (۵)

**قوله:** یحرم من الرضاعة ما یحرم من النسب: یعنی نسب چه په کوم ځائې کښې دحرمت باعث دې نو په هغه ځائې کښې رضاعت هم حرمت هم پیدا کوی. بعض حضرات

۱) حاشیه عمده الرعایه : ۱۷/۲: کتاب النکاح).
۲) نیل الاوطار: ۱۷۰/۶، باب العدد المباح للحر والعبد ، کتاب النکاح).
۳) ارشاد الساری: ۳۷۴/۱۱).
٤) تعلیقات هدایه للشیخ عبدالحی اللکنوی :۳۲۰/۲، کتاب الرضاع ، وارشادالساری: ۳۷۴/۱۱).
۵) وفی الشریعة عبارة عن مص مخصوص ، وهو ان یکون صبیا رضیعا ، من ثدی مخصوص ، وهو ثدی الادمیة .. فی وقت مخصوص (کذافی حاشیة الهدایة:۳۲۰/۲).

دې قاعدې کليې څخه استثنائي صورتونه هم راويستلي دي . حافظ ابن حجر رحمه الله څلور صورتونه مستثنی کړي او هغه ليکي:

«اربع نسوة يحرمن في النسب مطلقا وفي الرضاع قد لا يحرمن الاولى ، أم الاخ في النسب حرام لأنها اما أم او زوج أب وفي الرضاع قد تكون اجنبية فترضع الأخ فلا تحرم على اخيه الثانية أم الحفيد حرام في النسب لأنها اما بنت او زوج ابن ، وفي الرضاع قد تكون اجنبية فترضع الحفيد فلا تحرم على جده الثالثة جدة الولد في النسب حرام لأنها اما أم أو أم زوجة وفي الرضاع قد تكون اجنبية أرضعت الولد فيجوز لوالده أن يتزوجها الرابعة أخت الولد حرام في النسب لأنها بنت أو ربيبة وفي الرضاع قد تكون أجنبية فترضع الولد فلا تحرم على الولد وهذه القصور الاربع اقتصر عليها جماعة ولم يتشن الجمهور شيئا» (۱)

حافظ ابن حجر رحمه الله دا څلور صورتونه ذکرفرمائيلي دي. علامه ابن نجيم دکنز په شرح کښې يو اتيا (۸۱) صورتونه بيان کړي دي. (۲) حقيقت دادې چه دا استثنائي صورتونه مستثنی منقطع نه قبيل نه دي . وجه دا ده چه حرمت رضاعت په هغه وخت کښې ثابتيږي کله چه درضاعت رشته هم په دې حيثيت سره اوموندې شي. چه په کوم وخت کښې هغه په نسب کښې حرام وي. دحيثيت په بدليدو صورتونو کښې حرمت نه پاتې کيږي ، فقهاء کرام چه استثنائي صورتونه بيان کړي دي ، په هغې کښې دحرمت نه کيدو وجه دا ده چه په هغې کښې حيثيت بدل شوې دې.

دې نه پس دې دا خبره په ذهن کښې وي چه مرضعه طرفته خرمت عام وي. يعنی رضيع باندې مرضعه هم حرام ، ددې خاوند هم ، ددې اصول وفروع هم اوداشان ددې دخاوند اصول وفروع هم ټول حرام دي. او درضيع دطرفنه چه کوم حرمت وي هغه صرف فروع دپاره دی ددې داصول دپاره نه دی. (۳)

[۴۸۱۱] حَدَّثَنَا اسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنْ عَبْدِاللّٰهِ بْنِ ابِي بَكْرٍ عَنْ عَمْرَةَ بِنْتِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ انَّ عَائِشَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اخْبَرَتْهَا انَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ عِنْدَهَا وَانَّهَا سَمِعَتْ صَوْتَ رَجُلٍ يَسْتَاذِنُ فِي بَيْتِ حَفْصَةَ قَالَتْ فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ هٰذَا رَجُلٌ يَسْتَاذِنُ فِي بَيْتِكَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اُرَاهُ فُلَانًا لِعَمِّ حَفْصَةَ مِنَ الرَّضَاعَةِ قَالَتْ عَائِشَةُ لَوْكَانَ فُلَانٌ حَيًّا لِعَمِّهَا مِنَ الرَّضَاعَةِ دَخَلَ عَلَيَّ فَقَالَ نَعَمْ الرَّضَاعَةُ تُحَرِّمُ مَا تُحَرِّمُ الْوِلَادَةُ [ر: ۲۵۰۳].

**قوله:** لَوْكَانَ فُلَانٌ حَيًّا لِعَمِّهَا مِنَ الرَّضَاعَةِ دَخَلَ عَلَيَّ: په دې کښې اشکال دادی چه مخکښې په باب لبن الفحل کښې روايت کښې رازی ، په هغې کښې دحضرت

---

۱ ) فتح الباري : ۱۷۶/۹).
۲ ) اوګورئ البحر الرائق: ۲۳۳/۳ ، کتاب الرضاع).
۳ ) ارشاد الساري: ۳۷۵/۱۱).

عائشه رضي الله عنها رضاعى تره حضرت افلح حضرت عائشه رضي الله عنها كره دراتلو اجازت اوغوښتلو ، دحجاب نزول شوې وو ، حضرت عائشه رضي الله عنها انكار اوكړو اوكور ته ئې ورته دراتګ اجازت ورنكړو ، هركله چه حضور نبى كريم ﷺ تشريف راوړونو حضرت عائشه رضي الله عنها ورته د افلح دراتګ ذكر اوفرمائيلو نو حضرت نبى كريم ﷺ ورته اوفرمائيل چه هغه ته اجازت وركړه ، نو هغې ورته دراتګ اجازت وركړو. نودې راتلونكى روايت نه معلوميږى چه دحضرت عائشه رضي الله عنها تره ژوندې وو ، او روايت باب نه معلوميږى چه هغه فوت شوې وو . په دواړو روايتونو كښې په ظاهره تعارض معلوميږى .

ابوالحسن تابعى نه چه كله ددې تعارض متعلق تپوس اوكړې شو نو هغوى اوفرمائيل چه دراصل دحضرت عائشه رضي الله عنها دوه رضاعى ترونه وو ، يو دحضرت صديق اكبر رضي الله عنه رضاعى رور وو او دهغه انتقال شوې وو ، په دې ځائې حديث باب كښې د هغه ذكر دې ، اودويم تره ئې دحضرت عائشه رضي الله عنها درضاعى پلار نسبى رور وو ، چه دهغه نوم افلح وو ، په راتلونكى روايت كښې د هغه ذكر دې. خودواړه بيل بيل واقعات دى. (۱)

دحضرت افلح ر اتګ نه مخكښې حضرت عائشه رضي الله عنها انكار ولې اوكړو؟ كه د افلح د راتګ واقعه د حضرت حفصه رضي الله عنها د حديث باب والا واقعې نه مخكښې وى نو انكار معقول دې ، اوكه ددې نه پس وى نو بيا د انكار وجه دا كيديشى چه حضرت عائشه رضي الله عنها پوهيدله چه اجازت ددې د تره دپاره دې چه دحضرت حفصه رضي الله عنها دتره پشان وو او دحضرت حفصه رضي الله عنها تره دهغې دنسبى دپلار رضاعى رور وو. حالانكه حضرت افلح دحضرت عائشه رضي الله عنها درضاعى پلار نسبى رور وو. نو اګر چه حضرت عائشه رضي الله عنها ته دحضرت حفصه رضي الله عنها دواقعې نه دنسبى پلار رضاعى رور حكم معلوم شوې وو خو بيا هم دې ته د رضاعى پلار دنسبى رور حكم اوسه پورې معلوم نه وو ، ځكه حضرت نبى كريم ﷺ دمعلوملو نه پس هغه ته دراتګ اجازت وركړو.

او دا هم ممكن دى چه حضرت عائشه رضي الله عنها دا ګڼړى چه اوس هغه حكم باقى پاتې نشو ، چه دحضرت حفصه رضي الله عنها قصه كښې درضاعى تره دپاره اجازت وو.

اوداهم ممكن دى چه حضرت حفصه رضي الله عنها دډيرې مودې تيريدو په وجه حضرت حفصه رضي الله عنها والا واقعه ياده نه وى. (۲)

[۴۸۱۲] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ شُعْبَةَ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ جَابِرِ بْنِ زَيْدٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قِيلَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَلَا تَتَزَوَّجُ ابْنَةَ حَمْزَةَ قَالَ إِنَّهَا ابْنَةُ أَخِي مِنَ الرَّضَاعَةِ

دجابر بن زيد كنيت ابوالشعثاء دې ، دې بصرى دې ، او دنوم نه زيات په كنيت سره مشهور دې. (۳)

---

۱) فتح البارى: ۹/۱۷٤).

۲) مذكوره تفصيل دپاره اوګورئ فتح البارى :۹/۱۷۵).

۳) عمده القارى: ۲۰/۹۲).

**قوله:** قِيلَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: دمسلم په روايت كښې تصريح ده چه حضرت نبى كريم ﷺ ته دا خبره كوونكې حضرت على ﷺ وو. (١) هغوى حضرت نبى كريم ﷺ ته اووئيل چه تاسو دحضرت حمزه ﷺ لور سره واده ولې نه كوئى ؟حضرت نبى كريم ﷺاوفرمائيل چه هغه ځما د رضاعى رور لورده . يعنى ځما رضاعى وريره ده. (ددې وجې هغې سره ځما نكاح شرعى لحاظ سره صحيح نه ده).

حضرت على ﷺ ته غالبًا دامعلوم نه وو چه حضرت حمزه ﷺ دحضرت نبى كريم ﷺ رضاعى رور وو. اودا هم كيديشى چه هغوى ته معلوم وو خو دحضرت نبى كريم ﷺ دپاره نې د اخصوصيت پهذهن كښې وى. (٢)

دحضرت حمزه ﷺ ددې لور دنوم متعلق مختلف اقوال بيان شوى دى. حافظ ابن حجر ﷺ اووه اقوال ذكر كړى دى. ①امامه②عماره③ سلمى ④ عائشه ⑤ فاطمه ⑥ امة الله ⑦ يعلى. (٣)

**قوله:** بِشْرُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ سَمِعْتُ قَتَادَةَ سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ زَيْدٍ مِثْلَهُ: [٢٥٠٢]:

داتعليق دې . دمخكښې حديث په سند كښې عتغنه دې، «عن قتادة عن جابر بن زيد» قتاده بن زيد دعامه چونكه مدلس دى ددې وجې امام بخارى ﷺ دا تعليق فرمائيلې دې ،په دې كښې تحديث تصريح دې ، علامه عينى ﷺ ليكى:

«وهذا تعليق ، رواه مسلم عن محمد بن يحيى عنه ، وفائدته عند البخارى لبيان سماع قتادة عن جابر بن زيد لانه مدلس» (٤)

[٤٨١٣] حَدَّثَنَا الْحَكَمُ بْنُ نَافِعٍ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ (٥) قَالَ أَخْبَرَنِي عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ أَنَّ زَيْنَبَ بِنْتَ أَبِي سَلَمَةَ أَخْبَرَتْهُ أَنَّ أُمَّ حَبِيبَةَ بِنْتَ أَبِي سُفْيَانَ أَخْبَرَتْهَا أَنَّهَا قَالَتْ يَا رَسُولَ اللَّهِ انْكِحْ أُخْتِي بِنْتَ أَبِي سُفْيَانَ فَقَالَ أَوَتُحِبِّينَ ذَلِكِ فَقُلْتُ نَعَمْ لَسْتُ لَكَ بِمُخْلِيَةٍ وَأَحَبُّ مَنْ

---

١ ) فتح البارى: ١٧٦/٩).

٢ ) ارشادالسارى: ٣٧٥/١١).

٣ ) فتح البارى: ١٧٦/٩).

٤ ) عمده القارى: ٩٣/٢٠).

٥ ) واخرجه البخارى ايضا فى باب : (وربائبكم اللاتى فى حجوركم) رقم الحديث : ٤٩٠٠ . وباب (وان تجمعوابين الاختين الا ما قد سلف) رقم الحديث : ٤٩٠١ . وباب عرض الانسان ابنته اواخته على اهل الخير . رقم الحديث ٤٩١٦ . و فى كتاب النفقات . باب المراضع من المواليات وغيرهن . رقم الحديث : ٥٣٧٣. واخرجه مسلم فى كتاب الرضاع . باب تحريم الربيبة واخت المراة رقم الحديث : ١٤٤٩ . والنسائى فى كتاب النكاح باب تحريم الربيبة التى فى حجرة تحريم الجمع بين الام والبنت . رقم الحديث ٥٤١٥ و ٥٤١٦ . وابن ماجه فى كتاب النكاح باب يحرم من الرضاع مايحرم من النسب . رقم الحديث : ١٩٣٩ . وابوداود فى كتاب ا لنكاح باب ما يحرم من الرضاعة ما يحرم من النسب رقم الحديث : ٢٠٥٦).

شَارَكَنِي فِي خَيْرٍ أُخْتِي فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ ذَلِكِ لَا يَحِلُّ لِي قُلْتُ فَإِنَّا نُحَدَّثُ أَنَّكَ تُرِيدُ أَنْ تَنْكِحَ بِنْتَ أَبِي سَلَمَةَ قَالَ بِنْتَ أُمِّ سَلَمَةَ قُلْتُ نَعَمْ فَقَالَ لَوْ أَنَّهَا لَمْ تَكُنْ رَبِيبَتِي فِي حَجْرِي مَا حَلَّتْ لِي إِنَّهَا لَابْنَةُ أَخِي مِنَ الرَّضَاعَةِ أَرْضَعَتْنِي وَأَبَا سَلَمَةَ ثُوَيْبَةُ فَلَا تَعْرِضْنَ عَلَيَّ بَنَاتِكُنَّ وَلَا أَخَوَاتِكُنَّ قَالَ عُرْوَةُ وَثُوَيْبَةُ مَوْلَاةٌ لِأَبِي لَهَبٍ كَانَ أَبُو لَهَبٍ أَعْتَقَهَا فَأَرْضَعَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا مَاتَ أَبُو لَهَبٍ أُرِيَهُ بَعْضُ أَهْلِهِ بِشَرِّ حِيبَةٍ قَالَ لَهُ مَاذَا لَقِيتَ قَالَ أَبُو لَهَبٍ لَمْ أَلْقَ بَعْدَكُمْ غَيْرَ أَنِّي سُقِيتُ فِي هَذِهِ بِعَتَاقَتِي ثُوَيْبَةَ
[۵۰۵۷، ۴۸۳۱، ۴۸۱۸، ۴۸۱۷].

حضرت ام حبيبه رضي الله عنها نه روايت دې چه هغې حضرت نبى كريم ﷺ ته اووئيل چه يارسول الله ﷺ !تاسو خما خور دختر ابو سفيان سره واده اوكړئى ، حضرت نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چه آيا ستا دا خوښه ده ؟(يعنى ته په بن باندې بد نه ګنړې)،ما اووئيل چه اوس هم خه ستاسو يو ښخه نه يم ، ددې وجې خه خپله خور ستاسو دذات دښيګړې دپاره شريكول غواړم ،په دې باندې حضرت نبى كريم ﷺاوفرمائيل چه‌هغه مالره جائز نه ده(يعنى د دوؤ خويندو نكاح يو سره كول جائز نه دى)په دې باندې ما اووئيل چه مونږ آوريدلى دى چه تاسو دام سلمى لور سره نكاح كول غواړئى ، حضرت نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چه د ام سلمى لور سره ؟ما اووئيل چه آو جى ،حضرت نبى كريم ﷺ اوفرمائيل كه هغه خما ربيبه نه وې نو بيا به هم خمادپاره حلاله نه وه خكه چه‌هغه خما رضاعى وريره ده،ماته او ابوسلمه ته يو ثوبيه نومې ښخې پئ راكړى وو.(مطلب دادې چه هغه خما ربيبه ده‌اوربيبه سره نكاح كول صحيح نه دى ، ليكن كه ربيبه‌هم نه وى نو بيا هم هغه خما دپاره حلاله نه وه ، خكه چه هغه خما رضاعى وريره ده ،نو په دې وجه په دې كښې دوه حرمتونه جمع شوى دى.

①ربيبه كيدل② او رضاعى وريره ) نو تاسوماته خپلې خويند او لونړه مه پيش كوئى.

عروه وائى چه ثوبيه دابولهب وينخه وه ، ابولهب هغه آزاده كړې وه ، او بيا هغې حضرت رسول كريم ﷺ ته‌پئ وركړى وو. هركله چه ابولهب مړ شونو دهغه دكور والو نه هغه په خوب كښې اوليدوچه ډير په خراب حالت كښې دې‌اوتپوس ئې ترې اوكړوچه خه معامله ده ؟هغه جواب وركړو چه كله ستانه جداشوې يم نو ډيرسخت عذاب كښې يم،البته دثوبيه دآزادولو په وجه لږې شان اوبه راته ملاويږى.

دا حديث امام بخارى رحمه الله په دې‌خائې كښې په ړومبى خل ذكر فرمائيلې دې . ددې نه مخكښې په بخارى كښې نه دې تير شوې.

**قوله:** أَنْكِحْ أُخْتِي بِنْتَ أَبِي سُفْيَانَ: دحضرت ابوسفيان‌ددې لور نوم‌خه ووچه كومې سره دنكاح كولو دپاره حضرت ام حبيبه رضي الله عنها حضرت نبى كريم ﷺ ته‌وئيلى وو ، په دې سلسله كښې روايات مختلف دى.د صحيح مسلم او نسائى په روايت كښې ددې نوم" عزه " راغلې دې ، د طبرانى په روايت كښې " حمنه" دې او بعضو روايتونوكښې" درة " دې ليكن مشهور " عزة " دې . (۱)

۱) فتح البارى: ۱۷۸/۹).

**قوله:** لَسْتُ لَكَ بِمُخْلِيَةٍ: «مخليه» دا اخلاء باب افعال نه دې داسم فاعل مونث صيغه ده يعنى څه ستا يوازې او بنې نه خالى بى بى نه يم ،بنې خو هسې هم ماسره دى نو خما خور به هم په دوى کښې شريکه شى.

**قوله:** فَإِنَّا نُحَدَّثُ أَنَّكَ تُرِيدُ أَنْ تَنْكِحَ بِنْتَ أَبِي سَلَمَةَ: «نحدث»دا باب تفعيل نه دجمع متکلم مجهول صيغه ده ، يعنى مونږ ته دا خبره خودلې شوې ده .د ابو سلمه ددې لور نوم دطبرانى په روايت کښې " دره " راغلې دې ، اودابو داود روايت کښې " دره " او" ذره "شك سره وارد شوې دې . (١)

په دې ځائې کښې شك کيږى چه حضرت ام حبيبه رضي الله عنها دحضرت نبى کريم ﷺ نه دا سوال ولې کړې وو حالانکه په قران مجيد کښې «وَرَبَآئِبُكُمُ الَّتِي فِي حُجُورِكُمْ» وارد شوى دى ، حافظ ابن حجر ددې په جواب کښې ليکى :

وكان ام حبيبه لم تطلع على تحريم ذالك ، اما لان ذالك قبل نزول اٰية التحريم واما بعد ذالك و ظنت انه من خصائص النبى ﷺ (٢)

**قوله:** وَثُوَيْبَةُ مَوْلَاةٌ لِأَبِي لَهَبٍ: ثويبه دحضرت نبى کريم ﷺ رضاعى مور وه ،او دابو لهب وينځه وه، د هغې خونې مسروح وو . ده سره حضرت نبى کريم ﷺ دهغې پئ رودلى وو ، دا دهغه وخت خبره ده چه کله حضرت نبى کريم ﷺ حليمه سره نه وو ، ثويبه حضرت حمزه رضي الله عنه او حضرت ابو سلمه ته پئ ورکړى وى. چه ددې په وجه د حضرت نبى کريم ﷺ رضاعى رور شو.

دثويبه داسلام متعلق اختلاف دې ، ابن منده په صحابه کرام رضي الله عنهم کښې ددې ذکر کړې دې ، ابو نعيم فرمائيلى دى چه ابن منده نه علاوه چا هم ددې داسلام ذکر نه دې کړې ، (٣)حافظ ابن حجر رحمه الله هم په " الاصابة " کښې ددې ذکر په صحابه کرام رضي الله عنهم کښې کړې دې. (۴)

حضرت نبى کريم ﷺ به ددې ډير زيات احترام کولو ،او مدينې منورې ته دهجرت کولو نه پس به دې لره مکې معظمې ته هديې ليږلې. ددې وفات په کال ٩ هجرئى کښې د غزوه خيبر نه پس شوې دې . (۵)

**قوله:** وَكَانَ أَبُو لَهَبٍ أَعْتَقَهَا فَأَرْضَعَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ددې جملې نه معلوميږى چه ابو لهب مخکښې ثويبه ازاده کړې وه ، اودې نه پس ئې حضرت نبى کريم ﷺ ته پئ ورکړى وو . ليکن دسيرت په کتابونو کښې ددې خلاف دى ، البته علامه سهيلى

---

١ ) فتح البارى: ١٧٨/٩).
٢ ) فتح البارى : ١٧٨/٩).
٣ ) فتح البارى : ١٨٠/٩ . وعمده القارى: ٩٣/٢٠).
٤ ) الاصابه فى تميز ا لصحابه: ٢٥٨/٤).
٥ ) عمده القارى: ٩٣/٢٠ . والاصابه : ٢٥٨/٤).

نقل کړې دی چه دې عتاق رضاع نه مخکښې وو. (۱)

**قوله:** أُرِيَهُ بَعْضُ أَهْلِهِ بِشَرِّ حِيبَةٍ: «اری» دا د مجهول صیغه ده . او متعدی دوه مفعول دی «أی رأی أبالهب بعض أهله فی المنام» په دې ځائې کښې دروئیت نه مراد منام دې «حیبة» (د حاء په کسره او د یاء په سکون سره)، حالت ، حاجت ، مسکنت ، ته وئیلې شی. «بات الرجل بحیبة سوء» یعنی سړی په خراب حالت کښې شپه تیره کړه. دبغوی شرح" شرح السنه " کښې د حاء فتحه سره «حیبة» دې. او د مستملی په نسخه کښې «بخیبة» د خا معجمه سره دې ، «أی فی حالة خائبة من کل خیر» (۲)

د مرګ نه پس ابولهب چا په خوب کښې لیدلې وو؟ علامه سهیلی رحمه الله نقل کړی دی چه حضرت عباس رضی الله عنه دا خوب کتلې وو ،چنانچه علامه سهیلی رحمة الله علیه فرمائی چه :

ان العباس قال : لما مات ابولهب رایته فی منامی بعد حول فی شر حال : فقال مالقیت بعدکم راحة الا ان العذاب یخفف عنی کل یوم اثنین قال وذالك ان النبی ﷺ ولد یوم الاثنین وکانت ثویبة بشرت اباللهب بمولده فاعتقها.(۳)

**قوله:** لَمْ أَلْقَ بَعْدَكُمْ غَيْرَ أَنِّي : په روایت کښې د «لم الق» مفعول به ذکر نه دې کړې شوې ، ابن بطال فرمائیلی دی چه دبخاری په روایت کښې مفعول به نه دې ذکر شوې حالانکه دې نه بغیر معنی درست نه ده، د اسماعیل په روایت کښې دی چه «لم الق بعدکم رخاء» او د عبدالرزاق په روایت کښې دی چه «لم الق بعدکم راحة» یعنی ستا نه پس مې هیڅ راحت اونه موندو.(۴) او د قسطلانی په نسخه کښې «لم الق بعدکم خیرا» دی. (۵)

**قوله:** غَيْرَ أَنِّي سُقِيتُ فِي هَذِهِ بِعَتَاقَتِي ثُوَيْبَةَ: «سقیت» دا دباب ضرب واحد متکلم مجهول صیغه ده ،د «فی هذه» مشار الیه په دې ځائې کښې روایت کښې ذکر نه ده ، د عبدالرزاق په روایت کښې دی چه «وأشار الی النقرة بین الابهام والتی تلیها من الاصابع»(۶) د دې روایتونو نه معلوم شو چه د «هذه» مشار الیه «نقرة» ده یعنی ابهام او د شهادت د ګوتې په مینځ کښې چه کوم وړوکې شان کنده وی د هغې طرفته اشاره وه ، مطلب دا دې چه د دې

۱) فتح الباری: ۱۸۰/۹).
۲) اوګورئ تفصیل دپاره عمده القاری: ۹٤/۲۰).
۳) فتح الباری: ۱۸۰/۹).
٤) فتح الباری: ۱۸۰/۹).
۵) ارشادالساری: ۳۷۶/۱۱).
۶) عمده القاری: ۹٤/۲۰).

دواړوګوتو په مينځ كښې چه كوم معمولى شان ځائې خالى دې په دومره مقدار كښې مائع لږې شان اوبه راكولې شى ، اوددې وجه داده چه ما ثويبه آزاده كړې وه . ابولهب ثويبه د شهادت دګوتې په اشارې سره آزاده كړې وه ، ددې وجې الله ﷻ ورته ددې په بدله كښې ددې د ګوتې د دمينځ ځائې په برابر اوبه وركوى او ورته راحت رسوى.

**يو اشكال او دهغې جواب** : دحديث نه معلوميږى چه په آخرت كښې به كافرانو ته هم دهغوى نيك عمل فائده وركوى ، حالانكه په قران پاك كښې دى چه ﴿وَقَدِمْنَآ اِلٰى مَا عَمِلُوْا مِنْ عَمَلٍ فَجَعَلْنٰهُ هَبَآءً مَّنْثُوْرًا﴾ ددې آيت كريمه نه معلوميږى چه كفارو ته دهغوى عمل په آخرت كښې فائده نه وركوى ، په ظاهره په دواړو كښې تعارض دې.

① ددې جواب يو دا وركړې شو چه په روايت كښې دى چه د((غيراني سقيت)) داحصه حضرت عروه نه مرسلًا نقل شوې ده ، موصولاً نه ده ، لهذا ددې اعتبار نشته دې ، او صحيح خبره هغه ده په كومه باندې دقران پاك آيت دلالت كوى چه كفارو ته به دهغوى نيك اعمال هيڅ فائده نه وركوى . (۱)

② اوكه دا موصول هم تسليم كړې شى نو بيا هم دا خوب دې حجت نه دې (۲)

③ او دې لره خصوصيت هم ګروزلې شى ځكه چه ددې واقعې تعلق دحضرت نبى كريم ﷺ سره وو ، چه ددې په وجه ابولهب سره دا خصوصى رعايت اوكړې شو ، علامه قرطبى رحمه الله فرمائى چه :((هذا التخفيف خاص بهذا وبمن ورد النص فيه)) (۳)

## ۲۲=بَابُ مَنْ قَالَ لَا رَضَاعَ بَعْدَ حَوْلَيْنِ لِقَوْلِهِ تَعَالٰى :

﴿حَوْلَيْنِ كَامِلَيْنِ لِمَنْ اَرَادَ اَنْ يُّتِمَّ الرَّضَاعَةَ (البقرة: ۲۳۳) وَمَا يُحَرِّمُ مِنْ قَلِيلِ الرَّضَاعِ وَكَثِيرِهِ﴾.

امام بخارى رحمه الله په دې باب كښې دوه مسئلې بيان كړى دى ① رومبئ مسئله دمودې درضاعت ده ، دجمهورو عالمانو په نيز درضاعت موده دوه كاله ده ، دامام مالك رحمه الله ، امام شافعي رحمه الله ، امام احمد رحمه الله ، امام ابويوسف رحمه الله او امام محمد رحمه الله مسلك هم دا دې.(۴)

امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائى چه درضاعت موده ديرش مياشتې (دوه نيم ) كاله ده. (۵)

امام بخارى رحمه الله دجمهورو عالمانو تائيد كوى ، دليل كښې هغوى دقران پاك دا آيت پيش كوى چه ﴿وَالْوَالِدٰتُ يُرْضِعْنَ اَوْلَادَهُنَّ حَوْلَيْنِ كَامِلَيْنِ﴾ په آيت مبارك كښې د رضاعت موده دوه كاله خودلې شوې ده.

---

۱ ) عمده القارى: ۹۵/۲۰ . وفتح البارى: ۱۸۱/۹).
۲ ) عمدة القارى: ۹۵/۲۰).
۳ ) فتح البارى: ۱۸۱/۹).
٤ ) الهدايه : ۳۲۰/۲، كتاب الرضاع).
۵ ) الهدايه: ۳۲۰/۲ ، كتاب الرضاع).



امام ابوحنیفه رحمه الله استدلال دقران پاك دبل آیت نه دې ، چه په هغې کښې دی چه ﴿وَحَمْلُهُ وَفِصٰلُهُ ثَلٰثُوْنَ شَهْرًا﴾ په دې کښې مدت دحمل اومدت درضاعت دواړو دپاره دیرش میاشتې یعنی دوه‌نیم کاله‌موده ذکر شوې ده.

البته په دې باندې اشکال کیږی چه دحمل موده خو بالاتفاق دوه کاله ده. اود امام ابوحنیفه رحمة الله علیه د استدلال نه معلومیږی چه موده د حمل دوه نیم کاله ده.

صاحب هدایه ددې جواب ورکړې دې چه‌په آیت کریمه کښې اګر چه موده دحمل‌اوموده د رضاعت دواړو دپاره دوه نیمه کاله موده بیان شوې‌ده ، البته‌په موده دحمل کښې دحضرت عائشه رضي الله عنها دیوحدیث په وجه شپږ میاشتې کمې کړې شوې دی .«لایکون الحمل اکثرمن سنتین قدرمایتحول ظل المغزل» (۱) یعنی بچې دوه کاله پس دمور خیټه کښې د چرخې د تار د چکر برابر هم نه پاتې کیږی ددې حدیث په وجه موده دحمل کښې شپږ میاشتې کمې اوکړې شو. (۲)

خو په دې باندې اشکال کیږی دحضرات حنفیه په نیزخو داخبار آحاد په وجه‌دقران پاك‌آیت کښې نسخ نشته دې. دحضرت عائشه رضي الله عنها مذکوره حدیث خو موقوف دې، ددې وجې نه‌دا به نسخ څنګه وی. هم په دې وجه حضرت مولانا حضرت انور شان کشمیری رحمه الله فرمائی چه «ماأجاب به صاحب الهدایة ههنا فهو رکیك جدا»(۳) ځکه چه دحضرت عائشه رضي الله عنها نه دآیت منسوخ کیدل لازم رازی چه جائزنه دی.

په دې ځائې کښې شك کول نه دی پکار چه دحضرت عائشه رضي الله عنها اثر ناسخ نه دې بلکه مخصوص دې. ځکه چه‌تخصیص عام وی جبکه آیت کښې دعدد‌ذکر دې ، چه خاص قبیل دې. ددې وجې په دې صورت کښې‌اثر ناسخ به وی مخصوص به نه وی.(۴)

علامه نسفی رحمه الله یو خبرخ ښه کړې ده او هغه دا چه آیت کریمه کښې دحمل نه«حمل فی البطن» مراد نه دې بلکه«حمل فی الایدی» مراد دې. د آیت مطلب به په دې صورت کښې دا وی چه په دوه نیم کاله موده کښې بچی لره په غیږ کښې‌اخستې شی ، په لاسونو کښې اوچتولې شی اوده لره دپئیو نه خلاصولې شی. (۵)

خو په دې کښې هیڅ شك نشته دې چه دجمهورومذهب راجح او ددوی دلائل قوی دی ،دحنفیه په نیز هم فتوی دصاحبینو په دلائلو باندې ده او درضاعت موده دوه کاله ده ، خو که یو بچی دوه کاله پس نور د دوه نیمو کالو موده کښې دننه پئ اورودل نو په هغه وخت به حرمت رضاعت احتیاطاً تسلیمولې شی.

---

۱) اوګورئ سنن دار قطنی :۴۲۲/۳ ، باب المهر و سنن کبری للبیهقی : ۴۴۳/۷ ، باب ماجاء فی اکثر الحمل).
۲) اوګورئ الهدایه : ۳۲۰/۲ ، کتاب الرضاع).
۳) فیض الباری: ۴) .
۴) فیض الباری : ۴).
۵) تفسیر مدارک: ۲۵/۵).

**قوله:** وما يحرم من قليل الرضاع وكثيره: په دې ځائې كښې امام بخارى رحمه الله دريمه مسئله بيان فرمائي او هغه دا چه حرمت درضاعت په څومره مقدار كښې دپئيو څكلو نه به ثابت وى ، په دې سلسله كښې څلور مذهبونه مشهور دى.

① رومبې مذهب دادې چه رضاعت قليل وى اوكه كثير، نو په دې سره به حرمت د رضاعت ثابت وى. دحضرات حنفيه ، امام مالك رحمه الله ، سفيان ثورى رحمه الله ، امام اوزاعى رحمه الله ، سعيد بن المسيب رحمه الله اود حضرت حسن بصرى رحمه الله هم دا مسلك دې. امام احمد رحمه الله مشهور روايت هم ددې مطابق دې (١)

② دويم مسلك دادې چه حرمت رضاعت كم از كم د درې رضعات نه ثابتيږى. ددې نه كم نه، د دوادظاهرى رحمه الله ، ابن المنذر رحمه الله ، اسحاق بن راهويه رحمه الله هم دا مذهب دې ، او دامام احمد رحمه الله هم يو روايت ددې مطابق دې (٢)

③ دريم مذهب دادې چه د پنځو رضعاتونه به حرمت درضاعت ثابت وى ، ددې نه اقل كښې حرمت درضاعت به ثابت نه وى، دا پنځه راضعات هم متفرق اوقاتو كښې پكار دى. د امام شافعى رحمه الله هم دا مسلك دې،اوامام احمد رحمه الله يو روايت هم ددې مطابق دې،(٣)

④ څلورم مسلك دادې چه دلسو رضاعتو نه به كم كښې حرمت درضاعت ثابت نه وى، د حضرت حفصه رضي الله عنها هم دامسلك دې،اودحضرت عائشه رضي الله عنها نه هم داروايت شوې دې،(٤) حضرت عائشه رضي الله عنها نه لس ، اووه او پنځه رضاعات مختلف روايات منقول دى. (٥)

چه كوم خلق وائى چه درې رضاعات به محرم وى نوهغوى دصحيح مسلم روايت ((لاتحرم المصة ولا المصتان ولا الاملاجة ولا الاملاجتان)) (٦) ددې نه استدلال كوى.

چه څوك خمس رضاعات لره محرم ګنړى ، هغوى دحضرت عائشه رضي الله عنها روايت نه استدلال كوى چه په هغې كښې دى چه ((انزل فى القران عشر رضعات معلومات فنسخ من ذالك خمس وصار الى خمس رضعات معلومات فتوفى رسول الله ﷺ والامر على ذالك)).

دا دترمذى روايت الفاظ دى. او دصحيح مسلم په روايت كښې دى چه ((كان فيما انزل من القرآن عشر رضعات معلومات يحرمن ثم نسخن بخمس معلومات فتوفى رسول الله ﷺ وهى فى مايقرا من القرآن)) (٧)

---

١ ) عمده القارى: ٢٠/٩٦).
٢ ) عمدة القارى: ٢٠/٩٦).
٣ ) فتح القدير: ٣/٣٠٥).
٤ ) اوګورئ موطا امام مالك : ٥٣٦ . باب رضاعه الصغير).
٥ ) عمده القارى: ٢٠/٩٦)
٦ ) صحيح مسلم . كتاب الرضاع: ٢٠/٩٦) .
٧ ) سنن الترمذى.كتاب الرضاع ،باب ماجاء لاتحرم المصة ولاالمصتان : ٣/٤٥٦ . صحيح مسلم . كتاب الرضاع : ١/٤٦٨)_٤٦٩).

دجمهورو استدلال دقران پاك آیت ﴿وَاُمَّهٰتُكُمُ الّٰتِیْٓ اَرْضَعْنَكُمْ﴾ نه دی . چه په دی کښی مطلق رضاعت لره سبب د تحریم گنړلی شوی دی .د قلیل وکثیر څه قید نشته دی . اوکتاب الله باندی خبر واحد نه تقید وتخصیص ذریعه څه زیاتی نشی کولی . (۱)

داشان دحضرت نبی کریم ﷺ ارشاد دی چه ((یحرم من الرضاع مایحرم من النسب)) په دی کښی هم مطلق درضاعت محرم گنړلی شوی دی . بلکه یو روایت کښی د ((قلیله وکثیره)) تصریح هم وارد شوی ده . (۲) او په دی روایت کښی ټول رجال ثقات دی. په خاتی کښی روایت باب کښی ((فانما الرضاعة من المجاعة)) هم مطلق دی او قلیل اوکثیر په دی برابر دی

ترکومی چه تعلق دی دهغه روایاتو چه دهغی نه امام شافعی رحمه الله وغیره استدلال کوی ، جمهور فرمائی چه هغه منسوخ دی ، حضرت ابن عباس رضی الله عنهما ته چا د((لاتحرم الرضعة ولا الرضعتان)) ذکر اوکړو نو هغوی اوفرمائیل چه ((قدکان ذالك فاما الیوم فالرضعة الواحدة تحرم)) (۳)

[۴۸۱۴] حَدَّثَنَا اَبُوالْوَلِیْدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنِ الْاَشْعَثِ عَنْ اَبِیهِ عَنْ مَسْرُوقٍ عَنْ عَائِشَةَ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهَا اَنَّ النَّبِیَّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ عَلَیْهَا وَعِنْدَهَا رَجُلٌ فَكَاَنَّهُ تَغَیَّرَ وَجْهُهُ كَاَنَّهُ كَرِهَ ذٰلِكَ فَقَالَتْ اِنَّهُ اَخِی فَقَالَ انْظُرْنَ مَنْ اِخْوَانُكُنَّ فَاِنَّمَا الرَّضَاعَةُ مِنَ الْمَجَاعَةِ [ر:۲۵۰۴]

داشعث دپلار نوم سلیم بن اسود محاربی دی او دده کنیت ابوالشعثا دی (۴)

**قوله: وَعِنْدَهَا رَجُلٌ:** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه ددی سړی نوم خوماته معلوم نشو خو خما خیال دی چه دادحضرت عائشه رضی الله عنها درضاعی تره ابوالقعیس خوئی وو (۵) دده په کتلو سره دحضرت نبی کریم ﷺ څهره مبارکه دناګوارئی په وجه بدله شوی وه ، حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی چه دا خما رضاعی رور دی. نوحضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل اوګوره چه ستا رضاعی رونړه کوم کوم دی خکه چه دضاعت تعلق د اولړی سره دی یعنی دحرمت رضاعت دبچپن نه داشان په پئیو رودلو سره ثابتیږی چه هغه پیئ دبچی اولړه ختموی اودده دپاره خوراك جوړ شی.

**قوله: مَا اِخْوَانُكُنَّ:** په دی کښی "ما" بمعنی "من" ده ، دکشمیهنی په روایت کښی ((من اخوانکن)) دی. (۶)

۱) اوګوری احکام القرام للجصاص:۲/۱۲۴_۱۲۶).
۲) اوګوری جامع المسانید للخوارزی ، ۲/۹۷ ، الباب الثالث والعشروت فی النکاح . وعقود الجواهر المنیفة: ۱/۱۵۹ ، باب الرضاع).
۳) احکام القران للجصاص:۲/۱۲۵ ، مطلب اختلف السلف فی التحریم بقلیل الرضاع).
٤) ارشاد الساری:۱۱/۳۸۰).
۵) فتح الباری: ۹/۱۸۳).
۶) فتح الباری: ۹/۱۸۳).

حافظ ابن حجر رحمه الله د «انما الرضاعة من المجاعة» معنی بیانوی او لیکی چه :

ای الرضاعة تثبت بها الحرمة وتحل بها الخلوة هی حیث یکون الرضیع طفلا لسد اللبن جوعته لان معدته ضعیفه یکفیها وینبت بذالك لحمه فیصیر کجزء من المرضعه فیشترك فی الحرمة مع اولادها فکانه قال، لا رضاعة معتبرة الا المغنیة عن المجاعة والمطعمة من المجاعة کقوله تعالی ﴿اطعمهم من جوع﴾ (۱)

## ۲۳=باب لبن الفحل

[۴۸۱۵] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ عَنْ عَائِشَةَ أَنَّ أَفْلَحَ أَخَا أَبِي الْقُعَيْسِ جَاءَ يَسْتَأْذِنُ عَلَيْهَا وَهُوَ عَمُّهَا مِنْ الرَّضَاعَةِ بَعْدَ أَنْ نَزَلَ الْحِجَابُ فَأَبَيْتُ أَنْ آذَنَ لَهُ فَلَمَّا جَاءَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَخْبَرْتُهُ بِالَّذِي صَنَعْتُ فَأَمَرَنِي أَنْ آذَنَ لَهُ [ر:۲۵۰۱]

فحل مذکر ته وئیلې شي او د لبن نه مراد پئ دی ، چه دیو سړی په وطی سره د ښځې د سینو نه پیدا کیږی. هغه پئ دې فحل دې پئیو طرفته منسوب کیږی.

دا مسئله خو متفق علیه ده چه د رضاعت وجې سره مرضعه رضیع دپاره حرام کیږی ، او رضیع مرضعه دپاره.

خو په دې کښې اختلاف دې چه د مرضعه خاوند به هم رضیع دپاره حرام وی او که نه؟ حضرت سعید بن المسیب رحمه الله، حضرت ربیعه الرای رحمه الله، حضرت ابراهیم نخعی رحمه الله، حضرت ابراهیم بن علیه رحمه الله، حضرت قاسم بن محمد رحمه الله، سالم رحمه الله او حضرت دواد ظاهری رحمه الله فرمائی چه د رضیع دپاره به د مرضعه خاوند حرام نه وی. (۲)

خو آئمه اربعه او جمهور علماء کرام فرمائی چه څنګه د رضیع دپاره مرضعه حرامیږی داشان د دې خاوند هم حرامیږی (۳)

امام بخاری رحمه الله د «لبن الفحل» ترجمه کوی او د جمهورو تائید کوی او په دلیل کښې حدیث باب پیش کوی او فرمائی چه د حضرت عائشه رضی الله عنها رضاعی تره چه کله حضرت عائشه رضی الله عنها کره راغلو نو حضرت عائشه رضی الله عنها هغې ته د راتګ اجازت ورنکړو او ودې اطلاع نبي حضرت نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته ورکړه. نو حضرت نبی کریم صلی الله علیه وسلم ورته اجازت ورکړو چه ددې نه دا خبره واضحه شوه چه د مرضعه خاوند هم حرام دې . څکه چه په دې حدیث کښې د خاوند رور د حرمت د رضاعت په وجه ورته د داخلیدو اجازت ورکړې شوې دې نو د مرضعه خاوند چه رضاعی پلار دې د ده حرمت بطریق اولی ثابتیږی.

---

۱) فتح الباری: ۹/۱۸٤).
۲) عمده القاری: ۲۰/۹۷).
۳) عمدة القاری: ۲۰/۹۷).

## ٢٤=باب شهادة المرضعة

[٤٨١٦] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيلُ بْنُ اِبْرَاهِيمَ اَخْبَرَنَا اَيُّوبُ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِي مُلَيْكَةَ قَالَ حَدَّثَنِي عُبَيْدُ بْنُ اَبِي مَرْيَمَ عَنْ عُقْبَةَ بْنِ الْحَارِثِ قَالَ وَقَدْ سَمِعْتُهُ مِنْ عُقْبَةَ لَكِنِّي لِحَدِيثِ عُبَيْدٍ اَحْفَظُ قَالَ تَزَوَّجْتُ امْرَاَةً فَجَاءَتْنَا امْرَاَةٌ سَوْدَاءُ فَقَالَتْ اَرْضَعْتُكُمَا فَاَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ تَزَوَّجْتُ فُلَانَةَ بِنْتَ فُلَانٍ فَجَاءَتْنَا امْرَاَةٌ سَوْدَاءُ فَقَالَتْ لِي اِنِّي قَدْ اَرْضَعْتُكُمَا وَهِيَ كَاذِبَةٌ فَاَعْرَضَ عَنِّي فَاَتَيْتُهُ مِنْ قِبَلِ وَجْهِهِ قُلْتُ اِنَّهَا كَاذِبَةٌ قَالَ كَيْفَ بِهَا وَقَدْ زَعَمَتْ اَنَّهَا قَدْ اَرْضَعَتْكُمَا دَعْهَا عَنْكَ وَاَشَارَ اِسْمَاعِيلُ بِاِصْبَعَيْهِ السَّبَّابَةِ وَالْوُسْطَى يَحْكِي اَيُّوبَ [ر:٨٨]

په کتاب العلم کښې په دې مسئله باندې تفصيلی بحث تير شوې دې اودا حديث هم په هغه ځائې کښې تير شوې دې. ((دعها عنك أشار اسماعيل باصبعيه السبابة والوسطى يحكى أيوب))

اسماعيل بن ابراهيم په خپلو دوو ګوتو دشهادت په ګوتې او مينځنۍ ګوتې سره اشاره کوی او فرمائی چه ايوب به داشان اشاره کوله اوفرمائيل به ئې. حافظ ابن حجر رحمة ا لله عليه ليکی چه :

((يحكى أيوب)) يعنى يحكى اشار أيوب ، والقائل على بن عبدالله ، والحاكى اسماعيل بن ابراهيم والمراد حكاية فعل النبى ﷺ حيث اشار بيده وقال بلسانه (دعها عنك) فحكى ذالك كل راو لمن دونه. (١)

دعبدالله بن ابی مليکه شيخ عبيدبن ابی مريم دی ،صحيح بخاری کښې دده صرف هم دا حديث دې ، حافظ ابن حجر رحمه الله ليکلی دی چه ماته دده حالات معلوم نشو البته ابن حبان په ثقات تابعين کښې دده ذکر کړې دې . (٢)

## ٢٥=باب مَا يَحِلُّ مِنَ النِّسَاءِ وَمَا يَحْرُمُ وَقَوْلِهِ تَعَالَى

((حُرِّمَتْ عَلَيْكُمْ اُمَّهٰتُكُمْ وَبَنٰتُكُمْ وَاَخَوٰتُكُمْ وَعَمّٰتُكُمْ وَخٰلٰتُكُمْ وَبَنٰتُ الْاَخِ وَبَنٰتُ الْاُخْتِ)) الى اخرالايتين الى قوله((اِنَّ اللّٰهَ كَانَ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا)) (النساء: ٢٣، ٢٤). (٣)

وَقَالَ اَنَسٌ وَالْمُحْصَنَاتُ مِنَ النِّسَاءِ ذَوَاتُ الْاَزْوَاجِ الْحَرَائِرُ حَرَامٌ اِلَّا مَا مَلَكَتْ اَيْمَانُكُمْ لَا يَرَى بَاْسًا اَنْ يَنْزِعَ الرَّجُلُ جَارِيَتَهُ مِنْ عَبْدِهِ وَقَالَ وَلَا تَنْكِحُوا الْمُشْرِكَاتِ حَتَّى يُؤْمِنَّ (البقرة:٢٢١)

حضرت انس رضی الله عنه فرمائی چه هغه آزادې منکوحه ښځې چه دهغو ی خاوند تراوسه پورې

---

١ ) فتح البارى: ٩/١٩٠).

٢ ) اوګورئ تفصيل دپاره فتح البارى: ٩/١٩٠).

٣ ) (حرمت عليكم ) اى حرم عليكم الزواج منهن وتتمه الايتين حُرِّمَتْ عَلَيْكُمْ اُمَّهٰتُكُمْ وَبَنٰتُكُمْ وَاَخَوٰتُكُمْ وَعَمّٰتُكُمْ وَخٰلٰتُكُمْ وَبَنٰتُ الْاَخِ وَبَنٰتُ الْاُخْتِ وَاُمَّهٰتُكُمُ الّٰتِيْ اَرْضَعْنَكُمْ وَاَخَوٰتُكُمْ مِّنَ الرَّضَاعَةِ وَاُمَّهٰتُ نِسَآئِكُمْ وَرَبَآئِبُكُمُ الّٰتِيْ فِيْ حُجُوْرِكُمْ مِّنْ نِّسَآئِكُمُ الّٰتِيْ دَخَلْتُمْ بِهِنَّ فَاِنْ لَّمْ تَكُوْنُوْا دَخَلْتُمْ بِهِنَّ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ وَحَلَآئِلُ اَبْنَآئِكُمُ الَّذِيْنَ مِنْ اَصْلَابِكُمْ وَاَنْ تَجْمَعُوْا بَيْنَ الْاُخْتَيْنِ اِلَّا مَا قَدْ سَلَفَ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا)

موجود دې هغه حرام دی. ((الا ماملکت ایمانکم لایری باسا ان ینزع الرجل جاریته من عبده)) داشان که چاسره وینځه وه او خپل غلام سره هغه ددې وینځې نکاح اوکړه نو دحضرت انس رضی الله عنه نقطه نظر دادې چه په دې صورت کښې مولی ته حق حاصل دې چه هغه دا وینځه غلام ته دنکاح کولونه باوجود واپس واخلی ، اوپخپله ورسره وطی کوی ،چونکه په ((ماملکت ایمانکم)) کښې دا خل ده او قران دې لره حلال گروزی ، داشان دحضرت انس رضی الله عنه خیال دادې که چا واده شوې وینځه واخستله نو دا بیع به دهغه وینځې دپاره پشان دطلاق شی او هغه بیا دې وینځې سره هم بستری کولې شی .

خو جمهور علماء ته دې جائز نه وائی ، هغوی فرمائی چه دقران پاك آیت ((الا ما ملکت ایمانکم)) نه هغه ښځې مراد دی چه کومې جهاد کښې په قبضه کښې راشی، نوهغه د مسلمانانو دپاره حلالې دی ،اودهغوی د کافرو خاوندانو هیڅ اعتبار نشته دې ، نو علامه شبیر احمد عثمانی رحمه الله ددې آیت مبارك لاندې لیکی چه :

دمحرماتو ذکر فرمائی او په آخرکښې اوس دهغه ښځو دحرمت بیان فرمائی چه دچا په نکاح کښې وی یعنی ښځه چه دچا په نکاح کښې ده ،دهغې نکاح بل چاسره نشی کیدلې ، ترهغه وخته پورې چه هغه د طلاق یا د خاوند په مرگ دنکاح نه جدا نشی ،اوعدت دطلاق یا عدت د وفات پوره کړی ، تر هغه وخته پورې هېڅوك دې سره نکاح نشی کولې ، لیکن که څوك ښځه داسې ستاسو په ملکیت کښې راشی چه دهغې خاوند وی نوددې حکم حرمت نه مستثنی ده . او په تاسوباندې حلاله ده ، اگر چه ددې خاوند ژوندې وی ، اوهغه ورته طلاق هم ورکړې نه وی ، اوددې صورت دادې چه کافر سړی او کافره ښځه خپلو په نکاح کښې وی او مسلمان دارالحرب باندې حمله اوکړی اودې ښځې لره قید کړی او دارالاسلام ته ئې راولی نودا ښځه‌چه یو مسلمان ته ملاویږی نو هغه لره حلاله ده، اگر چه ددې خاوند ژوندې وی‌په دارالحرب کښې موجود وی ، او هغه ورته طلاق نه وی ورکړې . (فائد) چه کومه ښځه کافره دارالحرب کښې اونیولې شوه ، ددې دحلالیدو دپاره دا ضروری دی چه یو حیض پرې تیر شی او هغه ښځه مشرکه بت پرسته نه وی بلکه اهل کتاب نه وی . (۱)

**قوله:** وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ مَا زَادَ عَلَى أَرْبَعٍ فَهُوَ حَرَامٌ كَأُمِّهِ وَابْنَتِهِ وَأُخْتِهِ: حضرت ابن عباس رضی الله عنهما دا تعلیق فریابی او عبدبن حمید موصولانقل کړې دې (۲)

**قوله:** وَقَالَ لَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ عَنْ سُفْيَانَ حَدَّثَنِي حَبِيبٌ عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ حَرُمَ مِنَ النَّسَبِ سَبْعٌ وَمِنَ الصِّهْرِ سَبْعٌ ثُمَّ قَرَأَ حُرِّمَتْ عَلَيْكُمْ أُمَّهَاتُكُمْ الْآيَةَ: دکتاب المغازی په آخرکښې مونږ وئیلې وو چه د امام احمد بن حنبل رحمه الله نه امام بخاری رحمه الله درې روایتونه نقل کړی دی ، یو په کتاب

---

۱) اوگورئ تفسیر عثمانی: ۱۰۵ ، فائده نمبر۱).
۲) ارشاد الساری: ۱۱/۳۸۴).

المغازی کښې ، دويم په دې خائې کښې اودريم مخکښې په کتاب اللباس کښې ، کتاب المغازی والا روايت مرفوع دې او روايت باب موقوف دې (١)

**قوله:** عن ابن عباس : حرم من النسب سبع ومن الصهر سبع: حضرت ابن عباس رضی الله عنهما نه روايت دې چه هغوی اوفرمائيل چه نسب نه اووه قسمه ښځې حرام دی او دصهر نه اووه قسمه ښځې حرام دی اوبيا د قرآن آيت «حرمت عليكم امهاتكم» تلاوت کړو.

دنسب نه اووه قسمه ښځې چه حرام دی ، په آيت کريمه کښې دهغې تفصيل دادې:

① امهات ② بنات ③ اخوات ④ عمات ⑤ خالات ⑥ بنات الاخ ⑦ بنات الاخت .

او دصهر متعلق چه کومې اووه قسمه ښځې حرام دی هغه دادی چه : ① امهات رضاعيه ② اخوات رضاعيه ③ امهات نساء يعنی دښځو ميandې ④ ربائب يعنی دهغه ښځولونړه چه هغوی سره همبستری شوې وی يا هغوی سره خلوت صحيحه شوې وی. ⑤ دخامنو ښځې ⑥ او دوه خويندې جمع کول .اووم قسم په دې آيت کښې نه دې بلکه ددې نه مخکښې آيت کريمه کښې دی ⑦ «ولاتنكحوا مانكح اباؤكم من النساء» .دطبرانی په روايت کښې تصريح شوې ده چه حضرت ابن عباس رضی الله عنهما د آيت باب نه تلاوت کولو نه پس ده اووم قسم بيانولو دپاره «ولاتنكحوا مانكح اباؤكم» تلاوت فرمائی او بيا فرمائی چه «هذا الصهر» صهر دخخرګنئ رشتې ته وائی ، رضاعی رشتو باندې دصهر اطلاق مجازی طور شوې دې (٢)

**قوله:** وَجَمَعَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ جَعْفَرٍ بَيْنَ ابْنَةِ عَلِيٍّ وَامْرَأَةِ عَلِيٍّ وَقَالَ ابْنُ سِيرِينَ لَا بَأْسَ بِهِ وَكَرِهَهُ الْحَسَنُ مَرَّةً ثُمَّ قَالَ لَا بَأْسَ بِهِ: حضرت عبدالله بن جعفر رضی الله عنهما دحضرت علی رضی الله عنه لور حضرت زينب او دده ښځه ليلى بنت مسعود دواړه جمع کړې وې يعنی دحضرت عبدالله بن جعفر رضی الله عنهما په نکاح کښې دحضرت علی رضی الله عنه لور زينب وه ، بيا دحضرت علی رضی الله عنه د وفات نه پس دهغه ښځې ليلى سره هم حضرت عبدالله بن جعفر واده اوکړو. نوداشان هغوی بی بی اودهغه دسابقه خاوند لور جمع کړل. حضرت محمدبن سيرين فرمائی چه په دې کښې هيڅ حرج نشته دې ، حضرت حسن بصری رحمه الله په ابتداء کښې دا مکروه ګنړل ليکن روستوهغه اووئيل چه «لاباس به» .امام بغوی رحمه الله په «جعديات» کښې دا اثر موصولاً نقل کړې دې (٣) دحضرت ابن سيرين قول سعيد بن منصور اود حضرت حسن بصری قول دار قطني موصولاً نقل کړې دې (۴)

**قوله:** وَجَمَعَ الْحَسَنُ بْنُ الْحَسَنِ بْنِ عَلِيٍّ بَيْنَ ابْنَتَيْ عَمٍّ فِي لَيْلَةٍ وَكَرِهَهُ جَابِرُ

---

١) اوګورئ کشف الباری، کتاب المغازی : ٦٩٢).
٢) فتح الباری: ١٩٢/٩).
٣) فتح الباری: ١٩٢/٩).
٤) فتح الباری: ١٩٣/٩).

بْنُ زَيْدٍ لِلْقَطِيعَةِ وَلَيْسَ فِيهِ تَحْرِيمٌ لِقَوْلِهِ تَعَالَى وَأُحِلَّ لَكُمْ مَا وَرَاءَ ذَٰلِكُمْ

(النساء:۲۴): حضرت حسن بن الحسن دخپل تره دوه لونړو لره په يو شپه کښې جمع کړې وې يعنې دواړه دتره لونړوسره چه دده په نکاح کښې وې په يوشپه‌کښې جماع کړې وه.
جابر بن زيد دې لره مکروه ګڼړي او وائي چه‌په دې د قطع رحمۍ شکل موندې شي،امام بخاري رحمه الله فرمائي چه دې دمکروه وئيلو مطلب دانه دې چه‌دې لره حرام اوګنړلې شي ، دا حرام نه دی ځکه‌چه دقران پاك آيت ﴿وَأُحِلَّ لَكُمْ مَا وَرَاءَ ذَٰلِكُمْ﴾ کښې داخل دې ، ابن المنذر فرمائي چه ((لااعلم احداابطل هذا النكاح)) (۱)
حضرت حسن مذکوره اثر لره دعبدالرزاق نه موصولاً نقل کړې دې . په دې کښې دمره اضافه هم ده چه ((في ليلة واحدة بنت محمدبن علي وبنت عمربن علي)) (۲) او دجابر بن زيداثر لره ابوعبيده موصولاً نقل کړې دې (۳)

**قوله:** وَقَالَ عِكْرِمَةُ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ إِذَا زَنَى بِأُخْتِ امْرَأَتِهِ لَمْ تَحْرُمْ عَلَيْهِ امْرَأَتُهُ:
دجهمور عالمانو هم دامسلك دې ليکن يو جماعت ددې حکم مخالفت اوکړو او دحرمت فيصله ئې ورکړې ده . (۴) حضر ت ابن عباس رضي الله عنهما دې اثر لره عبدالرزاق موصولاق نقل کړې دې . (۵)

**قوله:** وَيُرْوَى عَنْ يَحْيَى الْكِنْدِيِّ عَنِ الشَّعْبِيِّ وَأَبِي جَعْفَرٍ فِيمَنْ يَلْعَبُ بِالصَّبِيِّ إِنْ أَدْخَلَهُ فِيهِ فَلَا يَتَزَوَّجَنَّ أُمَّهُ وَيَحْيَى هَذَا غَيْرُ مَعْرُوفٍ وَلَمْ يُتَابَعْ عَلَيْهِ: دمستملي په نسخه کښې د ((ابي جعفر))په ځائې((ابن جعفر)) دې ليکن هغه غير معتمددې ،صحيح متن والا نسخه د ((ابي جعفر)) ده . (۶)
په دې اثر کښې که يوسړی يو بچي سره بدفعلي اوکړه‌نو دده موربه په ده باندې حرامه شي. سفيان ثوری رحمه الله ، امام‌اوزاعی رحمه الله ،او امام‌احمدبن حنبل رحمه الله ددې قائل‌دی ليکن دجمهور علماء په نيز لواطت سره حرمت مصاهرت نه ثابتيږی ، ددې وجې‌ديو بچي سره‌بد فعلۍ کولو سره به ددې دبچي مور حرمت بدفعلۍ کولووالا دپاره‌نه ثابتيږی او دده مور سره دې نکاح کولې شی (۷)

---

۱ ) فتح الباري: ۱۹۳/۹).
۲ ) ارشادالساري: ۳۸۵/۱۱، وفتح الباري: ۱۹۳/۹).
۳ ) فتح الباري: ۱۹۳/۹).
٤ ) فتح الباري:۱۹٤/۹).
۵ ) فتح الباري: ۱۹٤/۹).
۶ ) عمد القاري: ۱۰۲/۲۰).
۷ ) ارشادالساري: ۳۸۶/۱۱، وعمده القاري: ۱۰۲/۲۰، وفتح الباري : ۱۹٤/۹).

**قوله:** قال ابن الملقن في عجالته وهذه مقالة عجيبة لو نزه البخاري عنها كتابه لكان اولى (۱) ويحيى هذا غير معروف ولم يتابع عليه: امام بخاري رحمه الله فرمائى چه دا يحيى كندى غيرمعروف دې ، دده متابعت نه دې كړې شوې ،په ده باندې اشكال دى چه دسفيان ثورى ، ابوعوانه او شريك يحيى بن قيس كندى نه روايت كوى اوكله چه ديوسړى نه دوه روايت كولو والا سړى وى نو ده ته غير معروف او مجهول نه شى وئيلې.
ددې جواب دادې چه په دې ځائې كښې جهالت د عين مراد نه دې ، جهالت وصف مراد دې چه دده حال معلوم نه دې ، په دې باندې اشكال دى چه ابن حبان په كتاب الثقات كښې ديحيى كندى ذكر كړې دې . بيا ده ته مجهول بالوصف ولې وئيلې شى . ددې جواب دادې چه دابن حبان مسلك دادې چه په كوم راوى باندې جرح نه وى شوې او دده نه روايت كولو والا پورته لاندې راوى مستند اوقابل اعتماد وى نو ابن حبان داسې راوى لره په كتاب الثقات كښې ذكر كړې دې . ليكن دا د مجهول بالوصف منافى نه ده ځكه دې سره. دامام بخاري رحمه الله په فيصله زدنه پريوزى، (۲)

**قوله:** وَقَالَ عِكْرِمَةُ عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ إِذَا زَنَى بِهَا لَا تَحْرُمُ عَلَيْهِ امْرَأَتُهُ وَيُذْكَرُ عَنْ أَبِي نَصْرٍ أَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ حَرَّمَهُ وَأَبُو نَصْرٍ هَذَا لَمْ يُعْرَفْ بِسَمَاعِهِ مِنْ ابْنِ عَبَّاسٍ وَيُرْوَى عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ وَجَابِرِ بْنِ زَيْدٍ وَالْحَسَنِ وَبَعْضِ أَهْلِ الْعِرَاقِ تَحْرُمُ عَلَيْهِ وَقَالَ عِكْرِمَةُ عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ إِذَا زَنَى بِهَا لَا تَحْرُمُ عَلَيْهِ امْرَأَتُهُ: يعنى كه چاخپلې خواښې سره زنا اوكړه نو ښځه پرې نه حراميږى ، دحضرت عكرمه رضي الله عنه مسلك هم دا دې ، دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما دا تعليق امام بيهقى موصولاً نقل كړې دې (۳)امام شافعى رحمه الله هم ددې قائل دې (۴)
ليكن امام ابوحنيفه رحمه الله ، سفيان ثورى رحمه الله او ا مام احمدبن حنبل رحمه الله فرمائى چه ښځه به پرې حرامه شى. (۵) دمالكيه دوه قوله دى ،ليكن راجح قول هم دحرمت والا دې. (۶)

**قوله:** ويذكر عن ابى نصران ابن عباس حرمه: دا دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه دوئم روايت دې چه خواښې سره زنا كولوسره ښځه به پرې حرامه شى ، خودامام بخاري رحمه الله په نيز تحريم والا روايت ثابت نه دې ، ددې وجې بصيغه مجهول ذكر كړې دې، امام بخاري رحمه الله فرمائى ((وابونصرهذا لم يعرف بسماعه عن ابن عباس)) يعنى د ابونصر سماع د حضرت ابن

---

۱ ) ارشادالسارى:۱۱/۳۸۶).
۲ ) اوګورئ مذكوره تفصيل دپاره عمده القارى: ۲۰/۱۰۲ . وفتح البارى: ۹/۱۹۴).
۳ ) فتح البارى: ۹/۱۹۴ ، وعمده القارى: ۲۰/۱۰۲).
٤ ) الهداية . كتاب النكاح، باب المحرمات:۲/۲۷۷).
۵ ) عمده القارى: ۲۰/۱۰۳).
۶ ) فتح البارى: ۹/۱۹۵).

عباس نه معروف نه ده .د تحریم ذکر شوې دې دا تعلیق سفیان ثوری رحمه الله په خپل جامع کښې موصولاً نقل کړې دې ، دده الفاظ دادی «ان رجلا قال : انه اصاب ام امراته فقال له ابن عباس حرمت علیك امراتك وذالك بعد ان ولدت منه سبعة اولاد کلهم بلغ مبلغ الرجال» (۱)

مخکښې امام بخاری رحمه الله فرمائی چه عمران بن حصین رحمه الله، جابر بن زید رحمه الله، حسن بصری رحمه الله او دبعض اهل عراق قول هم دې حرمت دې «بعض اهل العراق» نه بقول مولانا انورشاه کشمیری رحمه الله حنفیه مراد دې.(۲) اوحافظ فرمائی چه ددې نه شائد سفیان ثوری مراد دې (۳) دعمران بن حصین رحمه الله قول لره عبدالرزاق ، جابر بن زید رحمه الله اوحسن بصری رحمه الله قول لره ابن ابی شیبه موصولاً نقل کړې دې . (۴)

**قوله:** وَقَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ لَا تَحْرُمُ حَتَّى يُلْزِقَ بِالْأَرْضِ يَعْنِي يُجَامِعَ وَجَوَّزَهُ ابْنُ الْمُسَيَّبِ وَعُرْوَةُ وَالزُّهْرِيُّ وَقَالَ الزُّهْرِيُّ قَالَ عَلِيٌّ لَا تَحْرُمُ وَهَذَا مُرْسَلٌ: دحضرت ابو هریره رضی الله عنه ددې قول مقصد دادې چه صرف د خوابنې د لمس په وجې سره دبنځې حرمت ثابت نه دې .که خوابنې سره ئې جماع اوکړه نوبیا به هم حرمت ثابت وی. «وقال : ابن التين يلزق بفتح اوله وضبطه غيره بالضم وهو اوجه وبالفتح لازم وبالضم متعد يقال لزق به لزوقا والزقه بغيره وهو كناية عن الجماع» (۵) دحضرات حنفیه په نیز صرف دمس په وجه هم حرمت به ثابت وی ،(۶) او ابن مسیب ،عروه اوزهری رحمه الله فرمائی چه خوابنې سره جماع کولو سره بنځه حرامیږی ، لکه څنګه چه مخکښې دحضرت عکرمه رضی الله عنه اوحضرت شافعی رحمه الله مذهب بیان شوې دې.

**قوله:** وقال الزهري: قال علي : لايحرم وهذا مرسل: دزهری قول لره بیهقی موصولاً نقل کړې دې . امام بخاری رحمه الله فرمائی چه دا مرسل دې ، مرسل نه مراد په دې ځائې کښې منقطع دې . مرسل اصطلاحی مراد نه دې. (۷)

## ۲٦=بَاب

وَرَبَائِبُكُمُ اللَّاتِي فِي حُجُورِكُمْ مِنْ نِسَائِكُمُ اللَّاتِي دَخَلْتُمْ بِهِنَّ (النساء : ۲۳). وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ الدُّخُولُ وَالْمَسِيسُ وَاللِّمَاسُ هُوَ الْجِمَاعُ وَمَنْ قَالَ بَنَاتُ وَلَدِهَا مِنْ بَنَاتِهِ

---

۱) فتح الباری: ۱۹٤/۹).
۲) فیض ا لباری: ۲۷۸/٤).
۳) فتح الباری: ۱۹۵/۹) .
٤) عمده القاری: ۱۰۳/۲۰).
۵) فتح ألباری: ۱۹۵/۹).
٦) الهدایه ،کتاب النکاح ،باب المحرمات:۲۷۷/۲).
۷) عمده ألقاری: ۱۰۳/۲۰).

فِي التَّحْرِيمِ لِقَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِأُمِّ حَبِيبَةَ لَا تَعْرِضْنَ عَلَيَّ بَنَاتِكُنَّ وَلَا أَخَوَاتِكُنَّ وَكَذَلِكَ حَلَائِلُ وَلَدِ الْأَبْنَاءِ هُنَّ حَلَائِلُ الْأَبْنَاءِ
وَهَلْ تُسَمَّى الرَّبِيبَةَ وَإِنْ لَمْ تَكُنْ فِي حَجْرِهِ وَدَفَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَبِيبَةً لَهُ إِلَى مَنْ يَكْفُلُهَا وَسَمَّى النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ابْنَ ابْنَتِهِ ابْنًا (ر: ٣٥٣٦).

دربيبه دحرمت دپاره په آيت كريمه كښې دوه قيدونه ذكر شوى دى .① يوخو دا چه هغه ستاپه غيږ كښې وى ② او دويم دا چه دهغې مور ستا مدخول بها وى.
دمدخول بها قيد خو اتفاقى دې او په دې كښې اختلاف نشته البته ددخول تفسير كښې اختلاف دې.
دامام شافعى رحمه الله دوه قولونه دى او اصح قول دادې چه د دخول نه مراد جماع ده حالانكه آئمه ثلاثه فرمائى چه ددې نه خلوت صحيحه مراد دې ، (١)
البته رومبې قيد يعنى د ربيبه غيږ او پرورش كښې كيدل په دې كښې اختلاف دې. د جمهورعلماء كرام،ائمه اربعه اودفقهائې مدينه په نيزدا قيد ، قيداتفاقى دې، قيد احترازى نه دې بلكه عموما ربيبه دزوج په پرورش كښې وى ددې وجې دا قيد اولګولې شو(٢)
ليكن داودظاهرى فرمائى چه دا قيد احترازى دې،علامه ابن حزم هم داا ختياركړې دې(٣)
ددې تائيد ددې روايت نه كيږى چه كوم امام عبدالرزاق د مالك بن اوس نه نقل كړې دې او په دې كښې اختلاف دې «كانت عندى امراة قد ولدت لى، فماتت فوجدت عليها، فلقيت على ابن ابى طالب فقال لى، مالك فاخبرته فقال: الها ابنة. يعنى من غيرك قلت نعم قال. كانت فى حجرك، قلت: لا، هى فى الطائف، قال: فانكحها قلت: فاين قوله تعالى. وربائبكم، قال: انها لم تكن فى حجرك» (٤)
په دې روايت كښې حضرت على رضى الله عنه نه صراحتًا منقول دى چه د «فى حجوركم» قيد احترازى دې اتفاقى نه دې.
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه زمونږ شيخ علامه ذهبى رحمه الله دا اثر دشيخ الاسلام ابن تيميه په مخكښې پيش كړې دې ، نوهغوى په دې باندې توقف كړې دې . (٥) حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه : كه په دې مسئله كښې اجماع نه وې اومخالفت نادر او كم نه وې نو په دې اثر باندې عمل كول اولى وو، ځكه چه تحريم ربيبه په نورو شرطونو سره مشروط دې،اويو شرط د دخول احتراز دپاره دې ،نودويم شرط هم د «حجوركم» د احتراز دپاره پكار

١) عمده القارى: ١٠٣/٢٠ . فتح البارى: ١٩٦/٩_١٩٧).
٢) لامع الدرارى :٢٧٩/٩).
٣) لامع الدرارى: ٢٨٠/٩).
٤) فتح البارى: ١٩٧/٩).
٥) لامع الدرارى: ٢٨٠/٩).

دي. نو ليكئ: ((ولولا الاجماع الحادث فى المسالة وندرة المخالف لكان الاخذبه اولى لان التحريم جاء مشروطا بامرين : ان تكون فى الحجر ، وان يكون الذى يريد التزوج قد دخل بالام فلا تحرم بوجود احد الشرطين)) (۱)

**قوله: ومن قال بنات ولدها من بناته فى التحريم لقول النبى ﷺ لاتعرضن علي بناتكن:** ((من)) موصوله دي. مطلب دادي چه د ښځي نمسۍ په حرمت کښې د ده دلونړو په شان دی ، ځکه چه حضور اکرم ﷺ حضرت ام حبيبه رضى الله تعالى ته وئيلى وو ((لاتعرضن على بناتكن ولا اخواتكن)) داشان د نمسى د ښځي حکم هم د لور پشان دي.

**قوله: ودفع النبى ﷺ ربيبة له الى من يكفله:** ددې جملې نه مخکښې امام بخاری رحمه الله فرمائی چه ((هل تسمى الربيبة وان لم تكن فى حجره)) يعنى ربيبه که پرورش اوغيږ کښې نه وی نو په دې باندې د ربيبه اطلاق کيږی که نه ؟او سړی دپاره هغه حرام ده يا حلاله ؟د ((دفع النبى ﷺ)) نه استدلال کوی ، امام بخار رحمه الله فرمائيل غواړی چه د ربيبه غيږ او پرورش کښې کيدل شرط نه دی دا محض قيد اتفاقی دې ، ځکه پخپله حضور ﷺ يو ربيبه کفالت کولو والا يو رشته دار ته حواله کړې وه ،چه ددې نه معلوميږی چه دربيبه پرورش کيدل څه ضروری نه دی ،ربيبه که په غيږ يا پرورش کښې نه وی نو بيا هم په دې باندې د ربيبه اطلاق کړې شی.

دحضرت نبی کريم ﷺ چه دکومې ربيبه په دې ځائې کښې ذ کر کړې دې هغه دحضرت ام سلمه رضی الله عنها لور وه چه هغه حضرت نبی کريم ﷺ نوف أشجعی ته حواله کړې وه. (۲)

[۴۸۱۷] حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ أَبِيهِ عَنْ زَيْنَبَ عَنْ أُمِّ حَبِيبَةَ قَالَتْ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ هَلْ لَكَ فِي بِنْتِ أَبِي سُفْيَانَ قَالَ فَأَفْعَلُ مَاذَا قُلْتُ تَنْكِحُ قَالَ أَتُحِبِّينَ قُلْتُ لَسْتُ لَكَ بِمُخْلِيَةٍ وَأَحَبُّ مَنْ شَرِكَنِي فِيكَ أُخْتِي قَالَ إِنَّهَا لَا تَحِلُّ لِي قُلْتُ بَلَغَنِي أَنَّكَ تَخْطُبُ قَالَ ابْنَةَ أُمِّ سَلَمَةَ قُلْتُ نَعَمْ قَالَ لَوْ لَمْ تَكُنْ رَبِيبَتِي مَا حَلَّتْ لِي أَرْضَعَتْنِي وَأَبَاهَا ثُوَيْبَةُ فَلَا تَعْرِضْنَ عَلَيَّ بَنَاتِكُنَّ وَلَا أَخَوَاتِكُنَّ وَقَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنَا هِشَامٌ دُرَّةُ بِنْتُ أَبِي سَلَمَةَ [ر: ۴۸۱۳]

پورته روايت کښې دحضور اکرم ﷺ دلور بی بی نوم ذکر نه دې ،د ليث روايت کښې ددې نوم مذکور دې ، ((وقال الليث)) ((درة بنت ابى سلمة)) تعليق نه دې بلکه سند مذکوره سره موصول دې.

---

۱) فتح البارى: ۱۹۷/۹).
۲) فتح البارى: ۱۹۸/۹).

## ٢٧=باب وأن تجمعوا بين الأختين إلا ما قد سلف [النساء : ٢٣]

[٤٨١٨] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ أَنَّ عُرْوَةَ بْنَ الزُّبَيْرِ أَخْبَرَهُ أَنَّ زَيْنَبَ بِنْتَ أَبِي سَلَمَةَ أَخْبَرَتْهُ أَنَّ أُمَّ حَبِيبَةَ قَالَتْ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ انْكِحْ أُخْتِي بِنْتَ أَبِي سُفْيَانَ قَالَ وَتُحِبِّينَ قُلْتُ نَعَمْ لَسْتُ لَكَ بِمُخْلِيَةٍ وَأَحَبُّ مَنْ شَارَكَنِي فِي خَيْرٍ أُخْتِي فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ ذَلِكِ لَا يَحِلُّ لِي قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ فَوَاللَّهِ إِنَّا لَنَتَحَدَّثُ أَنَّكَ تُرِيدُ أَنْ تَنْكِحَ دُرَّةَ بِنْتَ أَبِي سَلَمَةَ قَالَ بِنْتَ أُمِّ سَلَمَةَ فَقُلْتُ نَعَمْ قَالَ فَوَاللَّهِ لَوْ لَمْ تَكُنْ فِي حَجْرِي مَا حَلَّتْ لِي إِنَّهَا لَابْنَةُ أَخِي مِنَ الرَّضَاعَةِ أَرْضَعَتْنِي وَأَبَا سَلَمَةَ ثُوَيْبَةُ فَلَا تَعْرِضْنَ عَلَيَّ بَنَاتِكُنَّ وَلَا أَخَوَاتِكُنَّ [ر: ٤٨١٣]

دامام بخاری رحمه الله مقصد دادي چه دوؤخويندو په يونكاح كښې جمع كيدل جائز نه دى. كه حقيقى خويندې وې اوكه علاتى وى ياإخيافى وى يارضاعى وى ، دامسئله خومتفق عليه ده.

البته ملك يمين كښې دوه خويندې جمع كيدلې شى ، په دې سلسله كښې اختلاف دې ،دجمهور علماء په نيز ملك يمين كښې دوه خويندې جمع كول درست نه دى ، بعض سلف دجواز قائل دى ، امام احمد رحمه الله نه هم دايوروايت دجواز منقول دې . (١)

دحديث مطابقت دترجمة الباب سره ظاهرنه دى ، حضرت نبى كريم ﷺ ام المومنين حضرت ام حبيبه رضي الله عنها ت اوفرمائيل «لا تعرضن على بناتكن ولا اخواتكن»

## ٢٨=باب لا تُنْكَحُ الْمَرْأَةُ عَلَى عَمَّتِهَا

امام بخارى رحمه الله فرمائى چه كه دچا په نكاح كښې ترور وى بيا ددې وريرې سره نكاح كول جائز نه دى او هم دا حكم دترور او ددې خورزې دې ، امام ترمذى رحمه الله ، ابن منذر رحمه الله ، ابن حزم رحمه الله ، علامه نووى رحمه الله اوقرطبى رحمه الله فرمائى چه دا مسئله اجماعى ده ، البته امام نووى رحمه الله د روافضو اوابن منذر او قرطبى د خوارجو استثنى كړې ده. (٢) حنفيه يوقاعده بيان كړې ده چه دداسې دوؤ ښځو نكاح كښې جمع كول حرام دى چه په هغوى كښې يو سړې فرض كړې شى نو دده بلې سره نكاح كول جائز نه دى ليكن كه حرمت يو طرفنه وى او بل طرفنه نه وى نوبيا جمع كيدلو كښې هيڅ حرج نشته . (٣)

[٤٨٢١/٤٨١٩] حَدَّثَنَا عَبْدَانُ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا عَاصِمٌ عَنِ الشَّعْبِيِّ سَمِعَ جَابِرًا رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ تُنْكَحَ الْمَرْأَةُ عَلَى عَمَّتِهَا أَوْ خَالَتِهَا وَقَالَ دَاوُدُ وَابْنُ عَوْنٍ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ

---

١) اوګورئ دتفصيل دپاره فتح البارى: ٩/١٩٩).
٢) اوګورئ دتفصيل دپاره فتح البارى: ٩/٢٠١).
٣) اوګورئ الهدايه ،كتاب النكاح ، باب المحرمات: ٢/٢٧٧).

[٤٨٢٠] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ اَبِي الزِّنَادِ عَنْ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يُجْمَعُ بَيْنَ الْمَرْاَةِ وَعَمَّتِهَا وَلَا بَيْنَ الْمَرْاَةِ وَخَالَتِهَا

[٤٨٢١] حَدَّثَنَا عَبْدَانُ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ قَالَ اَخْبَرَنِي يُونُسُ عَنْ الزُّهْرِيِّ قَالَ حَدَّثَنِي قَبِيصَةُ بْنُ ذُؤَيْبٍ اَنَّهُ سَمِعَ اَبَا هُرَيْرَةَ يَقُولُ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ تُنْكَحَ الْمَرْاَةُ عَلَى عَمَّتِهَا وَالْمَرْاَةُ وَخَالَتُهَا فَنُرَى خَالَةَ اَبِيهَا بِتِلْكَ الْمَنْزِلَةِ لِاَنَّ عُرْوَةَ حَدَّثَنِي عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ حَرِّمُوا مِنْ الرَّضَاعَةِ مَا يَحْرُمُ مِنْ النَّسَبِ(١)

حضرات جمهور ددې پشان داحاديثو په وجه آيت كريمه ﴿وَأُحِلَّ لَكُم مَّا وَرَآءَ ذَٰلِكُمْ﴾ عموم كښې دتخصيص قائل دى. جمهور علماء چونكه قران كريم تخصيص په اخبار آحاد جائز منى .(٢)نو پدې وجه په دوى باندې هيڅ اشكال نه وى.

ليكن حضرات حنيفه باندې اشكال كيږى ځكه چه هغوى داخبار آحاد نه تخصيص دكتاب الله قائل نه دى ، صاحب هدايه دا جواب كړې دې چه دا اخبار آحاد نه دې بلكه دا ټول احاديث مشهور دى ددې وجې دوى نه په قران پاك كښې تخصيص كيدلې شى. (٣)

په دې باندې اشكال كيږى چه كوم شهرت محدثينو لره معتبر دې هغه په دې آحاديثو كښې نه موندې كيږى چه كوم په دې ځائې كښې موندې شى. ددې حضرات محدثينو په خپله اصطلاح كښې اعتبار نه دې كړې ځكه دمحدثينو په اصطلاح كښې خبرمشهور هغې ته وئيلې شى چه دهغې راوى هره زمانه كښې دريو نه كم نه وى، كم از كم درې وى ، (٤) او احاديث باب داشان نه دى.

دحنفيه دطرفنه دويم جواب دا وركړې شوې دې چه په دوى باندې چونكه دامت اجماع منعقد شوې ده ، ددې وجې دا احاديث مستند بالاجماع دى ، چنانچه په آيت كريمه كښې تحصيص داجماع ذريعې سره شوې دې ، دخبر واحد په ذريعه نه دې ، علامه انور شاه كشميرى رحمه الله ددې اشكال جواب فرمائى چه :

---

١ ) داخرجه ابوداود فى كتاب النكاح ، باب مايكره ان يجمع بينهن من النساء ، رقم ا لحديث : ٢٠٢٥، والترمذى فى كتاب النكاح ، باب تحريم النكاح ، باب ماجاء لاتنكح المراة على عمتها ولا على خالتها ، رقم الحديث: ١١٢٦، والنسائى فى كتاب النكاح ،باب تحريم الجمع بين المراة وعمتها ، رقم ا لحديث: ٥٤١٩، وابن ماجه فى كتاب النكاح ،باب لا تنكح المرأة على عمتها ولا على خالتها رقم الحديث: ١٩٢٩ ، واخرجه مالك فى كتاب النكاح ،باب مالا يجمع بينه من النساء ،رقم الحديث : ٢٠).

٢ ) فتح البارى: ٢٠١/٩).

٣ ) فتح البارى: ٢٠١/٩ ، وعمده القارى: ١٠٧/٢٠ ، والهدايه: ٢٧٧/٢ ، كتاب الحج).

٤ ) ظفرالامانى بشرح مختصر ا لسيد ا لجرجانى: ٦٥ ، وشرح النخبه :١٨ _٣١ ، وتدريب الراوى :٣٦٨_٣٦٩ ، كذا على هانش علوم ا لحديث: ٢٦٥).

واورد عليه ابن القيم في اعلام الموقعين ، قال : وهي زيادة على الكتاب من خبر الواحد ، وهو ساقط عندي ، لان هذا مجمع عليه ، فلم يبق خبرا واحدا ، وقد مر ان خبر الواحد عند المحدثين ما كان له سند دون المشهور ، وعند الاصوليين هو مالم يتلق بالقبول في عهد السلف فان تلقى فهو مشهور ، فهم قسموا الخبر باعتبار التلقي وعلمه فما تلقى يصير الخبر عندهم مشهورا ، فتجوز به الزيادة على الكتاب على انه متواتر عملا ، وان لم يكن متواتر سندا لان السند عبارة عن من عن من وفي تواتر الطبقة يكون احد الطبقة عن الطبقة وثالثا : انه ليس من باب الزيادة بل تنقيح المناط القوله وان تجمعوا بين الاختين ، ، فافهم ، (۱)

**قوله: وقال داود ابن عون عن الشعبي ،عن ابي هريرة:** د داود بن ابی هند روایت امام ابو داود ، امام ترمذی ،او دارمی موصولاً نقل کړې دې. دهغه الفاظ دی «ان رسول الله ﷺ نهى ان تنكح المراة على عمتها او المراة على خالتها او العمة على بنت اخيها او الخالة على البنت اختها ، لا الصغرى على الكبرى ولا الكبرى على الصغرى» (۲)

اودعبدالله بن عون روایت لره امام نسائی موصولاً نقل کړې دې ، دده الفاظ دی «لاتزوج المراة على عمتها ولا على خالتها» (۳)

**قوله: فنرى خالة ابيها بتلك المنزلة:** «نرى» بضم النون أي نظن وبفتحها أي نعتقد خالة ابيها بتلك المنزلة ، أي من التحريم .

دا دحضرت زهری رحمه الله قول دې. هغوی دحضرت ابوهریره رضی الله عنه نه حدیث نقل کړې دې چه حضرت نبی کریم ﷺ د ترور په نکاح باندې د وریرې نکاح نه او دترور په نکاح باندې د خورزې نکاح نه منع فرمائیلې ده. حضرت زهری رحمه الله د ښځې دپلاردترورهم مونږدا حکم ګڼړو ، یعنی ښځه او دده دپلار ترور هم په نکاح کښې جمع کولې نشی (داشان دنسب تحریم لاندې سره خاص نه دې ، دپورته طرفته به هم ددې اعتبار کولې شی).

**قوله: لان عروة حدثني عن عائشة:** حضرت زهری رحمه الله دحضرت عائشه رضی الله عنها دا حدیث دخپل قول «فنرى خالة ابيها بتلك المنزلة» دپاره ددلیل په طور پیش کړې دې.

لیکن په دې باندې اشکال کیږی چه حکم ودعوی او دلیل دواړو کښې مطابقت نشته دې ، دعوی خو داده چه ښځه او ددې دپلار ترور په یو نکاح کښې جمع کولې نشی ، اودلیل دا ورکړې کیږی چه «حرموا من الرضاعة ما يحرم من النسب» دلیل کښې پیش کړې شوې دې ، په دې روایت کښې حرمت درضاعت بیان دې ، او په دعوی کښې حرمت نسب او حرمت

---

۱ ) فیض الباری: ٤/۲۸۱).
۲ ) فتح الباری . ۹/۲۰۰).
۳ ) فتح الباری: ۹/۲۰۰).

مصاهرت ذکر دې چه ښځه او ددې دپلار ترورنشی جمع کولې ،صاحب التوضیح فرمائی چه : ((استدلال الزهری غیر صحیح لانه استدل علی تحریم من حرمت بالنسب فلا حاجة تشبیها من الرضاع))(۱)

ابن حجر رحمه الله لیکی : ((فی اخذ هذا الحکم من هذا الحدیث نظر وکانه اراد الحاق مایحرم بالصهر مایحرم بالنسب کما یحرم بالرضاع مایحرم بالنسب ولما کانت خالة الاب من الرضاع لا یحل نکاحها فکذالك خالة الاب لایجمع بینها وبین بنت ابن اخیها))(۲)

## ۲۹=بَاب الشِّغَارِ

[۴۸۲۲] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا اَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنِ الشِّغَارِ وَالشِّغَارُ اَنْ يُزَوِّجَ الرَّجُلُ ابْنَتَهُ عَلَى اَنْ يُزَوِّجَهُ الْاٰخَرُ ابْنَتَهُ لَيْسَ بَيْنَهُمَا صَدَاقٌ [ر:۶۵۵۹].

شغار یعنی دادل بدل نکاح تفسیر دادې چه یو سړې بل ته اووائی چه څه تاسره دخپلې خور یا دخپلې لور نکاح کول غواړم ،په دې شرط باندې چه ته دخپلې خور یا لورنکاح ماسره اوکړې ، او احد العقدین دبل عوض شی ،ددې نه علاوه څه نور مهرنه وی. (۳)

داد((شغرالبلد من السلطان)) نه ماخوذ دې ،دا په هغه وخت کنبې وائی چه کله ښار دسلطان نه خالی شی، چونکه دا نکاح دمهر نه خالی وی ددې وجې دې ته شغار وائی. (۴)

بعضو حضرات وئیلی دی چه دا شغرالکلب نه ماخوذدې ،دا په هغه وخت کنبې وئیلې کیږی چه کله سپې متیازو دپاره خپله پښه اوچته کړی ، په نکاح شغارکنبې هم چونکه دجانبینو دطرفنه شرط وی((لاأرفع رجل سنتك حتى لا ترفع رجل بنتي))ددې وجې دې ته نکاح شغار وائی.

دنکاح شغار په ناجائز کیدو باندې دټولو اتفاق دې ، ابن عبدالبر په دې باندې اجماع نقل کړې ده ، (۵) لیکن که داشان نکاح اوکړې شی نو سوال دادې چه هغه نکاح به منعقد وی که او که نه به وی ؟ دجمهورو رائې داده چه منعقد به نه وی؟دحضرات حنفیه په نیز به منعقد وی ، امام احمد بن حنبل رحمه الله هم یو روایت دادې اومهر المثل به لازم وی. (۶)

دنکاح شغار دانعقاد دپاره دا مسئله داصول فقهه دمشهورې قاعدې متفرع ده چه نهی عن

---

۱ ) عمده القاری: ۱۰۸/۲۰).

۲ ) فتح الباری: ۲۰۱/۹).

۳ ) النهایه لابن : ۴۸۲/۲ ، وفتح الباری : ۲۰۳/۹).

۴ ) . عمدة القاری: ۱۰۸/۲۰ ، وبدائع الصنائع ، کتاب النکاح: ۲۷۷/۲ ، والهدایه: ۲۹۷/۲ ، کتاب النکاح).

۵ ) فتح الباری: ۲۰۳/۹ ، ۲۰۴).

۶ ) فتح الباری:۲۰۴/۹ ، وعمده القاری:۱۰۸/۲۰).

الافعال الشرعيه حنفيه په نيزد مشروعيت تقاضا كوي . لهذا نكاح به منعقد وی اومهر مثل به واجب وی ،ددې وجه داده چهاحد البضعين چه دنورو مهر مقرر شوې دې دا تسميه فاسده ده .څكه چه بضع مال نه ده ددې وجې مهر نشي جوړيدلې ، داسې صورت كښې بـه دمهر مثل مستحقه وی او احدالبضعين لره مهر ګروزل شرط فاسد دی او نكاح شرط فاسد سره باطله كيږی نه بلكهشرط باطل او نكاح صحيح كيږی به .

امام بخاری رحمه الله دجمهور تائيد كړې دې او «ان رسول الله ﷺ نهى عن الشغار»ئې دليل پيش كړې دې.

حضرات حنفيه رحمهم الله دحديث باب جواب وركوی چه په دې كښې شغار دجاهليت نه منع واردشوې دې. چه په هغې كښې به مهر نه وو ، هغه زمونږ په نيز هم ناجائزدی. مونږ چه د جواز كوم قول اختيار كړې دې هغه مهر مثل سره دې ددې وجې دا شغار دممنوع په زمره كښې نه رازی. (۱) دويم جواب دا وركړې شوې دې چه دا نهى په كراهت باندې محمول ده په حرمت باندې نه ده . (۲)

**فائده** : دشغار يو صورت داهم كيږی چهسړې دخپل خونې نكاح دبل سړی لور سره اوكړی په دې شرط باندې چه هغه بل سړې دې دخپل خوې نكاح دده لور سره اوكړی او احد العقدين د بل عوض وی ، په دې صورت هم مهر مثل به واجب نه وی،البته كه احد العقدين ته دبل عوض اونه خودلې شو نو بيا به هغه مذكوره صورت دشغار لاندې نه رازی.

**قوله: الشغار ان يزوج الرجل ابنته:** دشغار په تفسير كښې د محدثينو اختلاف دې چه آيا دا حصه د حديث مرفوع ده يا راوی حديث امام مالك رحمه الله دطرفنه په طور دتشريح مدرج ده .خطيب بغدادی رحمه الله فرمائی چه دا حديث مرفوع نه دې بلكه دا دامام مالك رحمه الله قول دې.(۳)

بعضو دا مام مالك رحمه الله دشيخ نافع رحمه الله قول ګرزولې دې ، او بعضودا دحضرت ابن عمر رضي الله عنه قول ګرزولې دې ، (۴) علامهقرطبی رحمه الله ليكی :

**«تفسير الشغار صحيح لما ذكره أهل اللغة فان كان مرفوعًا فهو المقصود ، وان كان من قول الصحابي فمقبول أيضا لانه أعلم بالمقال، وأقعد بالحال» (۵)**

شغار تفسير كښې د «بنت»ذكرپه طورد مثال دې ،هرهغه نكاح چه په هغې كښې احد العقدين لره د بل عوض اوګروزلې شی ، هغه شغار دې ، كه هغه دبنت نكاح وی اوكه د اخت يا ددې نه علاوه.

۱) عمده القاری: ۱۰۹/۲۰).
۲) عمدةالقاری: ۱۰۹/۲۰).
۳) عمدةالقاری: ۱۰۸/۲۰ . وفتح الباری: ۲۰۲/۹).
٤) عمدةالقاری: ۱۰۸/۲۰).
۵) عمدةالقاری: ۱۰۸/۲۰).

## ۳۰- بَاب هَلْ لِلْمَرْأَةِ أَنْ تَهَبَ نَفْسَهَا لِأَحَدٍ

[۴۸۲۳] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَامٍ حَدَّثَنَا ابْنُ فُضَيْلٍ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ أَبِيهِ قَالَ كَانَتْ خَوْلَةُ بِنْتُ حَكِيمٍ مِنَ اللَّائِي وَهَبْنَ أَنْفُسَهُنَّ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ عَائِشَةُ أَمَا تَسْتَحِي الْمَرْأَةُ أَنْ تَهَبَ نَفْسَهَا لِلرَّجُلِ فَلَمَّا نَزَلَتْ تُرْجِئُ مَنْ تَشَاءُ مِنْهُنَّ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ مَا أَرَى رَبَّكَ إِلَّا يُسَارِعُ فِي هَوَاكَ

رَوَاهُ أَبُو سَعِيدٍ الْمُؤَدِّبُ وَمُحَمَّدُ بْنُ بِشْرٍ وَعَبْدَةُ عَنْ هِشَامٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ يَزِيدُ بَعْضُهُمْ عَلَى بَعْضٍ [ر: ۴۵۱۰]

که یو ښځه دچا دپاره خپل ځان لره هبه کړې نو دا جائز دي اوکه نه ؟ددې دوه صورتونه کیدیشی ،

① یو صورت دادې چه صرف لفظی هبه ذکر کړی اومهر وغیره ذکر نه کړی ، دجمهورو په نیز دا نکاح باطله ده ،دحنفیه اود امام اوزاعی
په نیزدا جائز دی ، او داسې صورت کښې مهر مثل به واجب وی. (۱)

جمهور دقرآن کریم آیت ﴿خَالِصَةً لَّكَ مِن دُونِ الْمُؤْمِنِينَ﴾ نه استدلال کوی چه بغیر دمهر دذکر نه په لفظ هبه سره نکاح کول دحضرت نبی کریم ﷺ خصوصیت وو.

حضرات حنفیه فرمائی چه په دې سره به دواهبه حضرت نبی کریم ﷺ سره خاص کیدل مراد دی ،مطلق دهبه نکاح دپاره دده خاص کیدل مراد نه دی. (۲)

② دویم صورت دادې چه د عقدنکاح لفظ به دهبه سره منعقد کیږی که نه ، دشوافع په نیز به نه منعقد کیږی او ددوی په نیز صرف په دوؤ لفظونو سره منعقد کیږی ، یو لفظ نکاح او بل تزویج . (۳)

خودحضرات حنفیه او داکثر عالمانو دارائې ده چه عقد نکاح په ټولو الفاظو سره منعقد کیږی ،چه په ملك‌مو باندې دلالت کوی ، لکه څنګه‌چه ملك ، صدقه ، هبه وغیره الفاظ دی ،(۴)

**قوله:** رواه ابوسعید المودب ومحمدبن بشر، وعبدة عن هشام عن ابیه: دابو سعید نوم محمد بن بشر بن مسلم بن ابی الوضاح دی ، ابن مردودیه دده روایت موصولاً نقل کړې دی ، دمحمد بن بشرروایت لره امام احمد رحمه الله موصولاً نقل کړې دې . او دعبدبن سلیمان روایت لره امام مسلم اوامام ابن ماجه موصولاًنقل کړې دې. (۵)

---

۱ ) فتح الباری: ۲۰۳/۲۰).
۲ ) فتح الباری: ۲۰٤/۹).
۳ ) فتح الباری: ۲۰٤/۹).
٤ ) عمده القاری: ۱۰۹/۲۰).
۵ ) عمدة القاری:۱۰۹/۲۰).

## ۳۱=باب نكاح المحرم

[۴۸۲۴] حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ اسْمَاعِيلَ اخْبَرَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ اخْبَرَنَا عَمْرٌو حَدَّثَنَا جَابِرُ بْنُ زَيْدٍ قَالَ انْبَانَا ابْنُ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا تَزَوَّجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ مُحْرِمٌ [ر: ۱۷۴۰].

د آئمه ثلاثه په نيز حالت داحرام كښې نه نكاح جائزده او نه انكاح .دحضرات حنفيه په نيز داحرام په حالت كښې نكاح هم جائز ده او انكاح هم . البته جماع او دواعى جماع حلاليدو پورې جائزنه دى.

امام بخارى رحمه الله چه كوم حديث پيش كړې دې هغه د حنفيه مستدل دې او دامام بخارى رحمه الله مسلك شائدهم دجواز دې . خكه حديث باب نه هغوى په جواز باندې استدلال كړې دې . ددې مسئلې تفصيلى بحث په كتاب الحج كښې تير شوې دې.

## ۳۲=باب نَهْيِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ نِكَاحِ الْمُتْعَةِ آخِرًا

[۴۸۲۵] حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ اسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ انَّهُ سَمِعَ الزُّهْرِيَّ يَقُولُ اخْبَرَنِي الْحَسَنُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ عَلِيٍّ وَاخُوهُ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ عَنْ ابِيهِمَا انَّ عَلِيًّا رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ لِابْنِ عَبَّاسٍ انَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنْ الْمُتْعَةِ وَعَنْ لُحُومِ الْحُمُرِ الاهْلِيَّةِ زَمَنَ خَيْبَرَ [ر: ۳۹۷۹].

[۴۸۲۶] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ ابِي جَمْرَةَ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ سُئِلَ عَنْ مُتْعَةِ النِّسَاءِ فَرَخَّصَ فَقَالَ لَهُ مَوْلًى لَهُ انَّمَا ذَلِكَ فِي الْحَالِ الشَّدِيدِ وَفِي النِّسَاءِ قِلَّةٌ اوْ نَحْوَهُ فَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ نَعَمْ

[۴۸۲۷] حَدَّثَنَا عَلِيٌّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ عَمْرٌو عَنْ الْحَسَنِ بْنِ مُحَمَّدٍ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ وَسَلَمَةَ بْنِ الاكْوَعِ قَالَا كُنَّا فِي جَيْشٍ فَاتَانَا رَسُولُ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ انَّهُ قَدْ اذِنَ لَكُمْ انْ تَسْتَمْتِعُوا فَاسْتَمْتِعُوا وَقَالَ ابْنُ ابِي ذِئْبٍ حَدَّثَنِي ايَاسُ بْنُ سَلَمَةَ بْنِ الاكْوَعِ عَنْ ابِيهِ عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ايُّمَا رَجُلٍ وَامْرَاةٍ تَوَافَقَا فَعِشْرَةُ مَا بَيْنَهُمَا ثَلَاثُ لَيَالٍ فَانْ احَبَّا انْ يَتَزَايَدَا اوْ يَتَتَارَكَا تَتَارَكَا فَمَا ادْرِي اشَيْءٌ كَانَ لَنَا خَاصَّةً امْ لِلنَّاسِ عَامَّةً قَالَ ابُو عَبْدِ اللّٰهِ وَبَيَّنَهُ عَلِيٌّ عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ انَّهُ مَنْسُوخٌ

دمتعه متعلق تفصيلى بحث په كشف البارى كتاب المغازى كښې (صفحه ۴۳۴) باندې په باب غزوه خيبر كښې تير شوې دې.

**قوله:** وقال ابن ابى ذئب...: حضرت نبى كريم ﷺ فرمائيلى دى چه كوم سړې او

ښځه يو بل سره موافق وی نو ددوی په مينځ کښې تر دريو ورځو پورې معاشرت پکار دی . دې نه پس که هغوی په موده کښې اضافه کول غواړی نو اضافه دې اوکړی ، اوکه يو بل لره پريښودل غواړی نو پردې کيږدی. حضرت سلمه بن الاکوع فرمائی چه اوس ماته معلوم نه دی چه دا حکم زمونږ دپاره خاص وو اوکه عامو خلقو دپاره هم دې.

**قوله**: فـان أحبـا أن يـزايدا أويتتـاركـا تتـاركـا: په دې جمله کښې د «يتزايدا» جواب محذوف دې ، اصل عبارت دادې «فان أحبا أن يتزايدا تزايدا أو يتتاركا تتاركا» يعنى که دوی دواړه په خپل مينځ کښې اضافه کول غواړی نو اضافه دې .

دابن ابی ذئب دا تعليق لره امام طبرانی موصولاً نقل کړې دې.

**قوله**: قـالوا ابوعبدالله : وقدبينه علي عن النبي ﷺ انه منسوخ: ابوعبدالله دامام بخاری رحمه الله کنيت دې ، فرمائی چه حضرت علی رضی الله عنه دحضرت نبی کريم ﷺ نه نقل کړی دی چه مذکوره حکم منسوخ شوې دې.

## ۲۳=بَاب عَرْضِ الْمَرْأَةِ نَفْسَهَا عَلَى الرَّجُلِ الصَّالِحِ

[۴۸۲۸] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا مَرْحُومُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ مِهْرَانَ قَالَ سَمِعْتُ ثَابِتًا الْبُنَانِيَّ قَالَ كُنْتُ عِنْدَ أَنَسٍ وَعِنْدَهُ ابْنَةٌ لَهُ قَالَ أَنَسٌ جَاءَتْ امْرَأَةٌ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَعْرِضُ عَلَيْهِ نَفْسَهَا قَالَتْ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَلَكَ بِي حَاجَةٌ فَقَالَتْ بِنْتُ أَنَسٍ مَا أَقَلَّ حَيَاءَهَا وَاسَوْأَتَاهْ وَاسَوْأَتَاهْ قَالَ هِيَ خَيْرٌ مِنْكِ رَغِبَتْ فِي النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَعَرَضَتْ عَلَيْهِ نَفْسَهَا [ر:۵۷۷۲].

[۴۸۲۹] حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ أَبِي مَرْيَمَ حَدَّثَنَا أَبُو غَسَّانَ قَالَ حَدَّثَنِي أَبُو حَازِمٍ(۱) عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ أَنَّ امْرَأَةً عَرَضَتْ نَفْسَهَا عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لَهُ رَجُلٌ يَا رَسُولَ اللَّهِ زَوِّجْنِيهَا فَقَالَ مَا عِنْدَكَ قَالَ مَا عِنْدِي شَيْءٌ قَالَ اذْهَبْ فَالْتَمِسْ وَلَوْ خَاتَمًا مِنْ حَدِيدٍ فَذَهَبَ ثُمَّ رَجَعَ فَقَالَ لَا وَاللَّهِ مَا وَجَدْتُ شَيْئًا وَلَا خَاتَمًا مِنْ حَدِيدٍ وَلَكِنْ هَذَا إِزَارِي وَلَهَا نِصْفُهُ قَالَ سَهْلٌ وَمَا لَهُ رِدَاءٌ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَا تَصْنَعُ بِإِزَارِكَ إِنْ لَبِسْتَهُ لَمْ يَكُنْ عَلَيْهَا مِنْهُ شَيْءٌ وَإِنْ لَبِسَتْهُ لَمْ يَكُنْ عَلَيْكَ مِنْهُ شَيْءٌ فَجَلَسَ الرَّجُلُ حَتَّى إِذَا طَالَ مَجْلِسُهُ قَامَ فَرَآهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَدَعَاهُ أَوْ دُعِيَ لَهُ فَقَالَ لَهُ مَاذَا مَعَكَ مِنْ الْقُرْآنِ فَقَالَ مَعِي سُورَةُ كَذَا وَسُورَةُ كَذَا لِسُوَرٍ يُعَدِّدُهَا فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمْلَكْنَاكَهَا بِمَا مَعَكَ مِنْ الْقُرْآنِ [ر:۲۱۸۶].

---

۱) واجرجه البخاری ايضا فی كتاب الادب ،باب مالا يستحی من التفقه فی الدين ،رقم الحديث : ۶۱۲۳، والنسائی فی كتاب النكاح ، باب عرض المراة على من ترضى ، رقم الحديث: ۵۳۶۱، ۵۳۶۲، وابن ماجه فی كتاب النكاح ،باب التی وهبت نفسها للنبی ﷺ رقم الحديث: ۲۰۰۱).

دامام بخارى رحمه الله مقصد دادې چه يوښځه خپل ځان لره يو نيک سړى ته پيش کړى نو په سنتو کښې ددې اصل موجود دې .

علامه ابن منير مالکى رحمه الله فرمائى چه دا دامام بخارى رحمه الله په لطائفو کښې ده چه هغوى حديث باب کښې دواهبې ددې قصې نه عجيبه مسئله مستنبط کړې چه بيشکه دا واقعه سره خاص وه ، خو ددې نه دا راوزى که يو ښځه خپل ځان لره يو نيک سړى ته پيش کړى نو په سنت کښې ددې اصل موجود دې .(۱)

**قوله: حدثنا على بن عبدالله...:** ثابت بنانى فرمائى چه خه حضرت انس سره اوم ،د حضرت انس لور بى بى هم دوى سره وه ، حضرت انس رضى الله عنه اوفرمائيل چه دحضور ﷺ په خدمت کښې يو ښځه حاضره شوه او خپل نفس ئې حضرت نبى کريم ﷺ ته پيش کړو او وې وئيل يارسول الله ﷺ آيا تاسو ته خما ضرورت شته دې ؟نو دحضرت انس رضى الله عنه لور بى بى اوفرمائيل چه څومره بې حياء ښځه وه، هائې بې شرمى!، نوحضرت انس رضى الله عنه اوفرمائيل چه هغه ښځه ستانه بهتره وه ځکه چه دهغې حضرت نبى کريم ﷺ سره رغبت وو نوددې وجې خوئې حضرت نبى کريم ﷺ ته خپل ځان پيش کړو.

**قوله: مرحوم:** دامرحوم بن عبدالعزيز بن مهربان دې ، دبصرې اوسيدونکې دې ، ثقه دې ، په کال ۱۸۷ هجرئى کښې ددوى وفات اوشو ، په صحيح بخارى کښې ددوى صرف يو حديث دې ،دا حديث امام بخارى رحمه الله مخکښې په کتاب الادب کښې هم ذکر کړې دې (۲)

**قوله: وعنده ابنة انس:** دحضرت انس رضى الله عنه دهغه لور بى بى نوم معلوم نشو، حافظ اوعينى ليکلى دى چه شائد ددې نوم امينة وو. (۳)

**قوله: واسوأتاه:** د«سوأة» معنى بې حيائى او خراب کار هم رازى ، او شرمګاه ته هم «سوأة» وائى . په دې ځائې کښې ددې رومبئ معنى مراد ده ، ددې په آخر کښې الف ندبه دې او هاء سکته ده يعنى هائې بې شرمى!.

**تنبيه :** حضرت انس رضى الله عنه په دې حديث کښې بيان شوې واقعې باره کښې حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه دا دحضرت سهل بن سعد بيان شوې واقعې نه مختلف ده ، دا دوه مختلفې واقعې دى. (۴)

## ۳۴=بَابُ عَرْضِ الْإِنْسَانِ ابْنَتَهُ أَوْأُخْتَهُ عَلَى أَهْلِ الْخَيْرِ

[۴۸۳۰] حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ صَالِحِ بْنِ كَيْسَانَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ أَخْبَرَنِي سَالِمُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ أَنَّهُ سَمِعَ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا

---

۱ ) فتح البارى: ۲۱۸/۹).
۲ ) اوګورئ عمده القارى: ۱۱۳/۲۰).
۳ ) فتح البارى: ۲۱۸/۹ ، وعمده البارى: ۱۱۳/۲۰).
٤ ) فتح البارى: ۲۱۸/۹).

يُحَدِّثُ انَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ حِينَ تَأَيَّمَتْ حَفْصَةُ بِنْتُ عُمَرَ مِنْ خُنَيْسِ بْنِ حُذَافَةَ السَّهْمِيِّ وَكَانَ مِنْ اَصْحَابِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَتُوُفِّيَ بِالْمَدِينَةِ فَقَالَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ اَتَيْتُ عُثْمَانَ بْنَ عَفَّانَ فَعَرَضْتُ عَلَيْهِ حَفْصَةَ فَقَالَ سَانْظُرُ فِي اَمْرِي فَلَبِثْتُ لَيَالِيَ ثُمَّ لَقِيَنِي فَقَالَ قَدْ بَدَا لِي اَنْ لَا اَتَزَوَّجَ يَوْمِي هٰذَا قَالَ عُمَرُ فَلَقِيتُ اَبَا بَكْرٍ الصِّدِّيقَ فَقُلْتُ اِنْ شِئْتَ زَوَّجْتُكَ حَفْصَةَ بِنْتَ عُمَرَ فَصَمَتَ اَبُو بَكْرٍ فَلَمْ يَرْجِعْ اِلَيَّ شَيْئًا وَكُنْتُ اَوْجَدَ عَلَيْهِ مِنِّي عَلَى عُثْمَانَ فَلَبِثْتُ لَيَالِيَ ثُمَّ خَطَبَهَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَنْكَحْتُهَا اِيَّاهُ فَلَقِيَنِي اَبُو بَكْرٍ فَقَالَ لَعَلَّكَ وَجَدْتَ عَلَيَّ حِينَ عَرَضْتَ عَلَيَّ حَفْصَةَ فَلَمْ اَرْجِعْ اِلَيْكَ شَيْئًا قَالَ عُمَرُ قُلْتُ نَعَمْ قَالَ اَبُو بَكْرٍ فَاِنَّهُ لَمْ يَمْنَعْنِي اَنْ اَرْجِعَ اِلَيْكَ فِيمَا عَرَضْتَ عَلَيَّ اِلَّا اَنِّي كُنْتُ عَلِمْتُ اَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ ذَكَرَهَا فَلَمْ اَكُنْ لِاُفْشِيَ سِرَّ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَوْ تَرَكَهَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَبِلْتُهَا [ر: ۳۷۸۳].

[۴۸۳۱] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ يَزِيدَ بْنِ اَبِي حَبِيبٍ عَنْ عِرَاكِ بْنِ مَالِكٍ اَنَّ زَيْنَبَ بِنْتَ اَبِي سَلَمَةَ اَخْبَرَتْهُ اَنَّ اُمَّ حَبِيبَةَ قَالَتْ لِرَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّا قَدْ تَحَدَّثْنَا اَنَّكَ نَاكِحٌ دُرَّةَ بِنْتَ اَبِي سَلَمَةَ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَعَلَى اُمِّ سَلَمَةَ لَوْ لَمْ اَنْكِحْ اُمَّ سَلَمَةَ مَا حَلَّتْ لِي اِنَّ اَبَاهَا اَخِي مِنَ الرَّضَاعَةِ [ر: ۴۸۱۳].

كه يوڅوك خپله لور يا خور د چا په مخكښې پيش كړى دنكاح دپاره نو په دې كښې هيڅ باك نشته دې . او دابه دحيا خلاف نه ګنړلې كيږى.

دباب لاندې چه كوم دوه حديثونه بيان شوى دى ، په هغې باندې كلام تيرشوې دې ، رومبې حديث په كتاب المغازى كښې تير شوې دې ، او دويم حديث په ماقبل ((باب وان تجمعوا بين الاختين)) لاندې تير شوې دې . په هغه ځائې كښې الفاظ دا وو ((قالت ام حبيبه يا رسول الله ﷺ، انكح اختى)) خپله خورحضرت ام حبيبه رضي الله عنها دنكاح دپاره پيش كړه ،چه ددې نه ترجمة الباب ((عرض الانسان اخته)) ثابت شو.

## ۳۵ـ بَابُ قَوْلِ اللّٰهِ جَلَّ وَعَزَّ

﴿ وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيمَا عَرَّضْتُمْ بِهٖ مِنْ خِطْبَةِ النِّسَآءِ اَوْ اَكْنَنْتُمْ فِيْٓ اَنْفُسِكُمْ ۭ عَلِمَ اللّٰهُ اَنَّكُمْ سَتَذْكُرُوْنَهُنَّ وَلٰكِنْ لَّا تُوَاعِدُوْهُنَّ سِرًّا اِلَّآ اَنْ تَقُوْلُوْا قَوْلًا مَّعْرُوْفًا ڛ وَلَا تَعْزِمُوْا عُقْدَةَ النِّكَاحِ حَتّٰى يَبْلُغَ الْكِتٰبُ اَجَلَهٗ ۭ وَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ مَا فِيْٓ اَنْفُسِكُمْ فَاحْذَرُوْهُ ۚ وَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ حَلِيْمٌ ﴾ (البقرة: ۲۳۵)

اَوْ اَكْنَنْتُمْ اَضْمَرْتُمْ وَكُلُّ شَيْءٍ صُنْتَهُ وَاَضْمَرْتَهُ فَهُوَ مَكْنُونٌ

وَقَالَ لِي طَلْقٌ حَدَّثَنَا زَائِدَةُ عَنْ مَنْصُورٍ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ فِيمَا عَرَّضْتُمْ بِهِ مِنْ خِطْبَةِ النِّسَاءِ يَقُولُ اِنِّي اُرِيدُ التَّزْوِيجَ وَلَوَدِدْتُ اَنَّهُ تَيَسَّرَ لِي امْرَاَةٌ صَالِحَةٌ وَقَالَ الْقَاسِمُ يَقُولُ اِنَّكِ

عَلَىٰ كَرِيمَةٌ وَاِنِّي فِيكِ لَرَاغِبٌ وَاِنَّ اللّٰهَ لَسَائِقٌ اِلَيْكِ خَيْرًا اَوْنَحْوَهٰذَا
وَقَالَ عَطَاءٌ يُعَرِّضُ وَلَا يَبُوحُ يَقُولُ اِنَّ لِي حَاجَةً وَاَبْشِرِي وَاَنْتِ بِحَمْدِ اللّٰهِ نَافِقَةٌ وَتَقُولُ هِيَ قَدْ اَسْمَعُ مَا تَقُولُ وَلَا تَعِدُ شَيْئًا وَلَا يُوَاعِدُ وَلِيُّهَا بِغَيْرِ عِلْمِهَا وَاِنْ وَاعَدَتْ رَجُلًا فِي عِدَّتِهَا ثُمَّ نَكَحَهَا بَعْدُ لَمْ يُفَرَّقْ بَيْنَهُمَا
وَقَالَ الْحَسَنُ لَا تُوَاعِدُوهُنَّ سِرًّا الزِّنَا وَيُذْكَرُ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ حَتّٰى يَبْلُغَ الْكِتَابُ اَجَلَهُ تَنْقَضِيَ الْعِدَّةُ(۱)

په آيت باب کښې څلور حکمونه بيان شوی دی.

① يوتعريض يعنی داسې کلام چه په هغې کښې دنکاح صراحت خو نه وی ليکن دا معلوم شی چه دنکاح اراده ده .

② دويم حکم داکنال دې ،چه په زړه زړه کښې دا سوچ اوکړی د عدت تيريدونه پس دې ښځې سره به نکاح کومه ، او هېڅوك دخپل خيال نه نكړل.

د آيت كريمه شروع كښې ددې دواړو حکمونو جواز بيان شوېدې چه په داشان کولو کښې هېڅ باك نشته دې.

③ دريم حکم دې ﴿لَا تُوَاعِدُوهُنَّ سِرًّا﴾ يعنی پټ په پټه دوی سره وعده مه کوئی ، د عدت په دوران كښې پټ پټه ښځې سره دنكاح كولووعده جائز نه ده، ددې نه منع كړې شوې ده.

④ څلورم حکم دادې ﴿وَلَا تَعْزِمُوا عُقْدَةَ النِّكَاحِ﴾ يعنی دعدت په موده کښې دعقد نکاح اراده هم ممنوع ده. مخکښې دطلق بن غنام په روايت کښې دتعريض الفاظ نقل کړې شوی دی چه سړې په كومو الفاظو سره دنكاح دپاره بهدتعريض تعبير اختياروی.

**قوله:** وَقَالَ الْقَاسِمُ يَقُولُ : اِنَّكِ عَلَيَّ كَرِيمَةٌ: دا قاسم بن محمد بن ابی بکر صديق رضی الله عنه دې ، دا تعليق امام مالك رحمه الله موصولاً نقل کړې دې . (۲)

**قوله:** وَقَالَ عَطَاءٌ يُعَرِّضُ وَلَا يَبُوحُ: عطاء بن ابی رباح فرمائی چه صراحت کول درست نه دی ، تعريض به كوی، لكه وائی به چه «ان لی حاجة وانت بحمدالله نافقة» يعنی ماته ضرورت دې او تاسو الحمد لله چليدونکې ئې .دنافقه معنی «رائجة» ده يعنی چليدونکې چه کهوټه نه وی.

دعطاء بن ابی رباح تعليق دې ،امام عبدالرزاق موصولاً نقل کړې دې (۳).

---

۱) (ولاجناح.....) وتتمتها: ﴿وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيمَا عَرَّضْتُمْ بِهِ مِنْ خِطْبَةِ النِّسَاءِ اَوْ اَكْنَنْتُمْ فِي اَنْفُسِكُمْ عَلِمَ اللّٰهُ اَنَّكُمْ سَتَذْكُرُونَهُنَّ وَلٰكِنْ لَا تُوَاعِدُوهُنَّ سِرًّا اِلَّا اَنْ تَقُولُوا قَوْلًا مَعْرُوفًا وَلَا تَعْزِمُوا عُقْدَةَ النِّكَاحِ حَتّٰى يَبْلُغَ الْكِتٰبُ اَجَلَهُ وَاعْلَمُوا اَنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ مَا فِي اَنْفُسِكُمْ فَاحْذَرُوهُ وَاعْلَمُوا اَنَّ اللّٰهَ غَفُورٌ حَلِيمٌ﴾ البقرة ۲۳۵ (وقوله معروفا) عرف جوازه فی الشرع وهو التعريض (عقدة النكاح) عقده (فاحذروه) ان يعاقبكم اذا عقدتم العقد قبل انتها العدة).

۲) فتح الباری:۹/۲۲۳).

۳) فتح الباری: ۹/۱۲۴).

**قوله: وقال الحسن لاتواعدهن سرا الزنا:** حضرت حسن بصری رحمه الله فرمائی چه آیت کریمه کښې «سرا» نه مراد زنا ده . یعنی دې سره دزنا وعده مه کوئی ، علامه عینی رحمه الله فرمائی چه په دې تفسیر کښې تامل دې، ځکه چه دزما وعده نه سراً صحیح ده اونه جهراً صحیح ده ،نولیکی چه «ولکن فیه تامل لان الزنا لایجوز المواعدة به سرا ولا جهرا» (۱)
دآیت کریمه سیاق وسباق هم په دې باندې دلالت نه کوی ، واضح مطلب هم هغه دې چه کوم جمهورو اختیار کړې دې چه تاسو سراً هغې سره دنکاح وعده مه کوئی.
حضرت حسن بصری رحمه الله دا تعلیق لره عبدبن حمید موصولاً نقل کړې دې.(۲)
په آخر کښې دحضرت ابن عباس رضی الله عنهما تعلیق لره طبری موصولاً نقل کړې دې (۳)

## ۳۶=بَابُ النَّظَرِ إِلَى الْمَرْأَةِ قَبْلَ التَّزْوِيجِ

[۴۸۳۲] حَدَّثَنَا مسدد: حدثنا حماد بن زید، عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (رايتك فِي الْمَنَامِ يجيء بك الملك من سَرَقَةٍ حَرِيرٍ فقال لي هَذِهِ امْرَاَتُكَ فَكَشِفْتُ عن وجهك الثوب فاذا هي انت فقلت ان يَكُنْ هَذَا مِنْ عِنْدِ اللَّهِ يُمْضِهِ [ر: ۳۶۸۲]

[۴۸۳۳] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ اَبِي حَازِمٍ عَنْ اَبِيهِ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ السَّاعِدِيِّ قَالَ جَاءَتْ امْرَاَةٌ اِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ يَا رَسُولَ اللَّهِ جِئْتُ اَهَبُ لَكَ نَفْسِي قَالَ فَنَظَرَ اِلَيْهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَصَعَّدَ النَّظَرَ فِيهَا وَصَوَّبَهُ ثُمَّ طَاطَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَاْسَهُ فَلَمَّا رَاَتْ الْمَرْاَةُ اَنَّهُ لَمْ يَقْضِ فِيهَا شَيْئًا جَلَسَتْ فَقَامَ رَجُلٌ مِنْ اَصْحَابِهِ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ اِنْ لَمْ يَكُنْ لَكَ بِهَا حَاجَةٌ فَزَوِّجْنِيهَا فَقَالَ وَهَلْ عِنْدَكَ مِنْ شَيْءٍ قَالَ لَا وَاللَّهِ يَا رَسُولَ اللَّهِ فَقَالَ اذْهَبْ اِلَى اَهْلِكَ فَانْظُرْ هَلْ تَجِدُ شَيْئًا فَذَهَبَ ثُمَّ رَجَعَ فَقَالَ لَا وَاللَّهِ مَا وَجَدْتُ شَيْئًا فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ انْظُرْ وَلَوْ خَاتَمًا مِنْ حَدِيدٍ فَذَهَبَ ثُمَّ رَجَعَ فَقَالَ لَا وَاللَّهِ يَا رَسُولَ اللَّهِ وَلَا خَاتَمًا مِنْ حَدِيدٍ وَلَكِنْ هَذَا اِزَارِي قَالَ سَهْلٌ مَا لَهُ رِدَاءٌ فَلَهَا نِصْفُهُ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا تَصْنَعُ بِاِزَارِكَ اِنْ لَبِسْتَهُ لَمْ يَكُنْ عَلَيْهَا مِنْهُ شَيْءٌ وَاِنْ لَبِسَتْهُ لَمْ يَكُنْ عَلَيْكَ مِنْهُ شَيْءٌ فَجَلَسَ الرَّجُلُ حَتَّى اِذَا طَالَ مَجْلِسُهُ قَامَ فَرَآهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُوَلِّيًا فَاَمَرَ بِهِ فَدُعِيَ فَلَمَّا جَاءَ قَالَ مَاذَا مَعَكَ مِنْ الْقُرْآنِ قَالَ مَعِي سُورَةُ كَذَا وَسُورَةُ كَذَا عَدَّدَهَا فَقَالَ تَقْرَؤُهُنَّ عَنْ ظَهْرِ قَلْبِكَ قَالَ نَعَمْ قَالَ اذْهَبْ فَقَدْ مَلَّكْتُكَهَا بِمَا مَعَكَ مِنْ الْقُرْآنِ [ر: ۲۱۸۶]

---

۱) عمده القاری: ۱۱۸/۲۰).
۲) فتح الباری: ۲۲٤/۹، عمده القاری: ۱۱۸/۲۰).
۳) فتح الباری:۲۲۵/۹)

دنكاح نه مخكښې ښځه كتلې شى كه نه ؟ اسماعيل بن عليه او يونس بن عبيد اجازت نه وركوى. (۱)

جمهورعالمان فرمائى چه په كتلو كښې څه حرج نشته دې ، بلكه علامه موفق الدين خو په دې باندې اجماع كړې ده ، شائد چه هغوى ددې دوو حضراتو انكار لره يا اهميت نه دې وركړې يا ده ته د هغوى دانكار علم نه دې شوې ، په دې وجه په جواز باندې اجماع نقل كوى. (۲)

امام بخارى رحمه الله په دې مسئله كښې دجمهورو سره دې ، په دې مسئله كښې صحيح ترين روايت هغه دې كوم چه امام مسلم رحمه الله په صحيح مسلم كښې نقل كړې دې ،«قال رجل : انه تزوج مراة من الانصار فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم أنظرت اليها ، قال: لا ، قال ، فاذهب فانظر اليها فان فى أعين الانصار شيئا»(۳)

حضرت مغيره بن شعبه رضى الله عنه نه هم اصحاب سنن روايت كړې دې چه هغوى يو ښځې ته پيغام اوليږلو دنكاح دپاره نو حضرت نبى كريم صلى الله عليه وسلم دهغه نه تپوس اوكړو چه «انظر اليها فانه أحرى ان يودم بينكما». (۴)

چه كوم حضرات اجازت نه وركوى هغوى دامام ترمذى ددې روايت نه داستدلال كوى چه په هغې كښې دى چه «ياعلى لاتتبع النظرة النظرة ، فان لك الاولى ، وليست لك الاخرة» (۵)

خوددې جواب ظاهر دې چه دا خو دهغه نظر متعلق دى چه دنكاح د ارادې نه بغير وى.(۶)

**د مخطوبه څومره حصې لره كتلې شى ؟** : دښځې د نكاح نه مخكښې دكتلو اجازت خودې ليكن دې كښې اختلاف دې چه ددې څومره حصه كتلې شى ؟

په دې باندې دجمهوروااتفاق دې چه وجه و كفين كتلې شى . (۷)

امام اوزاعى رحمه الله فرمائى چه دشرمګاه نه علاوه چه كومه حصه كتل غواړى نوكتلې شى.(۸)

**د كتلو دپاره داجازت مسئله** : علامه بن حزم او دواود ظاهرى فرمائى چه دبدن هره حصه كتلې شى. (۹)

---

۱ ) عمده القارى: ۱۱۹/۲۰).

۲ ) المغنّى لابن قدامه كتاب النكاح ، احكام النظر الى المراة: ۷۳/۷).

۳ ) فتح البارى: ۲۲۶/۹).

٤ ) فتح البارى: ۲۲۶/۹ ، عمده القارى: ۱۱۹/۲۰) .

۵ ) سنن ابى داود ،كتاب النكاح ،باب مويومر به من غض البصر ۲٤۶/۲، رقم الحديث ۲۱٤۹ ، وسنن الترمذى ، كتاب الادب باب ماجاء فى نظر الفجارة:۱۰۱/۵ ، رقم الحديث :۲۷۷۷).

۶ ) عمده القارى: ۱۱۹/۲۰).

۷ ) فتح البارى: ۲۳۷/۹ ، والمغنى لابن قدامه:۷۳/۷).

۸ ) فتح البارى:۲۲۷/۹).

۹ ) فتح البارى: ۲۲۷/۹ ، وشرح مسلم للنووى :۴۶/۱ ، عمده القارى: ۱۱۹/۲۰).

دښځې کتلودپاره به دهغې نه اجازت غوښتلې شي يا به ددې داجازت نه بغيرهم کتلې شي؟
جهمور عالمان فرمائي چه دښځې داجازت نه بغير کتلې شي ، (۱)
دامام ابو حنيفه رحمه الله مسلك دادې چه نکاح به بعبارة النساء ولي نه بغير منعقد کيږي په دې شرط چه ښځه آزاده او عاقله اوبالغه وي ، البته ولي کيدل مستحب دی ( حضرت امام بخاري رحمه الله)
البته چه کوم روايت هغوی مخکښې پيش کړې دې د هغې نه معلوميږي چه څهره کتلې شی ځکه چه په دې کښې «فکشفت عن وجهك الثوب» الفاظ واردې شوی دی ، او دواهبه چه کوم روايت هغوی ذکر کړې دې دهغې نه معلوميږي چه د پورته نه لاندې پورې کتلې شي.
حضرت عائشه رضي الله عنها په استدلال باندې اشکال کيږي چه حضرت جبريل عليه السلام حضرت نبی کريم صلى الله عليه وسلم ته دحضرت عائشه رضي الله عنها تصوير خودلې وو ، لکه څنګه چه دترمذی روايت کښې نه معلوميږي نو دتصوير کتلو سره نفس ښځې باندې دکتلو استدلال څنګه صحيح کيد يشي ، اوکه دا تصوير تسليم نه کړې شي نو بيا هم دې لره زيات نه زيات شبيه اومثال وئيلې شي ، بيا دويمه خبره داده چه هغه خو په هغه وخت کښې وړه ماشومه وه ، او ظاهر دی چه د «لاعورة للصبية» ددې نه بالغې طرفته کتلو باندې استدلال کولو کښې بهرحال سقم دې ، لهذا دا به وئيلې کيږي چه دا روايت صرف استيناس دپاره نقل شويدې دې ، استدلال دپاره نه دې.(۲)

## ۳۷=بَاب مَنْ قَالَ لَا نِكَاحَ إِلَّا بِوَلِيٍّ لِقَوْلِ اللَّهِ تَعَالَى

فَلَا تَعْضُلُوهُنَّ [البقرة: ۲۳۲] فَدَخَلَ فِيهِ الثَّيِّبُ وَكَذَلِكَ الْبِكْرُ وَقَالَ وَلَا تُنْكِحُوا الْمُشْرِكِينَ حَتَّى يُؤْمِنُوا (البقرة: ۲۲۱).
وَقَالَ وَأَنْكِحُوا الْأَيَامَى مِنْكُمْ (النور: ۳۲).

امام بخاري رحمه الله په دې ترجمة الباب کښې هغه مشهوره مسئله بيان کړې ده چه نکاح بغير دولي نه کيد يشي که نه ؟ يا فقهي اصطلاح کښې عبارت نساء سره نکاح منعقد کيږي يا نه چه ښځه دولي د اجازت نه بغير خپله اوکړي نو هغه نکاح به منعقد وي اوکه نه؟
دجمهور علماء کرام او آئمه ثلاثه په نيز دولي داجازت. و عبارت نه بغير نکاح نه منعقد کيږي اونه عبارت نکاح سره نکاح منعقد کيږي ، دانعقاد نکاح دپاره دولي داجازت وتعبير ضروري دې ، که ښځه صغيره وي اوکه کبيره يا باکره يا ثيبه. (۳) البته امام احمد بن حنبيل رحمه الله نه يو روايت کښې صرف داجازت شرط منقول دې ، که ولي ورته اجازت ورکړونو نکاح

---

۱ ) فتح الباري: ۲۲۷/۹).
(۵) دامام مالك رحمه الله يو روايت دې چه دهغې دکتلودپاره اجازت شرط دې ، اجازت نه بغير نشی کتلې . (فتح الباري: ۲۲۷/۹ ، عمده القاري: ۱۱۹/۲۰).
۲ ) فتح الباري: ۲۲۷/۹ ، عمده القاریؒ: ۱۱۰/۲۰).
۳ ) فتح الباري: ۲۳٤/۹، وبدايۀ ا لمتجهد: ۷/۲ ، والمجموعه المهذب: ۳۰۲/۱۵ ، والمحلى : ٤٥١/۹).

به منعقد وي ، اګر چه تعبير دده نه وي ،دابوثور هم دا مسلك دې . (۱)
دامام ابوحنيفه رحمه الله ظاهرالرواية هم دا دې ، ددوى نه بل روايت حسن بن زياد دا نقل كړې دې اګر كه كفو كښې نكاح كوى نو منعقد به وى اوكه غيركفو وى نو درست به نه وى ، فتوى په دې روايت باندې ده . (۲)
امام ابويوسف رحمه الله نه ددې مسئلې باره كښې درې روايتونه منقول دى ، ړومبى روايت جمهورو مطابق يعنى مطلق عدم جواز ، بيا هغوى دامام ابوحنيفه رحمه الله دويم روايت طرفته رجوع كړې ده يعنى جواز فى الكفووعدم جواز فى غير الكفو او آخر كښې هغوى دامام صاحب ړومبى روايتچه ظاهرالرواية دې دې طرفته رجوع كړې ده يعنى مطلقاً جواز(۳)
دشمس الائمه سرخى هم داتحقيق دې ، ليكن امام طحاوى او ابوالحسن نقل كړې دى چه دقاضى ابو يوسف قول آخير همدادېچه نكاح بعبارة النساء بلاولى نه منعقد كيږى چه كوم دجمهورو عالمانو مسلك دې . (۴)
دامام محمد رحمه الله په دې مسئله كښې دوه روايتونه دى.
① ړومبې روايت دادې چه " نكاح بعبارة النساء "دولى په اجازت باندې موقوف ده كه هغه كفو كښې وى اوكه غير كفو كښې .
②او په دويم روايت كښې هم ددوى هغه مسلك نقل كړې شوې دې چه كوم امام ابوحنيفه رحمه الله په ړومبى روايت كښې دې يعنى مطلقاً جواز. (۵)
خلاصه دكلام داده چه بغير ولى نه نكاح بعبارة النساء منعقد كيږىكه كفو كښې وى اوكه غير كفو كښې وى، هم دا دامام ابوحنيفه رحمه الله ظاهرالرواية دې، او امام ابويوسف رحمه الله او امام محمد رحمه الله نه هم دې روايت طرفته ته رجوع منقول ده.
چه كوم خلق په نكاح كښې داشتراط ولى قائل دى چه دقرآن پاك آيات او احاديث نه استدلال كوى.

① ددوى مستدل دحضرت ابوموسى اشعرى رضي الله عنه حديث «لا نكاح الا بولى» دې ، دا حديث چونكهامام بخارى رحمه الله په شرط باندې نه دې ددې وجې هغوى ددې تخريج نه دې كړې او دا ئې د ترجمة الباب په طور ذكر كړو ،دا حديث امام ترمذى رحمه الله ، ابن حبان رحمه الله او حاكم رحمه الله نقل كړې دې . (۶)

---

۱ ) اوګورئ المغنى لابن قدامه : ۲۳/۷ ، كتاب ا لنكاح وفتح البارى: ۲۵۳/۹).
۲ ) تبيين الحقائق: ۱۱۷/۲ ، بابُ الاولياء ولاكفاء).
۳ ) فتح التقدير ۱۵۷/۳، باب الاولياء والاكفاء والمبسوط للسرخى:۱۰/۵ ، باب النكاح بغير ولى).
٤ ) فتح التقدير: ۱۵۷/۳ باب الاولياء والاكفاء).
۵ ) فتح التقدير:۱۵۷/۳).
۶ ) الحديث اخرجه الترمذى فى سننه :۲۰۸/۱ ، كتاب النكاح ،باب ماجاء لانكاح الا بولى، وابوداود فى سننه :۲۸٤/۱ باب فى الولى ، وابن ماجه فى سننه :۱۳۵، باب لانكاح الا بولى ، والحاكم فى المستدرک :۱۶۹/۲، كتاب النكاح).

اودجمهورو په مذهب باندې صريح دى چه ولى نه بغير نكاح نه كيږى.

حنفيه ددې حديث مختلف جوابات وركړى دى.

يو جواب داوركړې شوې دې چه په دې حديث كښې رفعًا دوقفًا اضطراب دې،چنانچه امام ترمذى رحمه الله فرمائى چه((وحديث ابي موسى فيه اختلاف)) (١) او ملا على قارى رحمه الله فرمائى چه ((فانه ضعيف مضطرب فى اسناده وفى صله وانقطاعه وارساله)) (٢)

ليكن دامام ترمذى رحمه الله كلام نه معلوميږى چه هغوى رفع ته ترجيح وركړې ده،اودا ئې په مختلفو طريقود اسرائيل بن يونس په طريقه باندې راجح ګنړلې دى چه مرفوع دې ،(٣)او هم دا خبره درست معلوميږى . امام موفق فرمائى چه مروزى دامام احمد بن حنبل رحمه الله اويحيى بن معين رحمه الله نه ((لانكاح الا بولى))والا حديث متعلق سوال اوكړو نوهغوى اوفرمائيل چه دا صحيح دې. (٤)

نورو حضرات محدثينو هم ددې حديث تصحيح كړې ده ، ددې وجې دې لحاظ سره ددې حديث بالكليه رد نشى كولې.

بعض حضرات دا جواب وركړې دې چه ((لانكاح الا بولى))والا روايت كښې((لا)) دنفى كمال دپاره ده او مطلب دادې چه بغير دولى نه نكاح كيږى ليكن كمال هله رازى چه كله ولى هم شريك وى. (٥)

② دجمهورو دويم استدلال دحضرت عائشه رضي الله عنها روايت دې چه په هغې كښې حضرت نبى كريم ﷺ نه ارشاد نقل كړې شوې دې چه ((أيما امراة نكحت بغير أذن وليها فنكاحها باطل ، باطل، باطل)) امام ترمذى ، ابو داود ،ابن جاردو، دارقطنى اوامام احمد ددې حديث تخريج كړې دې اوامام حاكم دې ته صحيح وئيلى دى. (٦)

دحضرات حنفيه د طرفنه ددې حديث متعلق وئيلې شوى دى چه دا حديث ضعيف دې . ځكه چه اسماعيل بن ابراهيم بن عليه د ابن جريج نه قول نقل كړې دې چه ما ددې حديث متعلق دزهرى نه سوال اوكړو نوهغوى ددې حديث نه انكاراوكړو. (٧) هغوى ته اووئيلې شو

---

١ ) سنن ترمذى: ٢٠٨/١ . باب ماجاء لا نكاح الا بولى.).

٢ ) مرقاه المفاتيح :٢٠٧/٧ . باب الولى فى النكاح واستيذان المراه).

٣ ) سنن ترمذى: ٢٠٩/١).

٤ ) المغنى لابن قدامه . كتاب النكاح فصل لا نكاح الا بولى:٦/٧).

٥ ) فتح التقدير:١٦١/٣).

٦ ) الحديث ا خرجه الترمذى فى كتاب النكاح ،باب ماجاء لا نكاح الا بولى:٢٠٨/١ . واخرجه ابوداود فى كتاب النكاح ،باب الولى:٢٢٩/٢ . رقم الحديث: ٢٠٨٣ . واخرجه الدارقطنى فى كتاب النكاح :٢٢١/٣ ، والحاكم فى المستدرك . كتاب النكاح : ١٦٨/٢ . وهو حديث صحيح . صححه ابوعوانه وابن خزيمه . وابن حبان والحاكم وغيرهم (وانظرالتعليق على جامع الاصول لعبد القادر الارناووط:٤٥٧/١١ . كتاب النكاح).

٧ ) سنن ترمذى: ٢٠٩/٢، باب لانكاح الابولى).

چه دا حديث سليمان بن موسى ستاسو نه نقل كوى نو وې فرمائيل چه‌سليمان بن موسى بيشكه ثقه دې ليكن څما خيال دې چه هغه ته ددې حديث په نقل كولوكښې وهم شوې دې ، څه ددې حديث نه واقف نه يم . (۱)
ابن عدى رحمه الله ، امام طحاوى رحمه الله اوامام احمد رحمه الله دانقل كړى دى ليكن يحيى بن معين رحمه الله ، ابن حبان رحمه الله او حاكم رحمه الله وغيره علماء محققينو دا تعليل رد كړې دې ،هغوى وائى چه‌په دې حديث باندې دا اعتراض صرف داسماعيل بن ابراهيم بن عليه رحمه الله نقل كوى اود اسماعيل بن ابراهيم رحمه الله سماع د ابن جريج رحمه الله نه درست نه ده ، (۲) امام ترمذى رحمه الله دې حديث ته حسن وئيلى دى ،(۳)
ابوعوانه رحمه الله، ابن حزيمه رحمه الله، ابن حبان رحمه الله ، حاكم رحمه الله او ابن خزم ظاهرى رحمه الله ددې تصحيح كړې ده. (۴) ددې وجې دا درست نه معلوميږى چه دې ضعيف اوګنړلې شى او نظرانداز كړې شى.

بعض حضرات«فنكاحها باطل»مطلب دا وائى چه داسې نكاح فائده منده نه وى ، او «باطل» غير مفيد معنى كښې استعماليږى ، دقران پاك آيت ﴿رَبَّنَا مَا خَلَقْتَ هٰذَا بَاطِلًا﴾ كښې «باطل» هم په دې معنى كښې مستعمل دې يا باطل بمعنى ناپائيدار او فانى دې يعنى‌داسې نكاح پائيداره‌نه وى ، دلبيدشعر «الا كل شئ ما خلا الله باطل»باطل ناپائيدار اوزائل په معنى كښې دې. (۵)
اوبعض حضراتود مذكوره دواړو روايتونوجواب وركړې دې چه په دې صورت كښې محمول دى كله چه ښځه غير كفو كښې نكاح اوكړى او دحسن بن زياد روايت كښې امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز هم په دې صورت كښې نكاح باطل ده او دحنفيه په نيز هم دا روايت راجح‌او مفتى به دې(۶) قاضى خان همدې روايت ته اصح وئيلى دى(۷) شمس الائمه سرخسى فرمائى چه «هذا اقرب الى الاحتياط» (۸) محقق ابن همام فرمائى چه «المختار للفتوى»(۹)
ددې حديث راويه حضرت عائشه رضي الله عنها پخپله دنكاح بغير د اذن ولى نه دجواز قائله ده، (۱۰) ددې وجې‌په دې كښې مذكوره تاويل كول ضرورى دى ، بيا داحديث پخپله دامام

---

۱ ) اوګورئ فتح التقدير:۱۶۱/۳ ، وشرح معانى الاثر للطحاوى:۶/۲ ، والكامل لابن عدى :۲۶/۳ ، ترجمه سليمان بن موسى ).
۲ ) اوګورئ سنن ترمذى: ۲۰۹/۲).
۳ ) سنن ترمذى: ۲۰۹/۲).
٤ ) التعليق المغنى على سنن الدار قطنى ، كتاب النكاح :۲۲۱/۳، والتعليق على جامع الاصول:۴۵۷/۱۱ ، والمستدرک للحاكم:۱۶۸/۲).
۵ ) اوګورئ مجمع بحار الانوار:۱۸٤/۱).
۶ ) لكه ښكه چه ماقبل تيرشو.
۹ ) فتح التقدير: ۱۵۷/۳).
۱۰ ) شرح معانى الاثار للطحاوى: ۶/۲ ، وتعليقات لامع الدارى: ۲۹۹/۹).

شافعی رحمه الله هم خلاف دي ځکه چه ددې حديث منطوق خودادې چه بغير ولی د اجازت نه دښځې نکاح باطله ده اوددې مفهوم مخالف راوزی ، که دولی اجازت وی نونکاح کولې شی حالانکه دشوافع په نيز که ولی اجازت هم ورکړی نوبيا هم بعبارة النساء نکاح منعقد نه کيږی ، ترکومې پورې چه د ولی تعبير شامل نه وی. (۱)

**دلائل د احنافو:** حضرات حنفيه اول دخپل مسلك دثبوت دپاره دقران پاك دهغه آيتونونه استدلال کول چه په هغې کښې دنکاح نسبت ښځې طرفته شوې دې .

يو آيت کريم کښې دی چه ((واذا طلقتم النساء فبلغن اجلهن فلا تعضلوهن ان ينكحن ازواجهن)) .

حضرات حنفيه ددې آيت کريمه نه دوه طريقو باندې استدلال کوی،يو دا چه په دې کښې اولياء د عضل نه منع کړې شوی دی ، هغوی ته اوويلې شو چه هغوی دې ښځې دنکاح کولو نه منع کړی. دويمه خبره داده چه((ان ينكحن))کښې دنکاح نسبت ښځو طرفته شويدې ، چه ددې نه معلوميږی چه دښځو په عبارت سره هم نکاح منعقد کيديشی، ړومبې استدلال عبارة النص نهاو دويم استدلال اشارة ا لنص نه دی . (۲)

دامام بخاری رحمه الله مذهب چونکه په دې مسئله کښې د شوافع او دجمهورومطابق دې ، ددې وجې هغوی ددې آيت کريمه نه په خپل مذهب باندې استدلال کړيدې .ځکه چه په آيت کښې خطاب اولياء ته دې چه ددې نه معلوميږی چه دنکاح کولوحق صرف اولياء ته حاصل دې. په ((فلا تعضلوهن)) کښې نهی په هغه وخت کښې صحيح کيديشی چه کله اولياء ته دنکاح نه په منع کولو کښې قدرت حاصل وی. که نکاح بعبارة ا لنساء لره تسليم کړې شی نو په دې صورت کښې به نهی بې قاعده شی ځکه چه په کوم څيز باندې اولياء ته قدرت حاصل نه دې نو دهغې نه منع کړې شوې ده ، ((منع بلافائده))په زمره کښې رازی. (۳)

د دې آيت کښې شان نزول کښې حضرت معقل بن يسار چه کومه واقعه نقل کړې شوې ده دهغې نه بظاهر دامام بخاری رحمه الله د نقطه نظر تائيدکيږی چه په دې کښې ولی دښځې د مرضئ باوجود دې دنکاح اجازت نه ورکوی ،نو الله ﷻ فرمائی چه((فلا تعضلوهن ان ينكحن ازواجهن)).

امام ترمذی رحمه الله فرمائی چه داحديث په دې خبره باندې دلالت کوی چه بغير ولی نه نکاح نشی کيدلې .ځکه چه دحضرت معقل بن يسار خور ثيبه وه ، که هغې ته اختيار وې نو هغې به خپله نکاح په خپله کړې وې ليکن ددې باوجود هغوې اونه کړه ، معلوم شو چه

---

۱ ) مرقاه المفاتيح :۲۰۷/٦ ، کتاب النکاح باب لانکاح الا بولی).
۲ ) اوګورئ احکام القران للجصاص: ۱/ ٤۰۰ ، سوره البقره).
۳ ) ارشادالساری: ۱۱/ ٤۰۷ ، وفتح التقدير:۹/ ۲۳٤ ، المبسوط للسرخی:۵/ ۱۱ ، باب النکاح بغيرولی).

اختيار ولى ته دې . (۱) ابن جرير طبرى،قاضى ابن عربىا و حافظ ابن تيميه رحمهم الله هم ددې روايت نه اشتراط ولى باندې استدلال کړې دې. (۲)

ليکن حقيقت دادې چه مذکوره آيت وروايت نه اشتراط ولى باندې ثبوت مشکل دې ، ځکه حضرت معقل بن يسار خپل خور دنکاح نه منع کولوسره دا نه لازميږى چه هغوى دشرعى حق په وجه منع کړې وه ، بلکه عامه معاشره کښې ولى ته ددخل اندازئ‌او دباؤ اختيار وى، حضرت معقل هم ددې اختيارپيش نظر خپل خور منع کړې وه،اوعام طور سره داسې صورتونوکښې باوجود ددې نه‌ښځې ته حق حاصل وى چه د ولى دمداخلت په وجه هغه په خپل حق باندې عمل اونکړې شى ، آيت کريمه کښې هم ددې معاشرتى دباؤ اچولو اودخل ا ندازئى کولونه منع کړې شويدې ، لهذا ددې نه ولى دپاره داختيارنکاح شرعى ثبوت باندې استدلال کول محل نظر دى.(۳)

داخودښځې خبره ده ،خوئې خوان شى ، او هغه ته ډېرو کارونودکولو اختيار وى ، ليکن د خپل پلارويرې دوجې‌هغه ډير کارونه نشى کولې ، ددې مطلب دانه دې چه دهغه اختيار هم نشته دې.

بهر حال دمذکوره آيت کريمه نه حضرات جنفيه هم استدلال کوى. او جمهور هم. دحنفيه دويم استدلال دقرآن پاك آيت دې.((فَإِذَا بَلَغْنَ أَجَلَهُنَّ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيمَا فَعَلْنَ فِي أَنفُسِهِنَّ بِالْمَعْرُوفِ وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ)) په دې کښې وئيلې شوى دى چه‌ښځې د عدت تيريدو نه پس‌دنکاح په معامله کښې خودمختاره دى. که يو کار په معروفه طريقې سره کوى‌نو په دې کښې هيڅ باك نشته دې ((فعلن فى انفسهن))الفاظ صفا وائى چه‌نکاح دښځې فعل دې ، اوددې تعبير سره نکاح منعقد کيږى. (۴)

دحنفيه دريم استدلال دقرآن پاك آيت نه دې . ﴿فَإِن طَلَّقَهَا فَلَا تَحِلُّ لَهُ مِن بَعْدُ حَتَّىٰ تَنكِحَ زَوْجًا غَيْرَهُ﴾ په دې کښې د نکاح نسبت ښځې طرفته شوې دې ،چه دې د اشارة النص طور سره معلوميږى چه‌عبارة النساء سره نکاح منعقد کيږى.

دحنفيه څلورم‌استدلال‌دحضرت ابن عباس رضي الله عنه‌مشهور روايت دې چه په هغې کښې دى چه حضرت نبى کريم ﷺ فرمائيلى دى چه ((الايم احق بنفسها من وليها والبکر تستاذن فى نفسها واذنها صماتها))(۵)

امام ترمذى رحمه الله فرمائى چه‌په دې حديث کښې‌په حقيقت کښې ولى ته هدايت شوې دې چه

---

۱ ) ) اوګورئ سنن الترمذى ، کتاب التفسير، سوره ا لبقره: ۱۲۷/۲).

۲ ) اوګورئ احکام القران لابن العربى: ۲۰۱/۱ ؛ سوره البقره وجامع ا لبيان فى تفسير القران للطبرى: ۲۹۹/۲_۳۰۰).

۳ ) اوګورئ‌ا حکام القران للجصاص: ۴۰۰/۱).

٤ ) ارشادالسارى :۴۰۸/۱۱).

۵ ) امام مسلم دا حديث نقل کړې دې کتاب النکاح : ۴۵۵/۱ ).

هغه دې ثيبه سره مشوره اوکړی او نکاح دې اوکړی ،دا مطلب نه دې چه ښځه دې د ولی داجازت نه بغیر نکاح کولې شی. ولی ته د نکاح چه کوم اختیار دې هغه ته هدایت ورکول مقصود دی چه «ایم» دخپل نفس حقدار دې ، ددې وجې دې سره مشوره کول پکار دی. (۱)

لیکن ظاهر دی چه درروایت دا مطلب دالفاظ حدیث مطابق نه دې ، په دې خائې کښې دولی ذکر خو په هغه عنوان سره کړې شوې دې چه ددې په مقابله کښې «ایم» ته خپل حق زیات دې ،که هغه غواړی نو ولی نه بغیر نکاح کولې شی ، اوس کتاب طرفته راشی:

امام بخاری رحمه الله دویم آیت ذکر اوفرمائیلو «وَلَا تُنْكِحُوا الْمُشْرِكِيْنَ حَتّٰى يُؤْمِنُوْا» په دې کښې خطاب سړو ته دې ، چه ددې نه معلومیږی چه نکاح بعبارة النساء درست نه ده، داشان «وَاَنْكِحُوا الْاَيَامٰى مِنْكُمْ» کښې هم خطاب اولیاء ته دې.(۲)

امام بخاری رحمه الله په دې باب کښې درې آیتونه اودرې آحادیث پیش کړی دی ، ددې متعلق اجمالی طور دا وئیلې شی چه ددې په معامله دنکاح کښې دولی وقوع و ثبوت واستحباب خومعلومیږی بیاهم دولی اشتراط ددې نه نه ثابتیږی. (۳)

[۴۸۳۴] قَالَ يَحْيَى بْنُ سُلَيْمَانَ حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ عَنْ يُونُسَ ح وحَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ حَدَّثَنَا عَنْبَسَةُ حَدَّثَنَا يُونُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ أَخْبَرَنِي عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ أَنَّ عَائِشَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَخْبَرَتْهُ أَنَّ النِّكَاحَ فِي الْجَاهِلِيَّةِ كَانَ عَلَى أَرْبَعَةِ أَنْحَاءٍ فَنِكَاحٌ مِنْهَا نِكَاحُ النَّاسِ الْيَوْمَ يَخْطُبُ الرَّجُلُ إِلَى الرَّجُلِ وَلِيَّتَهُ أَوْ ابْنَتَهُ فَيُصْدِقُهَا ثُمَّ يَنْكِحُهَا وَنِكَاحٌ آخَرُ كَانَ الرَّجُلُ يَقُولُ لِامْرَأَتِهِ إِذَا طَهُرَتْ مِنْ طَمْثِهَا أَرْسِلِي إِلَى فُلَانٍ فَاسْتَبْضِعِي مِنْهُ وَيَعْتَزِلُهَا زَوْجُهَا وَلَا يَمَسُّهَا أَبَدًا حَتَّى يَتَبَيَّنَ حَمْلُهَا مِنْ ذَلِكَ الرَّجُلِ الَّذِي تَسْتَبْضِعُ مِنْهُ فَإِذَا تَبَيَّنَ حَمْلُهَا أَصَابَهَا زَوْجُهَا إِذَا أَحَبَّ وَإِنَّمَا يَفْعَلُ ذَلِكَ رَغْبَةً فِي نَجَابَةِ الْوَلَدِ فَكَانَ هَذَا النِّكَاحُ نِكَاحَ الِاسْتِبْضَاعِ وَنِكَاحٌ آخَرُ يَجْتَمِعُ الرَّهْطُ مَا دُونَ الْعَشَرَةِ فَيَدْخُلُونَ عَلَى الْمَرْأَةِ كُلُّهُمْ يُصِيبُهَا فَإِذَا حَمَلَتْ وَوَضَعَتْ وَمَرَّ عَلَيْهَا لَيَالٍ بَعْدَ أَنْ تَضَعَ حَمْلَهَا أَرْسَلَتْ إِلَيْهِمْ فَلَمْ يَسْتَطِعْ رَجُلٌ مِنْهُمْ أَنْ يَمْتَنِعَ حَتَّى يَجْتَمِعُوا عِنْدَهَا تَقُولُ لَهُمْ قَدْ عَرَفْتُمُ الَّذِي كَانَ مِنْ أَمْرِكُمْ وَقَدْ وَلَدْتُ فَهُوَ ابْنُكَ يَا فُلَانُ تُسَمِّي مَنْ أَحَبَّتْ بِاسْمِهِ فَيَلْحَقُ بِهِ وَلَدُهَا لَا يَسْتَطِيعُ أَنْ يَمْتَنِعَ بِهِ الرَّجُلُ وَنِكَاحُ الرَّابِعِ يَجْتَمِعُ النَّاسُ الْكَثِيرُ فَيَدْخُلُونَ عَلَى الْمَرْأَةِ لَا تَمْتَنِعُ مِمَّنْ جَاءَهَا وَهُنَّ الْبَغَايَا كُنَّ يَنْصِبْنَ عَلَى أَبْوَابِهِنَّ رَايَاتٍ تَكُونُ عَلَمًا فَمَنْ أَرَادَهُنَّ دَخَلَ

---

۱) اوګورئ سنن ترمذی : ۲۱۰/۱ ، باب ماجاء فی استیمار البکر والثیب ، کتاب النکاح).

۲) وفی عمده القاری: ۱۲۱/۲۰ ، وجه الاستدلال به ان الله خاطب الاولیاء ونهاهم عن انکاح المشرکین مولیاتهم مسلمات قلت الایه منسوخه بقوله : والمحصنات من الذین اوتوالکتاب من قبلکم ، والخطاب اعم من ان یکون للاولیاء اوغیرهم فلا یتم الاستدلال به )).

۳) الابواب والتراجم: ۶۸/۲).

عَلَيْهِنَّ فَإِذَا حَمَلَتْ إِحْدَاهُنَّ وَوَضَعَتْ حَمْلَهَا جُمِعُوا لَهَا وَدَعَوْا لَهُمُ الْقَافَةَ ثُمَّ أَلْحَقُوا وَلَدَهَا بِالَّذِي يَرَوْنَ فَالْتَاطَ بِهِ وَدُعِيَ ابْنَهُ لَا يَمْتَنِعُ مِنْ ذَلِكَ فَلَمَّا بُعِثَ مُحَمَّدٌ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْحَقِّ هَدَمَ نِكَاحَ الْجَاهِلِيَّةِ كُلَّهُ إِلَّا نِكَاحَ النَّاسِ الْيَوْمَ

حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائي چه د جاهليت په زمانه كښې څلور قسمه نكاح ګاني كيدلې، يو خو دا ودچه كومه نن سبا خلق كوى ، يو سړى به بل سړى ته دده وليه يا دده دلور پيغام اوليږلو اوهغې ته به ئې مهر وركړو او هغه به ئې واده كړه ( هم ددې جملې مناسب سره امام بخارى رحمه الله داحديث په دې خانې كښې ذكر فرمائيلې دې چه رجل به رجل ته د نكاح پيغام ليږلو معلوم شوه چه نكاح بعبارة النساء معتبره نه ده چه كوم دامام بخارى مسلك دې).

دنكاح دويمه طريقه داوه چه سړى به خپلې ښځې ته اوونيل چه كله ته د ايام نه پاكه شې نو فلانى سړى لره ورشه اوده غه نه فائده حاصله كړه ، بيا به سړى ددې ښځې نه جدا شو اودې لره به نزدې نه ورتلوتر كومې پورې چه به دهغه سړى نه حمل ظاهر نشو ،هر چه به د سړى نه ښكاره ، هر كله چه به حمل ښكاره شو نو ددې خاوند چه كله زړه اوغوښتل نودې لره به تلو ، دا ټول هر څه به ددې وجې كيدلې شو چه بچې دښه نسل نه شى ، دې نكاح ته نكاح استبضاع وائى.

**قوله: اذا طهرت من طمثها:** د «طمث» معنى دحيض راتلو ده ، «وكان الرجل فى ذالك ان يسع علوقها منه فاستبضعى منه اى اطلبى منه المباضعه ، وهو الجماع ، والمباضعة المجامعة مشتقة من البضع وهو الفرج» (١)

دنكاح دريم قسم دا وو چه دلسو نه كم سړو يو ډله به جمع شوه او يو ښځې سره به ئې صحبت اوكړو . هركله چه به ددې ښځې حمل شو اوددې بچې به پيدا شو نو څو ورځې تيريدو نه پس هغې به ټول رابلل او ددې نه به هيڅوا انكار نشو كولې ،هركله چه هغوى دې ښځې سر ه جمع شو نو هغې به وئيل چه تاسو ټولو ته خپل حال معلوم دې چه څه وو ، څما بچې پيدا شويدې، ائې فلانيه دا ستا څوئې دې ته چه څه نوم ددې اېښودل غواړې نو هغه دده نوم كيږدى . اوهغه بچې به دهغه شواوهغه ته به انكار كولو مجال نه وو.

څلورم قسم نكاح دا وه چه ډيروسړو به يوښځې سره صحبت اوكړو ، او هغې به خپل طرفته راتلو نه هيڅوك نه منع كول . په حقيقت كښې دا زناكارى وې ، دوى به دښې په طور په خپلوكورونو باندې بيرغونه نصب كول ، چه چا به غوښتل دې سره به ئې صحبت كولې شو ، هركله چه به ددې حمل شو اوبچې به ئې پيدا شو نو دې به ټول راوغوښتل او دقيافې دپاره به ئې يو قيافه شناس راوغوښتلو ، نو قيافه شناس به بچې ته هغه سړى ته وركړو چه كوم سره به ئې مشابهت لرلو نو هغه سره به بچې هغه ملاوولواو بچې به د هغه سړى څوئې وئيلې كيدواو هغه سړى به دده انكارنشو كولې.

---

١) فتح البارى: ٢٣١/٩).

بيا هركله چه دحضرت نبى كريم ﷺ بعثت اوشو نودزمانه جاهليت داټولې نكاحونه باطل اوګرزولې شو ، صرف د نن سبا نكاحونه په مروجه طريقې سره باقي اوساتلې شوې .

**قوله: ودعوا لهم القافة:** «القافة» دا د «قائف» جمع ده ، «هو الذى يعرف شبه الوالد بالولد بالاثار الخفية» (۱) يعنى قائف هغه سړې دې چه د خفيه علاماتو په ذريعه دپلار او ځوې ترمينځه مشابهت اوپيژنى.

**قوله: فالتاطته به:** په دې كښې فاء تعقيبيه دې.«التاطت» دا دباب افتعال نه واحد مونث غائب دماضى صيغه ده. په اصل كښې «التواطت» بروزن افتعلت وو ، واو ماقبل مفتوح لره په الف سره بدل كړې شو ، «التاطت»شو ، بمعنى لاحق كيدل يعنى دابچې به ئې هغه سړى سره اولګولو. دا «لوط» نه ماخوذې دې . چه ددې معنى ملاويدل او لصوق ده.

[۴۸۳۵] حَدَّثَنَا يَحْيَى حَدَّثَنَا وَكِيعٌ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ وَمَا يُتْلَى عَلَيْكُمْ فِي الْكِتَابِ فِي يَتَامَى النِّسَاءِ اللَّاتِي لَا تُؤْتُونَهُنَّ مَا كُتِبَ لَهُنَّ وَتَرْغَبُونَ اَنْ تَنْكِحُوهُنَّ قَالَتْ هَذَا فِي الْيَتِيمَةِ الَّتِي تَكُونُ عِنْدَ الرَّجُلِ لَعَلَّهَا اَنْ تَكُونَ شَرِيكَتَهُ فِي مَالِهِ وَهُوَ اَوْلَى بِهَا فَيَرْغَبُ عَنْهَا اَنْ يَنْكِحَهَا فَيَعْضُلَهَا لِمَالِهَا وَلَا يُنْكِحَهَا غَيْرَهُ كَرَاهِيَةَ اَنْ يَشْرَكَهُ اَحَدٌ فِي مَالِهَا [ر:۲۳۶۲].

په دې خائې كښې ترجمه داشان ثابتيږى چه ولى يتيمه دمال دوجې نه منع كوى ، اوبل سړى سره ددې نكاح نه كوى ، ددې نه امام بخارى رحمه الله دا اخذ كړى دى چه دولى نه بغير نكاح نشى كيدلې ،كه نكاح دولى نه بغير كيديشى نو هغه يتيمه به خپله نكاح كوى.

خوددې جواب هم هغه وركړې شوې دې چه بعض اوقات ولى دخپل طاقت اوهيبت په وجه دښځې دپاره ركاوټ جوړيږى او هغې ته دنكاح كولو نه منع كوى ، په حديث كښې ددې ذكر دې . ګنى دحديث راويه حضرت عائشه رضي الله عنها پخپله دخپل رور عبدالرحمان بن ابى بكردلور نكاح دهغه په عدم موجودګئ كښې اوكړه (۲) بيا ددې نه اشتراط ولى باندې استدلال څنګه درست كيديشى.

[۴۸۳۶] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا هِشَامٌ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ حَدَّثَنَا الزُّهْرِيُّ قَالَ اَخْبَرَنِي سَالِمٌ اَنَّ ابْنَ عُمَرَ اَخْبَرَهُ اَنَّ عُمَرَ حِينَ تَاَيَّمَتْ حَفْصَةُ بِنْتُ عُمَرَ مِنِ ابْنِ حُذَافَةَ السَّهْمِيِّ وَكَانَ مِنْ اَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ اَهْلِ بَدْرٍ تُوُفِّيَ بِالْمَدِينَةِ فَقَالَ عُمَرُ لَقِيتُ عُثْمَانَ بْنَ عَفَّانَ فَعَرَضْتُ عَلَيْهِ فَقُلْتُ اِنْ شِئْتَ اَنْكَحْتُكَ حَفْصَةَ فَقَالَ سَاَنْظُرُ فِي اَمْرِي فَلَبِثْتُ لَيَالِيَ ثُمَّ لَقِيَنِي فَقَالَ بَدَا لِي اَنْ لَا اَتَزَوَّجَ يَوْمِي هَذَا قَالَ عُمَرُ فَلَقِيتُ اَبَا

---

۱) فتح البارى: ۹/۲۳۲).
۲) شرح معانى الاثار: ۲/۶).

بَكرٍ فَقُلتُ اِن شِئتَ اَنكَحتُكَ حَفصَةَ [ر: ٣٧٨٣].

[٤٨٣٧] حَدَّثَنَا اَحمَدُ ابنُ اَبِي عَمرٍو قَالَ حَدَّثَنِي اَبِي قَالَ حَدَّثَنِي اِبرَاهِيمُ عَن يُونُسَ عَنِ الحَسَنِ فَلَا تَعضُلُوهُنَّ قَالَ حَدَّثَنِي مَعقِلُ بنُ يَسَارٍ اَنَّهَا نَزَلَت فِيهِ قَالَ زَوَّجتُ اُختًا لِي مِن رَجُلٍ فَطَلَّقَهَا حَتّٰى اِذَا انقَضَت عِدَّتُهَا جَاءَ يَخطُبُهَا فَقُلتُ لَهُ زَوَّجتُكَ وَفَرَشتُكَ وَاَكرَمتُكَ فَطَلَّقتَهَا ثُمَّ جِئتَ تَخطُبُهَا لَا وَاللّٰهِ لَا تَعُودُ اِلَيكَ اَبَدًا وَكَانَ رَجُلًا لَا بَاسَ بِهِ وَكَانَتِ المَرأَةُ تُرِيدُ اَن تَرجِعَ اِلَيهِ فَاَنزَلَ اللّٰهُ هٰذِهِ الاٰيَةَ فَلَا تَعضُلُوهُنَّ فَقُلتُ الاٰنَ اَفعَلُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ قَالَ فَزَوَّجَهَا اِيَّاهُ [ر: ٤٢٥٥].

## ٣٨=بَابٌ اِذَا كَانَ الوَلِيُّ هُوَ الخَاطِبَ

وَخَطَبَ المُغِيرَةُ بنُ شُعبَةَ امرَاَةً هُوَ اَولَى النَّاسِ بِهَا فَاَمَرَ رَجُلًا فَزَوَّجَهُ

وَقَالَ عَبدُ الرَّحمٰنِ بنُ عَوفٍ لِاُمِّ حَكِيمٍ بِنتِ قَارِظٍ اَتَجعَلِينَ اَمرَكِ اِلَيَّ قَالَت نَعَم فَقَالَ قَد زَوَّجتُكِ

وَقَالَ عَطَاءٌ لِيُشهِد اَنِّي قَد نَكَحتُكِ اَولِيَامُر رَجُلًا مِن عَشِيرَتِهَا

وَقَالَ سَهلٌ قَالَتِ امرَاَةٌ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ اَهَبُ لَكَ نَفسِي فَقَالَ رَجُلٌ يَا رَسُولَ اللّٰهِ اِن لَم تَكُن لَكَ بِهَا حَاجَةٌ فَزَوِّجنِيهَا [ر: ٣٨٣٣].

امام بخاری رحمه الله په دې باب کښې دا مسئله ذکرکړې ده، که ولی پخپله پیغام اوليږی د نکاح نوآیا هغه مولیه سره خپله نکاح کولې شی یا دبل سړی په ذريعه به خپله نکاح اوکړی؟

دامام بخاری رحمه الله ، امام مالك رحمه الله ، سفیان ثوری رحمه الله ، امام اوزاعی رحمه الله او ا مام احمد بن حنبل رحمه الله مسلك هم دادې چه مولیه سره نکاح پخپله کولې شی . (١)

امام شافعی رحمه الله .داود رحمه الله او امام زفر رحمه الله فرمائی چه یا به خو بادشاه ددې نکاح اوکړی یا به بیا ددې ښځې بل ولی ددې ښځې نکاح کوی. (٢)

امام بخاری رحمه الله چه کومه ترجمه قائم کړې ده دهغې متعلق علامه ابن منیر مالکی رحمه الله فرمائی چه امام په دې ترجمه کښې جواز اوعدم جواز دواړو دلائل فراهم کړی دی ، گویا مسئله دمجتهد نظرته حواله کړې ده ، اوس چه هغه څه غواړی نو فیصله دې اوکړی. (٣)

دحافظ ابن حجر رحمه الله رائې داده چه دامام بخاری رحمه الله رجحان دجواز طرفته دې چه ولی که پخپله غواړی نو مولیې سره خپله نکاح کولې شی ، ترجمة الباب کښې ذکر شوی حضرت عبدالرحمان بن عوف رضي الله عنه اوحضرت عطاء رحمه الله اثر سره جواز معلومیږی. (٤)

---

١) فتح الباری: ٩/٢٣٦).
٢) فتح الباری: ٩/٢٣٦).
٣) فتح الباری: ٩/١٣٥).
٤) فتح الباری: ٩/٢٣٦).

**قوله:** وخطب المغيرة بن شعبه رضي الله عنه امراة هو اولى الناس بها فامر رجلا فزوجه:
حضرت مغيره بن شعبه‌يو داسې ښځې ته دنكاح پيغام اوليږلو چه دهغې دې ډير نزدې ولي وو ،اويو سړې ته ئې حكم اوكړو ، هغه دې سره نكاح اوكړه ، دا تعليق امام بيهقى موصولاً نقل كړې دى.
دسعيد بن منصور روايت كښې تصريح ده چه حضرت مغيره رضي الله عنه حضرت عثمان بن العاص رضي الله عنه ته د خپل دتره عروه بن مسعود دلور ولي مقرر كړو او عثمان رضي الله عنه ددې واده حضرت مغيره رضي الله عنه سره اوكړو. عثمان بن ابى العاص رضي الله عنه هم ددې جينئ ولى وو ليكن هغه ولى بعيد وو. (١)

**قوله:** وقال عبدالرحمان بن عوف لام حكيم بنت قارظ: حضرت عبدالرحمان ام حكيم بنت قارظ ته اووئيل چه ته ماته خپل اختيار راكوې،هغې اووئيل چه‌آو،حضرت عبدالرحمان اووئيل چه نوماتاسره واده اوكړو. دا ددې خبرې دليل دې چه‌ولى موليه سره نكاح كولې شى ، دا تعليق ابن سعد موصولاً نقل كړې دې . (٢)

**قوله:** وقال عطاء ليشهد انى قد نكحتك: عطاء بن ابى رباح فرمائى چه‌هغه دې گواه جوړ كړى په دې خبره باندې‌چه ما تاسره نكاح اوكړه ، يا دې ددې دقبيلې يو سړى ته اووائى چه هغه دې سره نكاح اوكړى ، امام‌عبدالرزاق دا تعليق موصولاً نقل كړې دې.(٣)

**قوله:** وقال سهل قالت امراة: دحضرت سهل بن سعد رضي الله عنه ددې حديث تشريح تيره شوې ده. په دې ځائې كښې‌امام بخارى رحمه الله دا ذكر كوى او ترجمة الباب ئې داشان ثابت كړې دې‌چه‌كله واهبه خپل ځان حضرت نبى كريم صلى الله عليه وسلم ته پيش كړو نو كه حضرت نبى كريم صلى الله عليه وسلم دا قبوله كړې وې نو ظاهر ده چه په دې صورت كښې به حضرت نبى كريم صلى الله عليه وسلم ددې ولى وو ،او حضرت نبى كريم صلى الله عليه وسلم به خاطب هم وو.او خپله نكاح به ئې پخپله كړې وې ، ددې نه معلوم شوچه‌دولى دپاره پخپله خپله نكاح كول جائز دى. (۴)

[۴۸۳۸] حَدَّثَنَا ابْنُ سَلَامٍ اَخْبَرَنَا اَبُو مُعَاوِيَةَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ اَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا فِي قَوْلِهِ وَيَسْتَفْتُونَكَ فِي النِّسَاءِ قُلِ اللّٰهُ يُفْتِيكُمْ فِيهِنَّ اِلَى آخِرِ الآيَةِ قَالَتْ هِيَ الْيَتِيمَةُ تَكُونُ فِي حَجْرِ الرَّجُلِ قَدْ شَرِكَتْهُ فِي مَالِهِ فَيَرْغَبُ عَنْهَا اَنْ يَتَزَوَّجَهَا وَيَكْرَهُ اَنْ يُزَوِّجَهَا غَيْرَهُ فَيَدْخُلَ عَلَيْهِ فِي مَالِهِ فَيَحْبِسُهَا فَنَهَاهُمُ اللّٰهُ عَنْ ذٰلِكَ [ر: ٢٣٦٢].

[۴۸۳۹] حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ الْمِقْدَامِ حَدَّثَنَا فُضَيْلُ بْنُ سُلَيْمَانَ حَدَّثَنَا اَبُو حَازِمٍ حَدَّثَنَا سَهْلُ بْنُ سَعْدٍ كُنَّا عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جُلُوسًا فَجَاءَتْهُ امْرَاَةٌ تَعْرِضُ نَفْسَهَا عَلَيْهِ فَخَفَّضَ

١) عمده القارى: ٢٠/١٢٤).
٢) عمدة القارى: ٢٠/١٢٤).
٣) عمدة القارى: ٢٠/١٢٥).
٤) عمدة القارى: ٢٠/١٢٥).

فِيهَا النَّظَرَ وَرَفَعَهُ فَلَمْ يُرِدْهَا فَقَالَ رَجُلٌ مِنْ أَصْحَابِهِ زَوِّجْنِيهَا يَا رَسُولَ اللّٰهِ قَالَ أَعِنْدَكَ مِنْ شَيْءٍ قَالَ مَا عِنْدِي مِنْ شَيْءٍ قَالَ وَلَا خَاتَمٌ مِنْ حَدِيدٍ قَالَ وَلَا خَاتَمٌ مِنْ حَدِيدٍ وَلَكِنْ أَشُقُّ بُرْدَتِي هَذِهِ فَأُعْطِيهَا النِّصْفَ وَآخُذُ النِّصْفَ قَالَ لَا هَلْ مَعَكَ مِنَ الْقُرْآنِ شَيْءٌ قَالَ نَعَمْ قَالَ اذْهَبْ فَقَدْ زَوَّجْتُكَهَا بِمَا مَعَكَ مِنَ الْقُرْآنِ [ر:٢٨٦٠].

**قوله:** حدثنا ابن سلام: په دې روايت کښې دی چه ولی به يتيمې لره منع کوله او بل چا سره به ئې ددې نکاح نه کوله ، الله ﷻ ددې نه منع اوفرمانيله ، ددې نه داشارة النص په طور مستفاده کولې شی که هغه پخپله ده سره نکاح کول غواړی نو کولې به ئې شوه .چه ددې نه معلوميږی چه ولی ته دموليه سره دنکاح کولو پخپله اختيار دی.

## ٣٩=بَابُ إِنْكَاحِ الرَّجُلِ وَلَدَهُ الصِّغَارَ لِقَوْلِ اللّٰهِ تَعَالَى

وَاللَّائِي لَمْ يَحِضْنَ (الطلاق:٤) فَجَعَلَ عِدَّتَهَا ثَلَاثَةَ أَشْهُرٍ قَبْلَ الْبُلُوغِ(١)

«ولد»(دواو ضمه اولام سكون سره ) دولد جمع ده .بعضې نسخو كښې ولد (دواو فتحه سره )ده،ولداسم جنس دی، مذكر ومونث دواړو دپاره استعماليږی (٢)

دترجمة الباب نه دامام بخاری رحمه الله مقصد دادې چه سړې د خپل نابالغ اولاد نكاح كولې شی . په دليل كښې دسورت طلاق آيت پيش كوی ، ﴿واللائی يئسن من المحيض من نسائكم ان ارتبتم فعدتهن ثلثة اشهر واللائی لم يحضن﴾ په دې آيت كريمه كښې «واللائی لم يحضن» نه امام بخاری رحمه الله ترجمة الباب ثابت كړې دی چه په دې آيت كريمه كښې هغه نابالغه جينكۍ داخلې دی چه هغوی ته د صغر په وجه حيض نه رازی. دهغوی عدت هم درې مياشتې مقرر شوې دې ، چه ددې نه داشارة النص په طور معلوميږی چه ددوی نكاح كيديشی ، ځكه چه دعدت تصور دنكاح نه پس كيديشی ، اودجمهور اود امام بخاری رحمه الله په نيز دنكاح مجاز ولی دې . لهذا معلوم شو چه سړې دوړوكی اولاد نكاح كولې شی

[٤٨٤٠] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ هِشَامٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَزَوَّجَهَا وَهِيَ بِنْتُ سِتِّ سِنِينَ وَأُدْخِلَتْ عَلَيْهِ وَهِيَ بِنْتُ تِسْعٍ وَمَكَثَتْ عِنْدَهُ تِسْعًا [ر:٣٦٨١]

دحضرت عائشه رضي الله عنها ادشپږو كالو په عمر كښې اورخصتی د نهو كالو په عمر كښې شوې وه. دا په دې خبره باندې صراحتًا دلالت كوی چه د جينۍ نكاح قبل البلوغ كولې شی.

---

١ ) ((واللائی...)) ومعنى الاية النساء اللائی يبلغن سنن الحيض . ان طلقت احداهن فعدتها ثلاثة اشهر ، والمراد بايراد الاية ، الاحتجاج على جواز تزويج الرجل ولده الصغير لانه لما جعل الله تعالى عدة المطلقة قبل البلوغ دل على جواز تزويجها قبله).

٢ ) عمدة القاری: ١٢٦/٢٠).

همدا د جمهور علماء كرام مسلك دى . ليكن علامه ابن حزم دابن شبرمه نه نقل كړى دى چه دنابالغه جينئ نكاح دولى دپاره مطلقا جائز نه ده. كه هغه قابل وطى اوكه نه وى.او امام طحاوى رحمه الله دابن شبرمه نه دويم روايت دا نقل كړې دې چه جينئ قابل وطى نه وى نو دولى دپاره دهغه نكاح كول جائز نه دى يعنى ولى ته په دې باندې دولايت اجبار حاصل نه دى.
ابن شبرمه دحضرت عائشه رضي الله عنها حديث باب لره د حضرت نبى كريم خصوصيت باندې محمول كوى. (۱)

**قوله: مكثت عنده تسعا:** دا جمله مدرج ده ،دا دحضرت هشام بن عروه قول دې ، لكه څنګه چه دمخكښې باب په روايت كښې ددې تصريح رازى.

## ۴۰= بَاب تَزْوِيجِ الْأَبِ ابْنَتَهُ مِنْ الْإِمَامِ

وَقَالَ عُمَرُ خَطَبَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَيَّ حَفْصَةَ فَأَنْكَحْتُهُ [ر:۳۷۸۳].

[۴۸۴۱] حَدَّثَنَا مُعَلَّى بْنُ أَسَدٍ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَزَوَّجَهَا وَهِيَ بِنْتُ سِتِّ سِنِينَ وَبَنَى بِهَا وَهِيَ بِنْتُ تِسْعِ سِنِينَ قَالَ هِشَامٌ وَأُنْبِئْتُ أَنَّهَا كَانَتْ عِنْدَهُ تِسْعَ سِنِينَ [ر:۳۶۸۱].

امام بخارى رحمه الله په دې باب كښې دا وئيل غواړى چه ولايت دپلارد ولايت دامام نه مقدم دې يا په نورو لفظونو كښې ولى خاص ولى عام باندې مقدم دې ، څكه چه حضرت عمر فاروق رضي الله عنه دخپلې لور نكاح حضرت نبى كريم صلى الله عليه وسلم سره كړې وه ، داشان حضرت ابوبكر صديق هم دخپلې لور نكاح حضرت نبى كريم صلى الله عليه وسلم سره كړې وه. ابن بطال فرمائى چه :

«دل حديث الباب على ان الاب اولى فى تزويج ابنته من الامام» (۲)

دا تعليق نه دې بلكه ماقبل سند سره موصول دې ، «انبئت» دباب افعال نه «دانبأ» دماضى مجهول واحد متكلم صيغه ده يعنى ماته خبر راكړې شوې دې، دمخبرنوم نه دې خودلې شوې.

## ۴۱= بَاب السُّلْطَانُ وَلِيٌّ

لِقَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (زَوَّجْنَاكَهَا بِمَا مَعَكَ مِنْ الْقُرْآنِ)

[۴۸۴۲] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ أَبِي حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ جَاءَتْ امْرَأَةٌ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ إِنِّي وَهَبْتُ مِنْ نَفْسِي فَقَامَتْ طَوِيلًا فَقَالَ رَجُلٌ زَوِّجْنِيهَا إِنْ لَمْ تَكُنْ لَكَ بِهَا حَاجَةٌ قَالَ هَلْ عِنْدَكَ مِنْ شَيْءٍ تُصْدِقُهَا قَالَ مَا عِنْدِي إِلَّا إِزَارِي فَقَالَ إِنْ أَعْطَيْتَهَا إِيَّاهُ جَلَسْتَ لَا إِزَارَ لَكَ فَالْتَمِسْ شَيْئًا فَقَالَ مَا أَجِدُ

۱) مذكوره تفصيل دپاره اوګورئ فتح البارى: ۲۳۸/۹).
۲) عمده القارى: ۱۲۷/۲۰).

شيئا فقال التمس ولو خاتما من حديد فلم يجد فقال امعك من القرآن شيء؟ قال نعم سورة كذا وسورة كذا لسور سماها فقال قد زوجناكها بما معك من القرآن [ر: ٢١٨٦].

«السلطان ولي من لا ولي له» په اصل کښې دا حديث دې ، امام ابوداود اوامام ترمذی ددې تخريج کړې دې ، ابوعوانه ، ابن خزيمه ، اوابن حبان ددې تصحيح کړې ده ، (١) چونکه دا دامام بخاری رحمه الله په شرط باندې نه دې ، ددې وجې هغه د ترجمة الباب په طور ذکر کړې دې او دامسئله ئې د حضرت سهل په روايت کښې د واهبه د قصې نه ثابته کړې ده چه په هغې کښې حضرت نبی کريم ﷺ دهغه ښځې نکاح دهغه صحابی سره کړې وه چه کوم دنکاح خواهش کړې وو ، او حضرت نبی کريم ﷺ هغه ته فرمائيلی وو چه «زوجناکها بما معك من القران» معلوم شو چه سلطان ته ولايت حاصل دې.

## ٣٢ = باب لا ينكح الأب وغيره البكر والثيب إلا برضاها

په دې ترجمة الباب کښې څلور صورتونه راوزی. ① تزويج الاب البكر ② تزويج الاب الثيب ③ تزويج غيرالاب البكر ④ تزويج غير الاب الثيب .

په دې څلورو واړو صورتونوکښې د ښځې رضا مندی ضروری ده ، که صغر وکبر بلوغ و عدم بلوغ هم دې سره شامل کړې شی نو بيا ټول اته صورتونه جوړيږی.

**قوله: مسئله ولايت اجبار:** امام بخاری رحمه الله په دې باب کښې په حقيقت کښې دولايت اجبار مشهورد مسئله بيان کړې ده، چه په هغې کښې دائمه کرام لاندې مذهبونه دی:

① دحضرت حسن بصری رحمه الله او امام نخعی رحمه الله په نيز ولی ته مطلقاً ولايت اجبار حاصل دې ، ښځه که ثيبه وی يا باکره وی ، کبيره وی اوکه صغيره. (٢)

② دابن شبرمه رحمه الله په نيزولی ته مطلقاً ولايت اجبار حاصل نه دې ، (٣)

③ دامام شافعی رحمه الله په نيز په دې سلسله کښې مدار عورت لره دثيبه او باکره کيدو باندې ده . باکره باندې ولی ته ولايت اجبار حاصل دې ، ثيبه باندې نه دې . (٤)

④ دحضرات حنفيه په نيز مدارصغر اوکبرباندې دې ، صغيره باندې ولايت اجبار ولی ته حاصل دې . کبيره باندې نه دې . (٥)

لهذا باکره ته په صغيره باندې باتفاق ائمه اربعه ولايت اجبار دې او کبيره ثيبه باندې بالاتفاق ولايت اجبار نه دې او کبيره او باکره باندې دشوافع په نيز ولايت اجبار دې ، د حنفيه په نيزنه دې او صغير ثيبه باندې دحنفيه په نيز ولايت اجبار دې دشوافع په نيز نه دې.

---

١ ) عمده القاری: ٩/٢٣٩).

٢ ) عمدة القاری: ٢٠/١٣٠ ، وفتح الباری: ٩/٢٣٨).

٣ ) فتح الباری: ٩/٢٣٨).

٤ ) بدائع الصنائع: ٢/٢٤١ . فتح التقدير: ٣/١٦١).

٥ ) بدائع الصنائع: ٢/٢٤١ . فتح التقدير: ٣/١٦١ ، والهدايه: ٢/٢٨٥).

خلاصه د كلام دا ده چه‌په دې څلورو صورتونو كښې دوه صورتونه دائمه اربعه په نيز اتفاقي دى او دوه صورتونه اختلافي .

بيا داجبار حق كوم يو ولى ته به حاصل وى ؟ . څمونږ په نيز عصبات به على الترتيب د اجبار به حقداروى (١)او مشهور دادى چه پلار نيكه ته اجبار حق حاصل دې ، دا په اصل كښې دامام شافعي رحمه الله مسلك دى.

دامام مالك رحمه الله او امام احمد رحمه الله په نيزداجبار حق صرف پلار ته حاصل دې . (٢)

دامام بخارى رحمه الله په دې مسئله كښې‌څه رائې ده؟ظاهراً دا معلوميږى چه‌امام بخارى رحمه الله په دې مسئله كښې دحنفيه هم خيال دې ،يعنى دولايت اجبار مدار په صغر باندې دې .

څكه چه‌امام ددې باب نه مخكښې دباب‌ترجمه قائمه كړې وه «باب انكاح ا لرجل ولده الصغار»په دې كښې لفظ «صغار»عام دې ، باكره ثيبه دواړو دپاره شامل دى. معلومه شوه چه دولايت اجبار علت صغر دې. بكارت و عدم بكارت نه دې ، اوباب هذا كښې‌امام بخارى رحمه الله دبالغه حكم فرمائى كه ښځه باكره وى يا ثيبه ، هركله چه بالغه شى نو بيا په دې ولايت داجبار نشته دې، تركومې پورې چه ددې رضامندى شامله نه وى.

[۴۸۴۳] حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ فَضَالَةَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ يَحْيَى عَنْ اَبِى سَلَمَةَ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ حَدَّثَهُمْ اَنَّ النَّبِىَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تُنْكَحُ الْاَيِّمُ حَتَّى تُسْتَامَرَ وَلَا تُنْكَحُ الْبِكْرُ حَتَّى تُسْتَاذَنَ قَالُوا يَا رَسُولَ اللَّهِ وَكَيْفَ اِذْنُهَا قَالَ اَنْ تَسْكُتَ [ر:٦٥٦٧،٦٥٦٩].

دا حديث امام بخارى رحمه الله په دې ځائې كښې په ړومبى ځل ذكر اوفرمائيلو. حضرت نبى كريم صلى الله عليه وسلم فرمائى چه د ثيبه ښځې نه تركومې پورې مشوره اونه غوښتلې شى نو ددې نكاح دې اونه كړې شى ، او باكره سره دې ددې داجازت نه بغير نكاح اونه كړې شى.

«ايم» نواده كړې ښځې ته وئيلې شى. ددې اطلاق ثيبه او باكره دواړو باندې كيږى. ليكن چونكه په حديث كښې مخكښې دباكره مستقل ذكر رازى نوددې وجې«ايم»نه په دې ځائې كښې «ثيبه»مراد ده. او په «ولا تنكح البكر....» نه باكره مراد ده.څكه چه مصنف ددې نه مخكښې دا بيان كړې دې چه دصغار د نكاح ولى ته ا ختيار دې.

«استيمار» مشوره غوښتل ، او «استيذان» اجازت غوښتلو ته وئيلې شى. د «ايم» دپاره «استيمار» او باكره دپاره «استيذان»بيان شوې دې. ددې وجه داده چه‌په باكره كښې نسبتاً حيا زياته وى‌اوددې دنكاح پيغام اولياء ته پيش كولې شى ، ددې وجې ولى ته اجازت اغستل پكاردى او ثيبه كښې حيا نسبتاً كمه وى ، ددې وجې ولى ته پكار دى چه دې سره مشوره اوكړى. (٣)

---

١) الهدايه: ٢٨٤/٢ . كتاب النكاح).) الهدايه: ٢٨٤/٢ . كتاب النكاح).

٢) الهدايه: ٢٨٤/٢ . كتاب النكاح).

٣) فتح البارى: ٢٤٠/٩).

[۴۸۴۴] حَدَّثَنَا عَمْرُوبْنُ الرَّبِيعِ بْنِ طَارِقٍ قَالَ اَخْبَرَنَا اللَّيْثُ عَنْ ابْنِ اَبِي مُلَيْكَةَ عَنْ اَبِي عَمْرٍومَوْلَى عَائِشَةَ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّهَا قَالَتْ يَارَسُولَ اللّٰهِ اِنَّ الْبِكْرَتَسْتَحِي قَالَ رِضَاهَا صَمْتُهَا[ر:۶۵۴۷ ، ۶۵۷۰].

**قوله: عمروبن ربيع:** دعمرو بن ربيع مصرى كنيت ابو حفص دې . او دې په اصل كښې دكوفې اوسيدونكې دې .دده شيوخ امام مالك رحمه الله .ليث رحمه الله او يحيى بن ايوب رحمه الله دى.او دده روايت كولو والوكښې يحيى بن معين، اسحاق كوسج اوابراهيم بن هانى داخل دې. دا د امام بخارى رحمه الله قديم شيوخوكښې دى. حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه «ولم أرله عنه فى الجامع الاهذاالحديث» عجلى او دار قطنى دده توثيق كړې دې. په كال ۲۱۹ هجرئى كښې وفات شوې دې ، (۱)

## ۴۳=بَاب إِذَا زَوَّجَ ابْنَتَهُ وَهِيَ كَارِهَةٌ فَنِكَاحُهُ مَرْدُودٌ

امام بخارى رحمه الله فرمائى كه چا په زبردستئ سره دخپلې لور نكاح اوكړه نودا نكاح مردود ده ، كه هغه ثيبه بالغه ده نوبالاتفاق درست نه ده اوكه ثيبه بالغه نه ده نوددې حكم دولايت اجبار په سلسله كښې دبيان شوى تفصيل مطابق وى.

دا ترجمه په ظاهره دمخكښې ترجمة الباب «باب انكاح الرجل ولده الصغار» خلاف ده. ځكه چه ددې نه دصغار متعلق مطلقاً دجواز معلوميږى او په دې ځائې كښې دكراهت په صورت كښې نكاح لره مردود اوګرزولې شوه. جواب دادې چه په دې ځائې كښې بالغه جينئ مراد ده. ځكه چه «وهى كارهة» الفاظ ئې راوړى دى. اودا د بالغه صفت دې ، چنانچه علامه عينى رحمه الله ليكى: «قيل هذه الترجمة مخالفة للترجمة السابقة حيث قال : باب انكاح الرجل ولده الصغار واجيب بان المراد بنته البالغة يدل عليه قوله وهى كارهة لان هذه الصفة للبالغات» (۲)

[۴۸۴۵] حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ الْقَاسِمِ عَنْ اَبِيهِ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ وَمُجَمِّعٍ ابْنَيْ يَزِيدَبْنِ جَارِيَةَ(۳) عَنْ خَنْسَاءَ بِنْتِ خِذَامٍ الْاَنْصَارِيَّةِ اَنَّ اَبَاهَا زَوَّجَهَا وَهِيَ ثَيِّبٌ فَكَرِهَتْ ذٰلِكَ فَاَتَتْ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرَدَّ نِكَاحَهُ حَدَّثَنَا

---

۱ ) مذكوره تفصيل دپاره اوګورئى: فتح البارى: ۲۴۱/۹ ).

۲ ) عمده القارى: ۱۲۹/۲۰).

۳ ) ٤٨٤٥: واخرجه البخارى ايضا متصلا بهذا الحديث . رقم الحديث : ٤٩٣٢، وفى كتاب الاكراه، باب لايجوز نكاح المكره . رقم الحديث: ٦٩٤٥ . وكتاب الحيل ،باب فى النكاح . رقم الحديث : ٦٩٦٩ . واخرجه ابوداود فى كتاب النكاح باب فى الثيب رقم الحديث ۲۱۰۱ . وابن ماجه فى كتاب النكاح باب من زوج ابنته وهى كارهة رقم الحديث : ۱۸۷۳ . والنسائى فى كتاب النكاح . باب البكريز وجهاابوها وهى كارهة رقم الحديث : ۵۳۸۳).

اسحَاق اخبرنَا يزيدُ اخبرنَا يحيى ان القَاسِمَ بن مُحَمَّدٍ حَدَّثَهُ انّ عَبْدَ الرَّحمٰنِ بنَ يَزيدَ وَمُجَمِّعَ بنَ يَزيدَ حَدَّثَاهُ انَّ رَجُلًا يُدعَى خِذَامًا انكَحَ ابنَةً لَهُ نَحوَهُ [ر:۶۵۴۶، ۶۵۶۸].

سند كښې دقاسم دوه شيخان دى او دواړه رونړه دى، يوعبدالرحمان بن زيد بن جاريه او بل مجمع بن يزيد بن جاريه ، مجمع(دجيم په فتحه اود ميم په كسره سره).

دعبدالرحمان بن يزيد په بخارى شريف كښې صرف يو حديث دې. دده پيدائش د نبى كريم ﷺ په زمانه كښې شوې وو. دې دمدينې منورې قاضى هم پاتې شوې. دده وفات په كال ۹۳ هجرئى كښې شوې وو، دمحدثينو يو ډلې دده توثيق كړې دې. (۱)

دده رور مجمع بن يزيد دې.دده هم په بخارى شريف كښې يو حديث دى. (۲)

په روايت كښې دى چه دخنساء بنت خذام نكاح دده پلار يوسړى سره اوكړه ، دخنساء هغه خوښ نه وو،هغه حضرت نبى كريم ﷺ لره راغله نو حضرت نبى كريم ﷺ ددوى نكاح رد كړه. ددې سړى نوم څه وو؟ حافظ ابن حجر رحمه الله ليكلى دى چه ماته ددې علم اونشو ،البته واقدى په خپل سند سره دومره بيان كړى دى چه دده تعلق قبيله بنومزينه سره وو. (۳)

حضرت خنساء ثيبه وه.ددې رومبې واده انيس بن قتاده رضي الله عنه سره شوې وو او دې په جنګ احد كښې شهيد شوې وو،بيا دده پلار دبنومزينه يو سړى سره ددې واده اوكړو ليكن ددې هغه سړې خوښ نه وو،ددې وجې حضرت نبى كريم ﷺ لره راغله . حضرت نبى كريم ﷺ ددوى نكاح رد كړه .او ددې واده ئې حضرت ابولبابه سره اوكړو، دامام عبدالرزاق په روايت كښې ددې تصريح كړې ده. (۴)

## ۴۴=بَاب تَزْوِيجِ الْيَتِيمَةِ

لِقَوْلِهِ: ﴿وَانْ خِفْتُمْ الَّا تُقْسِطُوا فِي الْيَتَامَى فَانْكِحُوا﴾ (النساء:۲) وَاذَا قَالَ لِلْوَلِيِّ: زَوِّجْنِي فُلَانَةَ فَمَكُثَ سَاعَةً اوْقَالَ مَا مَعَكَ فَقَالَ مَعِي كَذَا وَكَذَا اوْلَبِثَا ثُمَّ قَالَ زَوَّجْتُكَهَا فَهُوَ جَائِزٌ فِيهِ سَهْلٌ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [ر:۲۱۸۶].

[۴۸۳۶] حَدَّثَنَا ابُوالْيَمَانِ اخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ وَقَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِي عُقَيْلٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ اخْبَرَنِي عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ انَّهُ سَالَ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا قَالَ لَهَا يَا امَّتَاهُ وَانْ خِفْتُمْ الَّا تُقْسِطُوا فِي الْيَتَامَى الَى قَوْلِهِ مَا مَلَكَتْ ايْمَانُكُمْ قَالَتْ عَائِشَةُ يَا ابْنَ اخْتِي هَذِهِ الْيَتِيمَةُ تَكُونُ فِي حَجْرِ وَلِيِّهَا فَيَرْغَبُ فِي جَمَالِهَا وَمَالِهَا وَيُرِيدُ انْ يَنْتَقِصَ مِنْ صَدَاقِهَا فَنُهُوا عَنْ نِكَاحِهِنَّ الَّا انْ يُقْسِطُوا لَهُنَّ فِي اكْمَالِ الصَّدَاقِ وَامِرُوا بِنِكَاحِ مَنْ سِوَاهُنَّ مِنَ النِّسَاءِ قَالَتْ عَائِشَةُ اسْتَفْتَى النَّاسُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدَ ذَلِكَ فَانْزَلَ اللَّهُ

---

۱) فتح البارى: ۲۴۳/۹، ۲۴۴).
۲) فتح البارى: ۱۴۴/۹).
۳) فتح البارى: ۱۴۴/۰).
۴) فتح البارى: ۱۴۴/۹).

وَيَسْتَفْتُونَكَ فِي النِّسَاءِ إِلَى قَوْلِهِ وَتَرْغَبُونَ أَنْ تَنْكِحُوهُنَّ فَأَنْزَلَ اللّٰهُ عَزَّوَجَلَّ لَهُمْ فِي هَذِهِ الآيَةِ أَنَّ الْيَتِيمَةَ إِذَا كَانَتْ ذَاتَ مَالٍ وَجَمَالٍ رَغِبُوا فِي نِكَاحِهَا وَنَسَبِهَا وَالصَّدَاقِ وَإِذَا كَانَتْ مَرْغُوبًا عَنْهَا فِي قِلَّةِ الْمَالِ وَالْجَمَالِ تَرَكُوهَا وَأَخَذُوا غَيْرَهَا مِنَ النِّسَاءِ قَالَتْ فَكَمَا يَتْرُكُونَهَا حِينَ يَرْغَبُونَ عَنْهَا فَلَيْسَ لَهُمْ أَنْ يَنْكِحُوهَا إِذَا رَغِبُوا فِيهَا إِلَّا أَنْ يُقْسِطُوا لَهَا وَيُعْطُوهَا حَقَّهَا الْأَوْفَى مِنَ الصَّدَاقِ [ر: ۲۳۶۲].

په دې ترجمه کښې امام بخارى رحمه الله دا وائى چه د يتيمې جينئ نکاح هم کيدلې شى. اوس پاتې شو دا کله کولې شى ، د بلوغ نه مخکښې يا د بلوغ نه پس؟.

امام مالك رحمه الله او امام شافعى رحمه الله فرمائى چه د بلوغ نه مخکښې د يتيمې جينئ نکاح جائز نه ده. (۱)

امام احمد رحمه الله او امام اسحاق رحمه الله فرمائى چه کله هغه د نهو کالو عمر ته اورسى نو ددې په رضامندئى سره ددې نکاح کولې شى. او بيا د بالغ کيدو نه پس به دې ته د فسخ کيدو اختيار نه وى. (۲)

حضرات حنفيه فرمائى که هغه صغيره ده نو ته په نيکه دې باندې اجبارحاصل دې ، که څوك بل سرې ددې نکاح اوکړى نو نکاح به صحيح وى او د بالغ کيدو نه پس به ده ته د فسخ کيدو اختيار وى. اوکه هغه بالغه وى نو بيا په دې باندې هيچا ته د اجبار حق حاصل نه دې، ځکه د بالغ کيدو نه پس په دې باندې د يتيم کيدو اطلاق هم درست نه دې ، ((لايتم بعد البلوغ)) (۳)

امام بخارى رحمه الله په دې مسئله کښې د امام احمد رحمه الله د مسلك سره متفق په نظر را زى. مخکښې ((واذا قال للولى : زوجنى فلانة)) نه امام بخارى رحمه الله د امام احمد رحمه الله مسلك طرفته اشاره کوى که ولى د يتيمې نکاح اوکړه نو صحيح ده.

**ايجاب وقبول په مينځ کښې دفصل مسئله:** او په دې ضمن کښې يو بله مسئلې طرفته هم اشاره اوشوه چه په کوم وخت کښې ايجاب وقبول کولې شى ، نو زر په هغه وخت کښې ضرورى نه دى.

حضرات مالکيه فرمائى چه زر قبلول پکار دى ، تاخير نه پس د قبلولو اعتبار به نه وى. (۴)

حضرات شوافع فرمائى چه ((فصل يسير)) يعنى د ايجاب وقبول په مينځ کښې معمولى غونډې وى نو مضر نه دى،که چا په مينځ کښې خطبه وغيره اووئيله يا سبحان الله ئې

---

۱) مرقاه المفاتيح ، كتاب النكاح :۲۰۸/۶ ، والمغنى لابن قدامه ، كتاب النكاح ، كون الاجبار فى النكاح لايكون الا للاب :۳۲/۷ ، وتفسير قرطبى ، سوره النساء: ۱۳/۵).

۲) فتح البارى: ۲٤۰/۹).

۳) مرقاه المفاتيح ، كتاب النكاح : ۲۰۸/۶ ، والابواب والترجم ، ۶۹/۲ ، وتفسير قرطبى سوره النساء: ۱۳/۵).

٤) الابواب والتراجم : ۶۹/۲).

اووئيل يا ئې درود شريف اووئيلو نو په دې کښې هيڅ باك نشته دې ، ځکه دا دقبلولو دپاره په طور د تمهيد ومقدمه دی. (۱)

امام ابوحنيفه رحمه الله او امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائي که په مجلس کښې دننه ئې قبول اوکړو نو ددې قبلولو اعتبار به وی. ليکن که مجلس مختلف شو نوبيا اعتبار نشته دې(۲)

دامام بخاری رحمه الله رجحان هم دې طرفته معلوميږی ، اوهغوی دحضرت سهل بن سعد حديث نه استدلال کړې دې. نو فرمائي چه «فيه سهل عن النبی ﷺ» يعنی په دې باره کښې دحضرت سهل مرفوع حديث وارد شوې دې ، چه په هغې کښې د واهبه قصه مذکور ده چه هم په يو مجلس کښې ايجاب وقبول سره نکاح منعقد شوې وه حالانکه دايجاب وقبول په مينځ کښې فاصله وه ، نو علامه عينی رحمه الله ليکی:

«والحاصل ان التفريق اذا کان بين الايجاب والقبول فی المجلس لايضر ، وان تخلل بينهما کلام ، واذا حصل الايجاب فی مجلس والقبول فی آخر ، لايجوز العقد قيل : اخذ هذا من حديث الباب فيه نظر ، لان قصته واقعة عين فيطرقها احتمال ان يکون قبل عقيب الايجاب». (۳)

دامام بخاری رحمه الله مقصد دادې که مجلس يو وی نو ايجاب وقبول په مينځ کښې فاصله هم راشي نو مضر نه ده ، استدلال کښې دواهبه قصه ئې پيش کړې ده ،ليکن ددې واقعې نه استدلال کښې نظر دې ځکه په دې کښې داتصريح نشته دې چه دايجاب وقبول په مينځ کښې فاصله وه.

حضرت نبی کريم ﷺ چه دنکاح خواهش لرلو والا کوم صحابی رضی الله عنه سره خبرې کړې وې ،په هغې کښې ددې خبرې احتمال دې چه دايجاب نه متصل بعد بغير دځه فاصلې نه هغه قبول کړې وی نو هله به استدلال مکمل وی ،هرکله چه ثابت شی چه خبرې اترې د دايجاب نه پس وی او ددې خبرو اترونه پس بيا قبول کړې وو، نوبيا به ونيلې شی ،که مجلس يو وی نوبيا دايجاب وقبول په مينځ کښې خبرې مضر نه دی.

## ۴۵=بَاب إِذَا قَالَ الْخَاطِبُ لِلْوَلِيِّ زَوِّجْنِي فُلَانَةَ فَقَالَ قَدْ زَوَّجْتُكَ بِكَذَا وَكَذَا جَازَ النِّكَاحُ وَإِنْ لَمْ يَقُلْ لِلزَّوْجِ أَرَضِيتَ أَوْ قَبِلْتَ

[۴۸۴۷] حَدَّثَنَا أَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ أَبِي حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ امْرَأَةً أَتَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَعَرَضَتْ عَلَيْهِ نَفْسَهَا فَقَالَ مَا لِي الْيَوْمَ فِي النِّسَاءِ مِنْ حَاجَةٍ فَقَالَ رَجُلٌ يَا رَسُولَ اللَّهِ زَوِّجْنِيهَا قَالَ مَا عِنْدَكَ قَالَ مَا

---

۱ ) ارشادالساری: (۴۲۰/۱۱).
۲ ) الابواب والتراجم: (۶۹/۲).
۳ ) عمده القاری: (۱۳۱/۲).

عِنْدِي شَيْءٌ قَالَ اعْطِهَا وَلَوْ خَاتَمًا مِنْ حَدِيدٍ قَالَ مَا عِنْدِي شَيْءٌ قَالَ فَمَا عِنْدَكَ مِنَ الْقُرْآنِ قَالَ كَذَا وَكَذَا قَالَ فَقَدْ مَلَّكْتُكَهَا بِمَا مَعَكَ مِنَ الْقُرْآنِ [ر: ۲۱۸۶].

په دې خائې كښې امام بخارى رحمه الله دا ونيل غواړى كه چا ولى ته اووئيل چه فلانئ ښځې سره خما نكاح اوكړه او هغه اوونيل چه «زوجتك بكذا وكذا» نو دا نكاح به اوشى او قبلول او التماس او درخواست به نكاح قائمقام اوګرزولې شى ، هم دا دحضرات حنفيه ، شوافع او حنابله وغيره مسلك دې. (۱) دې نه پس دا اوونيل چه زه راضى يم يا ما قبوله كړه نو ددې ضرورت نشته دې .

استدلال كښې دواهبه قصه ذكر شوې ده چه په دې كښې حضرت نبى كريم ﷺ صحابى رضي الله عنه په خواست باندې دښځې نكاح ئې اوكړه

اووې فرمائيل چه «زوجتكها بما معك من القرآن» او دې صحابى رضي الله عنه نه دد «قبلت» يا د «رضيت» وغيره الفاظ منقول نه دى. معلوم شو چه التماس او درخواست د قبول قائمقام جوړيدې شى.

**قوله:** مالى اليوم فى النساء من حاجته: په دې باندې اشكال دى چه حضرت نبى كريم ﷺ ته ضرورت نه وو نو بيائې دې طرفته لاندې باندې ولې كتل ، لكه څنګه چه په بل طريق كښې «فصعد النظر فيها وصوبه» الفاظ راغلى دى. حافظ ابن حجر رحمة الله عليه ددې اشكال په جواب كښې ليكى چه :

«من خصاصه وان لم يرد التزويج وتكون فائدة احتمال انها تعجبه فيتزوجها مع استغنائه حينئذ عن زيادة على من عنده من النساء» (۲)

## ۳۶=بَاب لَا يَخْطُبُ عَلَى خِطْبَةِ أَخِيهِ حَتَّى يَنْكِحَ أَوْ يَدَعَ

[۴۸۴۸] حَدَّثَنَا مَكِّيُّ بْنُ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ قَالَ سَمِعْتُ نَافِعًا يُحَدِّثُ أَنَّ ابْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا كَانَ يَقُولُ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَبِيعَ بَعْضُكُمْ عَلَى بَيْعِ بَعْضٍ وَلَا يَخْطُبَ الرَّجُلُ عَلَى خِطْبَةِ أَخِيهِ حَتَّى يَتْرُكَ الْخَاطِبُ قَبْلَهُ أَوْ يَأْذَنَ لَهُ الْخَاطِبُ [ر: ۲۰۳۲].

په دې خائې كښې دوه مسئلې دى. يو دا چه چا يو خائې ته دنكاح پيغام اوليږلو نو دبل سړى دنكاح دپيغام ليږلو هغه خائې ته څه حكم دې ؟ په دې سلسله كښې به دمخطوبه حالت ته كتلې شى.

كه مخطوبه د خاطب پيغام پخپله قبول كړې وى يائې ولى ته د قبليدو اجازت وركړې وونو

---

۱) الهدايه ۲۷۳/۲،وفتح البارى: ۲۶۷/۹).

۲) فتح البّارى: ۹/ ۲۴۸).

په دې صورت کښې به بالاتفاق دبل سړی دپاره د نکاح پیغام لیږل حرام دی.
اوکه مخطوبه دخاطب پیغام مسترد کړو نوپه دې صورت کښې بالاتفاق دنکاح پیغام لیږل درست دی.
دریم صورت دادې چه مخطوب خاطب طرفته ظاهری میلان ظاهرکړې وی ، په دې صورت کښې اختلاف دې.
دحضرات حنفیه اومالکیه په نیز په دې صورت کښې دنکاح پیغام ورکول جائزدی او دشوافع په نیز هم دا اصح روایت دې ، اوامام احمد رحمه الله نه هم یو روایت ددې مطابق روایت کوی منقول دې.
دامام شافعی رحمه الله نه دویم روایت امام ترمذی رحمه الله د عدم جواز نقل کړې دې، او ا بن قدامه رحمه الله دامام احمد رحمه الله نه هم په دې صورت کښې دعدم جواز قول نقل کړې دې. (۱)
دویمه مسئله داده که یوسړی چرته دنکاح پیغام لیږلې دې او بل سړی په دې کښې مداخلت اوکړو او خپل ځان دپاره ئې دنکاح پیغام اولیږلو او د دویم سړی نکاح اوشوه نودده دانکاح به معتبره وی اوکه نه ؟
جمهور علماء فرمائی چه دده دانکاح به معتبره وی البته ده ګناه اوکړه ، دې به ګنهګار وی.(۲)
داود ظاهری رحمه الله فرمائی چه دده دانکاح به فسخ کړې کیږی که قبل الدخول وی اوکه بعد الدخول وی.
دمالکیه نه درې اقوال منقول دی، یو دجمهور مطابق دې ، دویم د دواد ظاهری رحمه الله مطابق اودریم قول دادې چه قبل الدخول به فسخ کړې شی او بعد الدخول به نه فسخ کولې شی(۳)
د امام بخاری رحمه الله دترجمة ا لباب نه معلومیږی چه هغه د داود ظاهری رحمه الله د مسلك حمایت کوی .
روایت باب کښې خطبه علی خطبة اخیه نه منع کړې شوې ده. دجمهور علماء په نیز دا تحریمی دی . ددې وجې هغوی وائی چه داسې کولو والا به ګنهګار وی ، علامه خطابی فرمائی چه دا نهی تادیبی ده. لهذا ددوی په نیز خاطب ثانی به ګنهګار نه وی. (۴)
[۴۸۴۹] (۵) حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ جَعْفَرِ بْنِ رَبِيعَةَ عَنِ الأَعْرَجِ قَالَ

---

۱ ) مذکوره تفصیل دپاره اوګورئ المغنی :۶/۶۰۴_۶۰۶ ، شرح نووی مسلم :۱/۴۵۴ ، باب تحریم الخطبه وفتح الباری: ۹/۲۴۹_۲۵۰).
۲ ) فتح الباری: ۹/۲۵۰).
۳ ) فتح االباری: ۹/۲۵۰).
٤ ) فتح الباری: ۹/۲٤۹).
٥ ) ٤٨٤٩: واخرجه البخاری ایضا فی کتاب الادب ، باب ما ینهی عن التحاسد والتدابر ، رقم الحدیث: ٦٠٦٤ ، وفی کتاب الادب ایضا باب یایهاالذین امنوا اجتنبوا کثیرا من الظن ان بعض الظن اثم ، رقم الحدیث : ٦٠٦٦ ، وفی کتاب الفرایض باب تعلیم الفرایض ، رقم الحدیث: ٦٧٢٤ ، ولم یخرجه احدمن اصحاب الصحاح الستة سوی البخاری).

قَالَ ابُوهُرَیْرَةَ یَاثُرُ(۱) عَنِ النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِیَّاکُمْ وَالظَّنَّ فَاِنَّ الظَّنَّ اَکْذَبُ الْحَدِیْثِ وَلَا تَجَسَّسُوا وَلَا تَحَسَّسُوا وَلَا تَبَاغَضُوا وَکُوْنُوا اِخْوَانًا وَلَا یَخْطُبُ الرَّجُلُ عَلٰی خِطْبَةِ اَخِیْهِ حَتّٰی یَنْکِحَ اَوْیَتْرُكَ [ر: ۵۷۱۷، ۵۷۱۹، ۶۳۴۵].

دا حدیث ا مام بخاری رحمه الله په دې مقام با ندې په ړومبی ځل ذکر اوفرمائیلو. او اصحاب صحاح کښې دامام نه علاوه بل چا نه دې ذکر کړې. ددې تشریح مخکښې په کتاب الادب کښې به راشی. دروایت په آخر کښې دی چه «ولایخطب الرجل علی خطبة اخیه حتی ینکح اویترك» هم ددې جملې په وجه امام دا حدیث په دې ځائې کښې بیان کړې دې ، یعنی هېڅوك سړې دې دخپل رور په نکاح باندې د نکاح پیغام اونه لیږی. تر دې پورې چه خاطب اول نکاح اوکړی (نوپه دې صورت کښې دبل دپاره دپیغام لیږلوهېڅ ګنجائش پاتې نشو ) یاهغه نې پخپله پریږدی او لاس ترې اونیسی (نو په دې صورت کښې به ددویمې نکاح پیغام لیږلې شی. حافظ ابن حجر هم ددې جملې تشریح کوی:

«قوله : حتی ینکح : ای حتی یتزوج الخاطب الاول فیحصل الیاس المحض ، وقوله : اویترك : ای الخاطب الاول التزویج فیجوز حینئذ للثانی الخطبة فالغایتان مختلفتان : الاولی ترجع الی الرجاء ونظیر الاولی قوله تعالی حتی یلج الجمل فی سم الخیاط» (۲)

د«خطبة علی خطبة» سلسله کښې امام موفق فرمائی چه په دې کښې دتحریم قول راجح دې.(۳)

علامه ابن جریر طبری رحمه الله دبعضو علماء کرام نه نقل کړی دی چه د «یخطب الرجل ....» نهی منسوخ شوې ده.(۴) او دنسخ دپاره د فاطمه بنت قیس واقعه دلیل په طور پیش کوی چه حضرت نبی کریم ﷺ په خدمت کښې راغلله او وې وئیل چه ماته معاویه بن ابی سفیان او دابو الجهم دواړو پیغام دنکاح ورکړې دې نو حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه «اما معاویة فصعلوك لا مال له وما ابوالجهم فلا یضع عصاه من منکبه انکحی اسامة» (۵)

لیکن علامه ابن جریر طبری رحمه الله ددې دعوې تردید کوی او فرمائی چه مذکوره قصه باندې په نسخ باندې استدلال کول درست نه دی ځکه چه فاطمه بنت قیس حضرت نبی

۱) ۴۸۴۹: (یاثری) یروی (ایاکم والظن ) احذروا سوء الظن بالمسلمین ، ولا تحدثوا عن عدم علم ویقین ، لا سیما فیما یجب فیه القطع (اکذب الحدیث) أی یقع الکذب فی الظن اکثر من وقوعه فی ا لکلام (تجسسوا) من التجسس وهو البحث عن العورات والسیئات (تحسسوا) من التحسس وهو طلب معرفة الاخبار والاحوال الغائبة عنه (حتی ینکح) أی فاذا نکح فقد امتنعت خطبة الثانی قطعا.

۲) فتح الباری: ۲۵۱/۹).

۳) المغنی لابن قدامه ، کتاب النکاح ، خطبه المراه واحکامها:۱۰۹/۷).

۴) فتح ا لباری:۲۵۰/۹).

۵) اوګورئ سنن ترمذی :۲۱۵/۱ ، کتاب النکاح ، باب ماجاء ان لا یخطب الرجل علی خطبه اخیه).

کریم ﷺ سره مشوره کولو له راغلي وه او حضرت نبی کریم ﷺ هغې ته مشوره ورکړې وه
. حضرت اسامه ددې حضراتو په خطبه باندې هيڅ مداخلت نه دې کړې (۱)

بیا دا هم دې په ذهن کښې وی چه «لايخطب الرجل على خطبة اخيه» کښې دمسلمانانو خطبه مراد ده چه دوی ته ددې خبرې اجازت نشته دې چه هغوی دې د نوور مسلمانانو په خطبه کښې دخل اندازی اوکړی.

لیکن که يو ذمی يو ځائې ته دنکاح پیغام اولیږلو نومسلمان هغه ځائې ته دنکاح پیغام لیږلې شی یا نه ؟

امام اوزاعی رحمه الله امام احمد رحمه الله، ابن المنذر رحمه الله او علامه خطابی رحمه الله فرمائی چه د ذمی په خطبه باندې مسلمان خطبه کولې شی، په دې کښې هيڅ حرج نشته دې.(۲).

خو جمهور وائی چه ذمی هم مسلمانانو سره ملحق دې ، چه څنګه دمسلمان په خطبه باندې خطبه کول صحيح نه دی داشان دذمی په خطبه باندې خطبه کول صحيح نه دی، اوپه روایت کښې چه کوم «لايخطب الرجل على خطبة اخيه» فرمائیلې شوی دی په هغې کښې د «اخ» ذکر عموم اودغلبه په طور دې ، (۳) والله اعلم.

## ۴۷=بَاب تَفْسِيرِ تَرْكِ الْخِطْبَةِ

[۴۸۵۰] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنْ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي سَالِمُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ أَنَّهُ سَمِعَ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا يُحَدِّثُ أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ حِينَ تَأَيَّمَتْ حَفْصَةُ قَالَ عُمَرُ لَقِيتُ أَبَا بَكْرٍ فَقُلْتُ إِنْ شِئْتَ أَنْكَحْتُكَ حَفْصَةَ بِنْتَ عُمَرَ فَلَبِثْتُ لَيَالِيَ ثُمَّ خَطَبَهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَقِيَنِي أَبُو بَكْرٍ فَقَالَ إِنَّهُ لَمْ يَمْنَعْنِي أَنْ أَرْجِعَ إِلَيْكَ فِيمَا عَرَضْتَ إِلَّا أَنِّي قَدْ عَلِمْتُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ ذَكَرَهَا فَلَمْ أَكُنْ لِأُفْشِيَ سِرَّ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَوْ تَرَكَهَا لَقَبِلْتُهَا
تَابَعَهُ يُونُسُ وَمُوسَى بْنُ عُقْبَةَ وَابْنُ أَبِي عَتِيقٍ عَنْ الزُّهْرِيِّ [ر: ۳۷۸۳].

امام بخاری رحمه الله په ترجمة الباب کښې عنوان قائم کړې دې. «خطبه» د ترک کولو تفسير او ددې لاندې د ام المومنين حضرت حفصه رضی الله عنها واقعه ذکر ده.

① ابن بطال رحمه الله فرمائی په ظاهره دحضرت حفصه رضی الله عنها د دې واقعې څه مناسبت ترجمة الباب معلوم نه دې، ځکه چه په دې واقعه کښې خطبه دترک کولو څه تفسير نشته دې.

بیا فرمائی چه امام بخاری رحمه الله دا حدیث ددې باب لاندې ذکر کړو او يو لطيف او دقيق استنباط ئې کړې دې، او هغه دا چه دا حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه ته معلوم وو چه حضرت نبی کریم ﷺ کله دنکاح پیغام راولیږی نو حضرت عمر فاروق رضی الله عنه به دا نه رد کوی. امام

۱) فتح الباری: ۲۵۰/۹).
۲) فتح الباری: ۲۵۰/۹).
۳) فتح الباری: ۲۵۰/۹_۲۵۱).

بخاري رحمه الله دا واقعه ذكر كړې او فرمائيلي ئې دي چه ((خطبة على خطبة الاخ)) چه ممنوع ده نوددې صرف دا يو صورت نه دې چه سړى د نكاح پيغام اوليږلواو بل سړې دې دنكاح پيغام نه ليږى بلكه په دې كښې هغه صورت هم داخل دې چه كله يوداسې سړى د نكاح اراده اوكړه او خيال ئې ظاهر كړو چه ولى ته كله ددې خيال علم اوشى نو هغه به دخپل موليه په نكاح كښې ده ته ترجيح وركوى نو داسې صورت كښې هم ددې لوئې سړى په مقابله كښې خطبه نه دى پيش كول پكار. لكه څنګه چه حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه ته دحضرت نبى كريم صلى الله عليه وسلم دخيال علم وو. نوهغه خپله خطبه پيش نه كړه، امام بخارى رحمه الله دا واقعه په دې باب كښې ذكر كړه اود خطبې ترك كول دې بل تفسير ته ئې اشاره كړې ده. (۱)

④ ابن منير مالكى رحمه الله يو بله خبره فرمائيلي ده، هغوى وئيلى دى چه امام بخارى رحمه الله ددې باب لاندې مذكوره واقعه ذكر كوى د ((خطبة على الخطبة)) مطلقًا ممانعت بيان فرمائيلي دې. څكه چه مذكوره واقعه كښې حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه انكاركړې وو. حالانكه دخاطب او ولى په مينځ كښې تر اوسه پورې خبره پخه شوې نه وه. او پيغام هم نه وو ليږلې شوې. اوسه پورې ئې صرف اراده اوخيال كړې وو، ددې باوجود حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه خطبه وركولو نه انكار كړې وو، نو چه په كوم صورت كښې پيغام دنكاح ليږلې شوې وى په هغې كښې به طريق اولى خطبه نه دې ليږل پكار. (۲)

حافظ ابن حجر رحمه الله دابن بطال رحمه الله قول اولى او دقيق ګڼړلې دې. چنانچه هغه فرمائى چه ((وماأبداه ابن بطال أدق وأولى)) (۳)

حضرت شيخ الحديث مولانا محمد ذكريا رحمه الله هم دا راجح ګڼړلې دې ، هغوى ليكى چه ((قلت: وحاصل ما ابداه ابن بطال وهو الاوجه عندى ان الامام البخارى اشار الى ان ارادة الرجل الخطبة ايضا داخل فى الخطبة لان ابابكر امتنع عن الخطبة لعلمه ارادته صلى الله عليه وسلم الخطبة مع انه عليه السلام لم يخطب بعد، واذا كانت ارادة الخطبة فى حكم الخطبة فترك الا ارادة تركها)) (۴)

④ بعضې حضراتو د ترجمة الباب يو دريم مطلب بيان كړې دې اوهغه دا چه دترك خطبه تفسير نه دامام رحمه الله مراد دادې چه څوك سړې خطبه پيش كړې او دې نه پس هغه خطبه پريښودل غواړى نو داسې نه پريږدى بلكه ددې د پريښودو وجه اوعذر دې بيان كړې ، څكه دعذربيانولو نه بغير ولى به عار محسوسوى. (۵)

ليكن روايت په دې مراد باندې دلالت نه كوى څكه چه حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه خطبه نه وه وركړې.

---

۱) فتح البارى: ۲۵۲/۹).
۲) اوګورئ: المتوارى على تراجم ابواب البخارى لابن المنير : ۲۸۵).
۳) فتح البارى: ۲۵۲/۹).
٤) اوګورئ الابواب والتراجم :۶۰/۲).
۵) اوګورئ الابواب والتراجم: ۷۰/۲).

**قوله:** تابعه يونس وموسى بن عقبة وابن ابي عتيق عن الزهري: يزيد بن يونس بن زيد متابعت لره دار قطنى موصولاً نقل کړې دې. دموسى بن عقبه او دابن ابى عتيق متابعت ذهلي په «زهريات» کښې موصولاً نقل کړې دې. (١)

په «تابعه» کښې ضمير مفعول «شعيب» طرفته ته راجح دې يعنى ددې حضراتو دشعيب متابعت اوکړو.

## ٣٨=بَاب الْخُطْبَةِ

په نکاح کښې خطبه وئيلې کيږى ، دداود ظاهرى رحمه الله وغيره په نيزدا واجب ده ليکن جمهور علماء وائى چه په نکاح کښې خطبه سنت يا مستحب ده. (٢)

چه کوم حضرات دوجوب قائل دى هغوى وائى چه حضرت نبى کريم ﷺ د حضرت فاطمه رضي الله عنها په نکاح کښې خطبه وئيلې وه او ددوى افعال محمول على الوجوب دى. (٣)

او چه کوم حضرات دعدم وجوب قائل دى ، دهغوى استدلال دواهبه قصه ده.

چه په دې کښې خطبې نه بغير «زوجناکها بما معك من القرآن» وئيل او حضرت نبى کريم ﷺ نکاح کړې وه.

علامه قسطلانى رحمه الله ليکلى دى چه په نکاح کښې څلور خطبې مستحب دى.

① يو دخاطب خطبه دپيغام نه مخکښې ② دويمه ددې پيغام دقبليدو نه مخکښې ③ دريمه خطبه ايجاب نه مخکښې دولى طرفنه ④ او څلورمه نکاح کوونکى طرفنه دقبول نه مخکښې. (۴)

اصحاب السنن دنکاح خطبه نقل کړې ده چه دهغې الفاظ دى:

«ان الحمد لله نحمده ونستعينه ونستغفره ونعوذ بالله من شرور انفسنا ومن سيئات اعمالنا من يهده الله فلا مضل له ومن فلا هادى له واشهد ان لا اله الا الله وحده لاشريك له وان محمدا عبده ورسوله ﷺ وعلى آله وصحبه يا ايها الذين امنوا اتقوا الله حق تقاته ولا تموتن الا وانتم مسلمون ، يا ايها الناس اتقوا ربكم الذى خلقكم الى قوله تعالى رقيبا يا ايها الذين امنوا اتقوا الله وقولوا قولا سديدا الى قوله عظيما» (۵)

[۴۸۵۱] حَدَّثَنَا قَبِيصَةُ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ زَيْدِ بْنِ اسْلَمَ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ عُمَرَ يَقُولُ جَاءَ رَجُلَانِ مِنَ الْمَشْرِقِ فَخَطَبَا فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ انَّ مِنَ الْبَيَانِ لَسِحْرًا [ر: ۵۴۳۴]

---

١) فتح البارى: ٢٥٢/٩ ، ارشادالسارى: ٤٢٤/١١).
٢) عمده القارى: ١٣٤/٢٠).
٣) عمدة القارى: ١٣٤/٢٠).
٤) ارشادالسارى: ٤٢٥/١١).
٥) ارشادالسارى: ٤٢٥/١١).

امام بخاری رحمه الله داحدیث په رومبی ځل ذکر اوفرمائیلو. او مخکښې کتاب الطب کښې به هم دا ذکر کوی. په دې کښې دی چه د(مدینې منورې ) مشرق (یعنی نجد)نه دوه سړی راغلل او دواړو خطبه اوونیله نو په دې باندې حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه «ان من البیان لسحرا» یعنی بعضې بیان دجادو پشان تاثیر لری.
په دې دواړوکښې دیو نوم زبرقان بن بدر وو او دبل نوم عمرو بن الاهیم وو. دوی په کال نهمه هجرئی کښې راغلی وو. (۱)
ددې حدیث په ترجمة الباب کښې د ذکر کولو څه وجه ده؟علامه انور شاه کشمیری رحمه الله فرمائی چه امام بخاری رحمه الله ته دخطبه نکاح په سلسله کښې چونکه دخپل شرط مطابق څه حدیث ملاؤ نشو نو ددې وجې هغوی حدیث باب ذکر اوفرمائیلو. ځکه چه په دې د اسم جنس خطبه ذکر دې.نو هغه فرمائی چه«الخطبة وهی مستحبة الا ان الحدیث فیه لیس علی شرطه فاتی بحدیث فی الجنس»(۲)
بعض حضرات فرمائی چه دا حدیث ئې په دې باب کښې ذکر امام بخاری رحمه الله په نکاح کښې دخطبه مشروعیت او ووجه حکمت طرفته اشاره کړې ده. په حدیث کښې دی چه په بعضو بیانونو کښې دجادو پشان اثر وی، انسان ددې نه یودم متاثره کیږی.او چونکه دنکاح په وخت کښې اولیاء ته دخپلو بچو د جدائی احساس وی نو خطبه مشروع کړې شوه چه ددې اثر نه متاثره شی او داولیاء طبعی تاثر ختم شی. (۳)
**قوله:** ان من البیان لسحرا: ددې باره کښې دعلماؤ دوه قولونه دی:
① بعضې حضرات وائی چه دحضرت نبی کریم ﷺ مقصود ددوی دخطبې مدح کول وو او دا وئیل وو چه ددوی انداز بیان د جادو پشان اثر لری. (۴)
② او بعضې حضرات فرمائی چه ددې جملې نه غندنه (مذمت) مقصود دې ، دا وئیل دی چه دا خو بالکل هغه انداز دې لکه څنګه چه دجادو انداز وی چه باطل لره حق او حق لره باطل کښې ظاهروی. (۵)

## ۴۹=بَابُ ضَرْبِ الدُّفِّ فِي النِّكَاحِ وَالْوَلِيمَةِ

[۴۸۵۲] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ الْمُفَضَّلِ حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ ذَكْوَانَ قَالَ قَالَتِ الرُّبَيِّعُ بِنْتُ مُعَوِّذِ بْنِ عَفْرَاءَ جَاءَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَدَخَلَ حِينَ بُنِيَ عَلَيَّ فَجَلَسَ عَلَى فِرَاشِي كَمَجْلِسِكَ مِنِّي فَجَعَلَتْ جُوَيْرِيَاتٌ لَنَا يَضْرِبْنَ بِالدُّفِّ وَيَنْدُبْنَ مَنْ قُتِلَ مِنْ

---

۱) ارشاد الساری:۱۱/۴٤٥).
۲) فیض ا لباری: ٤/۲۹۰ ).
۳) فتح الباری: ۹/۲۵۳).
٤ ) فتح الباری: ۹/۲۳۸ ، کتاب الطب ، باب ان من البیان لسحرا).
۵) فتح الباری: ۹/۲۳۸ ، کتاب الطب).

ابَابِي يَوْمَ بَدْرٍ اِذْ قَالَتْ اِحْدَاهُنَّ وَفِينَا نَبِيٌّ يَعْلَمُ مَا فِي غَدٍ فَقَالَ دَعِي هَذِهِ وَقُولِي بِالَّذِي كُنْتِ تَقُولِينَ [ر:۳۷۸۰].

دامام بخاری رحمه الله مقصد دادي چه‌په نكاح او وليمه كښې په دف غږولو كښې څه باك نشته دي. امام احمدبن حنبل رحمه الله فرمائی چه دنكاح اظهار مستحب دې ، او په دې كښې دف غږول پكار دی چه ښه مشهور معروف شی. (۱)

حضرات فقهاءكرام د دف غږولو اجازت وركړې دې . په دې شرط چه هغه د حدودو دننه دننه وی او آلات دموسيقیٔ ستار او هارمونيم وغيره دې سره نه وی. (۲)

**په نكاح كښې دشهادت حكم :** دامام بخاری رحمه الله ددې ترجمې يو مختلف فيه مسئله طرفته اشاره هم كولې شی ، اودهغه دا چه‌په نكاح كښې اشتهار او اعلان كافی دې ، د شهادت ضرورت نشته دې يا اعلان واشتهار كافی نه دې شهادت ضروری دې، دا مسئله مختلف فيها ده. (۳)

دامام مالك رحمه الله مشهور مسلك دادې چه‌په نكاح كښې اعلان كافی دې،دشهادت ضرورت نشته،دامام احمدبن حنبل رحمه الله هم روايت ددې مطابق دې. (۴)

باقی ائمه كرام دشهادت ضرورت گنړی، (۵) دامام مالك رحمه الله اصل مسلك دادې چه‌دنكاح په وخت كښې شهادت ضرورت نشته دې،البته زفاف نه قبل دشهادت هم ضرورت گنړی.(۶)

مخكښې روايت كښې دبچيانو دپاره د دف غږولو ذكر دې ، ددې نه امام بخاری رحمه الله ثابت كړې دی چه‌د دف غږول دبناء په وخت كښې جائز دی. ددې حديث تشريح په كتاب المغازی صفحه ۱۵۴ باندې تيره شوې ده.

## ۵۰=بَاب قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالَى : وَآتُوا النِّسَاءَ صَدُقَاتِهِنَّ نِحْلَةً (النساء: ۴) وَكَثْرَةِ الْمَهْرِ وَاَدْنَى مَا يَجُوزُ مِنَ الصَّدَاقِ

وَقَوْلِهِ تَعَالَى : وَآتَيْتُمْ اِحْدَاهُنَّ قِنْطَارًا فَلَا تَاْخُذُوا مِنْهُ شَيْئًا (النساء:۲۰).
وَقَوْلِهِ : جَلَّ ذِكْرُهُ اَوْ تَفْرِضُوا لَهُنَّ فَرِيضَةً (البقرة:۲۳۶).
وَقَالَ سَهْلٌ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَوْ خَاتَمًا مِنْ حَدِيدٍ [ر:۲۱۸۶].

**مسئله اقل مهر :** په دې باب كښې امام بخاری رحمه الله مسئله د اقل مهر بيانول غواړی. په دې خبره باندې خود ټولو اتفاق دې چه مهر شرائط نكاح كښې داخل دې البته په دې

۱ ) اوگورئ الانصاف فی معرفه الراجح من الخلاف علی مذهب الامام احمد بن حنبل رحمه الله . كتاب النكاح: ۳٤۱/۸).
۲) تعليقات لا مع الدراری: ۳۰۷/۹).
۳ ) عمده القاری: ۱۳۶/۲۰).
٤ ) الهدايه: ۲۷٤/۲).
٥ ) الهدايه : ۲۷٤/۲ . وفتح التقدير: ۱٤۰/۳ _ ۱٤۱).
۶ ) فتح الباری:۹/ ).

كښې اختلاف دې چه اقل مهر څومره پكار دې؟

① ظاهريه او علامه ابن حزم فرمائى چه هر څيز مهر جوړيدېشى ، تر دې د اوربشو يو دانه هم مهر جوړيدېشى. (۱)

② ابن شبرمه رحمة الله عليه فرمائى چه اقل مهر پنځه درهمه دې (۲)

③ دمالكيه‌په نيز اقل مهر ربع دينار دې ، هم دا سرقه كښې دهغه په نيز دقطع د نصاب دې، دربع يد دينارعوض كښې سرقه كښې يو اندام پريكول دى اودلته ديو اندام‌ملكيت نه حاصليږى: (۳)

④ دامام شافعى رحمه الله او امام احمد بن حنبل رحمه الله په نيز چه كوم څيز په قيمت كښې ايږدى هغه مهر جوړيدېشى ، دامام بخارى رحمه الله رجحان هم دې طرفته معلوميږى (۴)

⑤ دحضرات حنفيه په نيز اقل مهر لس درهمه‌دې او همدا مقدار دهغوى په نيز سرقه كښې دقطع يد نصاب دې (۵)

**دلائل حنفيه** : حنفيه دحضرت جابر بن عبدالله رضي الله عنه د روايت نه استدلال كوى چه حضرت نبى كريم صلى الله عليه وسلم فرمائيلى دى چه ((لا تنكحوا النساء الا الأكفاء ولا يزوجهن الا الاولياء ولا مهر دون عشرة دراهم)) دار قطنى اوبيهقى دا روايت نقل كړې دې . (۶)

ليكن ددې په سند كښې ((مبشر بن عبيد)) يو متروك راوى دې ، امام احمد بن حنبل رحمه الله كذب طرفته دده نسبت كړې دې. (۷). اودده شيخ حجاج بن ارطاس دې ، هغه هم ضعيف او مدلس دې (۸)

دحضرت جابربن عبدالله رضي الله عنه دمذكوره روايت‌يو بل سندهم دې چه په هغې كښې حجاج بن ارطاة نه دې ، هغه ابويعلى‌په خپل مسند كښې ، ابن حبان په كتاب الضعفاء كښې او ابن عدى نقل كړې دې. خو هغه هم د مبشر بن عبيد په‌طريق سره منقول دې.(۹)البته محقق ابن همام دا حديث دابن حاتم په طريق نقل كړې دې چه دهغې سند حسن دې،او هغوى د

---

۱ اوګورئ المحلى لابن حزم: ۴۹۴/۹).

۲ ) فتح البارى: ۲۶۲/۹).

۳ ) فتح البارى: ۲۶۲/۹).

٤ ) فتح البارى: ۲۶۲/۹).

٥ ) اوګورئ هدايه‌مع فتح التقدير ، كتاب النكاح ، باب المهر : ۳۰۵/۳).

۶ ) اجرجه الدار قطنى ۲٤٥/۳ ، والبيقهى : ۱۳۳/۷).

۷ ) فتح التقدير: ۲۸۰/۳ ، وميزان الاعتدال: ۴۳۳/۳ ، وكتاب الضعفاء الكبير: ۳۳۵/٤ ، والكامل لابن عدى: ٤۱۷/۶).) اګر چه بعض ځايونوكښې امام ترمذى رحمه الله دده روايتونوته حسن ونيلى دى تهذيب الكمال :٤۲٥/٥ رقم الترجمه: ۱۱۲۱).

۸ ) اوګورئ فيض البارى: ٤/ ۲۹۰) حضرت كشميرى رحمه الله هم دده تحسين كړې دې،

۹ ) اوګورئ الكامل فى ضعفاء الرجال: ٤۱۸/۶).

حافظ ابن حجر حوالې سره نقل كړې دې چه «انه بهذا الاسناد حسن ولا اقل منه»(۱) دا سناد حسن دی ، دحسن نه كمه درجه ددې نه ده ، ابن امير الحاج هم دده تحسين كړې دې (۲)
لهذا مذكوره روايت قابل احتجاج اولائق استدلا دې.
ددې تائيد حضرت على رضي الله عنه داثرنه هم دې ، چه هغه دارقطنى په مخلف طرق سره ذكر كړې دې . «لامهراقل من عشرة دراهم» (۳)
داشان په قران كريم كښې دى چه ﴿قَدْ عَلِمْنَا مَا فَرَضْنَا عَلَيْهِمْ فِيٓ أَزْوَاجِهِمْ﴾ دفرض معنى مقرر كول دى چه ددې نه معلوميږى چه مهر شرعًا مقرر دې ، ليكنم دا آيت بيان مقدار كښې مجمل دې او دحضرت جابر بن عبدالله رضي الله عنه حديث واحد حديث دې چه هغه ددې مقدار تفصيل كړې دې او ددې اجمال دپاره هغه بيان اوګڼړلې شو. ددې نه علاوه هيڅ بل حديث په دې سلسله كښې نه دې روايت شوې

**دحضرات حنفيه مسلک باندې يو اشكال:** دحضرات حنفيه مسلك باندې يو اعتراض داكيږى چه قران كريم كښې ﴿وَآتُوا النِّسَآءَ صَدُقَٰتِهِنَّ نِحْلَةً﴾ مطلق وارد شوى دى.مطلق لره خو په خپل اطلاق باندې پريخودل پكاردى.اوقليل اوكثيرهريو لره مهرجوړول پكار دى.مذكوره حديث خبر واحد دې او خبر واحد مطلق مقيد نه شى كولې لكه څنګه چه دحنفيه مسلك دې.
بعضې حضرات ددې جواب كوى چه كتاب الله دمقدار بيان كښې مطلق نه دى بلكه مجمل دى او حديث نه ددې بيان كيږى او خبر واحد بيان دپاره قابل قبول وى.
ليكن دا جواب ضعيف دې او مذكوره آيت مطلق دې ، داشان ﴿وَأُحِلَّ لَكُم مَّا وَرَآءَ...الخ﴾ هم مطلق دې .اګر چه ددې نه پس﴿ وَأُحِلَّ لَكُم مَّا وَرَآءَ...الخ﴾ كښې﴿ وَأُحِلَّ لَكُم مَّا وَرَآءَ...الخ﴾ لره حضرات حنفيه د ﴿وَأُحِلَّ لَكُم مَّا وَرَآءَ...الخ﴾ په معنى كښې اخلى او استدلال ئې ترې كړې دې چه الله ﷻ مقدار مقرر فرمائيلې دې . ليكن هغه مقدار مجمل دې اومذكوره حديث جابر كښې ددې مقدار بيان دې. ليكن علامه ابن همام فرمائيلى دى چه په آيت كريمه كښې دمقدار دمعلوميدو نسبت الله ﷻ خپل طرفته كړې دې چه مونږ كوم مقدارمقرر كړې دې هغه معين مقدار مونږ ته معلوم دې. دخلقو دپاره ددې مقدار تعيين نه آيت كريمه خاموش دې.
دآيت كريمه دسياق وسباق په وجې سره كه مهر هم مراد واخستلې شى نو بيا به هم هغه دخلقودپاره متعين مقدار تعيين لره مستلزم نه دى. زيات نه زيات نفس وجوب ثابتوى.
باقى دخلقو په نسبت سره مقدار تعيين نه په دې كښې تفصيلاً دې او نه اجمالاً حديث جابر بيان هم په هغه وخت كښې جوړيدېشى. هركله چه خلقو دپاره دمقدار تعيين په دې كښې مجملاً تسليم كړې شى . لهذا ددې نه دحنفيه مذكوره انداز نه استدلال كول درست نه دى ، چنانچه هغه ليكى چه :

---

۱) فتح التقدير: ۳/۲۸۱ _ ۲۸۲).
۲) فتح الملهم :۳/۳۸۰. باب الصداق).
۳) اوګورئ سنن دارقطنى : ۳/۲۴۵ ، وسنن بيهقى: ۷/۲۴۰).

«انما افاد النص معلومية المفروض له سبحانه والاتفاق على انه فى الزوجات والمملوكين مايكفى كلا من النفقة والكسوة والسكنى فهو مراد من الاية قطعا وكون المهر ايضا مراد بالسياق ... لايستلزم تقديره بمعين» (۱)

**د شافعيه او حنابله دلائل**: حضرات شافعيه او حنابله يو خو دقران پاك دآيت نه استدلال كوى او امام بخارى رحمه الله په دې خائې كښې فرمائى چه‌په دې كښې مطلق دمال ذكر دې ، هيڅ معين مقدار نشته دې .
نور هغه څو احاديثو نه استدلال كوى.

① دترمذى او ابن ماجه حديث دې «انه ﷺ اجاز نكاح امراة على نعلين» چه حضرت نبى كريم ﷺ په‌نعلينو باندې نكاح دښځې جائز كړې ده.،
ليكن دا حديث ضعيف دې ،اګر چه ترمذى ددې تصحيح كړې ده ، ليكن په دې كښې عاصم بن عبيدالله يو ضعيف راوى دې. (۲)

② ددوىدويم استدلال دحضرت جابر رضى الله عنه حديث دې«من اعطى فى صداق مراة مل كفيه سويقا او تمرا فقد استحل»(۳) په دې كښې يو موټئ سويق او تمر دنكاح دپاره كافى ګڼړلي شوى دى.
ليكن دا حديث هم ضعيف دې ځكه چه ددې سند كښې‌اسحاق بن جبريل اومسلم بن رومان او دوى دواړه مجهول دى (۴)

③ دشوافع‌اوحنابله‌دريم استدلال‌د دار قطنى او طبرانى روايت نه دې«ادو العلائق قيل : وما العلائق ؟ قال ماتراضى عليه الاهلون ، ولوقضيبا من اراك» (۵) يعنى د اراك دونې ښاخ باندې هم كه ظرفين راضى وى نونكاح به صحيح شى.
ليكن د دې حديث په سندكښې محمد بن عبدالرحمان يو ضعيف راوى دې‌ددې وجې قابل احتجاج نه دې . (۶)

④ دشوافع اوحنابله څلورم استدلال دحضرت سهيل رضى الله عنه حديث نه دې اوهغه صحيح حديث دې،چه په هغې كښې حضرت نبى كريم ﷺ فرمائيلى دى چه «لوخاتما من حديد».

⑤ ددوى پنځم استدلال‌د حضرت عبدالرحمان بن عوف رضى الله عنه حديث باب نه دې چه كله

---

۱ ) فتح التقدير: ۳۰۹/۳).
۲ ) الحديث اخرجه الترمذى ۱۱۱۳ ،وابن ماجه : ۱۸۸۸ ، واحمد : ۳/ ٤٤٥ ، وقال ابن الجوزى فى التحقيق فى اسناده عاصم بن عبيدالله ، قال ابن معين : ضعيف لا يحتج به ، وقال ابن حبان : كان فاحش ا لخطاء فترك ، قاله الزيلعى فى نصب الرايه :۲۰۰/۳ ، وقال ابن ابى حاتم فى علله : ۱۲۷۶ ، سالت ابى عن هذا الحديث فقال : هو منكر وعاصم منكر الحديث).
۳ ) فتح التقدير: ۳۰۸/۳).
٤ ) فتح القدير: ۳۰۸/۳).
۵ ) اوګورئ سنن دارقطنى ۲٤٤/۳ ، وفتح التقدير: ۲۰۷/۳).
۶ ) فتح التقدير:۳۰۸/۳ ، ونصب الرايه اللزيلعى:۲۰۰/۳).

هغوی حضرت نبی کریم ﷺ ته دخپلې نکاح پیغام ورکړو نو حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه "په مهر کښې دې څه ورکړل ؟ "حضرت عبدالرحمان رضی الله عنه اوفرمائیل چه ((وزن نواة من ذهب))او دا حدیث صحیح دې.
دحضرات حنفیه او مالکیه طرفنه ددې حدیثونو مختلف جوابات ورکړې شوی دی:
① مشهور جواب دادې چه ددې نه مراد مهر معجل دې . ابوالحسن ابن قصار مالکی هم دا جواب کړیدې. (۱)
② بعضو داواقعات په خصوصیت باندې محمول کړی دی . (۲) لیکن د خصوصیت دعوی به په هغه وخت کښې وی چه کله دخصوصیت دلیل هم موجود وی او په دې ځائې کښې داشان څه دلیل نشته دې.
③ علامه انورشاه کشمیری رحمه الله فرمائی چه ابتداء داسلام کښې چونکه مسلمانان غریب وو او عسر اوتنگی وه نو ددوجې په هغه وخت کښې شریعت بیشکه دمهر په معامله کښې داشان رعایت کړې وو لیکن دې نه پس کله چه الله ﷻ فراخی اومالداری راوستله نوبیا په مهر کښې زیاتوالې اوکړې شو نو فرمائی چه :
((والرای فیه عندی ان المهر وکذا نصاب السرقة کانا قلیلین فی اول الاسلام لعسر حال المسلمین فلما وسع الله تعالی علیهم زید فی المهر ونصاب السرقة ایضا حتی استقر العمل علی عشرة دراهم فیهما فلا نسخ عندی وحینئذ جاز ان یکون نحو خاتم حدید تمام المهر فی زمن)) (۳)
امام بخاری رحمه الله دا ترجمة الباب قائم کړی دی اودا خبره ئې بیان کړې ده چه مال قلیل او کثیر دواړه مهر جوریدېشی نو((واتوالنساء صدقاتهن نحلة)) او((تفرضوالهن فریضة))دادواړه آیتونه مطلق دی ،قلیل اوکثیر دواړو لره شامل دی او آیت کریمه ((واتیتم احداهن قنطارا فلا تاخذوا منه شیئا))لره په ترجمة الباب کښې((وکثرة المهر))دپاره په طور دلیل پیش کړې دې ، په دې آیت کریمه حضرت عمر فاروق رضی الله عنه په دور کښې یوې ښځې کثرت مهر باندې استدلال کړې وو ،حضرت عمر فاروق رضی الله عنه فرمائیلی دی چه ((لاتغلوا فی مهور النساء)) دښځو مهرونه زیات مه کوئی.نویو ښځې اووئیل ((لیس ذالك لك یا عمر، ان الله یقول ، واتیتم احداهن قنطارا من ذهب))(دحضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه په قرات کښې داشان دی ((قنطارا)) نه پس((من ذهب)) اضافه کړې شوې ده). نو په دې باندې حضرت عمر فاروق رضی الله عنه اوفرمائیل چه((امراة خاصمت عمر فخصمته)).(۴)

---

۱ ) صاحب فتح التقدیر هم دا حدیث په مهر معجل باندې محمول کړې دې اوگورئ فتح ا لقدیر: ۳۰۸،۳۰۶/۳).
۲ ) اوجز المسالک :۲۹۵/۹ ، کتاب النکاح ، باب ماجاء فی الصداق).
۳ ) فیض الباری: ۲۰۹/٤).
٤ ) فتح الباری: ۲۵۵/۹).

[۴۸۵۳] حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ صُهَيْبٍ عَنْ أَنَسٍ أَنَّ عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ عَوْفٍ تَزَوَّجَ امْرَأَةً عَلَى وَزْنِ نَوَاةٍ فَرَأَى النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَشَاشَةَ الْعُرْسِ فَسَأَلَهُ فَقَالَ إِنِّي تَزَوَّجْتُ امْرَأَةً عَلَى وَزْنِ نَوَاةٍ وَعَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسٍ أَنَّ عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ عَوْفٍ تَزَوَّجَ امْرَأَةً عَلَى وَزْنِ نَوَاةٍ مِنْ ذَهَبٍ [ر:۱۹۴۳].

په روايت كښې دى چه حضرت عبدالرحمان بن عوف رضي الله عنه يو ښځې سره په وزن نواة باندې نكاح اوكړه ، دوزن نواة تفسير كښې لونې اختلاف دې.

امام شافعى رحمه الله فرمائى چه نواة پنځه درهمه دى ، امام بخارى رحمه الله هم په «الادب المفرد» كښې داشان فرمائيلى دى ، علامه خطابى هم ددې مطابق فرمائيلى دى،قاضى عياض دا داكثرو عالمانو قول گڼړلې دې (۱)

امام احمد رحمه الله فرمائى چه نواة درې درهمه او يو ثلث وى ، بعضې حضرات فرمائى چه نواة درې درهمه او ربع وى ،بعضې وائى درې درهمه اونصف وى.

مالكيه فرمائى چه داهل مدينه په نيز ربع دينار ته وئيلې شى ،(۲) موطا امام محمد كښې دامام محمد رحمه الله ميلان دې طرفته دې چه نواة لس درهمه وى (۳) نوهر سړې دخپل خپل مذهب مطابق ددې تفسير كوى ، ليكن مشهور ړومبې قول دې.

او كه پنځه يا درې درهم وربع يا ثلث يا نصف مقدار مراد واخستلې شى نواحناف به په دې صورت كښې په مهر معجل باندې محمول كوى «بشاشة العرس» يعنى د واده خوشحالى.

## ۵۱=بَابُ التَّزْوِيجِ عَلَى الْقُرْآنِ وَبِغَيْرِ صَدَاقٍ

[۴۸۵۴] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ سَمِعْتُ أَبَا حَازِمٍ يَقُولُ سَمِعْتُ سَهْلَ بْنَ سَعْدٍ السَّاعِدِيَّ يَقُولُ إِنِّي لَفِي الْقَوْمِ عِنْدَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذْ قَامَتْ امْرَأَةٌ فَقَالَتْ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّهَا قَدْ وَهَبَتْ نَفْسَهَا لَكَ فَرَ فِيهَا رَأْيَكَ فَلَمْ يُجِبْهَا شَيْئًا ثُمَّ قَامَتْ فَقَالَتْ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّهَا قَدْ وَهَبَتْ نَفْسَهَا لَكَ فَرَ فِيهَا رَأْيَكَ فَلَمْ يُجِبْهَا شَيْئًا ثُمَّ قَامَتْ الثَّالِثَةَ فَقَالَتْ إِنَّهَا قَدْ وَهَبَتْ نَفْسَهَا لَكَ فَرَ فِيهَا رَأْيَكَ فَقَامَ رَجُلٌ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَنْكِحْنِيهَا قَالَ هَلْ عِنْدَكَ مِنْ شَيْءٍ قَالَ لَا قَالَ اذْهَبْ فَاطْلُبْ وَلَوْ خَاتَمًا مِنْ حَدِيدٍ فَذَهَبَ فَطَلَبَ ثُمَّ جَاءَ فَقَالَ مَا وَجَدْتُ شَيْئًا وَلَا خَاتَمًا مِنْ حَدِيدٍ فَقَالَ هَلْ مَعَكَ مِنْ الْقُرْآنِ شَيْءٌ قَالَ مَعِي سُورَةُ كَذَا وَسُورَةُ كَذَا قَالَ اذْهَبْ فَقَدْ أَنْكَحْتُكَهَا بِمَا مَعَكَ مِنْ الْقُرْآنِ [ر:۲۱۸۶].

امام بخارى رحمه الله په دې باب كښې دوه مسئلې ذكر كړى دى ، يو مسئله داده چه تعليم القران لره مهر جوړولې شى كه نه ، ددې مسئلې تفصيل ما قبل كښې تير شوې دې .

---

۱ ) فتح البارى: ۲۹۲/۹).
۲ ) فتح البارى: ۲۹۲/۹).
۳ ) اوګورئ موطا امام محمد ، كتاب النكاح ، باب ادنى مايتزوج الرجل عليه المراه : ۳۴۳).

**دمهر دذکر کولو نه بغیر دنکاح انعقاد کولو مسئله** : دویمه مسئله داده چه‌دمهر د ذکر کولو نه بغیر دنکاح انعقاد کیږی یا نه . په دې باندې دټولو اتفاق دې چه مهر نه بغیر نکاح صحیح نه ده. بغیر دمهر نه‌نکاح صرف دحضرت نبی کریم ﷺ خصوصیت وو.(١) البته که دمهر ذکر نه وی نو په هغه وخت کښې به نکاح اوشی اوکه نه ؟ .

حضرات حنفیه او حنابله وائی چه منعقد به شی ، داکثر شوافع هم دا رائې ده او په دې صورت کښې مهر مثل به لازم وی. (٢)

بعض شوافع‌وائی چه داسې صورت کښې به‌نکاح معتبره نه وی ، صاحب هدایه‌امام مالك رحمه الله طرفته‌دا قول منسوب کړې دې. (٣)

**قوله:** فرفیها رایك: یعنی تاسو په دې سلسله کښې خپله رائې قائمه کړئی. که تاسو غواړئی نو څه خپل نفس تاسو دپاره هبه کوم. تاسو ما قبوله کړئی. «فر» په دې کښې فاء تعقیبیه یا عاطفه ده او «ر» باب فتح نه دامر حاضر صیغه ده.«رأی ، رأیا» کتل ، رائې قائمول ،«ر»اصل کښې«أرای» وو آخر نه یاءحرف علت حذف کړې شو ځکه چه‌امر مجزوم کیږی اودهمزه فتحه د راء طرفته دتخفیف په غرض سره منتقل کړې شوه اوهمزه ئې اوغورزول ،هرکله چه «راء» مفتوحه شوه نو دهمزه وصل ضرورت باقی پاتې نشو ، ددې وجې همزه وصل ئې حذف کړل ا ودې نه «ر» جوړه شوه ، نو حضرت علامه عینی رحمه الله لیکی چه :

«"فر" الفاء للعطف و " ر "وحدها امرمن " رأی یری "علی وزن " ف "لان عین الفعل ولامه محذوفان لان اصله ارأی علی وزن " افعل " حذفت لا الفعل للجزم لامر مجزوم ثم نقلت حركة الهمزة الى الراى للتخفيف فاستغيث عن همزة الوصل فخذف فبقى " ر "على وزن " ف "»(۴)

## ۵۲=بَابُ الْمَهْرِ بِالْعُرُوضِ وَخَاتَمٍ مِنْ حَدِيدٍ

[۴۸۵۵] حَدَّثَنَا يَحْيَى حَدَّثَنَا وَكِيعٌ عَنْ سُفْيَانَ عَنْ أَبِي حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِرَجُلٍ تَزَوَّجْ وَلَوْ بِخَاتَمٍ مِنْ حَدِيدٍ[ر: ۲۱۸۶].

امام بخاری رحمه الله دا ونیل غواړی چه دمهر دپاره دراهم‌او دنانیر شرط نه دی ، دسامان‌د قبیل نه څه څیز چه وی هغه په مهر کښې ورکولې شی ، دخاتم حدید ذکر مخکښې په حدیث کښې په دې بنیاد شوې دې.

---

١ ) عمده القاری: ١٣٩/٢٠).
٢ ) اوګورئ فتح التقدير: ٣٠٤/٣، ٣١٢):
٣ ) اوګورئ الهدایه مع فتح التقدير: ٣٠٤/٣).
٤ ) عمده القاری: ١٣٩/٢٠).

# ٥٣-باب الشروط في النكاح

وَقَالَ عُمَرُ مَقَاطِعُ الْحُقُوقِ عِنْدَ الشُّرُوطِ:

وَقَالَ الْمِسْوَرُ بْنُ مَخْرَمَةَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَكَرَ صِهْرًا لَهُ فَأَثْنَى عَلَيْهِ فِي مُصَاهَرَتِهِ فَأَحْسَنَ قَالَ حَدَّثَنِي فَصَدَقَنِي وَوَعَدَنِي فَوَفَى لِي [ر: ٣٥٢٣].

[٤٨٥٦] حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ هِشَامُ بْنُ عَبْدِ الْمَلِكِ حَدَّثَنَا لَيْثٌ عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ عَنْ أَبِي الْخَيْرِ عَنْ عُقْبَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أَحَقُّ مَا أَوْفَيْتُمْ مِنَ الشُّرُوطِ أَنْ تُوفُوا بِهِ مَا اسْتَحْلَلْتُمْ بِهِ الْفُرُوجَ [ر: ٢٥٧٢]

امام بخارى رحمه الله په ترجمه «ابواب الشروط» كښې هم د «الشروط فى المهر عند عقدة النكاح» عنوان قائم كړې وو اوپه دې ځائې كښې په كتاب النكاح كښې هم دا ترجمة الباب لره قائموي.

علامه خطابى رحمه الله د شروط نكاح درې قسمه بيان فرمائيلى دى:

① اول دا چه څه داسې شرط اولګولې شى چه دهغې پوره كول دخاوند دپاره په هر حال كښې لازم اوضرورى وى ،دا به هغه شرط وى چه دهغې ذكر الله ﷻ فرمائيلې دې يعنى امساك بالمعروف يا تسريح بالاحسان لكه د ښځې دطرفنه د نكاح په وخت كښې شرط اولګولې شى چه خاوند به ښځې لره په معروفه طريقه ساتى ، كه دداشان ساتلو نه هغه عاجزه شو نو شرعى طريقې سره به هغه پرېږدى.

② دويم قسم دهغه شرطونو دې چه دهغې پوره كول بالاتفاق ناجائز دى. لكه ښځه خاوند سره دنكاح كولوپه وخت كښې دا شرط اولګوى چه هغه به مخكښنۍ ښځې ته طلاق وركوى.

③ دريم قسم دهغه شرطونو دې چه په هغې كښې طرفينوكښې څه فائده وى ، لكه ښځه دا شرط اولګوى سرې به دې سره بل واده نه كوى ، يا به دا ددې كور نه نه اوباسى.

جمهور علماء دريم قسم شرط غير معتبر ګڼړى. البته داامام احمد او امام اسحاق په نيز به ددې اعتبار كولې شى. (١)

داامام بخارى رحمه الله رجحان د امام مالك رحمه الله مسلك طرفته معلوميږى. څكه هغوى دحضرت عقبه بن عامر حديث ذكر كړې دې. چه په هغې كښې دحضرت نبى كريم ﷺ ارشاد دې چه دنكاح په سلسله كښې تاسو چه كوم شرطقبول كړې دې هغه پوره كول پكاردى. (٢)

جمهور عالمان دا روايت د ړومبى قسمشروط باندې محمول كوى يعنى هغه شرطونه چه په مقتضيات عقد كښې داخل دى. (٣)

**قوله: وقال عمر: مقاطع الحقوق عند الشروط:** داتعليق دې او ددې نه هم د امام

---

١) مذكوره تفصيل دپاره وګورئى فتح البارى: ٢٧٢/٩).
٢) الابواب والترجم: ٧١/٢).
٣) الابواب والترجم: ٧١/٢ ، شرح نووى لمسلم :٤٥٥/١ ، كتاب النكاح).

احمد رحمه الله نقطه نظر تائيد کيږي چه حقوق په هغه خاني کښې ختميږي چه په کوم خاني کښې شروط راشي. که خاوند ديو ښځې شرط قبول کړو نو اوس ددې متعلق دخاوند حق باقي پاتې نشو ، لکه بلې ښځې سره واده مه کوه دا شرط که قبول کړي نو اوس دده دبلې ښځې حق نه شته ، دشرط منلو نه پس به دده حق ختم شي.

دا تعليق سعيد بن منصور موصولاً نقل کړې دې چه عبدالرحمان بن غنم اوفرمائيل چه زه حضرت عمر فاروق رضي الله عنه سره اوم اودومره نزدې اوم چه زما ځنګون دهغې ځنګون سره نزدې وه ، په دې کښې يو سړې ده لره راغلو او وې وئيل چه ((ياامير المومنين تزوجت هذه وشرطت لها دارها واني أجمع لامري ان أنتقل الى ارض كذا وكذا)) يعنى ما هغه ښځې سره واده کړې دې . او شرط مې لګولې دې چه هغه به خپل کور کښې اوسي. ليکن اوس مې اراده ده چه فلانى خاني ته منتقل شم .نو په دې باندې حضرت عمر فاروق رضي الله عنه اوفرمائيل ((لها شرطها)) يعنى هغې ته په خپل شرط باندې عمل اختيار دې ، نو دې سړي اووئيل چه ((هلك الرجال اذا لاتشاء امراة ان تطلق زوجها الا طلقت)) يعنى سړي خو بيا برباد شو نو ددې وجې داشان کله چه ښځه غواړي نو خاوند ته به طلاق ورکړي. نوحضرت عمر فاروق رضي الله عنه اوفرمائيل چه ((المومنين على شروطهم عند مقاطع حقوتهم)) او بعضې رواياتو کښې دى چه ((ان مقاطع الحقوق عند الشروط)) کله چه دوى د شرط په ذريعه پخپله خپل حق ختم کړو نو په دې کښې اوس هيڅوك دخل نشى ورکولې.(۱)

خو ابن وهب فرمائى چه حضرت عمر فاروق رضي الله عنه نه دا منقول دى چه هغوى شرط لره لغو اوګرزولو او وې فرمائيل چه ((المراة مع زوجها))(۲)

امام ابوعبيد فرمائى چه دحضرت عمر فاروق رضي الله عنه په رواياتو کښې تضاد دې ((المراة مع زوجها)) نه معلوميږي چه دشرط اعتبار نشته او ((مقاطع الحقوق عند الشروط)) نه معلوميږي چه اعتبار دې.لهذا د حضرت عمرفاروق رضي الله عنه آثار به پريښودې شي.(۳)

ابن ابى شيبه دحضرت على رضي الله عنه اثر نقل کړې دې . ((شرط الله قبل شرطها)) دالله جل جلاله شرط د ښځې شرط نه مخکښې دې اودالله جل جلاله شرط نه مراد ((اسكنوهن من حيث سكنتم)) دې چه کوم خاني کښې تاسو اوسئ په هغه خاني کښې خپلې بيبيانې اوسوئى. (۴)

**قوله: وقال المسور بن مخرمة:** دا تعليق امام بخارى رحمه الله په ابواب المناقب کښې په باب ذکر اصهار النبى صلى الله عليه وسلم لاندې موصولاً نقل کړې دې. (۵)

---

۱) مذکوره تفصيل دپاره اوګورئى فتح البارى: ۲۷۱/۹ ، وارشادالسارى: ۴۳۲/۱۱ ، وعمدة القارى: ۱۴۰/۲۰).
۲) عمده القارى: ۱۴۰/۲۰).
۳) عمدة القارى: ۱۴۰/۲۰ ، فتح البارى: ۱۷۲/۹_۱۷۳).
۴) تعليقات لامع الدرارى : ۳۱۰/۹).
۵) عمده القارى: ۱۴۱/۲۰) .

حضرت مثور بن مخرمه رحمه الله فرمائي چه ما دحضرت نبى كريم ﷺ نه ديو خوم (زوم) تذكره واوريده. حضرت نبى كريم ﷺ د زوم په سلسله كښې دهغه تعريف اوكړو او ښه صفات ئې بيان كړل. او وې فرمائيل چه هغه ماسره خبره كړې وه نو رښتيا او وعده ئې پوره كړه.

«صهر» نه په دې ځائې كښې دحضرت نبى كريم ﷺ دټولو نه دمشرې لور دحضرت زينب رضي الله عنها خاوند ابوالعاص بن ربيع مراد دې. دې په غزوه بدر كښې دمسلمانانو خلاف دمشركانو د طرفنه جنګ دپاره راغلې وواو ګرفتار شو، حضرت نبى كريم ﷺ هغه آزاد كړو او دا شرط ئې اولګولو چه هغه به حضرت زينب رضي الله عنها مدينې ته راوليږى. نو هغه همداسې اوكړل اوحضرت زينب ئې مدينې ته راوليږله. «حدثنى فصدقنى ووعدنى فوفى لى» نه دې واقعې طرفته اشاره ده. بعد كښې ده اسلام قبول كړو او د فتح مكه نه مخكښې هغه هجرت اوكړو او مدينې ته راغلې وو. حضرت زينب رضي الله عنها دوباره هغه لره ورغله ، دحضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه په دور خلافت كښې وفات شو. (۱)

امام بخارى رحمه الله دا تعليق په دې ځائې كښې اوفرمائيلو او دې طرفته ئې اشاره اوكړه كه په نكاح كښې څه شرط قبول كړې شى نو دهغې ايفاءكول پكار دى. شرط قبلول يو رنګ وعده ده. لهذا ددې ايفاءكول پكار دى.

**قوله: حدثنا ابوالوليد:** ابوالخير دمرثد بن عبدالله يزنى كنيت دې اوعقبه نه عقبه بن عامر جهنى مراد دې ،(۲) هغوى دحضرت نبى كريم ﷺ ارشاد نقل كړې دې چه تاسو ټولو باندې په ټولو شرطونو كښې د نكاح شرطونه پوره كول دى. چه ددې په وجه ستاسو دپاره دهغوى شرمګاهونه حلال دى.

## ۵۴=باب الشروط التي لا تحل في النكاح

وقال ابن مسعود لا تشترط المرأة طلاق اختها

[۴۸۵۷] حدثنا عبيد الله بن موسى عن زكرياء هو ابن ابى زائدة عن سعد بن ابراهيم عن ابى سلمة عن ابى هريرة رضى الله عنه عن النبى صلى الله عليه وسلم قال لا يحل لامرأة تسأل طلاق اختها لتستفرغ صحفتها فانما لها ما قدر لها [ر:۲۰۳۳]

ددې شرطونو دبيانولو نه پس چه كوم مقرر كول جائز دى اوس په دې باب كښې امام بخارى رحمه الله هغه شروط بيانوى چه دهغې مقرر كول ناجائز دى ،

لكه ښځه دا شرط اولګوى چه ته خپلې مخكښې ښځې ته طلاق وركړه دا شان شرط لګول باطل دى او نكاح منعقد كيږى.

---

۱) مذكوره تفصيل دپاره اوګورئ عمده القارى: ۲۰/۱٤۱).
۲) ارشادالسارى: ۱۱/ ٤۳۲).

## ٥٥ = بَابُ الصُّفْرَةِ لِلْمُتَزَوِّجِ

وَرَوَاهُ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ عَوْفٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

[٤٨٥٨] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ حُمَيْدٍ الطَّوِيلِ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ أَنَّ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنَ عَوْفٍ جَاءَ إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَبِهِ أَثَرُ صُفْرَةٍ فَسَأَلَهُ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخْبَرَهُ أَنَّهُ تَزَوَّجَ امْرَأَةً مِنَ الْأَنْصَارِ قَالَ كَمْ سُقْتَ إِلَيْهَا قَالَ زِنَةَ نَوَاةٍ مِنْ ذَهَبٍ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَوْلِمْ وَلَوْ بِشَاةٍ [ر: ١٩٤٤].

امام بخاري رحمه الله فرمائی که د واده په موقع باندې د زردئی استعمالولو نوبت راشي نو په دې کښې هيڅ باك نشته دې.

روايت کښې دحضرت عبدالرحمان متعلق ذکر دې چه د حضرت نبی کريم ﷺ مجلس ته راغلو نو په هغوی باندې دزردئ اثر وو. روايت او ترجمة الباب دواړوکښې مطلقًا د زردی ذکر دې.

ليکن علماءوائی چه ددې نه مراد دخلوق زردی ده.(١) دخلوق مرکب خوشبودار وی.او په دې کښې زعفران هم شامل وی ، د زعفران استعمال دسړی دپاره جائز نه دی. په حديث کښې دی «نهی رسول ا لله ﷺ ان يتز عفر الرجل»(٢) ددې حديث په بنياد باندې حضرات حنفيه اوشافعيه په نيز دسړی دپاره دزعفران استعمال مطلقًا ممنوع دې چه ددې استعمال نه په جسم جائز دې اونه په کپړو باندې او ويښتو باندې لګول جائز دی. (٣)

دحضرات مالکيه په نيز بدن کښې ددې استعمالول ممنوع دی. ليکن کپړو کښې ددې داستعمالول ګنجائش نشته دې. (٤)

په روايت باب کښې که د زردئی نه مراد خلوق دې چه په دې کښې زعفران وی نو مالکيه فرمائی چه دا په کپړه کښې لګيدلی وو نوددوی په نيزدا جائز دی. (٥)

البته دحنفيه او شافعيه په مذهب باندې روايت باب نه په دې صورت کښې به اشکال وی ، هغوی ددې حديث مختلف جوابونه ورکوی.

① يو جواب دا ورکړې شوې دې چه دا دتحريم نه مخکښې واقعه ده ليکن ددې دپاره د دليل ضرورت شته دې.(٦)

---

١ ) ارشادالسّاری: ١١/ ٤٣٤).
٢ ) عمده القارئ: ١٤٣/٢٠).
٣.) عمدةُ القاری: ١٤٣/٢٠ ، والابواب والترجم:٧١/٢).
٤ ) الابواب والترجم: ٧٠/٢ ، وعمده القاری: ٢٠/ ١٤٣).
٥ ) فتح الباری: ٢٩٣/٩ ، باب الوليمة ولوبشاه) .
٦ ) فتح الباری: ٢٩٤/٩).

③ دويم جواب دا ورکړې شوې دې چه په دې ځائې کښې حضرت عبدالرحمان دخلوق استعمال نه ووکړې .دده ښخې استعمال کړې وو او ددې نه دحضرت عبدالرحمان رضي الله عنه په کپړوباندې بغير ارادې ددې اثر راغلې وو او دې جواب ته حضرت امام نووی رحمه الله راجح ونيلي دی.

④ دريم جواب دادې چه په هغه وخت کښې هغه سره هيڅ خوشبو نه وه ددې وجې په وخت دضرورت هغوی دې لره مباح اوګنړل. (١)

⑤ څلورم جواب دادې چه دا ډيرکم مقدار کښې ووچه قابل عفو دی. (٢)

⑥ بعضو ونيلي دی چه دخلوق ا ستعمال عام خلقودپاره ممنوع دی. ليکن والده والا ددې نه مستثنی دې. بالخصوص کله چه هغه ځوان وی. چنانچه د واده په موقعه باندې ددې استعمالول جائز دی ، ابوعبيده رضي الله عنه هم دا جواب ورکړې دې.(٣)

امام بخاری رحمه الله دا زردی خلوق سره مقيد کړې نده. هغوی مطلق زردی ذکر کړې ده. بعض علاقو کښې دستور دې چه دواده په موقعه باندې ښځه لره بټهنه وغيره لګوی چه په هغې کښې زردی شامله وی. اوسړی ئې هم لګوی. امام بخاری رحمه الله ددې دستور رعايت کوی او وائی چه ددې ګنجائش شته دې.

ليکن داامام بخاری رحمه الله دا استدلال به په هغه وخت کښې درست وی چه کله نه دصفرة مطلق زردی مراد وی.

اودا هم ممکن دی چه داامام بخاری رحمه الله د ځلمی دپاره خلوق داستعمال اجازت طرفته اشاره کوی. والله اعلم.

## باب

[۴۸۵۹] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ حُمَيْدٍ عَنْ أَنَسٍ قَالَ أَوْلَمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِزَيْنَبَ فَأَوْسَعَ الْمُسْلِمِينَ خَيْرًا فَخَرَجَ كَمَا يَصْنَعُ إِذَا تَزَوَّجَ فَأَتَى حُجَرَ أُمَّهَاتِ الْمُؤْمِنِينَ يَدْعُو وَيَدْعُونَ لَهُ ثُمَّ انْصَرَفَ فَرَأَى رَجُلَيْنِ فَرَجَعَ لَا أَدْرِي أَخْبَرْتُهُ أَوْ أُخْبِرَ بِخُرُوجِهِمَا [ر: ۳۰۵۳]

دا باب بلا ترجمه دې ، دنسفی روايت کښې په دې ځائې کښې لفظ «باب» نشته دې (۴) ليکن په دې صورت کښې به اشکال وی چه حديث باب «الصفرة للمتزوج» سره څه مناسبت نشته دې. ددې وجې خبره صحيح داده چه په دې ځائې کښې لفظ «باب» دې ، او دا «كالفصل من الباب السابق» او ددې لاندې ئې دام المومنين حضرت زينب بنت جحش رضي الله عنها د واده واقعه ذکر کړه اوامام بخاری دې خبرې طرفته اشاره کوی چه د واده په موقعه باندې د

١) فتح الباری۹/۲۹٤).
٢) فتح الباری۹/۲۹٤).
٣) فتح الباری۹/۲۹٤).
٤) فتح الباری: ۲۷۲/۹ ، وعمدة القاری: ۱٤٤/۲۰).

زردنی لګولو هیڅ ضرورت نشته دې ، او واجب نه دی څکه چه دحضرت زینبت رضی الله عنها واقعې کښې د زردئی ذکر نشته دې،نو ګویا چه په سابقه باب کښې دزردئی جواب بیان کړو او ددې باب بلا ترجمه لاندې ئې داحدیث راوړو اوددې د عدم وجوب طرفته ئې اشاره کړې ده.(۱)

## ۵۶=بَاب كَيْفَ يُدْعَى لِلْمُتَزَوِّجِ

[۴۸۶۰] حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ هُوَ ابْنُ زَيْدٍ عَنْ ثَابِتٍ عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأَى عَلَى عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ أَثَرَ صُفْرَةٍ قَالَ مَا هَذَا قَالَ إِنِّي تَزَوَّجْتُ امْرَأَةً عَلَى وَزْنِ نَوَاةٍ مِنْ ذَهَبٍ قَالَ بَارَكَ اللَّهُ لَكَ أَوْلِمْ وَلَوْ بِشَاةٍ [ر:۱۹۴۳]

په دې باب کښې واده کولووالا ته په کوموالفاظ او څه رنګ دعا اوکړې شی دهغې بیان دې ،دجاهلیت په زمانه کښې واده والو ته به په «بالرفاء والبنين» الفاظوسره دعا ورکولې شوه.یعنی «صرت مقرونا بالرفاء والبنين» ستا اوستا د کور والو په مینځ کښې دې تعلقات خوشګوار وی او تاته دې ځامن نصیب شی.

امام بخاری رحمه الله دحضرت انس رضی الله عنه روایت ذکر کوی او فرمائی چه واده کونکی ته دې «بارك الله لك»الفاظوسره دعا اوکړې شی.اوبعضو روایتونو کښې داالفاظ «بارك الله لك وبارك عليك وجمع بينكما في خير»(۲)

## ۵۷=بَاب الدُّعَاءِ لِلنِّسَاءِ اللَّاتِي يَهْدِينَ الْعَرُوسَ وَلِلْعَرُوسِ

[۴۸۶۱] حَدَّثَنَا فَرْوَةُ بْنُ أَبِي الْمَغْرَاءِ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ مُسْهِرٍ عَنْ هِشَامٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا تَزَوَّجَنِي النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَتَتْنِي أُمِّي فَأَدْخَلَتْنِي الدَّارَ فَإِذَا نِسْوَةٌ مِنْ الْأَنْصَارِ فِي الْبَيْتِ فَقُلْنَ عَلَى الْخَيْرِ وَالْبَرَكَةِ وَعَلَى خَيْرِ طَائِرٍ [ر:۳۶۸۱]

په دې باب کښې دهغه ښځو دپاره ددعا ذکر دې چه دناوې رهنمائی کوی ، هغې لره ځانسته کوی اوهغه خاوند ته پیش کوی.او د ناوې دپاره ددعاهدیه او د هدیه ورکولو بیان دې.

حدیث باب کښې دحضرت عائشه رضی الله عنها د واده ذکر دې. ددې مور ام رومان دې لره دحضرت نبی کریم صلی الله علیه وسلم کور ته داخله کړه نو په هغه ځائې کښې موجود انصاری ښځو دام رومان او دناوې داستقبال دپاره دا دعائیه کلمات اووئیل «على الخير والبركة وعلى خير طائر» خیر اوبرکت او ښه نصیب باندې .

په ترجمة الباب او حدیث کښې مطابقت بالکل ظاهر دې. ترجمة الباب کښې دی چه د ناوې دپاره دعا کول پکار دی. او دهغه ښځودپاره چه کومې ښځې ناوې ښائسته کوی او جوړوی ئې . چنانچه په حدیث کښې انصاری ښځو دحضرت ام رومان او حضرت عائشه رضی الله عنها

---

۱) فتح الباری: ۲۷۶/۹ ، عمده القاری: ۱۴۵/۲۰).

۲) مذکوره تفصیل دپاره اوګورئ فتح ا لباری: ۲۷۲/۹ ، ۲۷۷).

په راتلو دعا اوكړه. ام رومان ناوې جوړه كړې وه او حضرت عائشه رضي الله عنها پخپله ناوې وه. (١)
حافظ ابن حجر رحمه الله اوبعضو نورو شارحينو په دې ځائې دحديث او ترجمة الباب مطابقت كښې ډير درانه بحثونه كړى دى ،چه دهغې په وجه دا آسانه خبره ګرانه شوه. (٢)

**قوله:** يهدين العروس:((يهدين))دهداية نه كيديشى په معنى د رهنمائى كولواودا دباب افعال نه ((يهدين)) نه هم كيديشى ،په معنى د هديه وركولو او ددې ښائسته كولو او خلمى ته دپيش كولو(٣)مرادترې هغه ښځې دى چه كومې ناوې لره ښائسته كوى او خاوند ته پيش كوى ،ددې رهنمائى كوى اودې ته هديه وغيره وركوى .
حديث باب ابواب الهجرة نه مخكښې باب تزويج عائشه لاندې تفصيل سره تير شوې دې.

## ٥٨=بَاب مَنْ أَحَبَّ الْبِنَاءَ قَبْلَ الْغَزْوِ

[٤٨٦٢] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْمُبَارَكِ عَنْ مَعْمَرٍ عَنْ هَمَّامٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ غَزَا نَبِيٌّ مِنَ الْأَنْبِيَاءِ فَقَالَ لِقَوْمِهِ لَا يَتْبَعْنِي رَجُلٌ مَلَكَ بُضْعَ امْرَأَةٍ وَهُوَ يُرِيدُ أَنْ يَبْنِيَ بِهَا وَلَمْ يَبْنِ بِهَا [ر:٢٩٥٦].

امام بخارى رحمه الله فرمائى چه كه ديو سړى واده اوشواوده تر اوسه پورې بناء اونكړه اود جهاد موقع راغله نو كه دې غواړى چه مخكښې بناء اوكړى او بيا جهاد ته لاړ شى نو په سنت كښې ددې اصل موجود دې. حضرت نبى كريم ﷺ ديو نبى عليه السلام واقعه بيان كړه چه هغوى دجهاد په موقعه باندې خپل قوم ته اوفرمائيل چه ماسره دې هغه سړې نه ځى چه چا واده كړې وى او دبناء اراده ئې وى او تر اوسه ئې بناء نه ده كړې.
په دې صورت كښې كه هغه بنا اوكړى او لاړشى نو دښځې دطرفنه به دده زړه فارغ شى اودې به سكون سره جهاد اوكړې شى ، لهذا داسې موقعه باندې دبنا كولو اجازت شته.
حديث باب الجهاد كښې تير شوې دې . چه دكوم نبى ذكر په هغې كښې دې بعضو وئيلى دى چه دا حضرت داود عليه السلام وواو بعضو وئيلى چه هغه يوشع عليه السلام وو. (۴)
ابن منير فرمائيلى چه ددې نه دعامو خلقو دنظريې ترديد كيږى چه كوم وائى چه مخكښې دې حج اوكړې شى او بيا واده. بهتر دادى چه مخكښې دې واده اوكړې شى چه دعفت سامان راشى او بيا دې حج اوكړې شى. (۵)

---

١ ) ارشادالسارى: ١١/٤٣٤).
٢ ) اوګورئ فتح البارى ٩/٢٧٨).
٣ ) فتح البارى: ٢/٢٧٨. وعمده القارى: ٢/١٤۶).
٤ ) فتح البارى: ٩/٢٧٩).
٥ ) فتح البارى: ٩/٢٧٩).

## ۵۹=بَاب مَنْ بَنَى بِامْرَأَةٍ وَهِيَ بِنْتُ تِسْعِ سِنِينَ

[۴۸۶۳] حَدَّثَنَا قَبِيصَةُ بْنُ عُقْبَةَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ عُرْوَةَ تَزَوَّجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَائِشَةَ وَهِيَ بِنْتُ سِتِّ سِنِينَ وَبَنَى بِهَا وَهِيَ بِنْتُ تِسْعٍ وَمَكَثَتْ عِنْدَهُ تِسْعًا [ر: ۳۶۸۱].

امام بخاري رحمه الله فرمائي كه‌دنهو كالو جينئ سره واده كړې دې نو بنا كول جائز دى ، خو شرط به داوى چه هغه مطيق للجماع وى.

په عربوكښې كم عمرئى كښې دښځو درخصتئ رواج وو ، دحضرت عائشه رضي الله عنها موردديې خاص طور سره تربيت كړې وو. دابوداود وغيره رواياتوكښې دى چه دې ته به ئې كوچ او كهجورې وركولې ، چه ښه طاقتوره شى او صحتمنده شى. امام ابوداود په دې باندې ترجمه كړې ده چه «باب في السمنة»(۱) په دې كښې دې طرفته اشاره كړې ده چه ښځې لره دښه صحتمندكولو اهتمام اوكړى‌او په كم عمرئى كښې ددې رخصتى كول درست دى.

## ۶۰=بَاب الْبِنَاءِ فِي السَّفَرِ

[۴۸۶۴] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَامٍ أَخْبَرَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ حُمَيْدٍ عَنْ أَنَسٍ قَالَ أَقَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ خَيْبَرَ وَالْمَدِينَةِ ثَلَاثًا يُبْنَى عَلَيْهِ بِصَفِيَّةَ بِنْتِ حُيَيٍّ فَدَعَوْتُ الْمُسْلِمِينَ إِلَى وَلِيمَتِهِ فَمَا كَانَ فِيهَا مِنْ خُبْزٍ وَلَا لَحْمٍ أَمَرَ بِالْأَنْطَاعِ فَأَلْقَى فِيهَا مِنَ التَّمْرِ وَالْأَقِطِ وَالسَّمْنِ فَكَانَتْ وَلِيمَتَهُ فَقَالَ الْمُسْلِمُونَ إِحْدَى أُمَّهَاتِ الْمُؤْمِنِينَ أَوْ مِمَّا مَلَكَتْ يَمِينُهُ فَقَالُوا إِنْ حَجَبَهَا فَهِيَ مِنْ أُمَّهَاتِ الْمُؤْمِنِينَ وَإِنْ لَمْ يَحْجُبْهَا فَهِيَ مِمَّا مَلَكَتْ يَمِينُهُ فَلَمَّا ارْتَحَلَ وَطَّى لَهَا خَلْفَهُ وَمَدَّ الْحِجَابَ بَيْنَهَا وَبَيْنَ النَّاسِ [ر: ۳۶۳].

امام بخاري رحمه الله دا وئيل غواړى چه دبناء دپاره دحضر كيدل ضرورى نه دى ، په سفر كښې هم بناء جائز دى.

حديث باب كتاب المغازى كښې تفصيل سره تير شوي دې . (۲)

## ۶۱=بَاب الْبِنَاءِ بِالنَّهَارِ بِغَيْرِ مَرْكَبٍ وَلَا نِيرَانٍ

[۴۸۶۵] حَدَّثَنِي فَرْوَةُ بْنُ أَبِي الْمَغْرَاءِ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ مُسْهِرٍ عَنْ هِشَامٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ تَزَوَّجَنِي النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَتَتْنِي أُمِّي فَأَدْخَلَتْنِي الدَّارَ فَلَمْ يَرُعْنِي إِلَّا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ضُحًى [ر: ۳۶۸۱].

امام بخاري رحمه الله فرمائي چه دبناء دپاره شپه ضرورى نه ده ، په‌ورځ كښې هم‌جائز دى. ليكن مركب او نيران يعنى اورلره استعمالول نه دى پكار. نن سبا دواده په موقعه باندې د

۱ ) فتح البارى: ۲۷۹/۹).

۲ ) كشف البارى، كتاب المغازى ،باب غزوه خيبر : ۴۳۰، ۴۳۱).

اسونو دسورلئ چه کومه طریقه رائج ده ،امام بخاری رحمه الله دراصل ددې تردید کوی، داشان د واده په موقع باندې د اور بلولود رسم تردید کوي چه په حقیقت کښې دمجوسیانو شعار دې.
عبدالله بن قرط ثمالی دحضرت عمر فاروق رضی الله عنه د طرفنه د حمص گورنر وو. هغوی اوکتل چه دچا د جنج مخکښې څوك اوور بلوی ، هغوی ته کوږې ورکړې ، خلق منتشر شو ، بیا هغوی خطبه اووئیله او وې فرمائیل چه «ان عرسکم أوقدوا النیران وتشبهوا بالکفرة والله مطفی نورهم» (۱)

## ۶۳=بَابُ الْأَنْمَاطِ وَنَحْوِهَا لِلنِّسَاءِ

[۴۸۶۶] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُنْكَدِرِ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَلْ اتَّخَذْتُمْ أَنْمَاطًا قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ وَأَنَّى لَنَا أَنْمَاطٌ قَالَ إِنَّهَا سَتَكُونُ [ر:۳۴۳۲].

«انماط» د «نمط» جمع ده. دبسترې دپاسه چه کوم جالیدار څادر وی هغې ته وائی. جالدارې پردې او رومال هم په دې اطلاق کښې راځی.(۲)
امام بخاری رحمه الله دانماط استعمال دجائز کیدو طرفته اشاره کوی. لیکن په دې باندې د صحیح مسلم اشکال دې چه حضرت عائشه رضی الله عنها به په کور کښې جالیدار پرده زړونده کړې وه. نو حضرت نبی کریم ﷺ په خپل
دست مبارك سره دا شلولې وه (۳)
ددې جواب ورکړې شو چه هغه په اصل کښې تصویرونو والا وو. ددې وجې دوی هغه اوشلوله. (۴)
اویا که دا اوئیلې شی چه حضرت نبی کریم ﷺ دراصل ددنیا رنګینو نه اعراض اوعدم رغبت داظهار دپاره ئې داسې اوکړل ګنی فی نفسه دا جائز دی.
اویا دا اوئیلې شی چه ددې حدیث تعلق عام مواقع سره دې او په دې ځائې دنکاح په موقع باندې ددې د جواز بیان مقصود دې ځکه دکتاب النکاح (بیان) جاری دې.حدیث باب علامات النبوة کښې تیر شوې دې.

## ۶۴=بَابُ النِّسْوَةِ اللَّاتِي يَهْدِينَ الْمَرْأَةَ إِلَى زَوْجِهَا وَدُعَائِهِنَّ بِالْبَرَكَةِ

[۴۸۶۷] حَدَّثَنَا الْفَضْلُ بْنُ يَعْقُوبَ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَابِقٍ حَدَّثَنَا إِسْرَائِيلُ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ أَنَّهَا زَفَّتْ امْرَأَةً إِلَى رَجُلٍ مِنَ الْأَنْصَارِ فَقَالَ نَبِيُّ اللَّهِ صَلَّى

---

۱) الابواب والترجم: ۷۲/۲).
۲) فیض الباری: ۲۹۷/٤ ، وعمده القاری: ۱٤۸/۲۰).
۳) فتح الباری: ۲۸۰/۹ ، وصحیح مسلم کتاب اللباس والزینه ، باب تحریم تصویر صوره... ۲۰۰/۲).
٤) فتح الباری: ۳۱۱/۰ ، باب هل یرجع اذا رای منکرا).

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا عَائِشَةُ مَا كَانَ مَعَكُمْ لَهْوٌ فَإِنَّ الْأَنْصَارَ يُعْجِبُهُمُ اللَّهْوُ(١)

دامام بخاری رحمه الله مقصد دادې چه ناوې خاوند له ليږلو دپاره كه ښځې ددې ناوې ډول سنګار دپاره جمع شی نو سنت كښې ددې اصل شته دې.

او داهم ممكن دی چه امام بخاری رحمه الله دې استحباب طرفته ته اشاره كول غواړی چونكه د كور ښځې داسې موقع باندې د نورو په كاورنو كښې مصروفې وی، ددې وجې كه رشته دار او نزدې رشته دارې ښځې راشی او ناوې له تياره كړی نو د كور والو دپاره به آسانی وی . (٢)

دابو ذر رضي الله عنه په روايت كښې دترجمة الباب نه د«ودعائهن بالبركة» اضافه هم شوې ده.(٣) روايت باب كښې د دعا ذكر نشته دې ، البته دروايت بعض طرق كښې ددعا ذكر ې . كه دترجمة الباب نه مذكوره الفاظ ثابت اومنلې شی نو په دې صورت كښې به دامام بخاری رحمه الله مقصد دې طرفته اشاره وی چه په دې كښې ددعا ذكر دې. هغه طريق ابو الشيخ په كتاب النكاح كښې نقل كړې ده. چه دهغې الفاظ دی:

«عن عائشة انها زوجت يتيمة كانت فى حجرها رجلا من الانصار ، قالت: وكنت فيمن اهداها الى زوجها فلما رجعنا قال الى رسول الله صلى الله عليه وسلم ماقلتم ياعائشة رضي الله عنها، قالت سلمنا ودعونا الله بالبركة ثم انصرفنا» (٤)

**قوله: انها زفت امراة الى رجل من الانصار:** حافظ ابن حجر رحمه الله ددې ښځې دنوم متعلق دعدم واقفيت اظهار كړې دې. (٥) البته ابن اثير په «اسد الغابة» كښې ددې ښځې نو «فارعة بنت اسعد بن زرارة» او ددې د خاوند نوم «نبيط بن جابر انصاری» ليكلې دې. (٦)

**قوله: ما كان معكم لهو:** دشريك روايت كښې دی چه حضرت نبی كريم صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل چه ته هغې سره يوجينئ اوليږه ، چه هغه ډول غږوی او شعرونه وائی. حضرت عائشه رضي الله عنها تپوس اوكړو چه څه اشعار وائی. نو حضرت نبی كريم صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل چه هغه دا اشعار وائی:

اتيناكم اتيناكم فحيانا وحياكم ولولا الذهب الاحمر ماحلت بواديكم

ولولا الحنطة السمراء ماسمنا عذاريكم (٧)

---

١ ) والحديث لم يخرجه احد من اصحاب الصحاح الستة الا البخاری).
٢ ) الابواب والتراجم: ٧٢/٢).
٣ ) فتح الباری: ٢٨١/٩).
٤ ) فتح الباری: ٢٨١/٩).
٥ ) فتح الباری: ٢٨١/٩).
٦ ) فتح الباری: ٢٨١/٩).
٧ ) فتح الباری: ٢٨١/٩).

## ٦٤ = باب الهدية للعروس

[۴۸۶۸] وقال ابراهيم عن ابی عثمان واسمه الجعد عن انس بن مالك قال مر بنا في مسجد بني رفاعة فسمعته يقول كان النبي صلى الله عليه وسلم اذا مر بجنبات ام سليم دخل عليها فسلم عليها ثم قال كان النبي صلى الله عليه وسلم عروسا بزينب فقالت لي ام سليم لو اهدينا لرسول الله صلى الله عليه وسلم هدية فقلت لها افعلي فعمدت الى تمر وسمن واقط فاتخذت حيسة في برمة فارسلت بها معي اليه فانطلقت بها اليه فقال لي ضعها ثم امرني فقال ادع لي رجالا سماهم وادع لي من لقيت قال ففعلت الذي امرني فرجعت فاذا البيت غاص باهله فرايت النبي صلى الله عليه وسلم وضع يديه على تلك الحيسة وتكلم بها ما شاء الله ثم جعل يدعو عشرة عشرة ياكلون منه ويقول لهم اذكروا اسم الله وليأكل كل رجل مما يليه قال حتى تصدعوا كلهم عنها فخرج منهم من خرج وبقي نفر يتحدثون قال وجعلت اغتم ثم خرج النبي صلى الله عليه وسلم نحو الحجرات وخرجت في اثره فقلت انهم قد ذهبوا فرجع فدخل البيت وارخى الستر واني لفي الحجرة وهو يقول يا ايها الذين امنوا لا تدخلوا بيوت النبي الا ان يؤذن لكم الى طعام غير ناظرين اناه ولكن اذا دعيتم فادخلوا فاذا طعمتم فانتشروا ولا مستانسين لحديث ان ذلكم كان يؤذي النبي فيستحيي منكم والله لا يستحيي من الحق

قال ابو عثمان قال انس انه خدم رسول الله صلى الله عليه وسلم عشر سنين [ر: ۳۵۱۳].

كه ناوې يا خلمى دپاره د تحفې په طور او هديه څه څيز ورکړې شى نو سنت کښې ددې اصل موجود دې .

ابراهيم بن طهمان دابو عثمان نه نقل کوى. دابوعثمان نوم جعد دې. هغه وائى چه حضرت انس رضی الله عنه دبصرې په مسجدبنى رفاعه کښې خمونږ سره تير شو نوما دهغوى نه دا واوريدل.

**قوله**: كان النبي صلى الله عليه وسلم اذا مر بجنبات ام سليم دخل عليها: يعنى حضرت نبى كريم صلى الله عليه وسلم چه به کله دام سليم کور داطراف نه‌تيريدو نو دوى لره‌په ورتلل او سلام به ئې کولو.

((جنبسات))د((جنبة))جمع ده په معنى د طرف،نا حيه.

په دې خائې کښې دحديث د حصه دابوعثمان نه صرف ابراهيم بن طهمان نقل کوى او مخکښې باقى حديث کښې دوى سره جعفر بن سليمان اومعمر بن راشد هم شريك دې ، امام مسلم دا دواړه حديثونه موصولاً نقل کړى دى.(۱) ليکن دابراهيم بن طهمان حديث متعلق حافظ ابن حجر رحمه الله ليکلى دى چه هغه ماته موصولاً ملاؤنشو(۲)

---

۱) فتح البارى: ۲۸۳/۹).
۲) فتح البارى: ۲۸۳/۹).

مخکښې حديث کښې حضرت انس رضي الله عنه فرمائي چه حضرت نبی کريم صلى الله عليه وسلم دزينب بن جحش واده کښې خلمې وو. ام سليم ماته اووئيل که مونږ دحضرت نبی کريم صلى الله عليه وسلم دپاره څه هديه اوليږلو نو دابه ډير ښه وی. نوما هغې ته اووئيل چه او اوليږه. چنانچه هغوی کهجور ، غوړی اوپنير واخستل او دائې حيس کړل ((دايو خاص قسم حلوه وی)) تياره کړه او ماسره ئې هغه حضرت نبی کريم صلى الله عليه وسلم کره اوليږله. حضرت نبی کريم صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل چه دا کيږده او دڅو کسانو نومونه ئې واخستل او وې فرمائيل دا راوبله او ددوی نه علاوه چه څوك تاته ملاؤ شی نو هغه راوبله. ما دحضرت نبی کريم صلى الله عليه وسلم په حکم باندې عمل اوکړو او کله چه کور ته واپس راغلم نو کور دخلقو نه ډك وو، ما حضرت نبی کريم صلى الله عليه وسلم ته اوکتل چه حضرت نبی کريم صلى الله عليه وسلم په دې حلوه باندې خپل لاس مبارك کيخودو او څه ئې پرې دم کړل ، اوبيا ئې لس لس کسان رابلل او هغوی ته به ئې وئيل چه دالله تعالى نوم واخلئ او هر سړې دخپلې خپلې مخښې نه خوراك کوی.

حضرت انس رضي الله عنه فرمائي چه هغوی ټول خوراك اوکړواو منتشر شو ، څه خلق دکور نه اووتل اوڅه هم هغه ځائې کښې ناست وو خبرې ئې کولې ، چه ددې په وجه ماته ډيره پريشانی اوشوه (چه دې حضراتو له تنګ پکاردې)دې نه پس دقران پاك آيت ﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَدْخُلُوا بُيُوتَ النَّبِيِّ....الخ﴾نازل شو.

**يو تعارض اودهغې حل** : په دې روايت باب کښې دی چه حضرت نبی کريم صلى الله عليه وسلم خلقو باندې د کهجورو ، غوړو او پنيرو حيس اوخوړلو. په بل روايت کښې مشهور دی چه حضرت نبی کريم صلى الله عليه وسلم غوښه او روټئ په وليمه کښې خوړولې وه. (۱)

قاضي عياض اوفرمائيل چه راوی ته وهم شوې دې ،ده يوه قصه په بله قصه کښې ټومبلې ده.(۲)

ليکن حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه دواړوکښې جمع ممکن ده چه مخکښې حضرت نبی کريم صلى الله عليه وسلم غوښه روټئ سره تواضع کړې وی او هغه خلق چه کوم مخکښې راغلی وو هغوی دخبز او لحم خوړولو نه پس تلی وی ، دې نه پس چه کوم خلق د خوراك نه پس ناست ووا و خبرې ئې کولې دهغوی دپاره حضرت انس رضي الله عنه حيس راوړې وی ،حضرت نبی کريم صلى الله عليه وسلم هغه دنورو خلقورابللو دپاره اوليږلو. اوهغوی حيس خوړلې وی ، لهذا په دواړو روايتونوکښې تعارض نشته دې. (۳)

## ٦٥=بَاب اسْتِعَارَةِ الثِّيَابِ لِلْعَرُوسِ وَغَيْرِهَا

[۴۸٦۹] حَدَّثَنِي عُبَيْدُ بْنُ اسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا أَبُو اسَامَةَ عَنْ هِشَامٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا أَنَّهَا اسْتَعَارَتْ مِنْ أَسْمَاءَ قِلَادَةً فَهَلَكَتْ فَأَرْسَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

۱) فتح الباری: ۹/۲۸۳).
۲) فتح الباری: ۹/۲۸۳).
۳) فتح الباری: ۹/۲۸۳).

وسلم ناس من اصحابه في طلبها فادركتهم الصلاة فصلوا بغير وضوء فلما اتوا النبي صلى الله عليه وسلم شكوا ذلك اليه فنزلت اية التيمم فقال اسيد بن حضير جزاك الله خيرا فوالله ما نزل بك امر قط الا جعل الله لك منه مخرجا وجعل للمسلمين فيه بركة [ر: ۳۲۷].

امام بخاری ﷫ په دې ترجمة الباب کښې دا وئيل غواړي که دواده په موقع باندې د ناوې د پاره د عارية جامې استعمال کړې شي نو جائز دی ، دغير ناوې دپاره هم عاريتا جامې استعمالول جائز دی.

امام بخاری ﷫ چه کوم روايت په دې باب نقل کړې دې ، په دې کښې د جامود رعاية اخستلو څه ذکر نشته دې بلکه د هارد رعاية ذکر دې ، دامام بخاری ﷫ منشاء داده چه څنګه هار رعاية اخستلې شي نو دا شان جامې هم عاريتا اخستلې شي.

ابواب الهبه کښې امام بخاری ﷫ يو روايت ذکر کړې دې ، په دې کښې دجامو د رعايتا اخستلو ذکر صراحتا موجود دې ، حضرت عائشه ﵂ فرمائی چه دحضرت نبی کريم ﷺ په زمانه کښې ځما سره يو قميص وو مدينه منوره کښې چه کله هم به يو ښځې لره ناوې جوړولې شي نو ځما نه به ئې هغه قميص اخستلو دعاريت په طور ، په دې حديث باندې امام بخاری ﷫ په هغه ځائې کښې ترجمه قائمه کړې ده «الاستعارة للعروس عند البناء» دې ترجمه او حديث لره په دې ځائې کښې پيش نظر ساتل پکار دی. (۱)

## ٦٦=باب ما يقول الرجل إذا أتى أهله

[۴۸۷۰] حدثنا سعد بن حفص حدثنا شيبان عن منصور عن سالم بن ابي الجعد عن كريب عن ابن عباس قال قال النبي صلى الله عليه وسلم اما لو ان احدهم يقول حين ياتي اهله باسم الله اللهم جنبني الشيطان وجنب الشيطان ما رزقتنا ثم قدر بينهما في ذلك او قضي ولد لم يضره شيطان ابدا [ر: ۱۴۱].

کله چه سړې خپلې بی بی ته د صحبت په نيت سره راشی نو دا دعادې اووائې «بسم الله اللهم جنبني الشيطان وجنب الشيطان ما رزقتنا»

علماء فرمائی چه دا دعا کشف عورت نه مخکښې وئيل پکار دی.د حضرت عبدالله بن مسعود ﵁ يو روايت نه معلوميږی چه دانزال په وخت کښې وئيل پکار دی. دجمهورو مسلك دې چه د کشف عورت نه مخکښې وئيل پکار دی. او که مخکښې وئيل ترې هيرشی نوکله ورته ياده شی نو په زړه کښې وئيل پکاردی. (۲)

حضرت نبی کريم ﷺ فرمائی چه سړې که دا دعا اووائی نو بيا شيطان بچی لره نقصان او

۱ ) اوګورئ فتح الباري: ۲۸٤/۹، والابواب والتراجم : ۷۲/۲).

۲ ) وحديث ابن مسعود رواه بن ابی شيبه ولفظه وكان اذا غشى اهله فانزل قال : اللهم لا تجعل للشيطان فيما رزقتنى نصيبا (فتح الباري: ۲٤۲/۱ ، وايضا راجع عمده القاری: ۲٦۹/۲).

ضرر نشي رسولې. شیطان نه جنس شیطان او ضرر نه خاص قسم ضررر مراد دې. چه د «ام الصبیان» په نومې بیمارئی په شکل کښې بچو ته لګی.(۱) او ضرر نه عام بدنی ضرر هم مراد کیدیشی. (۲)
بعضې حضرات فرمائی چه دبچې دپیدائش په وخت کښې شیطان ده ته لاس لګوی ، ددې دعا برکت سره بچې ددې نه محفوظ شی.
لیکن دا تشریح ضعیفه ده ځکه چه حدیث «مامن مولود الا یمسه الشیطان غیر مریم وابنها» نه معلومیږی چه شیطان هر یو لره لاس اوړی سوا د مریم او دځوئې نه (۳)
بعضو فرمائیلی دی چه دشیطان دضرر رسولو مطلب دادې چه هغه په ده باندې مسلط به نه وی او دین اسلام نه به ده لره برګشته کوی نه. (۴)
او دامطلب هم کیدیشی که دا دعا اووائی نو اولاد به صالح پیداکیږی او هغه به په نیکو کارونو کښې دخپل ژوند صرف کوونکی وی ،او په دې کښې او انبیاء کرام کښې فرق به داوی چه انبیاء کرام دپاره عصمت وجوب په درجه کښې دی .او په دې خائې کښې عصمت جواز په درجه کښې وی. (۵)
حضرت مجاهد رحمه الله نه منقول دی چه کله سړې بسم الله نه بغیر وطی کوی نو په دې کښې شیطان هم شریکیږی لیکن دا دعا دې اووائی نوددې په برکت سره به دشیطان نه حفاظت کښې به وی ، اوهغه به شرکت نه کوی . حافظ ابن حجر رحمه الله داتشریح راجح ګنړلې ده. (۶)
لیکن حقیقت دادې چه په دې ټولو کښې هیڅ تضاد نشته دې اوداټول تشریحات مراد اخستې شی.

**قوله:** ثم قدر بینهما أو قضي ولد: راوی ته شك دې چه «وقدر بینهما» ئې وئیلی وو یائې «قضی ولد» وئیلی وو. معنی د دواړو یو ده.

## ۶۷=باب الولیمة حق

وَقَالَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ عَوْفٍ قَالَ لِي النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَوْلِمْ وَلَوْ بِشَاةٍ [ر: ۱۹۴۳].
[۴۸۷۱] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنِي اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنْ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ أَخْبَرَنِي أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّهُ كَانَ ابْنَ عَشْرِ سِنِينَ مَقْدَمَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَدِينَةَ فَكَانَ أُمَّهَاتِي يُوَاظِبْنَنِي عَلَى خِدْمَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

---

۱) النهایه الاثیر: (۶۸/۱).
۲) عمدة القاري: (۱۵۲/۲۰).
۳) عمدة القاري: (۱۵۲/۲۰).
٤) عمدة القاري: (۱۵۳/۲۰).
۵) فتح الباري: (۲۸۶/۹).
۶) فتح الباري: (۲۸۶/۹).

فَخَدَمْتُهُ عَشْرَ سِنِينَ وَتُوُفِّيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَنَا ابْنُ عِشْرِينَ سَنَةً فَكُنْتُ أَعْلَمَ النَّاسِ بِشَأْنِ الْحِجَابِ حِينَ أُنْزِلَ وَكَانَ أَوَّلَ مَا أُنْزِلَ فِي مُبْتَنَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِزَيْنَبَ بِنْتِ جَحْشٍ أَصْبَحَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِهَا عَرُوسًا فَدَعَا الْقَوْمَ فَأَصَابُوا مِنَ الطَّعَامِ ثُمَّ خَرَجُوا وَبَقِيَ رَهْطٌ مِنْهُمْ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَطَالُوا الْمُكْثَ فَقَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَخَرَجَ وَخَرَجْتُ مَعَهُ لِكَيْ يَخْرُجُوا فَمَشَى النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَشَيْتُ حَتَّى جَاءَ عَتَبَةَ حُجْرَةِ عَائِشَةَ ثُمَّ ظَنَّ أَنَّهُمْ خَرَجُوا فَرَجَعَ وَرَجَعْتُ مَعَهُ حَتَّى إِذَا دَخَلَ عَلَى زَيْنَبَ فَإِذَا هُمْ جُلُوسٌ لَمْ يَقُومُوا فَرَجَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَرَجَعْتُ مَعَهُ حَتَّى إِذَا بَلَغَ عَتَبَةَ حُجْرَةِ عَائِشَةَ وَظَنَّ أَنَّهُمْ خَرَجُوا فَرَجَعَ وَرَجَعْتُ مَعَهُ فَإِذَا هُمْ قَدْ خَرَجُوا فَضَرَبَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنِي وَبَيْنَهُ بِالسِّتْرِ وَأُنْزِلَ الْحِجَابُ [ر: ۳۵۱۳] (۱)

دحق معنی ده ثابت یعنی ولیمه ثابت ده. باطل نه ده، د واده په موقعه باندې چه کوم خوراك ورکولې شي هغې ته ولیمه وئیلې شي.

**د ولیمې د دعوت په حکم کښې اختلاف:** دابن حزم ظاهری ، داود ظاهری په نیز ولیمه واجب ده،امام شافعي او امام مالك نه هم یو یو قول هم ذادې ، دا حضرات فرمائی چه«اولم ولو بشاة» دامر صیغه ده چه دوجوب دپاره رازی. (۲)

لیکن دجمهور علماء په نیزولیمه مسنون ده ، او هم دا د شوافع او مالکیه مسلك دې.

څکه په حدیث کښې ددې تشریح ده «الولیمة حق وسنة» باقی «اولم» کښې امر دجمهور په نیز داستحباب اوندب دپاره ده. (۳)

ولیمه په کوم وخت کښې کول پکار دی. او په دې کښې هم مختلف اقوال دی. ① قبل الدخول ② بعد الدخول ③ عقدالنکاح په وخت کښې ④ دبناء اودخول په وخت کښې ⑤ دابتدائې عقد نه واخله تر بعدالدخول پورې په هر وخت کښې ، (۴)

**قوله:** ان کان ابن عشر سنین مقدم رسول الله ﷺ المدینة: حضرت رسول الله ﷺ چه کله مدینې منورې ته تشریف راوړونو په هغه وخت کښې دحضرت انس رضی الله عنه عمر مبارك لس کاله وو، بعضو روایاتو کښې دی چه په هغه وخت کښې دهغوی عمر مبارك نهه کاله وو.

صحیح خبره داده چه په هغه وخت کښې دهغوی عمر مبارك نهه کالونه څه زیات وو،چا کسر حذف کړې دې او نهه کاله ئې وئیلی دی اوچا کامل کړې دې او لس کاله ئې وئیلی دی.(۵)

---

۱) (امهاتی) أی ا می وخالاتی اخواتها . (جواظبتی) یدعنی استمر فی خدمته وفی نسخة . أی یوافقنی (مبتنی) وقت دخوله علیها وابتنائه بها).

۲) فتح الباری: ۲۸۷/۹ . وعمده القاری: ۱٤٤/۲ . باب الصفرة للمتزوج).

۳) عمده القاری: ۱٤٤/۲۰، بابٌ الصفره للمتزوج والابواب والتراجم: ۷۲/۲).

٤) فتح الباری: ۲۸۷/۹، ۲۸۸) اودا آخری قول راجح او بهتر دې.

۵) فتح الباری: ۲۸۸/۹).

## ۶۸ = باب الوليمة ولو بشاة

[۴۸۷۲] حَدَّثَنَا عَلِيٌّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ حَدَّثَنِي حُمَيْدٌ أَنَّهُ سَمِعَ أَنَسًا رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ سَأَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ عَوْفٍ وَتَزَوَّجَ امْرَأَةً مِنَ الْأَنْصَارِ كَمْ أَصْدَقْتَهَا قَالَ وَزْنَ نَوَاةٍ مِنْ ذَهَبٍ

وَعَنْ حُمَيْدٍ سَمِعْتُ أَنَسًا قَالَ لَمَّا قَدِمُوا الْمَدِينَةَ نَزَلَ الْمُهَاجِرُونَ عَلَى الْأَنْصَارِ فَنَزَلَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَوْفٍ عَلَى سَعْدِ بْنِ الرَّبِيعِ فَقَالَ أُقَاسِمُكَ مَالِي وَأَنْزِلُ لَكَ عَنْ إِحْدَى امْرَأَتَيَّ قَالَ بَارَكَ اللَّهُ لَكَ فِي أَهْلِكَ وَمَالِكَ فَخَرَجَ إِلَى السُّوقِ فَبَاعَ وَاشْتَرَى فَأَصَابَ شَيْئًا مِنْ أَقِطٍ وَسَمْنٍ فَتَزَوَّجَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَوْلِمْ وَلَوْ بِشَاةٍ [ر: ۱۹۴۳]

[۴۸۷۳] حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ ثَابِتٍ عَنْ أَنَسٍ قَالَ مَا أَوْلَمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى شَيْءٍ مِنْ نِسَائِهِ مَا أَوْلَمَ عَلَى زَيْنَبَ أَوْلَمَ بِشَاةٍ [ر: ۴۵۱۳].

[۴۸۷۴] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ عَنْ شُعَيْبٍ عَنْ أَنَسٍ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَعْتَقَ صَفِيَّةَ وَتَزَوَّجَهَا وَجَعَلَ عِتْقَهَا صَدَاقَهَا وَأَوْلَمَ عَلَيْهَا بِحَيْسٍ [ر: ۳۶۴].

[۴۸۷۵] حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ عَنْ بَيَانٍ قَالَ سَمِعْتُ أَنَسًا يَقُولُ بَنَى النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِامْرَأَةٍ فَأَرْسَلَنِي فَدَعَوْتُ رِجَالًا إِلَى الطَّعَامِ [ر: ۴۵۱۳].

امام بخاری رحمه الله فرمائی چه ولیمه کول پکار دی اګرکه يو چیلئ ولې نه وی ، دا معسر دپاره دی او ادنی درجه ده ، دکثرت هیڅ حدنشته دې.

مخکښې روایت کښې دی چه «اولم ولو بشاة» داکثر علماء کرام په نیزپه دې کښې «لو» تقلیل دپاره دې او دعبارت مقصود تقلیل اوکم درجه بیانول دی ، اوبعضې حضرات «لو» دتکثیر دپاره مراد اخستې شی چه زیات نه زیات يو چیلئ ذبح کړئی. حضرت ګنګوهی «لو» د تکثیر دپاره اخستې دې لیکن راجح او داکثر علماء کرام ړومبې قول دې. (۱)

**قوله:** حدثنا سلیمان بن حرب: روایت کښې دی چه حضرت نبی کریم ﷺ داسې ولیمه په خپلو بیبیانو کښې دچا هم نه وه کړې لکه څنګه چه دحضرت زینب رضی الله عنها ولیمه ئې اوکړه ، په دې کښې حضرت نبی کریم ﷺ چیلئ په ولیمه کښې ورکړه.

ددې نه صفا معلوم شو چه دچیلئ ولیمه لویه ولیمه به شمارلې کیږی. حضرت نبی کریم په وخت کښې چه کوم پنیر په هغه وخت کښې دستیاب وو ، هغه حضرت نبی کریم ﷺ په ولیمه کښې ورکړل. حضرت نبی کریم ﷺ به تکلف نه کولو.

دې نه پس روایت کښې دی چه دحضرت صفیه ولیمه کښې صرف کهجورو ، غوړو او پنیرو

---

۱) عمده القاری: ۲۰/۱۵٤).

مختصره وليمه حضرت نبى كريم ﷺ وركړه. په هغه وخت كښې هم دا څيزونه دستياب وو، معلوم شو چه د بيبيانو په وليمه كښې مساوات لازم نه دي.

## ۶۹=بَابُ مَنْ أَوْلَمَ عَلَى بَعْضِ نِسَائِهِ أَكْثَرَ مِنْ بَعْضٍ

[۴۸۷۶] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ ثَابِتٍ قَالَ ذُكِرَ تَزْوِيجُ زَيْنَبَ بِنْتِ جَحْشٍ عِنْدَ أَنَسٍ فَقَالَ مَا رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَوْلَمَ عَلَى أَحَدٍ مِنْ نِسَائِهِ مَا أَوْلَمَ عَلَيْهَا أَوْلَمَ بِشَاةٍ [ر: ۴۵۱۳].

ددې ترجمې مطلب دادې چه د ټولو ازواجو په وليمه كښې مساوات او برابرى ضرورى نه ده.

## ۷۰=بَابُ مَنْ أَوْلَمَ بِأَقَلَّ مِنْ شَاةٍ

[۴۸۷۷] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ مَنْصُورِ بْنِ صَفِيَّةَ عَنْ أُمِّهِ صَفِيَّةَ بِنْتِ شَيْبَةَ قَالَتْ أَوْلَمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى بَعْضِ نِسَائِهِ بِمُدَّيْنِ مِنْ شَعِيرٍ

حديث مرسل دې ځكه چه د صفيه بنت شيبه باره كښې دوه قوله دى ، يو قول دادې چه هغه تابعيه ده او دويم قول دادې چه هغه صحابيه ده. د صحابيه منلو په صورت كښې دا حديث به مراسيل

كښې شميرلې كيږى ځكه مذكوره واقعه كښې صفيه بنت شيبه پخپله موجود نه وه بلكه هغه په مكه كښې وه ،بيا په دې ځاې كښې په سند كښې صفيه نه پس د حضرت عائشه رضی الله عنها ذكر نشته دې . ليكن د مؤمل بن اسماعيل او يحيى بن اليمان عن سفيان په طريق كښې د حضرت عائشه رضی الله عنها ذكر دې، داشان د حديث سند د مزيد فى متصل الاسانيد د قبيل نه دې.
(۱) د مزيد فى متصل الاسانيد مطلب دادې چه بعضې راويان سند كښې د يو راوى اضافه كوى او بعضو طريق كښې د هغه اضافه نه وى.(۲)

**قوله:** اولم النبى ﷺ على بعض نسائه: «بعض نسائه» نه څوك مراد دى. حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه ما ته صراحتاً د نوم تعيين معلوم نه شو ليكن غالب دادى چه ددې نه ام المومنين حضرت ام سلمه رضی الله عنها مراد ده. (۳)

**قوله:** بمدين من شعير: حضرت سفيان ثورى رحمه الله نه عبدالرحمان بن مهدى نه علاوه نورو ټولو راويانو «بمدين من شعير» نقل كړى دى. البته عبدالرحمان بن مهدى «بصاعين من شعير» نقل كړى دى. عبدالرحمان اګر چه ددې راويانو په مقابله كښې احفظ دې ليكن

---

۱ ) فتح البارى: ۹/۲۹۷).
۲ ) قال الشيخ طاهر الجزائرى الدمشقى فى توجيه النظر الى وصول الاثر: ۵۹۳/۲..... المزيد فى متصل الاسانيد و هو كانت المخالفة فيه بزيادة فى الاسناد).
۳ ) فتح البارى: ۹/۲۹۷).

چونکه دهغوی تعداد زیات دي ، ددې وجې په دې ځائې کښې دهغه اعتبار کول بهتر دی.(۱) یو مد د ربع صاع برابروی.

## ۷۱= بَاب حَقِّ إِجَابَةِ الْوَلِيمَةِ وَالدَّعْوَةِ وَمَنْ أَوْلَمَ سَبْعَةَ أَيَّامٍ وَنَحْوَهُ وَلَمْ يُوَقِّتِ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمًا وَلَا يَوْمَيْنِ:

[۴۸۷۸] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ اخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا انَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اذَا دُعِيَ احَدُكُمْ الَى الْوَلِيمَةِ فَلْيَاتِهَا [ ر: ۴۸۸۴].(۲)

[۴۸۷۹] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ سُفْيَانَ قَالَ حَدَّثَنِي مَنْصُورٌ عَنْ ابِي وَائِلٍ عَنْ ابِي مُوسَى عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فُكُّوا الْعَانِيَ وَاجِيبُوا الدَّاعِيَ وَعُودُوا الْمَرِيضَ [ر: ۲۸۸۱].

دعوت وليمه قبلول حق دي ، ددې په حکم کښې دائمه اختلاف دي.

① یو قول د وجوب دې یعنی دعوت ولیمه قبولول واجب دی. دحنفیه هم داقول دې ، دامام مالک ﷫ نه یو قول ددې مطابق دې او شوافع او حنابله نه یو قول هم دا منقول دې. (۳)

② دویم قول دادې چه دولیمې دعوت قبلول سنت دی او هم دا دجمهور علماء کرام مسلک دې ،حنفیه ،مالکیه او شوافع اوحنابله په نیز هم دا قول راجح دې. (۴)

③ بعض شوافع او حنابله فرمائي چه فرض کفایه دی ، (۵)علامه ابن دقیق العید فرمائی چه دا په هغه وخت کښې دی چه کله عامو خلقو ته دعوت ورکړې شوې وی،لیکن کهٔدعوت خاص وی نو چه دچا تخصیص کړې شوې وی ، دهغه حاضریدل ضروری دی. (۶)

مخکښې د«الدعوة» لفظ دولیمې نه علاوه نورو دعوتونو متعلق خودلو دپاره‌دې چه ددې متعلق څه حکم دې.

---

۱ ) فتح الباری: ۲۹۹/۹).

۲ ) واخرجه البخاری ایضا فی باب اجابة الداعی فی العرس وغیرها رقم الحدیث : ۴۹۷۲ ، ومسلم فی کتاب النکاح،باب الامر باجابة الداعی الی دعوة، رقم الحدیث : ۱۴۲۹ ، وابو داود فی کتاب الاطعمة باب ماجاء فی اجابة الدعوة ، رقم ا لحدیث: ۳۷۳۶، والنسائی فی کتاب الولیمة ،باب اجابة الدعوة ، رقم الحدیث: ۶۶۰۸ ، وابن ماجه فی کتاب النکاح ، باب اجابة الداعی ، رقم الحدیث : ۱۹۱۴ ، واخرجه مالک فی الموطا فی کتاب النکاح ، باب الولیمة ، رقم الحدیث: ۴۹).

۳ ) فتح الباری: ۳۰۱/۹ ، المجموع شرح المهذب :۵۴۸/۱۵).

۴ ) فتح الباری: ۳۰۱/۹ ، المجموع شرح المهذب : ۵۴۸/۱۵ ، اوګورئ اعلاء السنن: ۱۰/۱۱ باب استحباب الولیمه).

۵ ) فتح الباری: ۳۰۱/۹).

۶ ) فتح الباری: ۳۰۱/۹).

**قوله: ومن اولم سبعة ايام ونحوه:** ددئ نه امام بخاري رحمه الله يو اختلافي مسئلې طرفته اشاره کړې ده او هغه داده چه وليمه تر څو ورځو پورې کولې شي.

جمهور علماء کرام فرمائي چه وليمه په ړومبۍ ورځ کول مسنون دی ، په دوئمه ورځ کول جائز او په دريمه ورځ کول مکروه او په ريا کښې داخل دی. (۱) دهغه دليل دزهير بن عثمان هغه روايت دې چه کوم امام ابوداود رحمه الله او امام نسائی رحمه الله نقل کړې دې چه حضرت نبی کريم صلی الله علیه وسلم فرمائي چه «الوليمة اول يوم حق، والثاني معروف، والثالث سمعة ورياء» ليکن امام بخاري رحمه الله وائي چه «لا يصلح اسناده ولا يصح له صحبة» نه سند صحيح دې او نه زهير بن عثمان صحابی دې.

ليکن حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه زهير بن عثمان چه کوم حديث نقل کړې دې دهغې په مضمون کښې هغه منفرد نه دې ، دهغه څو متابع هم موجود دی.چنانچه ابن ماجه دحضرت ابوهريره رضی الله عنه نه دا مضمون نقل کړې دې ، ابن عدي رحمه الله اوبيهقی رحمه الله دحضرت انس رضی الله عنه نه اوامام ترمذی رحمه الله دحضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه نه ددې مفهوم حديث نقل کړې دې. د ترمذی رحمه الله دحديث الفاظ دی «کان طعام اول يوم حق، وطعام اليوم الثاني سنة، وطعام اليوم الثالث سمعة» حضرت ابن عباس رضی الله عنه نه هم ددې مفهوم يو حديث منقول دې ، (۲)په دې روايتونوکښې اګر چه دهر روايت سند باندې څه نه څه کلام دې ليکن ددې ټولو په جمع کولو سره په دې کښې قوت پيداکيږی ، او معلوميږی چه دحديث اصل شته دې ، ددې وجې ددې اعتبار کول ېکار دی. (۳)

حضرات مالکيه فرمائي چه وليمه اووۀ ورځې کولې شي. (۴) امام بخاري رحمه الله هم په ترجمة الباب کښې دمالکيه تائيد فرمائيلې دې، او فرمائي چه «ومن اولم بسبعة ايام ونحوه ولم يوقت النبي صلی الله علیه وسلم يوما ولا يومين».

دمالکيه استدلال دحضرت ابن سيرين رحمه الله د روايت نه دې ، چه هغه ابن ابی شيبة نقل کړې دې چه دده د لور حفصه بنت سيرين په واده باندې اووۀ ورځې وليمه ورکړې شوه ، او امام عبدالرزاق په روايت کښې د اتو ورځو ذکر دې، امام بخاري رحمه الله «دسبعة ايام» نه پس «ونحوه» نه غالبًا اته ورځو والا روايت طرفته ا شاره کړې ده. (۵)

جمهور فرمائي چه مذکوره روايت دخلقو په کثرت باندې محمول دې چه خلق زيات وو نو

---

۱ ) اوګورئ المغنی لابن قدامه : ۳/۷ ، کتاب الوليمه واعلاء السنن : ۱۳/۱۱ ، باب جواز الوليمه الی ايام).

۲ ) اوګورئ تفصيل دپاره فتح الباری: ۳۰۲/۹، وارشادالساری: ۴۴۹/۱۱).

۳ ) فتح الباری: ۳۰۲/۹).

٤ ) اوګورئ فتح الباری: ۹/. مرقاه المفاتيح: ۲۵۶/۶ ، کتاب النکاح ، باب الوليمه ،والابواب والتراجم: ۷۳/۲).

۵ ) فتح الباری: ۳۰۲/۹ ، اوګورئ مصنف ابن ابی شيبه ۳۱۳/۲ ، من کان يقول يطعم فی العرس والختان ، وسنن کبری للبيهقی : ۲۶۱/۷).

ددې وجې هغوی اووه ورخوکښې تقسيم کړې شوی وو، هره ورځ مختلف راتلل او وليمه به ئې خوړه اوداشان په دې صورت کښې درې ورخونه زيات جواز دې. (۱)

[۴۸۸۰] حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ الرَّبِيعِ حَدَّثَنَا أَبُو الْأَحْوَصِ عَنِ الْأَشْعَثِ عَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ سُوَيْدٍ قَالَ الْبَرَاءُ بْنُ عَازِبٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا أَمَرَنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِسَبْعٍ وَنَهَانَا عَنْ سَبْعٍ أَمَرَنَا بِعِيَادَةِ الْمَرِيضِ وَاتِّبَاعِ الْجِنَازَةِ وَتَشْمِيتِ الْعَاطِسِ وَإِبْرَارِ الْقَسَمِ وَنَصْرِ الْمَظْلُومِ وَإِفْشَاءِ السَّلَامِ وَإِجَابَةِ الدَّاعِي وَنَهَانَا عَنْ خَوَاتِيمِ الذَّهَبِ وَعَنْ آنِيَةِ الْفِضَّةِ وَعَنِ الْمَيَاثِرِ وَالْقَسِّيَّةِ وَالْإِسْتَبْرَقِ وَالدِّيبَاجِ تَابَعَهُ أَبُو عَوَانَةَ وَالشَّيْبَانِيُّ عَنْ أَشْعَثَ فِي إِفْشَاءِ السَّلَامِ [ر: ۱۱۸۲].

حضرت براء بن عازب رضي الله عنه فرمائی چه حضرت رسول کریم صلی الله علیه وسلم مونږ ته د اووه څیزونو حکم را کړو اود اووه څیزونه ئې مونږ منع کړو، چه دکومو اووه څیزونو چه ئې حکم راکړو هغه دادی. ① دمریض عیادت ② دجنازې سره تلل ③ دانګیشی (انتروشی) والا جواب ورکول ④ ابرار المقسم دقسم خوړونکوتصدیق کول دقسم ورکولو والا قسم پوره کول. ⑤ دمظلوم نصرت کول ⑥ دسلام اشاعت ⑦ او د دعوت ورکونکی دعوت قبلول.

او چه دکومو اووه څیزونونه منع کړې یو هغه دادی: ① خواتیم الذهب: دسرو دپاره دسرو زرو دګوتمې استعمال ② دچاندئی لوښی ③ میاثر : میثره جمع ده ، ریښمی ګدئی چه سورئې د آس وغیره په ملاباندې ایږدی. ④ قسی کپړې چه په هغې کښې ریښم ګډ شوی وی ⑤ استبرق: دا یو ورکوکې قسم ریښم وی. ⑥ دیباج: دا هم دریښمویو قسم دې چه دې ته ابریشم ونیلې شی. داشپږ شو اووم په دې حدیث کښې په دې ځائې کښې ذکر نه دې ، مخکښې په کتاب اللباس کښې دا ذکر دې . ⑦ حریر یعنی عام ریښم (۲)

**قوله:** تابعه ابوعوانة الشيباني عن اشعث في افشاء السلام: دا حدیث په کتاب الجنائزکښې تیر شوې دې یعنی دابوالاحوص سلام بن سلیم متابعت ابوعوانه وضاح بن عبدالله یشکری کړې دې . امام بخاری رحمه الله په کتاب الاشربة کښې دا متابعت موصولاً نقل کړې دې. (۳)

او ابواسحاق شیبانی هم د ابوالاحوص متابعت کړې دې چه دا امام بخاری رحمه الله په کتاب الاستئذان کښې موصولاً نقل کړې دې. (۴) البته دهغوی په روایت کښې د «افشاء السلام» الفاظ دی. اود شعبه عن اشعث روایت کښې د «ردالسلام» الفاظ دی. کتاب الجنائز کښې ددې روایت تیر شوې دې. روایت باب کښې هم د «افشاء السلام» الفاظ دی.

**فائده:** ولیمې نه علاوه د دعوت په سلسله کښې دجمهور علماء مسلك دې چه دا قبلول

---

۱) فتح الباری: ۹/۳۰۳).
۲) ارشاد الساری: ۱۱/۴۵۱)..
۳) عمده القاری : ۲۰/۱۵۹).
٤) عمدة القاری : ۲/۱۵۹ ، وفتح الباری: ۹/۳۰۳).

مستحب دي .واجب نه دي ، البته علامه ابن حزم دا واجب گنړي.سرخسي شافعي رحمه الله عدم وجوب باندې اجماع نقل کړې دې. (١)

[۴۸۸۱] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ أَبِي حَازِمٍ عَنْ أَبِي حَازِمٍ(٢) عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ دَعَا أَبُو أُسَيْدٍ السَّاعِدِيُّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي عُرْسِهِ وَكَانَتْ امْرَأَتُهُ يَوْمَئِذٍ خَادِمَهُمْ وَهِيَ الْعَرُوسُ قَالَ سَهْلٌ تَدْرُونَ مَا سَقَتْ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْقَعَتْ لَهُ تَمَرَاتٍ مِنَ اللَّيْلِ فَلَمَّا أَكَلَ سَقَتْهُ إِيَّاهُ

[۴۸۸۷ ، ۴۸۸۸ ، ۵۲۶۹ ، ۵۲۷۵ ، ۶۳۰۷]. (۳)

حضرت سهل بن سعد فرمائي چه ابواسيد ساعدي رضي الله عنه حضرت نبي كريم صلى الله عليه وسلم لره په خپل واده كښې راوبللو. دده ښځې دميلمنو خدمت كولو حالانكه هغه نوې نوې ناوې وه حضرت سهل رضي الله عنه اوفرمائيل چه تاته معلوم دي چه هغې حضرت نبي كريم صلى الله عليه وسلم له دڅكلو دپاره څه وركړي وو ؟هغې دشپې په اوبو كښې كهجورې خوشتې كړې وې ، نو كله چه حضرت نبي كريم صلى الله عليه وسلم روټۍ اوخوړه نو هغې هغه په حضرت نبي كريم صلى الله عليه وسلم باندې اوڅكولې. «أنقعت» د «انقاع» نه دې ، په اوبه كښې خوشتول.

## ۷۲=بَابُ مَنْ تَرَكَ الدَّعْوَةَ فَقَدْ عَصَى اللَّهَ وَرَسُولَهُ

[۴۸۸۲] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ الْأَعْرَجِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّهُ كَانَ يَقُولُ شَرُّ الطَّعَامِ طَعَامُ الْوَلِيمَةِ يُدْعَى لَهَا الْأَغْنِيَاءُ وَيُتْرَكُ الْفُقَرَاءُ وَمَنْ تَرَكَ الدَّعْوَةَ فَقَدْ عَصَى اللَّهَ وَرَسُولَهُ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

امام بخاري رحمه الله دا وئيل غواړي چه يو سړي ته دعوت وركړې شو او هغه دا پرېښودو نو هغه دالله درسول صلى الله عليه وسلم نافرمان دې.

---

١ ) فتح الباري: ٩/ ٣٠٧، باب اجابه الداعي في العرس وغيره).

٢ ) واجرجه البخاري في عدة مواضع : باب قيام المراة على الرجال في العرس وخدمتهم بالنفس رقم الحديث: ٤٩٧٥ ، ٤٩٧٦ ، وفي كتاب الاشربة باب الانتباذ في الاوعية والتور ، رقم الحديث: ٥٥٩١ ، وكتاب الاشربة باب تقيع التمر مالم يسكر رقم الحديث: ٥٥٩٧ ، وفي كتاب الايمان والنذور ،باب اذا حلف ان لا يشرب نبيذا فشرب طلاء او سكرا... رقم الحديث: ٦٦٨٥ ، اواخرجه ابن ماجه كتاب النكاح عن محمد بن الصباح باب الوليمة رقم الحديث: ١٩١٢)

٣ ) اخرجه مسلم في الاشربة :باب اباحة النبيذ الذي لم يشتد ولم يصر مسكرا رقم الحديث: ٢٠٠٦ ، (امراته ) واسمها سلامة بنت وهب رضي الله عنها ، (خادمهم ) تقوم بخدمتهم وتقدم لهم الضيافة وكان ذالک قبل ان يفرض الحجاب على انه ليس في مجموع طرق الحديث ما يدل انها جلست معهم ، أو أظهرت لهم الزينة اومواضها وعليه ، فلا اشكال ولا ممسكا لذوي النفوس الضعيفة والقلوب المريضة في مثل هذه الحوادث ، اذلذي لا يمتنع دخول المراة مجالس الرجال وخدمتهم ، ذا كانت هناک حاجة وكانت محتجبة بالحجاب افترضه الله عز وجل).

ددې نه معلوم شو چه دعلامه بن حزم رحمه الله په شان دامام بخاری رحمه الله په نیز دعوت قبلول واجب دی. لیکن ددوی په نیزهم وجوب په هغه وخت کښې دې چه کله څه عذر وی.

## ۷۳=بَاب مَنْ أَجَابَ إِلَى كُرَاعٍ

[۴۸۸۳] حَدَّثَنَا عَبْدَانُ عَنْ أَبِي حَمْزَةَ عَنِ الأَعْمَشِ عَنْ أَبِي حَازِمٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَوْ دُعِيتُ إِلَى كُرَاعٍ لَأَجَبْتُ وَلَوْ أُهْدِيَ إِلَيَّ كُرَاعٌ لَقَبِلْتُ [ر: ۲۴۲۹].

«کراع» د پنډنی هغه حصې ته وائی چه د ګیټې نه پاس وی ، لکه لاس کښې چه مړوند وی.اردو کښې دې ته سری پائې ونیلې شی. (۱)

په حدیث کښې دی که څوك ماته څوك کراع ( دسری پائې په شان حقیر څیز دا هغه خائې عرف وو حالانکه په مونږ خلقو کښې ددې عکس دې)دعوت هم ر اکړی نو څه به دا قبلوم.

امام غزالی رحمه الله فرمائی چه کراع نه په دې خائې کښې مراد دچیلۍ پښې مراد نه دی بلکه دمدینې منورې او مکې معظې په مینځ کښې واقع «کراع الغمیم» مراد دې، اومطلب ئې دادې که څوك ماته د«کراع الغمیم» غوندې لرې خائې ته هم دعوت راکړی نو څه دبُعدمکان باوجود هغه خائې ته خم. امام بخاری رحمه الله د «کراع» نه پس د «کراع الغمیم» الفاظ سره حدیث ذکر کړو لیکن ددې زیاتوالی هیڅ اصل نشته دې ، او جمهور په دې کښې «کراع»نه د چیلۍ وغیره پښې مراد اخلی. اومنشاء داده که دعوت د څه معمولی څیزهم وی نوهغه قبلول پکار دی. (۲)

## ۷۴=بَاب إِجَابَةِ الدَّاعِي فِي الْعُرْسِ وَغَيْرِهِ

[۴۸۸۴] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا الْحَجَّاجُ بْنُ مُحَمَّدٍ قَالَ قَالَ ابْنُ جُرَيْجٍ أَخْبَرَنِي مُوسَى بْنُ عُقْبَةَ عَنْ نَافِعٍ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا يَقُولُ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (أَجِيبُوا هَذِهِ الدَّعْوَةَ إِذَا دُعِيتُمْ لَهَا) قَالَ: وَكَانَ عَبْدُ اللَّهِ يَأْتِي الدَّعْوَةَ فِي الْعُرْسِ وَغَيْرِ الْعُرْسِ وَهُوَ صَائِمٌ [ر: ۴۸۷۸].

«فی العرس»نه مراد ولیمه ده. اود«وغیره» نه مراد عام دعوت دې .روایت کښې دی چه حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه روژې په حالت کښې به تلو ، په دې کښې دا ضروری نه دی چه هغه به خپله روژه هم افطار کوله. فقهاء کرام په دې سلسله کښې تفصیل لیکلې دې. که روژه نفل ده او افطارنه کولو سره داعی ته تکلیف اوخفګان رسی نوداسې صورت کښې هغه ته نفلی روژه افطار کول پکار دی. او دا دعوت به دده په حق کښې به شمیرلې شی. لیکن

---

۱ ) عمده القاری: ۱۶۱/۲۰).

۲ ) اوګورئ فتح الباری: ۳۰۶/۹).

كه روژه نفل نه ده يا داعى ته په افطار نه كولو سره څه تكليف يا خفګان نه وى نوداسې صورت كښې بيا افطار كول نه دى پكار بلكه دداعى په حق كښې دعا كولو نه پس واپس تلل پكار دى. (۱)

## ۷۵=بَاب ذَهَابِ النِّسَاءِ وَالصِّبْيَانِ إِلَى الْعُرْسِ

[۴۸۸۵] حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ الْمُبَارَكِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ صُهَيْبٍ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ أَبْصَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نِسَاءً وَصِبْيَانًا مُقْبِلِينَ مِنْ عُرْسٍ فَقَامَ مُمْتَنًّا فَقَالَ اللَّهُمَّ أَنْتُمْ مِنْ أَحَبِّ النَّاسِ إِلَيَّ [ر: ۳۵۷۴].

د امام بخارى رحمه الله مقصد دادې چه په واده كښې دشركت دپاره ښځو اوبچو لره تلل دحديث نه ثابت دى. اوسنت كښې ددې اصل موجود دې. د واده سلسله كښې اسراف ، فضول خرچى او دنمودونمائش ګنجائش نشته دې ، يقيناً داپه شريعت كښې نشته دې.ليكن په دې كښې دومره قدرې تقشف او سادګى اختيارول چه هډو څوك شريك نه كړې شى نودا هم غلو او نامناسب دى.

روايت كښې دسند ر اويان ټول بصرى دى. (۲) حضرت انس رضى الله عنه فرمائى چه حضرت نبى اكرم صلى الله عليه وسلم ښځې او ما شومان د واده په راتلو اوليدل نو دوى طرفته نيغ اودريدل او وې فرمائيل چه تاسو خلق ماته دهرچا نه زيات محبوب يئ.

«ممتنا» د «منة» نه ماخوذ دى چه ددې معنى قوت او طاقت ده. (۳) يعنى حضرت نبى كريم صلى الله عليه وسلم ددوى طرفته قوت او طاقت اونشاط سره اودريدل ، او وې فرمائيل «اللهم انتم من احب الناس الى» په دې كښې د «اللهم» لفظ په طور د تبرك ذكر كړې شوې دې. يا دخپلې رسچانى دپاره په طور دګواهئ ددې ذكر كړې شوې دې. (۴)

## ۷۶=بَاب هَلْ يَرْجِعُ إِذَا رَأَى مُنْكَرًا فِي الدَّعْوَةِ

وَرَأَى أَبُو مَسْعُودٍ صُورَةً فِي الْبَيْتِ فَرَجَعَ وَدَعَا ابْنُ عُمَرَ أَبَا أَيُّوبَ فَرَأَى فِي الْبَيْتِ سِتْرًا عَلَى الْجِدَارِ فَقَالَ ابْنُ عُمَرَ غَلَبَنَا عَلَيْهِ النِّسَاءُ فَقَالَ مَنْ كُنْتُ أَخْشَى عَلَيْهِ فَلَمْ أَكُنْ أَخْشَى عَلَيْكَ وَاللَّهِ لَا أَطْعَمُ لَكُمْ طَعَامًا فَرَجَعَ

د امام بخارى رحمه الله مقصد دادې چه په دعوت كښې كه څوك منكر څيز اووينى نو واپس كيدل پكار دى اوپه دې كښې شركت نه دې پكار ،په دې باندې هغوى مختلف آثار پيش كوى.

**قوله:** <u>ورای ابن مسعود صورة في البيت فرجع:</u> دمستملى، اصيلى، قابسى اوعبدوس

---

۱) فتح البارى: ۳۰۸/۹ ، وعمده القارى : ۱۶۲/۲۰).
۲) فتح البارى: ۳۰۹/۹) .
۳) فتح البارى: ۳۰۹/۹).
٤) ارشاد السارى: ۴۵۵/۱۱).

پەروايت كښې " ابن مسعود "دې او باقى رواياتو كښې ابو مسعود دې ، حافظ ابن حجر دا دويم روايت صحيح دې. او ړومبې ئې تصحيف اوګرزولو او وې فرمائيل چەدا اثر دحضرت عقبه بن عمرو دې. چه دا بيهقى موصولاً روايت كړې دې. (۱)
اودا هم ممكن دى چەحضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه سره هم داشان واقعه پيښەشوې وى چه هغوى پە كور كښې تصوير كتلې وى او واپس تلى وى. (۲)

**قوله: ودعا ابن عمرا باايوب ، فراى فى البيت سترا:** حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه حضرت ابوايوب انصارى رضي الله عنه ته دعوت وركړو ، هركله چە هغە ددوى كور تە راغلونو پە ديوال باندې ئې يو پردە اوليده.نوحضرت ابن عمر دمعذرت پەطور اوونيل چە پە دې سلسله كښې مونږ باندې ښځې غالبې شوې او دا پردە ئې زړونده كړه. حضرت ابوايوب انصارى رضي الله عنه اوفرمائيل چەدكومو خلقو بارە كښې ماتە انديښنه كيديشوه ( چە هغوى بە دداسې منكر ارتكاب كوى)هغه نور خلق دى ، ستاسوبارە كښې خوماتە انديښنه نە وه ، (چە تاسو بە هم داشان معامله كښې ښځو نه مغلوبه شئ)والله ! څەبه ستاسو خوراك اونه كړم اوواپس لاړل. امام احمد رحمه الله دا اثر موصولاً نقل كړې دې.
علامه ابن بطال رحمه الله فرمائى چە پە يودعوت كښې څه منكر كيږى نوشركت كول نه دى پكار څكه شركت كولو سره بە ددە د طرفنه دهغې منكراتو د رضا مندئى اظهار وى. تفصيل ددې دادې كه پە هغەځائې كښې څەدامر منكر حرام‌ارتكاب كيږى او ددې پەبندولو باندې دې قادر وى نو دا ختمول پكار دى. اوداسې صورت كښې هغه ځائې ته تلو كښې هيڅ حرج نشته دې او شركت كولې شى.
ليكن‌كه ددې دختمولو باندې قادر نه وى نوپە دې صورت كښې واپس كيدل اوشركت نه كول پكار دى.
او كه پە هغەځائې كښې‌څه دحرام ارتكاب نه وى بلكەمكروه تنزيهى څه عمل وى نوداسې صورت كښې شركت كولې شى ، ليكن دا هم دتقوى او ورع خلاف دى. دتقوى تقاضاهم دا ده چەپە دې صورت كښې شركت اونه كړې شى. (۳)
صاحب هدايه دا مسئله پە تفصيل سره بيانوى او ليكى "ددې حاصل دادې چەدتلو نه مخكښې معلوم كړې شى چە پە هغه ځائې كښې‌څه منكرات اوحرامو ارتكاب بە وى نو تلل جائز نه دى. كه دتلو نه پس معلوم شى چەنوبيا ددې دوه صورتونه دى ، كه هغه مقتدى او پيشوا دى نو دە لره شركت كول نه دى پكار، مګر داچه دده په تلو باندې منكرات ختم شى، نوبيا شريكيدلې شى ليكن‌كه هغه عام سړې وى نودده دپاره دشركت ګنجائش شته دې.
امام‌ابوحنيفه رحمه الله فرمائى چه يوځل ماته ابتلاء پيښه شوه نوما صبرنه كار واخستلو صاحب هدايه فرمائى چه دا دامام صاحب منصب او اقتداء ته رسيدو نه مخكښې واقعه ده. (۴)

---

۱ ) فتح البارى: ۳۱۰/۹).
۲ ) فتح البارى: ۳۱۰/۹).
۳ ) مذكوره تفصيل دپاره اوګورئ فتح البارى: ۳۱۱/۹).
٤ ) اوګورئ الهدايه كتاب الكراهيه : ٤٥٥/٤، وفيض البارى: ۳۰۱/٤).

پخپله دحضرت ابن عمر رضی الله عنهما واقعه هم امام احمد رحمه الله په كتاب الزهد كښې نقل كړې ده چه حضرت ابن عمر رضی الله عنهما يوځل يوصحابى رضی الله عنه كور ته داخل شو نوپه هغه ځائې كښې هغوى څه پردې اوليدلې نو دوى اوفرمائيل چه ستا په كور كښې دا كعبه د كله نه راغلې ده. (۱)
امام مسلم رحمه الله دحضرت عائشه رضی الله عنها روايت نقل كوى چه حضرت نبى اكرم صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل چه((ان الله لم يامرنا ان نكسوا الحجارة والطين)) (۲)
اوس سوال دا پيدا كيږى چه په كورونوكښې د پردو لګولو څه حكم دې.دشوافع دوه قولونه دى اودامام مالك رحمه الله هم دوه روايتونه دى. ① يو دا چه پردې زړوندول حرام دى.
او ② دويم دا چه دا مكروه تنزيهى دى ، دده راجح قول هم دا دې. (۳) حضرات حنفيه فرمائى كه ضرور وى نو هيڅ باك نشته دې،اوبغيرضرورت نه دا مكروه دى.(۴)

[۴۸۸۶] حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ عَنْ عَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهَا اَخْبَرَتْهُ اَنَّهَا اشْتَرَتْ نُمْرُقَةً فِيهَا تَصَاوِيرُ فَلَمَّا رَاٰهَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَامَ عَلَى الْبَابِ فَلَمْ يَدْخُلْ فَعَرَفْتُ فِي وَجْهِهِ الْكَرَاهِيَةَ فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ اَتُوبُ اِلَى اللّٰهِ وَاِلَى رَسُولِهِ مَاذَا اَذْنَبْتُ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا بَالُ هٰذِهِ النُّمْرُقَةِ قَالَتْ فَقُلْتُ اشْتَرَيْتُهَا لَكَ لِتَقْعُدَ عَلَيْهَا وَتَوَسَّدَهَا فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ اَصْحَابَ هٰذِهِ الصُّوَرِ يُعَذَّبُونَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَيُقَالُ لَهُمْ اَحْيُوا مَا خَلَقْتُمْ وَقَالَ اِنَّ الْبَيْتَ الَّذِي فِيهِ الصُّوَرُ لَا تَدْخُلُهُ الْمَلَائِكَةُ [۱۹۹۹]

په دې روايت باندې تفصيلى كلام به انشاء الله مخكښې كتاب اللباس كښې راشى.
((نمرقة))(دنون او د راء په ضمه او دميم په سكون سره ) وړه تكيه ،وسادة صغيرة.

## ۷۷=بَابُ قِيَامِ الْمَرْاَةِ عَلَى الرِّجَالِ فِي الْعُرْسِ وَخِدْمَتِهِمْ بِالنَّفْسِ

[۴۸۸۷] حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ اَبِي مَرْيَمَ حَدَّثَنَا اَبُو غَسَّانَ قَالَ حَدَّثَنِي اَبُو حَازِمٍ عَنْ سَهْلٍ قَالَ لَمَّا عَرَّسَ اَبُو اُسَيْدٍ السَّاعِدِيُّ دَعَا النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاَصْحَابَهُ فَمَا صَنَعَ لَهُمْ طَعَامًا وَلَا قَرَّبَهُ اِلَيْهِمْ اِلَّا امْرَاَتُهُ اُمُّ اُسَيْدٍ بَلَّتْ تَمَرَاتٍ فِي تَوْرٍ مِنْ حِجَارَةٍ مِنَ اللَّيْلِ فَلَمَّا فَرَغَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الطَّعَامِ اَمَاثَتْهُ لَهُ فَسَقَتْهُ تُتْحِفُهُ بِذٰلِكَ [ر:۴۸۸۱].

دامام بخارى رحمه الله مقصد دادې كه د واده په موقعه باندې ناوې د ميلمنودخدمت دپاره اودريږى نو په دې كښې هيڅ داعتراض ضرورت نشته دې ، په سنت كښې ددې اصل موجود دې.

---

۱) فتح البارى: ۳۱۰/۹).
۲) فتح البارى: ۳۱۱/۹ وصحيح مسلم :۴۸۲/۱).
۳) دشوافع مسلک دپاره اوګورئ فتح البارى : ۳۱۱/۹).
٤) حنفيه مذهب دپاره اوګورئ: ردالمختار على در المختار كتاب الحظر والاباحة فصل فى اللبس : ۲۵۰/۵).

**قوله:** حدثنا سعيد: په دې کښې دابواسيد ساعدى واقعه بيان شوې ده چه تيره شوه ، دده نوم مالك بن ربيعه دې . او دده د ښځې د ام اسيدنوم سلامه بنت وهيب دې. (۱)

**قوله:** بلت التمرات في تورمن حجارة من الليل: يعنى ام سيد دشپې کهجورې دکانړې په يو پياله کښې خوشتې کړې وې . «تور» لوښې ، پياله.

**قوله:** اماثته فسقته تتحفه بذالك: يعنى ام اسيد ددې پيالۍ دکهجورو نه دحضرت نبى کريم ﷺ دپاره شربت جوړکړواو بيا په طور دتحفې پيش کړو په هغه پياله کښې .

«اماثت»باب افعال نه دواحد مونث صيغه ده. «اماث...اماثة» ديو څيز اوبو کښې خوشتول ، حل کول ، «أى اماثت تودا من الحجارة للنبى ﷺ» يعنى ام اسيد د کانړى داپياله دحضرت نبى اکرم ﷺ دپاره حل کړه. مطلب دادې چه په دې پياله کښې ئې کهجورې يوځائې کړې اوددې نه ئې شربت کړو.

«تتحفه تتحف»دا باب افعال اتحاف نه دواحد مونث صيغه ده. او ضمير منصوب حضرت نبى کريم ﷺ طرف ته راجع دې. «أتحف، اتحافا»تحفه ورکول ، تحفه پيش کول.

دنسفى رحمه الله په روايت کښې داشان دى او دمستملى او سرخسى په روايت کښې«تخفة بذالك»الفاظ دى «تخفة أى هدية» (۲)

## ۷۸=باب النقيع والشراب الذى لا يسكر فى العرس

[۴۸۸۸] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ الْقَارِيُّ عَنْ أَبِي حَازِمٍ قَالَ سَمِعْتُ سَهْلَ بْنَ سَعْدٍ أَنَّ أَبَا أُسَيْدٍ السَّاعِدِيَّ دَعَا النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِعُرْسِهِ فَكَانَتْ امْرَأَتُهُ خَادِمَهُمْ يَوْمَئِذٍ وَهِيَ الْعَرُوسُ فَقَالَتْ أَوْ قَالَ أَتَدْرُونَ مَا أَنْقَعَتْ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْقَعَتْ لَهُ تَمَرَاتٍ مِنْ اللَّيْلِ فِي تَوْرٍ[ر:۴۸۸۷].

دواده په موقعه باندې دشربت وغيره رواج دې ، امام بخارى رحمه الله فرمائى چه په دې کښې هيڅ حرج نشته دې ، که دکهجور شربت وى يا څه دبل څه شربتوى ،ليکن مسکر نه دې پکار ، نقيع هغه شربت ته ونيلې شى چه د اوچو انګورو يا اوچوکهجورو اوبووغيره کښې خوشتې کړې شى او جوړ کړې شى. (۳)

---

۱ ) ارشاد السارى: ۴۵۷/۱۱).
۲ ) فتح البارى: ۳۱۳/۹).
۳ ) (عمده القارى: ۱۶۵/۲۰).

## ٧٩=باب المداراة مع النساء وقول النبي صلى الله عليه وسلم إنما المرأة كالضلع

[٤٨٨٩] حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنْ أَبِي الزِّنَادِ عَنْ الْأَعْرَجِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْمَرْأَةُ كَالضِّلَعِ إِنْ أَقَمْتَهَا كَسَرْتَهَا وَإِنْ اسْتَمْتَعْتَ بِهَا اسْتَمْتَعْتَ بِهَا وَفِيهَا عِوَجٌ [ر: ٣١٥٣].

مطلب دادې چه ښځو سره د لطف او مهربانۍ معامله کول پکار دی. حضرت نبی کریم ﷺ فرمائی چه ښځه د پښتۍ په شان (کږه) ده ، تاسو دوی سره په نرمئی انتفاع حاصلولې شئ ، لیکن که تاسو دا نیغول غواړئ نوتاسو به دا ماته کړئی. اوددې نه فائده هم حاصلولې نشئ . ددې وجې د ښځې لږ ډير کوږ والئ برداشت کول پکار دی.

لیکن دا حکم امور معاشرت او امور دنیاویه په سلسله کښې دې ، دامور دین په سلسله کښې داسې حکم نه دې چه هغه د دین احکام پامال کړی او په دې باندې دې هېڅ قدغن نه وی ، د دینی امورو په سلسله کښې دې ددې نگرانی اوکړې شی او دې ته زورنه ورکول پکار دی لیکن په دې کښې هم عموما نرمی او شفقت فائده مند دې.

## ٨٠=باب الوصاة بالنساء

[٤٨٩٠] حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ نَصْرٍ حَدَّثَنَا حُسَيْنٌ الْجُعْفِيُّ عَنْ زَائِدَةَ عَنْ مَيْسَرَةَ عَنْ أَبِي حَازِمٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ فَلَا يُؤْذِي جَارَهُ وَاسْتَوْصُوا بِالنِّسَاءِ خَيْرًا فَإِنَّهُنَّ خُلِقْنَ مِنْ ضِلَعٍ وَإِنَّ أَعْوَجَ شَيْءٍ فِي الضِّلَعِ أَعْلَاهُ فَإِنْ ذَهَبْتَ تُقِيمُهُ كَسَرْتَهُ وَإِنْ تَرَكْتَهُ لَمْ يَزَلْ أَعْوَجَ فَاسْتَوْصُوا بِالنِّسَاءِ خَيْرًا [ر: ٣١٥٣].

مطلب دادې چه الله ﷻ او دده رسول ﷺ باندې ایمان راوړلو والا دې خپل گوانډی ته تکلیف نه ورکوی. او ښځه چونکه د ټول عمر رفیق او گوانډی وی ددې وجې ده ته تکلیف نه ورکول د ایمان تقاضو کښې داخل دی.

مخکښې فرمائی چه ((استوصوا بالنساء خیرا)) د ښځو په سلسله کښې حسن سلوك او د ښیگړې وصیت تاسو قبول کړئی. دا د پښتۍ نه پیدا شوې ده.

داودی رحمه الله فرمائی چه حضرت حوا علیها السلام د حضرت آدم علیه السلام د پښتۍ نه پیدا کړې شوې وه. چونکه ښځې د حضرت حوا علیها السلام په صنف کښې داخلې دی. ددې وجې ددوی متعلق فرمائیلې شوی دی چه هغه د پښتۍ نه پیدا شوې ده. (١)

**قوله:** ان اعوج شئ في الضلع اعلاه: یعنی د ټولو نه زیاته کږه پښتۍ پورتنۍ پښتۍ ده. که تاسو دا نیغول غواړئی نو تاسو به دا ماته کړئی ، او که همداسې ئې پرېږدئی نو به همداشان کږه وی.

---

١) عمده القاری: ١٦٥/٢).

که يو ښځه زبان درازی اوکړی یاستا دهدایت نه خلاف څی نو تاسو دتحمل نه کار اخلئ، داشان غالب امکان دې چه تاسو به ددې په اصلاح کښې کامیاب شئ. لیکن که تاسو غوارئ چه هغه په ړومبئ ورځ بالکل نیغه شی نوهغه دابه ماته شی او ددې نه به انتفاع حاصله نشی.

[٤٨٩١] حَدَّثَنَا اَبُو نُعَيمٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ دِينَارٍ عَنْ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ كُنَّا نَتَّقِي الْكَلَامَ وَالِانْبِسَاطَ اِلَى نِسَائِنَا عَلَى عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَيْبَةَ اَنْ يَنْزِلَ فِينَا شَيْءٌ فَلَمَّا تُوُفِّيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَكَلَّمْنَا وَانْبَسَطْنَا(١)

حضرت ابن عمر رضی الله عنه فرمائی چه دحضرت نبی کريم ﷺ په زمانه کښې مونږ به بې تکلفئ او محبت کولو نه ویریدو چه هسې نه زمونږ په باره کښې څه آیت نازل نه شی. لیکن کله چه حضرت نبی کريم ﷺ وفات شو نو بیا مونږ ښځوسره بې تکلفئ سره خبرو کښې شروع شو (ځکه چه شرعی لحاظ سره ددې هيڅ ممانعت نشته).

**د روايت باب ترجمة الباب سره تعلق** : په دې روايت کښې بظاهر ترجمة الباب سره تعلق په نظر نه رازی. لیکن که لږغور اوکړو نو ترجمة الباب سره دروايت لږشان تعلق شته دې. ځکه چه حضرت ابن عمر رضی الله عنه فرمائی چه مونږ ښځو سره د بې تکلفئ او انبساط نه ویریدو، ددې دا مفهوم په ځیله باندې رازوی چه مونږ ښځو دظلم زیاتی نه ویریدو. چونکه په بل صورت کښې په طريق اولی دقران پاك د آیت دنازلیدو امکان وو. (٢)

اصل کښې دا کیږی چه ښځې سره کله انسان زیات بې تکلفه شی نو هغه جری کیږی او په سرخیږی. او اکثرووختونو کښې ګستاخئ پورې نوبت راشی چه دا دخاوند دپاره ناقابل برداشت وی. اوداشان دوهلو نوبت راشی. حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه فرمائی چه مونږ ددې ویرې نه چه دانبساط په نتیجه کښې دوهلو نوبت راشی اوبیا دقران پاك هيڅ يو آيت څمونږ په باره کښې نازل شی، مونږ د حضرت نبی کريم په زمانه کښې دښځو سره محتاط رویه اختیاروله. او چونکه حضرت نبی کريم ﷺ نه پس دنزول وحی سلسله پاتې نشوه، ددې وجې مونږ ښځو سره بې تکلفئ او انبساط اختیار کړو، اودویرې دوجې مونږ به ډیر محتاط اوسیدو دا احتیاط ختم کړو.

او علامه عنيی رحمه الله ترجمة الباب سره دحديث مناسب متعلق ليکی چه : «يمكن ان توخذ المطابقة من قوله وانبسطنا لا الانبساط اليهن من جملة الوصايا بهن».

---

١) واخرجه ابن ماجه فی کتاب الجنائز . باب ذکر و فاته ودفنه ﷺ رقم الحديث: ١٦٣٢).

٢) اوګورئ الابواب والتراجم: ٧٣/٢ ، حضرت ګنګوهی رحمه الله فرمائی چه : قوله : کنا نتقی الکلام والانبساط وفلک لاستلزامه شیئا من الضرب والتادیب ، فان الرجل اذا نبسط الی اهله ادی ذالک دل وقلة مبالاة بامر الزوج فیقع العصیان ویوذی ذالک الی ضرب وتادیب .قدکانوا عن ذالک وبذالک یطابق الحديث بالترجمة (وانظر لامع الداری: ٤١٤/٩).

## ۸۱=باب قوا أنفسكم وأهليكم نارا (التحريم:٦)

[۴۸۹۲] حدثنا ابو النعمان حدثنا حماد بن زيد عن ايوب عن نافع عن عبد الله قال النبي صلى الله عليه وسلم كلكم راع وكلكم مسئول فالامام راع وهو مسئول والرجل راع على اهله وهو مسئول والمراة راعية على بيت زوجها وهي مسئولة والعبد راع على مال سيده وهو مسئول الا فكلكم راع وكلكم مسئول [ر:۸۵۳]

دامام بخاری رحمه الله مقصد دادې چه دخپلو کور والو خبر اخلئ او ددوی داصلاح کول د سړی ذمه داری ده.

ددې نه مخکښې باب کښې حديث نقل فرمائيلې شوې دې چه ښځه پښتئ نه پيدا شوې ده چه هغه کږه وی. په دې کښې کوږوالئ وی. ددې وجې دنياوی معاملات کښې دوی سره دنرمئ او چشم پوشئ رويه اختيارول پکار دی. ددې باب نه پس مذکوره باب قائم کړو او امام بخاری رحمه الله دا باب قائم کړواودې طرفته ئې اشاره اوکړه چه د نرمی اوچشم پوشی په دنياوی کارونو اوپه کورنو معاملات کښې اختياروېکار دی. ليکن ددين په معامله کښې داشان اجازت نشته دې. بلکه په هغه ځائې کښې ((قوا انفسکم واهليکم نارا))حکم دې. د اوور نه دبچ کيدو دپاره خپل ځان لره هم په دين باندې مضبوطول اوقائمول پکار دی. او کور والو ته حکم په مضبوطيا سره قائميدل پکار دی. موجب نار حرکتونو نه بچ کولوکښې داغماض او چشم پوشئ هيڅ ګنجائش نشته دې. (۱)

ليکن ددې مطلب دانه دې چه داصلاح دپاره دې دسختئ طريقه اختيار کړې شی. چونکه هغه عام طور مفيد کيدو په ځائې دښځو دضد عادت په وجه مضر کيږی او ددې وجې اغماض او چشم پوشی خو ورته نه ده ليکن د پوهولو دپاره حکمت او نرمئ نه کار اخستل پکار دی.

## ۸۲=باب حسن المعاشرة مع الأهل

[۴۸۹۳] حدثنا سليمان بن عبد الرحمن وعلي بن حجر قالا اخبرنا عيسى بن يونس حدثنا هشام بن عروة عن عبد الله بن عروة عن عروة عن عائشة قالت جلس احدى عشرة امراة فتعاهدن وتعاقدن ان لا يكتمن من اخبار ازواجهن شيئا قالت الاولى زوجي لحم جمل غث على راس جبل لا سهل فيرتقى ولا سمين فينتقل قالت الثانية زوجي لا ابث خبره اني اخاف ان لا اذره ان اذكره اذكر عجره وبجره قالت الثالثة زوجي العشنق ان انطق اطلق وان اسكت اعلق قالت الرابعة زوجي كليل تهامة لا حر ولا قر ولا مخافة ولا سامة قالت الخامسة زوجي ان دخل فهد وان خرج اسد ولا يسال عما عهد قالت السادسة زوجي ان اكل لف وان شرب اشتف وان اضطجع التف ولا يولج الكف

---
۱) الابواب والتراجم : ۲/۷۳.

لِيَعلَمَ الْبَثَّ قَالَتِ السَّابِعَةُ زَوْجِي غَيَايَاءُ اَوْعَيَايَاءُ طَبَاقَاءُ كُلُّ دَاءٍ لَهُ دَاءٌ شَجَّكِ اَوْ فَلَّكِ اَوْ جَمَعَ كُلًّا لَكِ قَالَتِ الثَّامِنَةُ زَوْجِي الْمَسُّ مَسُّ اَرْنَبٍ وَالرِّيحُ رِيحُ زَرْنَبٍ قَالَتِ التَّاسِعَةُ زَوْجِي رَفِيعُ الْعِمَادِ طَوِيلُ النِّجَادِ عَظِيمُ الرَّمَادِ قَرِيبُ الْبَيْتِ مِنَ النَّادِ قَالَتِ الْعَاشِرَةُ زَوْجِي مَالِكٌ وَمَا مَالِكٌ مَالِكٌ خَيْرٌ مِنْ ذَلِكِ لَهُ اِبِلٌ كَثِيرَاتُ الْمَبَارِكِ قَلِيلَاتُ الْمَسَارِحِ وَاِذَا سَمِعْنَ صَوْتَ الْمِزْهَرِ اَيْقَنَّ اَنَّهُنَّ هَوَالِكُ قَالَتِ الْحَادِيَةَ عَشْرَةَ زَوْجِي اَبُو زَرْعٍ وَمَا اَبُو زَرْعٍ اَنَاسَ مِنْ حُلِيٍّ اُذُنَيَّ وَمَلَا مِنْ شَحْمٍ عَضُدَيَّ وَبَجَّحَنِي فَبَجِحَتْ اِلَيَّ نَفْسِي وَجَدَنِي فِي اَهْلِ غُنَيْمَةٍ بِشِقٍّ فَجَعَلَنِي فِي اَهْلِ صَهِيلٍ وَاَطِيطٍ وَدَائِسٍ وَمُنَقٍّ فَعِنْدَهُ اَقُولُ فَلَا اُقَبَّحُ وَاَرْقُدُ فَاَتَصَبَّحُ وَاَشْرَبُ فَاَتَقَنَّحُ اُمُّ اَبِي زَرْعٍ فَمَا اُمُّ اَبِي زَرْعٍ عُكُومُهَا رَدَاحٌ وَبَيْتُهَا فَسَاحٌ اِبْنُ اَبِي زَرْعٍ فَمَا اِبْنُ اَبِي زَرْعٍ مَضْجَعُهُ كَمَسَلِّ شَطْبَةٍ وَيُشْبِعُهُ ذِرَاعُ الْجَفْرَةِ بِنْتُ اَبِي زَرْعٍ فَمَا بِنْتُ اَبِي زَرْعٍ طَوْعُ اَبِيهَا وَطَوْعُ اُمِّهَا وَمِلْءُ كِسَائِهَا وَغَيْظُ جَارَتِهَا جَارِيَةُ اَبِي زَرْعٍ فَمَا جَارِيَةُ اَبِي زَرْعٍ لَا تَبُثُّ حَدِيثَنَا تَبْثِيثًا وَلَا تُنَقِّثُ مِيرَتَنَا تَنْقِيثًا وَلَا تَمْلَاُ بَيْتَنَا تَعْشِيشًا قَالَتْ خَرَجَ اَبُو زَرْعٍ وَالْاَوْطَابُ تُمْخَضُ فَلَقِيَ امْرَاَةً مَعَهَا وَلَدَانِ لَهَا كَالْفَهْدَيْنِ يَلْعَبَانِ مِنْ تَحْتِ خَصْرِهَا بِرُمَّانَتَيْنِ فَطَلَّقَنِي وَنَكَحَهَا فَنَكَحْتُ بَعْدَهُ رَجُلًا سَرِيًّا رَكِبَ شَرِيًّا وَاَخَذَ خَطِّيًّا وَاَرَاحَ عَلَيَّ نَعَمًا ثَرِيًّا وَاَعْطَانِي مِنْ كُلِّ رَائِحَةٍ زَوْجًا وَقَالَ كُلِي اُمَّ زَرْعٍ وَمِيرِي اَهْلَكِ قَالَتْ فَلَوْ جَمَعْتُ كُلَّ شَيْءٍ اَعْطَانِيهِ مَا بَلَغَ اَصْغَرَ آنِيَةِ اَبِي زَرْعٍ قَالَتْ عَائِشَةُ قَالَ رَسُولُ اللّهِ صَلَّى اللّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُنْتُ لَكِ كَاَبِي زَرْعٍ لِاُمِّ زَرْعٍ (١)

امام بخاری رحمة ا لله علیه دحسن معاشرت په باب کښې داحدیث دام زرع بیان فرمائیلې دې. ابن منیر مالکی فرمائی چه امام بخاری رحمة ا لله علیه په دې حدیث باندې دا ترجمة الباب منعقد اوفرمائیلو او تنبیه ئې اوفرمائیله چه حضرت نبی کریم ﷺ دا قصه صرف دقصې په طور ذکر کړې نه وه بلکه فائده شرعیه باندې دمشتمل کیدو په وجې سره دا قصه حضرت نبی اکرم ﷺ ذکر اوفرمائیله او هغه فائده شرعیه هم داده چه سړی لره پکار دی چه خپل کور والو سره حسن معاشرت او بهتره طریقه اختیار کړی. (٢)

حافظ ابن حجر رحمة ا لله علیه دابن منیر په قول باندې اعتراض کړې دې چه امام بخاری رحمة ا لله علیه په دې حدیث کښې چه کوم سیاق وسباق اختیار فرمائیلې دې ، په هغې کښې تصریح نشته دې چه دا قصه حضرت نبی کریم ﷺ بیان کړه بلکه بخاری کښې دا حدیث حضرت عائشه رضی الله عنها باندې موقوف دې. البته آخر جمله «کنت لك کأبی زرع لأم زرع» بالاتفاق مرفوع او دحضرت نبی کریم ﷺ قول دې ، بیا دا حدیث ابن منیر مالکی رحمة

---

١ ) واخرجه مسلم فی کتاب فضائل الصحابة ، باب ذکر حدیث ام زرع رقم الحدیث: ٢٤٤٨ ، واخرجه النسائی فی کتاب عشرة النساء باب شکر المراة لزوجها رقم الحدیث: ٩١٣٨ ، واخرجه الترمذی فی الشمائل ص/ ١٧ باب حدیث ام زرع).

٢ ) اوګوریٔ المتواری علی تراجم ابواب البخاری : ٢٩٠).

الله عليه بيان كړېه يو خاص فائده باندې ئې هغه په خو فائدو باندې مشتمل كړې دي. (١)
دحديث ام زرع تخريج امام بخارى رحمة الله عليه نه علاوه امام مسلم امام ترمذى رحمة الله عليه او امام نسائى رحمة الله عليه نه هم نقل شوې دې، (٢)
دصحيحين او شمائل ترمذى دسياق و سباق نه دا معلومېږى چه دا ټوله واقعه دحضرت عائشه رضي الله عنها بيان كړې شوې دې ، او آخر جمله «كنت لك كأبي زرع لأم زرع» دحضرت نبى كريم ﷺ ارشاد دې . (٣)
ليكن امام نسائى ، زهير بن بكار او طبرانى پوره حديث مرفوعا هم ذكر كړې دې. (۴)
حافظ ابن حجر رحمة الله عليه فرمائى چه صحيحين وغيره كښې هم اګر چه دا حديث موقوفًا مروى دې او لفظًا بيشكه داقصه ټوله موقوف ده ليكن حكماً كه دې ته مرفوع اووئيلې شى خكه ظاهر هم دى چه حضرت عائشه رضي الله عنها دا حديث دحضرت نبى كريم ﷺ نه آوريدلې وى او حضرت نبى كريم ﷺ دآوريدو نه پس هغې رضي الله عنها نقل كړې وى ، او كه دحضرت نبى كريم ﷺ نه ئې نه وى آوريدلې بلكه حضرت نبى كريم ﷺ حضرت عائشه رضي الله عنها نه آوريدلې وى . نوبيا د حضرت نبى كريم ﷺ نه آوريدل او آوريدلو نه پس ددې تقرير فرمائيل دا حديث دمرفوع كيدو درجه وركوى. او دې حيثيت سره دې مرفوع وئيلې شى.(۵)
حديث دام زرع كښې لغات چونكه ډيرزيات دى ددې وجې ډير علماء كرامو ددې حديث مستقل شرح ليكلې ده. چنانچه دامام بخارى رحمة الله عليه استاد اسماعيل بن ابى اويس رحمة الله عليه، ابوسعيد نيشاپورى رحمة الله عليه، ابن قتيبه رحمة الله عليه، زهير بن بكار رحمة الله عليه ، قاضى عياض رحمه الله قاضى ابوبكر بن عربى رحمة الله عليه ، ابن فرحون رحمة الله عليه او مولانا فيض الحسن سهارنپورى رحمة الله عليه ددې حديث مستقل شرح ليكلې ده. (۶)
حديث دام زرع شان ورود دابيان شوې دې چه حضرت عائشه رضي الله عنها دخپل پلار په هغه مال باندې فخر اوكړو چه كوم د جاهليت په زمانه كښې هغه سره وو ، نوحضرت نبى كريم دې ته اوفرمائيل چه «اسكتي يا عائشة فاني كنت لك كأبي زرع لام زرع» حضرت عائشه رضي الله عنها تپوس اوكړو چه يارسول الله ﷺ حديث دام زرع او ابوزرع څه دى ؟نو حضرت نبى كريم ﷺ دا قصه بيان كړه. (٧)

---

١ ) فتح البارى: ٣١٨/٩).
٢ ) الحديث اخرجه مسلم فى كتاب فضائل الصحابة باب ذكر حديث ام زرع رقم الحديث : ٢٤٤٨ ، واخرجه الترمذى في الشمائل ، باب ماجاء فى كلام رسول الله ﷺ فى السمر: ١٧ ، وابن الاثير فى جامع الاصول: ٥٠٧/۶ ، رقم الحديث : ٤٧٢٢).
٣ ) فتح البارى: ٣١٩/٩).
٤ ) فتح البارى:٣١٩/٩).
٥ ) فتح البارى: ٣١٩/٩).
۶ ) الابواب والتراجم: ٧٣/٢، ٧٤).
٧ ) ارشادالسارى: ٤۶٣/١١ ، ٤۶٤).

**قوله:** جَلَسَ إِحْدَى عَشْرَةَ امْرَأَةً فَتَعَاهَدْنَ وَتَعَاقَدْنَ أَنْ لاَ يَكْتُمْنَ مِنْ أَخْبَارِ أَزْوَاجِهِنَّ شَيْئًا: یولس ښځې کښیناستې او هغوی خپلو کښې دا وعده اوکړه چه دخپلو خاوندانو دخبرونه به هېڅ نه پټوو.

دزهیر بن بکار روایت کښې دی چه دا یولس ښځې دیمن په یو کلی کښې وې او یمنی قبائلو سره ئې تعلق ساتلو لیکن دهیثم روایت کښې دی چه دوی مکه مکرمه کښې وو. (۱)

**قوله:** قَالَتِ الْأُولَى زَوْجِي لَحْمُ جَمَلٍ غَثٍّ عَلَى رَأْسِ جَبَلٍ لاَ سَهْلٍ فَيُرْتَقَى وَلاَ سَمِينٍ فَيُنْتَقَلُ: رومبۍ ښځې اووئیل چه خما خاوند دکمزورې اوښ غوښه ده چه د غر په څوکه باندې اېښودې شوې وی. اوپه دې څوکه باندې نه لار وی او نه په دې باندې ختلې شی اونه هغه غوښه داسې خړه ده چه (چه ددې د خاطره پس اوختلې شی) دا منتقل کړې شی.

د ((غث)) معنی کمزورې او لاغر ده . دا د ((جمل)) صفت هم جوړیدې شی . په دې کښې صورت کښې به دا مجرور به وی یعنی د کمزورې اوښ غوښه . او د ((لحم)) صفت هم جوړیدې شی یعنی د اوښ کمزورې غوښه .په دې صورت کښې به دا مرفوع وی. (۲)

یو خود اوښ غوښه څه خوښ څیز نه دې . بیا چه دا کمزورې او لاغر وی نو دکړیلې اودنیه ختلې په مصداق او ناخوښ کښې وی . دې ښځې دخپل خاوند مذمت (غندنه) کړې ده چه ډیر ناکاره او ناخوښه کس دې چه دده نه چاته مالی او جانی فائده نه رسی . اودې سره سره متکبر او بداخلاقه هم دومره دې چه ده ته رسیدل هم مشکل دی.

دې ښځې دخپل خاوند د دوه بداخلاقو تشبیه دوه څیزونو سره ورکړې ده.

① دده د بخل او لاغر توب تشبیه ئې داوښ کمزورې غوښې سره ورکړې ده. ② اودده بداخلاقی او سخت مزاجې ئې مشکل غر سره تشبیه کړې ده. بیا مخکښې نور وضاحت هم کوی او وائی چه لاره هم آسانه نه ده . په دې باندې دختلو مشقت به هم برداشت کړی خوکه هغه خوښه د څه کار وی. (۳)

بعضو روایتونوکښې ((لا سمين فينتقى)) دی. دانتقی معنی ده قیمه ویستل .یعنی هغه غوښه څه داسې تازه هم نه ده چه ددې نه قیمه ویستلې شی. (۴)

ددې ښځې نوم معلوم نشو (۵)

**قوله:** قَالَتِ الثَّانِيَةُ زَوْجِي لاَ أَبُثُّ خَبَرَهُ إِنِّي أَخَافُ أَنْ لاَ أَذَرَهُ إِنْ أَذْكُرْهُ أَذْكُرْ عُجَرَهُ وَبُجَرَهُ: دوېمې ښځې اووئیل چه څه دخپل خاوند خبر نه خوروم، ویریږم چه څسې نه دې رانه

---

۱) فتح الباري: ۳۱۹/۹ . وارشادالساري: ۱۱/٤٦٤).
۲) ارشاد الساري: ۱۱/٤٦٤).
۳) ارشاد الساري: ۱۱/٤٦٤).
٤) فتح الباري: ۳۲۳/۹).
۵) ارشاد الساري: ۱۱/٤٦٤).

جدا نشي ، که دده ذکر کوم نو دده ټول باطني او ظاهري عیوب به ذکرکوم.
① دا ښځه هم دخپل خاوند مذمت کوي ، وائي چه څه به دخپل خاوند خبر نه خوروم څکه چه ماته ددې خبرې اندیښنه ده که ما دده خرابئ ښانول شروع کړل نو څما طبیعت به دده نه تور شي. اوبیا ماته اندیښنه ده چه هسې نه دې پرې نړدم ، په دې صورت کښې ((لااذره)) کښې ((لا)) به زائد وی. (۱)
②دویم مطلب دا هم کیدیشی چه هسې نه هغه ته پته اولږی چه په ماباندې داشان تبصرې کیږی ،او څما معائب بیانولې شی ، نو بیا هسې نه چه هغه ماته طلاق رانکړی. اوددې په نتیجه کښې هسې نه دې څما نه جدا نشي ، په دې صورت کښې به((لا))زائد وی. (۲)
مذکوره دواړو صورتونو کښې ((لااذره))کښې ضمر مفعول((زوج)) طرفته راجع دې.
③ دریم مطلب دادې چه دده خرابئ دومره دی که څه دابیانول شروع کړم نو ماته ویره ده چه دابه پوره نشي ، اوبه مینځ کښې به پاتې شي ، څکه دده خوهرو څه یو خرابی ده نه دا خو زر قصې دی ، په دې کښې به((لااذره))کښې((لا))زائد نه وی ، او ضمیر((لااذره))کښې خبر طرفته راجع ده. اوهم دا مطلب راجح او دسیاق و سباق مناسب دې. (۳)
((عجر)) د ((عجرة)) جمع ده ، عجرة هغه غوټې ته وئیلې شي چه رګ په رګ راواوړی (یعنی رګ غوټه شی)او((بجر)) د ((بجرة)) جمع ده ، هغه غوټې ته وئیلې شي چه په خیټه یا دنامه نه لاندې پیداشي. دعجر نه ظاهري عیوب او دبجرنه باطني عیوب مراد دی. (۴)
ددې دویمې ښځې نوم عمره بنت عمرو تمیمی لیکلې ده. (۵) بعض حضراتو اعتراض کړې دې چه دې ښځې د معاهدې خلاف ورزی اوکړه او دخپل خاوند دخبرې کولو نه ئې انکار اوکړو. لیکن صحیح خبره داده چه ددې مختصر
الفاظو کښې ټول هر څه اووئیل چه هغه مجسمه عیوب دې. (۶)

**قوله:** قَالَتِ الثَّالِثَةُ زَوْجِي الْعَشَنَّقُ إِنْ أَنْطِقْ أُطَلَّقْ وَإِنْ أَسْكُتْ أُعَلَّقْ:

دریمې ښځې اووئیل چه څما خاوند لوړ ډنګ دې ، که اووایم نوطلاق به راکړی اوکه خاموش پاتې شم نو هم داسې به معلق شم.

((عشنق)) داسې سړی ته وائی چه ډیر زیات اوږد وی ، داسې قسمه سړی عام طور بیوقوف وی ، څکه چه دده ددماغو او زړه په مینځ کښې یو اوږد څټ وی اوددې په وجه فاصله ئې په

۱) ارشادالساری: ۳۶۶/۱۱ ، وعمده القاری: ۱۷۰/۲۰).
۲) فتح الباری: ۳۲۳/۹).
۳) عمده القاری: ۱۷۰/۲۰).
٤) ارشادالساری: ٤۶۶/۱۱ ، وعمده القاری: ۱٤۱/۲۰).
۵) عمده القاری: ۷۰/۲۰).
۶) اوګورئ خصائل نبوی شرح شمائل ترمذی: ۱٤۱).

مینځ کښې زیاته وی. داشان اوږد سړي بدشکله هم وی. (۱) مطلب دادې چه خما خاوند بیوقوف هم دې اوبدنما هم. اوبداخلاقه هم. اودومره چه څه خبره دخلې نه اوباسم نو دطلاق ملاویدو ویره ده. اوکه چپ پاتې شم اوهیڅ خبره نه کوم نوهغه ته دڅه خبرې پرواه نه وی. بس هم داشان په مینځ کښې ځکې یم. نه په خاوندانو والو کښې شمار یم چه د هغوی په شان څه خبره نه ده اونه بغیر د خاوند نه یم چه بل ځائې کښې واده اوکړم بهر حال ظاهره په دې سره ترلې شوې ده.

ددې دریمې ښځې نوم حبی بنت کعب یمانی لیکلې شوې دې. (۲) دې هم دخپل خاوند بدبیانی اوکړه.

**قوله:** قَالَتِ الرَّابِعَةُ زَوْجِي كَلَيْلِ تِهَامَةَ لَا حَرٌّ وَلَا قُرٌّ وَلَا مَخَافَةَ وَلَا سَآمَةَ: څلورمې اوونیل چه خما خاوند دتهامه دشپې په شان «معتدل» دې نه زیات ګرم او نه زیات یخ ،نه په کښې څه ویره شته اونه ستړې والې.

تهامه دحجاز علاقه ده. چه په هغه ځائې کښې شپه ډیر ګرمئی کښې هم معتدله وی، دې دخپل خاوند تعریف اوکړو چه هغه معتدل دې، دده نه سړې ویریږی اونه ده سره تنګیږی.

ددې ښځې نوم مهدوبنت ابی هرومه لیکلې دې. (۳)

**قوله:** قَالَتِ الْخَامِسَةُ زَوْجِي إِنْ دَخَلَ فَهِدَ وَإِنْ خَرَجَ أَسِدَ وَلَا يَسْأَلُ عَمَّا عَهِدَ:

پنځمې ښځې اوونیل چه خما خاوند کله کور ته راشی نو هغه لکه پړانګ په شان وی، او چه بهر اوزی نو شیرمخ ترې جوړ شی اوهغه څیز باره کښې تپوس نه کوی چه کوم ګوری او پوهیږی.

دې پنځمې ښځې دبعضو حضراتو په نیزدخپل خاوند ښه اخلاق ښان کړل او هم دا راجح دی وئیل دا غواړی چه خما خاوند ډیر اخلاقی دې، کور ته چه راشی نو دده نه پړانګ جوړیږی .پړانګ په اوده کیدوکښې ډیره مشهوره ده، مطلب دادې چه زر څملی، خمونږ عیوبوکښې ګوتې نه وهی. خمونږ په خبروکښې داخل اندازی نه کوی،لیکن کله چه بهر لاړشی نو دشیر په شان بهادر وی. بهر خلق دده نه ویریږی، اوکه کور کښې مونږ کښې دچا نه غلطی اوشی اوده ته معلوم هم شی نو اعراض کوی.

لیکن دبعضې حضراتو په نیزدې ښځې دخپل خاوند خرابی بیان کړې ده. چه کله دې کور ته راشی نو دکور والو نه سره څه غرض نه لری، بس د چیتا په شان څملی، بهر ځی نو خلق څناورو سره کوی او خمونږ دکومو ضرورتو چه هغه ته علم اوشی نودهغې په باره کښې هیڅ سوال نه کوی او توجه نه ورکوی. (۴)

---

۱) فتح الباری: ۹/ ۳۲٤).

۲) ارشادالساری:۱۱/ ۳۶۶).

۳) ارشادالساری: ۱۱/ ٤۶۷).

٤) اوګورئ فتح الباری:۹/ ۳۲۵، ۳۲۶).

ددې ښځې نوم کبشه خودلې شوې دې. (۱)

**قوله:** قَالَتِ السَّادِسَةُ زَوْجِي إِنْ أَكَلَ لَفَّ وَإِنْ شَرِبَ اشْتَفَّ وَإِنِ اضْطَجَعَ الْتَفَّ وَلَا يُولِجُ الْكَفَّ لِيَعْلَمَ الْبَثَّ: شپږمې ښځې اوونيل چه څما خاوندكله خوراك كوي نوهر څه راانغاړي. كله چه څه څكي نو ټول هر څه راكاږي ، اوكله‌چه څملي نوپه څادر «كښې خانله» څملي . او هغه تلى له نه داخلوى چه پريشانى او پريشانى اوپيژني.

«لف» دباب نصر نه دماضى صيغه ده ، په معنى د انغښتل ، «اشتف» باب افتعال نه دماضى صيغه ده . د اشتفاف په معنى كښې ده‌چه په لوښى كښې څه وى هغه ټول هر څه اوڅكي،«التف»باب افتعال نه دې التفاف په معنى كښې دې ،انغښتل«بث»غم او پريشانئ ته وائي.

ددې شپږمې ښځې عبارت لره هم مدح او ذم دواړو باندې محمول كړې شوې دې ، ليكن د ذم‌احتمال راجح دې.

دمدح په صورت كښې به مطلب داوى چه‌كه خوراك كوى نو هر څه رانغاړي ،نخرې نه كوى . چه څه هم وى نوهغه خورى ، اوكله چه څه څكى نو هر قسمه څيزڅكى ، دده په دسترخوان باندې دخوراك څكاك مختلف قسمه څيزونه موجود وى‌اودې بخل نه كوى او ددې طبيعت كښې نخرې هم نشته دې ، اوكله چه هغه څملي نو څادر څان باندې اچوى‌او څملي ، مونږ پريشانه او تنګوى نه ، داشان‌دعيوبو پيژندو دپاره‌دنورو په كارونوكښې هيڅ كار نه لرى. څمونږ غلطوپسې نه ګرزى. (۲)

او ذم په صورت كښې به مطلب داوى چه‌كله خوراك كوى نو پخپله كوى ، دښځې او بچو خيال نه ساتى ، او كله چه څه څكى نو نو هم دده داانداز وى .په خوراك څكاك كښې دهيچا پرواه نه كوى. اوكله چه‌څملي نو خانله په څادر كښې څملي او دې محبت او التفات طرفته هيڅ توجه نه كوى ، كثير الطعام والشراب كيدل او قليل الجماع كيدل په عربو كښې عيب وو.

علامه قسطلانى ليكى:«وهذا غاية الذم عند العرب فانها تذم بكثرة الطعام والشراب وتتمدح بقلتها وكثرة الجماع لدلالة ذالك على صحة الذكورية والفحولية»ددې ښځې نوم هند وو ، (۳)

**قوله:** قَالَتِ السَّابِعَةُ زَوْجِي غَيَايَاءُ أَوْ عَيَايَاءُ طَبَاقَاءُ كُلُّ دَاءٍ لَهُ دَاءٌ شَجَّكِ أَوْ فَلَّكِ أَوْ جَمَعَ كُلًّا لَكِ: اوومې ښځې‌اوونيل چه‌څما خاوند ګمراه دې‌يا عاجز دې ، ښځې لره سينې سره لګولو والادې، هر عيب دده عيب دې ، ستا سر اووهى يا زخمى كړى يا دواړه اوكړى،

---

۱) ارشاد السارى: ۱۱/٤٦۷).
۲) فتح البارى: ۹/۳۲۷ ، وخصائل نبوى : ۱٤۳).
۳) ارشاد السارى: ۱۱/٤٦۸).

«غیایاء» دا د غی نه ماخوذ ده ،او ددې معنی شر کښې انهماك. محرومي اوګمراهي ده .
په دې ځائې کښې راوي عیسی بن یونس ته شك دې چه «غیایاء» ده او وئیل اوکه «عیایاء»،
عی نه ماخوذ ده ، چه ددې معنی عجز ده ، یعنی هغه عاجزه دې د جماع نه یا عقل نه .(۱)
«طباقاء» ددې معنی احمق هم ده او هغه سړی ته هم دا وئیلې شی چه دجماع په وخت کښې
خپله سینه یا خیټه دښځې سینې یا خیټې سره منطبق کولو والا وی او دا انداز ښځو ته خوښ
نه وی .چونکه داشان کولو سره د سړی روستو حصه پاس اوچته شی او دجماع په وخت کښې
قوت او زور کښې کمې واقع کیږی ز ښځه دا نه خوښوی .«لانه لا یصل الی ماتریده» علامه
جاحظ ددې لفظ په تشریح کښې لیکی.
«الثقیل الصدر عند الجماع، ینطبق صدره علی صدر المرأة فیرتفع سفله عنها وقد ذمت امرأة امری القیس
فقالت له ثقیل الصدر خفیف العجز سریع الاراقة له داء الافاقة»(۲)
«کل داء له داء» هره بیماری دده دپاره ده ، یعنی خلقو کښې چه څومره خرابئ وی هغه ټولې
په ده کښې موجودې دی.
«شجك أو فلك» «شج» په معنی د سرماتولو کښې ده ، په سر کښې زخم راتلل او «فل» په معنی
د کند کول . په دې ځائې کښې بدن لره زخمی کول مراد دی ، یعنی هغه سر درباندې مات
کړی یا زخمی کړی یا دواړه اوکړی.
ددې اوومې ښځې نوم حبی بنت علقمه دې، (۳)

**قوله:** قَالَتِ الثَّامِنَةُ زَوْجِي الْمَسُّ مَسُّ أَرْنَبٍ وَالرِّيحُ رِيحُ زَرْنَبٍ: اتمې ښځې
اووئیل چه خما خاوندلره ګوتې وراوړل داسې دی لکه سوې لره ګوتې وراوړل ، او دده بوئې
داسې دې لکه دزرنب دبوټی خوشبو.
زرنب یو خوشبوداره وابټو ته وئیلې شی ،بعضو ددې ترجمه زعفران کړې ده ، (۴) مطلب
دادې چه خما خاوند د سوې په شان نرم دې .
ددې ښځې نوم یاسر بنت اوس بن عبد لیکلې شوې دې ،(۵) او دې هم د خپل خاوند
تعریف کړې دې.

**قوله:** قَالَتِ التَّاسِعَةُ زَوْجِي رَفِيعُ الْعِمَادِ طَوِيلُ النِّجَادِ عَظِيمُ الرَّمَادِ قَرِيبُ الْبَيْتِ مِنَ النَّادِ: نهمې ښځې اووئیل چه خما خاوند اوچتو ستونو والا دې ، په اوچتو باندې

---

۱ ) فتح الباری: ۳۲۸/۹) .
۲ ) فتح الباری: ۳۲۸/۹) .
۳ ) ارشاد الساری: ۴۲۹/۱۱).
٤ ) ارشاد الساری: ۳۶۹/۱۱ . وفتح الباری: ۳۲۹/۹).
۵ ) فتح الباری: ۳۲۹/۹).

اوچت او ډير مالدار ، دده كور مجلس ته نزدې دې.

اوچتو ستنووالادې "يعنى دده كوراوچتو اوچتو ستونو نه جوړ كړې شويدې ، مالدار خلق بنګلې جوړوی‌نودهغې چتونه‌اوچت وی ، ددې جملې نه دې طرفته اشاره ده .

«طويل النجاد»نه دده دقد اوږدوالى طرفته اشاره ده.«عظيم الرماد»نه دده سخاوت طرفته ا شاره ده،د ميلمنو د پاره خوراك زيات پخوى . نوهله خوايره زياته پاتې كيږى ، دده كور مجلس ته نزدې دې ، ځكه چه دې يو هوښيار او صاحب الرائې سړې دې ، چه په كوم ځائې كښې دخلقو مجلس كيږى‌نودده كور هغې ته نزدې جوړ شوې دې ، چه خلقوته آسانى وى اودده نه فائده اخلى ، اوداهم وئيلې شى چه‌دې ډير سخى دې نوددې وجې‌ده خپل كور دارالندوه ته نزدې جوړ كړې دې ، چه راغلو خلقوته ميلمستيا اوكړى. (۱)

ددې نهمې ښځې نوم معلوم نه شو. (۲)

**قوله:** قَالَتِ الْعَاشِرَةُ زَوْجِي مَالِكٌ وَمَا مَالِكٌ مَالِكٌ خَيْرٌ مِنْ ذَلِكِ: لسمې ښځې اووئيل چه‌زما خاوند مالك دې او د مالك به څه تعريف اوكړم ،مالك ددې نه بهتر دې،

د«ذالك» مشار اليه ياخو دسابقه‌ښځو ذكر طرفته دې چه هغوى تعريفونه كړى ووچه‌هغه ښځو د خپلو خاوندانوكوم تعريفونه اوكړل دهغې نه مالك ډير بهتر دې ، اويا ددې مشار اليه ذهن كښې راتلو والا ذكر تعريف څومره دې چه دمدائح سړى په ذهن كښې راتلې شى . دهغې نه مالك بالا تر دې. (۳)

**قوله:** لَهُ إِبِلٌ كَثِيرَاتُ الْمَبَارِكِ قَلِيلَاتُ الْمَسَارِحِ: دده سره اوښان دى چه اكثر اوقات غوجل كښې دننه دى او په صحرا كښې كم وى «مبارك»د«مبرك»جمع ده،د اوښ كينولو ځائې او«مسارح»د«مسرح» جمع ده‌صحرا. مطلب دادې چه‌هغه اوښان اكثر په غوجل كښې ولاړ وى دميلمنو د خاطر مدارت دپاره‌كله هم ددې اوښانو ضرورت پيښيدې‌شى‌چه ذبح ئې كړى. صحراګانو طرفته دا كم ليږلې شى‌چه هسې نه دذبح كولوضرورت ئې پيښ شى اوهغه موجود نه وى . (۴)

**قوله:** وَإِذَا سَمِعْنَ صَوْتَ الْمِزْهَرِ أَيْقَنَّ أَنَّهُنَّ هَوَالِكُ: هركله چه هغه اوښان د ساز او باجې آوازاورى نويقين كوى چه اوس به دوى ذبح كولې شى .

«المزهر» سازغږيدو والا آله ،باجه .مطلب دادې چه‌دميلمنود راتلو په موقع باندې دعربو په هغه وخت كښې‌دا رواج وو چه‌دموسيقۍ اهتمام به كولې شو،هركله چه‌به اوښ د باجې آواز واوريدونوپوهه به شو چه‌اوس به دې‌دميلمنو دپاره ذبح كولې شى.

۱) فتح البارى: ۹/۳۳۰).
۲) ارشادالسارى : ۱۱/۴۲۰).
۳) فتح البارى: ۹/۳۳۱).
۴) ارشاد السارى: ۱۱/۴۷۱).

ددې لسمې ښځې نوم کبشه بنت ارقم خودلې شوې ده. (۱)

**قوله:** قَالَتِ الْحَادِيَةَ عَشْرَةَ زَوْجِي أَبُو زَرْعٍ وَمَا أَبُو زَرْعٍ أَنَاسَ مِنْ حُلِيٍّ أُذُنَيَّ وَمَلَأَ مِنْ شَحْمٍ عَضُدَيَّ: یولسمې ښځې اووئیل چه ځما خاوند ابوزرع دې ، اودابوزرع بدځه وائې ، هغه کالی (زیورات)نه ځما غوږونه ډك کړی او ځما لاسونه ئې څاربه کړل.

«أناس_اناسة» معنی ده : حرکت ورکول ، متحرك کول . (۲) یعنی ده په کالو سره ځما غوږونه متحرك کړی دی چه ددې کالو په حرکت سره خوزی ، داشان بهترینه غذا خوړولو سره ځما لاسونه څاربه شوی دی.

**قوله:** وَبَجَّحَنِي فَبَجِحَتْ إِلَيَّ نَفْسِي وَجَدَنِي فِي أَهْلِ غُنَيْمَةٍ بِشِقٍّ فَجَعَلَنِي فِي أَهْلِ صَهِيلٍ وَأَطِيطٍ وَدَائِسٍ وَمُنَقٍّ: ده ځما دومره تعظیم ا وکړو چه ماته خپل نفس عظیم ښکاره شو. اوده ځه داسې کورنۍ کښې اوموندم چه هغوی سره په مشکله ځه چیلۍ وې ، بیائې ځه داسې خوشحالې کورنۍ ته راوستلم چه هغه د آسونو هنړاری ، دکجاوۍ آوازونو ، اوغویانواوزمینداره وه «بجح»باب تفعیل نه دې ددې معنی خوشحالولو او تعظیم کولورازی ، یعنی ده ځه دومره خوشحاله کړم ماته په ځان دخوښیدو احساس اوشو.دخپل ځان متعلق دده د تعریفونو په آوریدوآوریدوسره ځه په خپلو نظرونو کښې اوچته شوم. (۳)

«شق»دشین په کسرې سره په معنی دمشقت،یعنی ځه دیو غریبې کورنۍ جینۍ اووم ،ژوند ډیر په مشقت سره تیریدو ، صرف څو چیلو باندې مو وخت تیریدو.

بعضو وئیلی دی چه«شق» د شین په فتحې سره دیو ځائې نوم دې ، یا ددې نه د «شق الجبل»غر لمن مراد ده یعنی ځما کور والا دمقام شق یا دامن کوه نه وو ،دهغه ځائې نه ده ځه منتقل کړم. (۴)

«صهیل»د آسونو آواز اوهنړاری ته وئیلې شی ،«اطیط»دکجاوې آواز ته وائی ،مطلب دادې چه دابو زرع په کور کښې آسونه او اوښان وو.

«دائس»هغه غوئی ته وئیلې شی چه هغه د غنمونو او اوربشو په اوچو ونو باندې بوتلې شی ، چه بوس ترې بیل شی ، اودانې ترې بیلې شی ، چه دې ته په اردو کښې ډائس چلولو والا غوئې وئیلې شی. علامه قسطلانی رحمه الله لیکی چه :«دائس :یدوس الزرع فی بیدره لیخرج الحب من السنبل»(۵)

---

۱ ) ارشاد الساری: ۴۷۱/۱۱).
۲ ) فتح الباری: ۳۳۲/۹).
۳ ) فتح الباری: ۳۳۳/۹).
۴ ) فتح الباری: ۳۳۳/۹).
۵ ) ارشادالساری: ۴۷۲/۱۱).

«منق»دا دباب تفعیل تنقیة د صیغه اسم فاعل دې . مراد ترې غله بادولو والا زمیندار دې ، په غنمو باندې د غویانو ګرزولو نه پس زمیندار د هوا په لوری اودریږی اوچج کښې دا دانې او بوس الوزوی ، دانې لاندې پریوزی او بوس په هوا کښې لرې مخکښې پریوزی. دې عمل ته«تنقیة» وئیلې شی.

مطلب دادې چه دابوزرع په کور کښې غوایان هم وو اود کرکروندې دپاره زمینداران هم وو،

**قوله:** فَعِنْدَهُ أَقُولُ فَلَا أُقَبَّحُ وَأَرْقُدُ فَأَتَصَبَّحُ وَأَشْرَبُ فَأَتَقَنَّحُ: ده سره چه کله خبرې کوم نوخما عیبونه نه لټوی ، چه څملم نو تر سحره پورې او کله خوراك څکاك کوم نو ښه په اطمینان سره کوم.

مطلب دادې چه دې ما په هېڅ خبره نه رانیسي ، کله چه څملم نو تر نمر ختلو پورې ملاسته یم ، هیڅوك مې نه پاسوی ، اوکله چه څه اوڅکم نو ښه په مړه ئې څکم .

«اتقنح»باب تفعیل نه دواحد متکلم صیغه ده اونون سره ده چه ددې معنی ده ښه په مړه خیټه خوراك کول.

بعضې حضرات دې میم سره «اتقمح» نقل کوی، ددې معنی ښه په مړه خیټه څکل ، چنانچه امام بخاری رحمه الله ددې روایت په آخر کښې فرمائی چه «قال بعضهم فأتقمح بالمیم وهذا أصح»

**قوله:** أُمُّ أَبِي زَرْعٍ فَمَا أُمُّ أَبِي زَرْعٍ عُكُومُهَا رَدَاحٌ وَبَيْتُهَا فَسَاحٌ: دابو زرع مور خما د «خوابنې» به څه وائې چه دهغې پخې یا کچه کوټې ډکې وی،دزمیندارو سره دمختلف پخې یا کچه ورې یا لوئې کوټې وی چه په هغې کښې په څه کښې دالونه،په څه کښې وریژې،او غلې وی،اوچرته د مقصد دپاره د ورو مشکونوبرابر کوټې وی ، په دې خائې کښې کوټئې یا کچه کوټې مراد دی ، او ددې کور فراخه دې.

«عکوم» د «عکم» جمع دې ، کوټه یا کچا کوټه چه په هغې کښې غله وغیره اینبودې شی . (۱)مطلب دادې چه ددې کور دسامانونو نه ډك وو او ددې کور هم ښه فراخه کور وو، هغه یوصاحب حیثیت ښځه وه.

**قوله:** ابْنُ أَبِي زَرْعٍ فَمَا ابْنُ أَبِي زَرْعٍ مَضْجَعُهُ كَمَسَلِّ شَطْبَةٍ وَيُشْبِعُهُ ذِرَاعُ الْجَفْرَةِ: د ابوزرع خوئې اود ابوزرع د خوئې به څه وائې ،دهغه دخوب خائې دکهجورودښاخ په شان (باریك) دې ، د چیلئ یو پتون دې مړوی.

«مضجع»صیغه ظرف ده.دملاستې خائې ، دخوب خائې ، بعضو وئیلی دی چه دبدن هغه حصه مراد ده چه ملاستې په وخت کښې فرش سره لګیدلې وی لکه پښتئ ، (۲)

«مسل: سل(ن)سلا» نه مصدر میمی دې ، چه ددې معنی دتوره دنیام نه بهر راویستلورازی .

---

۱ . فتح الباری ۳۳۵/۹).
۲ ) اوګورئ خصائل نبوی للشیخ زکریا: ۱۴۵).

«شطبة» د كهجورې ښاخ ته وئيلې شي. (۱) «مسل شطبة» كښې صفت اضافت موصوف طرفته دې يعنى د څنډلې شوې كهجورې په شان يعنى د كهجورې داسې ښاخ چه دهغې نه زياتې پاڼې بالكل كټ شوې وى . د كهجورې ښاخ يو خو هسې نرې پرې وى ، د پاڼړود څنډلو نه پس نور هم نرې پرې شى. مطلب دادې چه هغه دومره نرې دې چه دده دخوب ځائې د كهجورې د ښاخ په شان باريك معلوميږى .

«يشبعه» باب افعال نه دې ، «جفرة» دچيلۍ د څلورو مياشتو بچې ته وائى ، يعنى دچيلۍ د بچى يو لاس دده د خوراك دپاره كافى وى ، مطلب دادې چه هغه خوراك كم كوى ، كم خوراك كول په عربوكښې د ځوانانو دپاره يو ښه خصلت شميرلې شى.

**قوله:** بِنْتُ أَبِي زَرْعٍ فَمَا بِنْتُ أَبِي زَرْعٍ طَوْعُ أَبِيهَا وَطَوْعُ أُمِّهَا وَمِلْءُ كِسَائِهَا وَغَيْظُ جَارَتِهَا: دابو زرع لور ، دابوزرع دلور به څه وائې، دا دخپل مور پلار ډيره زياته فرمانبرداره ده،خپل څادر اغوندى ، او دخپل ګاونډى دپاره باعث دغيظ وغضب

«طوع» مصدر دې ،ددې حمل دمبالغې په طور وئيلې شوې دې ، د «مل ء كساءها» معنى ددې چه هغه ښه صحتمنده ده ،خپل څادر اغوندى نو په دې كښې هيڅ خلا نه وى ،څادر ترې ډك شى ،ددې ګاونډيان ددې په شان وشوكت سوزى ،د «جاره» نه بن هم مراد ده.

عربو كښې به ځوان نرې پرې او تيز بدن والا خوخولې شو ،خوجينۍ به بڅه غټه پټه خوخولې شوه.(۲)

**قوله:** جَارِيَةُ أَبِي زَرْعٍ فَمَا جَارِيَةُ أَبِي زَرْعٍ لَا تَبُثُّ حَدِيثَنَا تَبْثِيثًا: دابوزرع وينځه ، ددې به لا څه وائې ،څمونږ خبرو لره خوروى نه .

**قوله:** وَلَا تُنَقِّثُ مِيرَتَنَا تَنْقِيثًا وَلَا تَمْلَأُ بَيْتَنَا تَعْشِيشًا: هغه نه څمونږ دكور په څيزونوكښې كمې كوى او نه څمونږ كور د ګند نه ډكوى.

«نقث» باب تفعيل نه ده، په معنى د منډې وهلو. ابوسعيد فرمائى چه د «تنقيث» معنى ده دخپل كور څيزونه غيرو ته خودل. (۳) «ميرة» زاد ، ذخيره دطعام ، مطلب دادې چه هغه څمونږ په زاد وطعام كښې هيڅ قسمه تصرف اوخيانت نه كوى، «تعشيش» خشاك ته وئيلې شى يعنى هغه په كور كښې ګند نه اچوى ،بلكه كور صفا ساتى لكه آئينه .

**قوله:** قَالَتْ خَرَجَ أَبُو زَرْعٍ وَالْأَوْطَابُ تُمْخَضُ: ام زرع وائى چه څما خاوند ابوزرع (يو ورځ سحر وختى) په هغه وخت كښې اووتلوچه په كوم وخت كښې د پئيو لوښى راغوښتلې شو.

---

۱) حاشيه خصائل نبوى للشيخ زكريا: ١٤٥).
۲) فتح البارى: ۳۳۶/۹).
۳) فتح البارى: ۳۳۷/۹).

«الاوطاب» د «وطب» جمع ده ، د پنيو هغه لوښې ته وئيلې شي چه په هغې كښې ماسته «چكه» جوړولې شي . او بيا ددې نه كوچ ويستلې شي. دې ته چاټي وئيلې شي. (۱)

«تمخض» صيغه دمجهودل ده ،مطلب دادې چه ابوزرع سحر وختى دكور نه اوزى.

**قوله:** فَلَقِيَ امْرَأَةً مَعَهَا وَلَدَانِ لَهَا كَالْفَهْدَيْنِ يَلْعَبَانِ مِنْ تَحْتِ خَصْرِهَا بِرُمَّانَتَيْنِ فَطَلَّقَنِي وَنَكَحَهَا: دده ملاقات داسې ښځې سره اوشوچه هغې سره د پړانګ پشان دوه بچې ئې وو چه ددې دملا نه لاندې د دوو دانو دانارو سره ئې لوبې كولې ، نو ده ماته طلاق راكړو اوهغې سره ئې نكاح اوكړه.

پړانګ په تيږونو وهلو كښې ډيره مشهوره ده او ددې د تيږونو سره تشبيه وروكولې شى يعنى ددې ښځې د پړانګ دبچى په شان دوه بچى ووچه د چيتا د بچو پشان ئې تيږونه وهل، او په لوبو كښې مشغول وو.(۲)

اوهغوى دواړو ددې دملا لاندې د دانار دوؤ دانو سره ئې لوبې كولې ، دانار د دانو نه مراد يا خو په حقيقت كښې دانار دانې مراد دى ، دانار دانې ددې دملا لاندې داشان راغلې وې چه چونكه ددې سرين غټ غټ او درانه وو ، نوددې په زمكه باندې دملاستې په صورت كښې ددې دملا اودزمكې په مينځ كښې فاصله راغلې وه ،هم په دې خلا كښې دوه انار وو او بچو دې سره لوبې كولې ، غټ سرين والا انسان چه كله په زمكه باندې څملى نو د ده ملا په زمكه باندې نه لګى ، دده دملا او زمكې ترمينځه خلارازى.

او يا دانارنه سينې مراد دى چه هغه بچو هغې سره لوبې كولې ، اوددې په اړخ كښې وو،(۳) ددې ښځې نوم معلوم نشو.(۴)

**قوله:** فَنَكَحْتُ بَعْدَهُ رَجُلًا سَرِيًّا رَكِبَ شَرِيًّا وَأَخَذَ خَطِّيًّا: دې نه پس ما يوشريف سره نكاح اوكړه (چه دهغه نوم معلوم نشو) چه دې به تيزتلونكى اس باندې سوريدو. او په لاس كښې به ئې نيزه نيولې وه يعنى بهادر وو.

د «سرى» معنى سردار اوشريف ده ، «شرى» سركش او تيزرفتار آس «خطى» دمقام خط جوړه شوې نيزه ، خط دبحرين ديو علاقې نوم دې.(۵)

**قوله:** وَأَرَاحَ عَلَيَّ نَعَمًا ثَرِيًّا وَأَعْطَانِي مِنْ كُلِّ رَائِحَةٍ زَوْجًا: او دشپې په وخت كښې ئې ماله ټول څناور راوستل او دهر قسمه څناورو نه يويو قسم جوړه ماته راكړه ،د«أراح

---

۱ ) الاوطاب : جمع وطب . وهو سقاء اللبن ومخضها استخراج الزبد من اللبن بتحريكها (وانظر جامع الاصول: ۶/۵۱۶).

۲ ) ارشادالساري: ۱۱/۴۶۷).

۳ ) فتح الباري: ۹/ ۳۴۰).

۴ ) ارشادالساري: ۱۱/ ۱۷۵).

۵ ) فتح الباري: ۹/ ۳۴۱).

..اراحة» معنی ده دشپې په وخت کښې څناور راوستل، «نعماء» د «انعام» مفرد دې . څناورو اواوښ وغیره ته وئیلې شی . «ثریا» ډیر . کثیر ، بعضو نسخوکښې «نعما» په کسره دنون ده ، د «نعمة» جمع ده . یعنی ماته ئې ډیر نعمتونه راکړی دی (۱) د «رائحة» نه دشپې په وخت کښې ر اتلونکی څناور مراد دی.

**قوله:** وَقَالَ كُلِي أُمَّ زَرْعٍ وَمِيرِي أَهْلَكِ: وې وئیل ، ام زرع ته هم اوخوره او خپلې سخرکنئ ته ئې هم واستوه.

«میری» دامر حاضر مونث صیغه ده. «مار (ض) میرا» داهل وعیال نان نفقه راوړل.
مطلب دادې چه عموماً خاوند دا نه خوښوی چه دده ښځه دې دده دکور سامان خپل دمور پلار کور ته یوسی. لیکن بل خاوند ئې دومره فراخدل ووچه پخپله هم خوره او خپل مور پلار کره هم اولیږه.

**قوله:** قَالَتْ فَلَوْ جَمَعْتُ كُلَّ شَيْءٍ أَعْطَانِيهِ مَا بَلَغَ أَصْغَرَ آنِيَةِ أَبِي زَرْعٍ: ام زرع اووئیل چه دې دویم خاوند ماته څه راکړل که هغه ټول څه راجمع کړم نودا دابو زرع دیو وړوکی لوښي ته هم نه رسی. (دابو زرع خو خبره څه بله وه).
(دا قصه د آورولونه پس ) حضرت نبی کریم ﷺ حضرت عائشه رضي الله عنها ته اوفرمائیل چه څه ستا دپاره داسې یم لکه څنګه چه ام زرع دپاره ابو زرع وو. او په دې کښې څه شك دې بلکه حضرت نبی ﷺ خو د حضرت عائشه دپاره ددې هم زیات ثابت شوې دې.

دزبیربن بکار او طبرانی روایت کښې دومره اضافه دا هم ده چه «الا انه طلقها ولا اطلقك» ابو زرع خو ام زرع ته طلاق ورکړې وو لیکن څه به طلاق ورنکړم. (۲)

**قوله:** قَالَ أَبُو عَبْدِ اللَّهِ قَالَ سَعِيدُ بْنُ سَلَمَةَ عَنْ هِشَامٍ وَلَا تُعَشِّشُ بَيْتَنَا تَعْشِيشًا قَالَ أَبُو عَبْدِ اللَّهِ وَقَالَ بَعْضُهُمْ فَأَتَقَمَّحُ بِالْمِيمِ وَهَذَا أَصَحُّ: ابوعبدالله دامام بخاری رحمه الله کنیت دې ، هغوی دسعید بن سلمه بن حسام مدنی دتعلیق ذکر کړې دې. د سعید بن سلمه د صحیح بخاری په روایت کښې صرف هم دا یو تعلیق دې (۳) هغوی مذکوره سند سره دهشام نه دجاریه ابی زرع وصف کښې د «ولا تملا» په ځائې د «تعیشش» الفاظ نقل کړې شوی دی.

«تعیش» باب تفعیل نه د مونث صیغه ده. د «عشش الطائر» معنی د مرغو ژاله جوړول ، د «ولا تعشش بیتنا تعشیشا» معنی ده هغه خمونږ په کور کښې ژاله نه جوړوی ، ددې دوه مطلبونه کیدیشی ، یو دا چه هغه خمونږ په کور کښې داسې څسرې نه کوی چه دخمونږ کور

---

۱ ) فتح الباری: ۹/۴۴۲)
۲ ) فتح الباری: ۹/۳۴۳ ، وارشادالساری: ۱۱/۴۷۷).
۳ ) فتح الباری: ۹/۳۴۳).

د مرغئ د ژالې په شان معلوم شي ،بلکه کور لره صفا ساتي ، او دويم مطلب داکيدېشي چەهغه خمونږ په کور کښې دخان دپاره ژاله نه جوړوي چه په دې کښې زنا اوکړي اوبچي ترې پيدا شي ، لکه څنګه چه په ژاله کښې بچي وي بلکه هغه يوضعيفه وينځه ده او بدکاره او زناکاره نه ده.

حافظ ابن حجر رحمه الله «ولا تغششْ» دغين معجمه سره نقل کړې دې ،چه د «غش» نه ماخوذ دې ، اوددې معنى ده کوټهاود خالص ضد دې ، اوپه دې صورت کښې مطلب واضح شو چه هغه خمونږ په کور کښې د کوټې او خيانت نه کار نه اخلي.(۱)

[۴۸۹۴] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا هِشَامٌ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنْ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ الْحَبَشُ يَلْعَبُونَ بِحِرَابِهِمْ فَسَتَرَنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَنَا أَنْظُرُ فَمَا زِلْتُ أَنْظُرُ حَتَّى كُنْتُ أَنَا أَنْصَرِفُ فَاقْدُرُوا قَدْرَ الْجَارِيَةِ الْحَدِيثَةِ السِّنِّ تَسْمَعُ اللَّهْوَ [ر:۴۴۳].

حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائى چه حبشيانو خپلو نيزو سره لوبې کولې ، حضرت نبى کريم ﷺ خه پټه کړم او ما کتل ، ما برابرکتل تر دې پورې چهخه پخپله واپس شوم،او اندازه اولګوئی ددې جينئ کم عمرى ،او دلوبو چه ډيرهدلوبو شوقى ده.

«حراب: د: حربة» جمع ده ،نيزې ته وائى ، د احديث ماقبل ډير ځل تير شوې دې ، په دې خائې دا د «حسن المعاشرت مع الاهل» لاندې راوړې شو ، يوکم عمره جينئ دلوبو څومره شوقې وى ، ظاهردى چه هغې کافي وخته پورې لوبې کتلې ، دحضرت عائشه رضي الله عنها عمر تقريبا په دې وخت کښې پنځلس کاله وو ، او حضرت نبى کريم ﷺ په حفاظت کښې ئې لوبې کتلې او ترکومې چه پخپله اخوا نه شوه نو حضرت نبى کريم ﷺ هغه اخوا نه کړه. ښځه اجنبى سړى ته دشهوت نه بغير کتلې شي، (۲)

## ۷۳=باب مَوْعِظَةِ الرَّجُلِ ابْنَتَهُ لِحَالِ زَوْجِهَا

[۴۸۹۵] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنْ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي ثَوْرٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ لَمْ أَزَلْ حَرِيصًا عَلَى أَنْ أَسْأَلَ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ عَنْ الْمَرْأَتَيْنِ مِنْ أَزْوَاجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اللَّتَيْنِ قَالَ اللَّهُ تَعَالَى إِنْ تَتُوبَا إِلَى اللَّهِ فَقَدْ صَغَتْ قُلُوبُكُمَا حَتَّى حَجَّ وَحَجَجْتُ مَعَهُ وَعَدَلَ وَعَدَلْتُ مَعَهُ بِإِدَاوَةٍ فَتَبَرَّزَ ثُمَّ جَاءَ فَسَكَبْتُ عَلَى يَدَيْهِ مِنْهَا فَتَوَضَّأَ فَقُلْتُ لَهُ يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ مَنْ الْمَرْأَتَانِ مِنْ أَزْوَاجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اللَّتَانِ قَالَ اللَّهُ تَعَالَى إِنْ تَتُوبَا إِلَى اللَّهِ فَقَدْ صَغَتْ قُلُوبُكُمَا قَالَ وَاعَجَبًا لَكَ يَا ابْنَ عَبَّاسٍ هُمَا عَائِشَةُ وَحَفْصَةُ ثُمَّ اسْتَقْبَلَ عُمَرُ الْحَدِيثَ يَسُوقُهُ قَالَ كُنْتُ أَنَا وَجَارٌ لِي مِنْ الْأَنْصَارِ فِي بَنِي أُمَيَّةَ بْنِ زَيْدٍ وَهُمْ مِنْ عَوَالِي الْمَدِينَةِ وَكُنَّا نَتَنَاوَبُ

---

۱) فتح البارى: ۹/۳۳۹).

۲) اوګورئ الهدايه . کتاب الكراهه : ۴/۴۶۰).

النُّزُولَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيَنْزِلُ يَوْمًا وَأَنْزِلُ يَوْمًا فَإِذَا نَزَلْتُ جِئْتُهُ بِمَا حَدَثَ مِنْ خَبَرِ ذَلِكَ الْيَوْمِ مِنَ الْوَحْيِ أَوْ غَيْرِهِ وَإِذَا نَزَلَ فَعَلَ مِثْلَ ذَلِكَ وَكُنَّا مَعْشَرَ قُرَيْشٍ نَغْلِبُ النِّسَاءَ فَلَمَّا قَدِمْنَا عَلَى الْأَنْصَارِ إِذَا قَوْمٌ تَغْلِبُهُمْ نِسَاؤُهُمْ فَطَفِقَ نِسَاؤُنَا يَأْخُذْنَ مِنْ أَدَبِ نِسَاءِ الْأَنْصَارِ فَصَخِبْتُ عَلَى امْرَأَتِي فَرَاجَعَتْنِي فَأَنْكَرْتُ أَنْ تُرَاجِعَنِي قَالَتْ وَلِمَ تُنْكِرُ أَنْ أُرَاجِعَكَ فَوَاللّٰهِ إِنَّ أَزْوَاجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيُرَاجِعْنَهُ وَإِنَّ إِحْدَاهُنَّ لَتَهْجُرُهُ الْيَوْمَ حَتَّى اللَّيْلِ فَأَفْزَعَنِي ذَلِكَ وَقُلْتُ لَهَا قَدْ خَابَ مَنْ فَعَلَ ذَلِكِ مِنْهُنَّ ثُمَّ جَمَعْتُ عَلَيَّ ثِيَابِي فَنَزَلْتُ فَدَخَلْتُ عَلَى حَفْصَةَ فَقُلْتُ لَهَا أَيْ حَفْصَةُ أَتُغَاضِبُ إِحْدَاكُنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْيَوْمَ حَتَّى اللَّيْلِ قَالَتْ نَعَمْ فَقُلْتُ قَدْ خِبْتِ وَخَسِرْتِ أَفَتَأْمَنِينَ أَنْ يَغْضَبَ اللّٰهُ لِغَضَبِ رَسُولِهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَتَهْلِكِي لَا تَسْتَكْثِرِي النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَا تُرَاجِعِيهِ فِي شَيْءٍ وَلَا تَهْجُرِيهِ وَسَلِينِي مَا بَدَا لَكِ وَلَا يَغُرَّنَّكِ أَنْ كَانَتْ جَارَتُكِ أَوْضَأَ مِنْكِ وَأَحَبَّ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُرِيدُ عَائِشَةَ قَالَ عُمَرُ وَكُنَّا قَدْ تَحَدَّثْنَا أَنَّ غَسَّانَ تُنْعِلُ الْخَيْلَ لِغَزْوِنَا فَنَزَلَ صَاحِبِي الْأَنْصَارِيُّ يَوْمَ نَوْبَتِهِ فَرَجَعَ إِلَيْنَا عِشَاءً فَضَرَبَ بَابِي ضَرْبًا شَدِيدًا وَقَالَ أَثَمَّ هُوَ فَفَزِعْتُ فَخَرَجْتُ إِلَيْهِ فَقَالَ قَدْ حَدَثَ الْيَوْمَ أَمْرٌ عَظِيمٌ قُلْتُ مَا هُوَ أَجَاءَ غَسَّانُ قَالَ لَا بَلْ أَعْظَمُ مِنْ ذَلِكَ وَأَهْوَلُ طَلَّقَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نِسَاءَهُ وَقَالَ عُبَيْدُ بْنُ حُنَيْنٍ سَمِعَ ابْنَ عَبَّاسٍ عَنْ عُمَرَ فَقَالَ اعْتَزَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَزْوَاجَهُ فَقُلْتُ خَابَتْ حَفْصَةُ وَخَسِرَتْ قَدْ كُنْتُ أَظُنُّ هَذَا يُوشِكُ أَنْ يَكُونَ فَجَمَعْتُ عَلَيَّ ثِيَابِي فَصَلَّيْتُ صَلَاةَ الْفَجْرِ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَدَخَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَشْرُبَةً لَهُ فَاعْتَزَلَ فِيهَا وَدَخَلْتُ عَلَى حَفْصَةَ فَإِذَا هِيَ تَبْكِي فَقُلْتُ مَا يُبْكِيكِ أَلَمْ أَكُنْ حَذَّرْتُكِ هَذَا أَطَلَّقَكُنَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ لَا أَدْرِي هَا هُوَ ذَا مُعْتَزِلٌ فِي الْمَشْرُبَةِ فَخَرَجْتُ فَجِئْتُ إِلَى الْمِنْبَرِ فَإِذَا حَوْلَهُ رَهْطٌ يَبْكِي بَعْضُهُمْ فَجَلَسْتُ مَعَهُمْ قَلِيلًا ثُمَّ غَلَبَنِي مَا أَجِدُ فَجِئْتُ الْمَشْرُبَةَ الَّتِي فِيهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ لِغُلَامٍ لَهُ أَسْوَدَ اسْتَأْذِنْ لِعُمَرَ فَدَخَلَ الْغُلَامُ فَكَلَّمَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ رَجَعَ فَقَالَ كَلَّمْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَذَكَرْتُكَ لَهُ فَصَمَتَ فَانْصَرَفْتُ حَتَّى جَلَسْتُ مَعَ الرَّهْطِ الَّذِينَ عِنْدَ الْمِنْبَرِ ثُمَّ غَلَبَنِي مَا أَجِدُ فَجِئْتُ فَقُلْتُ لِلْغُلَامِ اسْتَأْذِنْ لِعُمَرَ فَدَخَلَ ثُمَّ رَجَعَ فَقَالَ قَدْ ذَكَرْتُكَ لَهُ فَصَمَتَ فَرَجَعْتُ فَجَلَسْتُ مَعَ الرَّهْطِ الَّذِينَ عِنْدَ الْمِنْبَرِ ثُمَّ غَلَبَنِي مَا أَجِدُ فَجِئْتُ الْغُلَامَ فَقُلْتُ اسْتَأْذِنْ لِعُمَرَ فَدَخَلَ ثُمَّ رَجَعَ إِلَيَّ فَقَالَ قَدْ ذَكَرْتُكَ لَهُ فَصَمَتَ فَلَمَّا وَلَّيْتُ مُنْصَرِفًا قَالَ إِذَا الْغُلَامُ يَدْعُونِي فَقَالَ قَدْ أَذِنَ لَكَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَدَخَلْتُ عَلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَإِذَا هُوَ مُضْطَجِعٌ عَلَى رِمَالِ حَصِيرٍ لَيْسَ بَيْنَهُ وَبَيْنَهُ فِرَاشٌ قَدْ أَثَّرَ الرِّمَالُ بِجَنْبِهِ مُتَّكِئًا عَلَى وِسَادَةٍ مِنْ أَدَمٍ حَشْوُهَا لِيفٌ فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ ثُمَّ قُلْتُ وَأَنَا قَائِمٌ يَا رَسُولَ اللّٰهِ أَطَلَّقْتَ نِسَاءَكَ فَرَفَعَ إِلَيَّ بَصَرَهُ فَقَالَ لَا فَقُلْتُ اللّٰهُ أَكْبَرُ ثُمَّ قُلْتُ وَأَنَا قَائِمٌ أَسْتَأْنِسُ

يَا رَسُولَ اللّٰهِ لَوْ رَأَيْتَنِي وَكُنَّا مَعْشَرَ قُرَيْشٍ نَغْلِبُ النِّسَاءَ فَلَمَّا قَدِمْنَا الْمَدِينَةَ اِذَا قَوْمٌ تَغْلِبُهُمْ نِسَاؤُهُمْ فَتَبَسَّمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ لَوْ رَأَيْتَنِي وَدَخَلْتُ عَلٰى حَفْصَةَ فَقُلْتُ لَهَا لَا يَغُرَّنَّكِ اِنْ كَانَتْ جَارَتُكِ اَوْضَأَ مِنْكِ وَاَحَبَّ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُرِيدُ عَائِشَةَ فَتَبَسَّمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَبَسُّمَةً اُخْرٰى فَجَلَسْتُ حِينَ رَأَيْتُهُ تَبَسَّمَ فَرَفَعْتُ بَصَرِي فِي بَيْتِهِ فَوَاللّٰهِ مَا رَأَيْتُ فِي بَيْتِهِ شَيْئًا يَرُدُّ الْبَصَرَ غَيْرَ اَهَبَةٍ ثَلَاثَةٍ فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ ادْعُ اللّٰهَ فَلْيُوَسِّعْ عَلٰى اُمَّتِكَ فَاِنَّ فَارِسَ وَالرُّومَ قَدْ وُسِّعَ عَلَيْهِمْ وَاُعْطُوا الدُّنْيَا وَهُمْ لَا يَعْبُدُونَ اللّٰهَ فَجَلَسَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَكَانَ مُتَّكِئًا فَقَالَ اَوَفِي هٰذَا اَنْتَ يَا ابْنَ الْخَطَّابِ اِنَّ اُولٰئِكَ قَوْمٌ عُجِّلُوا طَيِّبَاتِهِمْ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ اسْتَغْفِرْ لِي فَاعْتَزَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نِسَاءَهُ مِنْ اَجْلِ ذٰلِكَ الْحَدِيثِ حِينَ اَفْشَتْهُ حَفْصَةُ اِلٰى عَائِشَةَ تِسْعًا وَعِشْرِينَ لَيْلَةً وَكَانَ قَالَ مَا اَنَا بِدَاخِلٍ عَلَيْهِنَّ شَهْرًا مِنْ شِدَّةِ مَوْجِدَتِهِ عَلَيْهِنَّ حِينَ عَاتَبَهُ اللّٰهُ فَلَمَّا مَضَتْ تِسْعٌ وَعِشْرُونَ لَيْلَةً دَخَلَ عَلٰى عَائِشَةَ فَبَدَاَ بِهَا فَقَالَتْ لَهُ عَائِشَةُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ اِنَّكَ كُنْتَ قَدْ اَقْسَمْتَ اَنْ لَا تَدْخُلَ عَلَيْنَا شَهْرًا وَاِنَّمَا اَصْبَحْتَ مِنْ تِسْعٍ وَعِشْرِينَ لَيْلَةً اَعُدُّهَا عَدًّا فَقَالَ الشَّهْرُ تِسْعٌ وَعِشْرُونَ لَيْلَةً فَكَانَ ذٰلِكَ الشَّهْرُ تِسْعًا وَعِشْرِينَ لَيْلَةً قَالَتْ عَائِشَةُ ثُمَّ اَنْزَلَ اللّٰهُ تَعَالٰى اٰيَةَ التَّخَيُّرِ فَبَدَاَ بِي اَوَّلَ امْرَاَةٍ مِنْ نِسَائِهِ فَاخْتَرْتُهُ ثُمَّ خَيَّرَ نِسَاءَهُ كُلَّهُنَّ فَقُلْنَ مِثْلَ مَا قَالَتْ عَائِشَةُ

دا حديث په كتاب العلم كښې مختصر تير شوې دې ، كتاب المظالم كښې تفصيلاً تير شوې دې او په كتاب التفسير كښې هم تير شوې دې.

حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمائي چه ماته مسلسل دا خواهش كيدو چه د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه نه د حضرت نبى كريم ﷺ د هغه دوو ازواجو متعلق تپوس اوكړم چه د هغوى متعلق الله تعالى په قران كريم كښې ﴿اِنْ تَتُوْبَآ اِلَى اللّٰهِ فَقَدْ صَغَتْ قُلُوْبُكُمَا﴾ ارشاد فرمائيلې دې. تر دې پورې چه حضرت عمر فاروق حج اوكړو او ما هم هغوى سره حج ادا كړو ، واپسئ كښې هغوى په لار كښې د قضائې حاجت د پاره يو طرفته شو. خه هم يو طرفته شوم ،هغوى چه كله د قضائې حاجت نه فارغ شو او راغلل نو ما د لوټې نه هغوى ته په لاسونو اوبه واچولې، او هغوى اودس اوكړو. (په دې موقع) باندې ما هغوى ته اووئيل چه اې امير المومنين په ازواج مطهرات كښې هغه كومې ښځې وې چه د هغوى متعلق الله ﷻ ارشاد فرمائيلې دې چه ﴿اِنْ تَتُوْبَآ اِلَى اللّٰهِ فَقَدْ صَغَتْ قُلُوْبُكُمَا﴾. حضرت عمر فاروق رضي الله عنه اوفرمائيل چه اې ابن عباس رضي الله عنهما تا لره تعجب دې، (چه تا ته دا خبر نه ده معلوم) هغه دواړه حضرت عائشه رضي الله عنها او حضرت حفصه رضي الله عنها وې.

بيا حضرت عمر فاروق رضي الله عنه دا حديث بيان كړو او متوجې شو او وې فرمائيل چه خه او ځما يو انصاري ګاونډې د بنو اميه بن زيد (محله) كښې اوسيدو. بنو اميه د مدينې منورې يو طرفته اوسيدل ، مونږ به حضرت نبى كريم ﷺ لره نمبر په نمبر راتلو ، يو ورځ به هغه راتلو او يو ورځ به خه . كله چه به خه راتلم نو هغه لره به مې د وحى وغيره خبر راوړو. اوكله چه به

هغه راتلو نو داشان به ئې كول. مونږ (په مكه مكرمه كښې) په ښځو باندې غالب وو، بيا چه كله مونږ مدينې منورې ته راغلو نو اومو كتل چه ښځې په سړو باندې غالبې دى، (دهغوى په كټلو سره) د انصارو ښځو عادت خمونږ ښځو هم خپلول‌شروع كړو. يوورځ زه خپلې ښځې ته په غصه شوم نو هغې هم ماته جواب راكړو، ماته ددې راګرزيدل او جواب راكول ښه اونه لګيدل، هغې اوونيل چه په تا باندې دا خبره ولې بدې لګى حالانكه دحضرت نبى كريم ﷺ بيبيانې هم هغوى ته جواب وركوى. په دوى كښې يو (حضرت حفصه رضى ﷞) ده، دحضرت نبى كريم ﷺ سره ټوله ورځ تر شپې پورې خبرې نه كوى. دې‌خبرې څه ډير پريشانه كړم او ما هغې ته اوونيل چه‌په دوى كښې چا هم دا سې اوكړل نو هغه محرومه شوه. بيا ما خپلې جامې راوخستې او مدينې منورې ته راغلم او حضرت حفصه ﷞ لره ورغلم. دهغې نه مې تپوس اوكړو چه ائې حفصه ﷞آيا په تاسو كښې څوك ټوله ورځ حضرت نبى كريم ﷺ لره‌خفه ساتى. وې وئيل چه آو. نو ما اوونيل چه‌بيا خوتاسو نا كامه او نامراده شوئى. آيا ته ددې خبرې نه محفوظ ئې چه دحضرت نبى كريم ﷺ د خفګان په وجه‌الله ﷻ خفه شى‌او ته هلاكه شې؟ګوره دحضرت نبى كريم ﷺ نه ډيره غوښتنه مه كوه اومه هغه ته راګرزه جواب وركړه اومه‌حضرت نبى كريم ﷺ لره پريږده .ستا چه څه ضرورت وى نو هغه خما نه غواړه. او دا خبره‌دې تا په دهوكه كښې وانچوى‌چه ستا بن (دجاره نه مراد بن ده)چه ستا نه زياتې حسينې دى او حضرت‌نبى كريم ﷺ ته ستا نه زياتې خوښې دى ،(رسول الله ﷺ هغوى ته دمحبت په وجه څه نه وائى نو ته هم په غلط فهمۍ كښې مه اوسه) ددوى مراد حضرت عائشه ﷞ وه.

حضرت عمر فاروق ﷜ فرمائى چه‌مونږ خبرې كولې چه غسان نومې بادشاه‌مونږ سره د جنګ كولو دپاره‌پخپلو آسونونعلونه وهى (اوهغوى لره تيارى)خما انصارى ملګرى‌د خپل نمبر په ورځ‌مدينې منورې ته راغلواو دماسختن په وخت كښې مونږ لره راغلواو په زوره زوره ئې دروازه اووهله ،وې وئيل دلته په كور كښې هغه شته دې ؟څه راوتلم‌نو وې وئيل چه نن څو يو لويه حادثه اوشوه ،ما اوونيل چه څه اشو ، آيا غسان راغلو څه ؟وې ونيل چه نه بلكه‌ددې نه هم‌زياته حادثه اوشوه . حضرت نبى كريم ﷺ خپلو ټولو بيبيانو ته طلاق وركړې دې ، ما اوونيل حفصه ناكام او نامراده شوه. خيال راتلو چه‌دا واقعه به نزدې كيږى.
نوما خپلې جامې راواخستې او (مدينې منورې ته راغلم) اوحضرت نبى كريم ﷺ پسې مې دسحر مونځ اوكړو بيا (د مونځ نه پس) حضرت نبى كريم ﷺخپلې بالاخانې ته داخل شواو ګوشه نشين شو.څه حضرت حفصه ﷞ لره راغلم‌او چه اومې كتل نوهغې ژړل ، ما ا وونيل چه ته ولې ژاړې آيا ما ته نه وې ويرولې ، آيا حضرت نبى كريم ﷺ ازواج مطهرات ته طلاق وركړې دې ، هغې اوونيل چه‌پته نشته دې ، حضرت نبى اكرم دلته په كمره كښې ګوشه نشين دې .څه دهغه خانې نه راووتلم او (مسجدنبوى ﷺ ) كښې منبرته راغلم نوددې نه ګير چاپيره‌يو ډله ناسته وه او ددې بعضو كسانو ژړل.څه دوى سره لږساعت‌كښيناستم، بيا په ماباندې خما احساس غالب شو نو څه هغه كمرې طرفته لاړم چه په هغې كښې حضرت نبى كريم ﷺ وو او دحضرت نبى كريم ﷺتور غلام ته مې اوونيل چه‌د حضرت عمر فاروق ﷜ دپاره اجازت اوغواړه . غلام دننه لاړو او حضرت نبى كريم ﷺ سره خبره اوكړه ،

بیاواپس راغلو او وې ونیل چه ما حضرت نبی کریم ﷺ سره خبره ا وکړه اوستاسو ذکر مې اوکړوخوحضرت نبی کریم ﷺ خاموش پاتې شو. نو څه واپس منبرته راغلم او هغه جماعت سره دوباره کیښناستم لیکن ځما احساس بیا په ماباندې غالب شو اوڅه راغلم او غلا م ته مې اونیل د حضرت عمر ﷺ دپاره اجازت اوغواړه. هغه دننه لاړو اوواپس راغلو او وې ونیل چه ما حضرت نبی کریم ﷺ ته ستاسو ذکر اوکړو خو حضرت نبی کریم ﷺ خاموش پاتې شو. بیا واپس راغلم او منبر والوسره کیښناستم لیکن ځما احساس بیا په ما غالب شو. نو څه بیا غلام لره ورغلم اوورته مې اونیل چه دحضرت عمر فاروق ﷺ دپاره اجازت اوغواړه ، هغه دننه لاړو اوواپس راغلو او وې ونیل چه ماحضرت نبی کریم ﷺ ته اوفرمائیل خو هغوی خاموش پاتې شو. هرکله چه څه واپس شوم نو حضرت عمر ﷺ فرمائي چه غلام څه راوبللم اووې ونیل چه حضرت نبی کریم ﷺ تاسو ته اجازت درکړو ،نو څه حضرت نبی کریم ﷺ لره ورغلم نو څه ګورم چه حضرت نبی کریم ﷺ (دکهجورو د پوستکو) جوړ شوی پوزکی باندې ملاست دی ،او ددې پوزکي په مینځ کښې څه بستره نه وه ، د پوزکي پوستکو دحضرت نبی کریم ﷺ په ملامبارکه کښې نښې جوړې کړې وې. دڅمرې په تکیه باندې حضرت نبی کریم ﷺ تکیه لګولې وه چه دهغه د کهجورو پوستکو نه ډکه وه.

نوما حضرت نبی کریم ﷺ ته سلام اوکړواو بیا مې ورته په ولاړه ولاړه اوونیل چه یارسول الله ﷺ آیا تاسو خپلو بیبیانوته طلاق ورکړې دې ؟حضرت نبی کریم ﷺ نظر پورته کړو او وې فرمائیل چه نه. ما اونیل الله اکبر. بیا ما مانوسه کولو دپاره په ولاړه ولاړه اوونیل چه یارسول الله کاش چه تاسو ځما خبرې طرفته التفا ت اوفرمائې. مونږ قریشی خلق به په ښځوباندې غالب وو، کله چه مونږ مدینې منورې ته راغلو نو مونږ اوکتل چه ددې په قوم باندې ددې خائې ښځې غالب دی. ځما په دومره خبره آوریدوسره حضرت نبی کریم ﷺ مسکی شو. بیا ما اوونیل چه څه حضرت حفصه ﷺ لره ورغلم او ما ورته اوونیل چه ته دخپلې بنې ( دجاره نه مراد بن ده) حالت باندې دهوکه مه خوره. چونکه هغه ستانه زیاته حسینه او حضرت نبی کریم ﷺ ته زیاته خوښه ده. دحضرت عمر فاروق ﷺ مراد حضرت عائشه ﷺ وه. نوحضرت نبی کریم ﷺ په دې آوریدو بیا مسکی شو. ما چه کله حضرت نبی کریم ﷺ په خندا اولیدل نو کیښناستم . ماددوی په کمره باندې نظر واچولونو د دریو چمړو نه علاوه په کمره کښې څه داسې څیز نه ووچه نظر پرې واپس شوې وې نوما اوونیل چه یارسو الله ﷺ دالله تعالی نه دعا اوکړئ چه ستاسو په امت باندې فراخی راولی. ځکه چه فارس او روم باندې فراخی شویده. او هغوی ته ددنیا دولت ورکړې شوې دې. حالانکه د الله ﷻ عبادت نه کوی. .حضرت نبی کریم ﷺ تکیه لګولې وه او ځما دخبرې په آوریدو کیښناستل او وې فرمائیل چه:

«أَوَفِي هَذَا أَنْتَ يَا ابْنَ الْخَطَّابِ إِنَّ أُولَئِكَ قَوْمٌ عُجِّلُوا طَيِّبَاتِهِمْ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا»

اې عمر بن الخطاب آیا ته په دې خیال کښې ئې چه بیشکه داسې خلقو کښې چه دوی ته په دنیا کښې ددوی خوښ څیزونه اوښه څیزونه ورکړې شوی دی .

نوما اوونيل چه يارسول الله ﷺ خما دپاره مغفرت اوغواړئ ، ( چه ما داشان نامناسبه درخواست اوكړو) نو حضرت نبى كريم ﷺ دخپلو بيبيانو نه ددې خبرې په وجه چه كوم حضرت حفصه رضي الله عنها دحضرت عائشه رضي الله عنها مخكښې ظاهره كړې وه يو كم ديرش (۲۹) ورځې بيل وو. حضرت نبى كريم ﷺ د خپلو بيبيانوسره د خفګان په وجه فرمائيلى وو " چه زه به يو مياشت پورې دوى لره نه ورځم ".

بيا چه كله يوكم ديرش ورځې تيرې شوې نو حضرت نبى كريم ﷺ حضرت عائشه رضي الله عنها لره راغلو اوددوى نه ئې شروع اوكړه نوحضرت عائشه رضي الله عنها اوفرمائيل چه يارسول الله ﷺ تاسو خو قسم خوړلې وو چه تاسوبه يو مياشت پورې مونږ لره نه راځئ ، اوس خولا يوكم ديرشمه ورځ ده زه ئې شميرم. حضرت نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چه مياشت د يوكم ديرشو ورځو هم وى. هغه مياشت ديوكم ديرشووه.

حضرت عائشه رضي الله عنها اوفرمائيل چه بيا الله ﷻ د تخيير آيت نازل اوفرمائيلو او په خپلو بيبيانوكښې ئې دټولو نه مخكښې زما نه شروع اوكړه. نو ما حضرت نبى كريم ﷺ غوره كړو ، نو بيا حضرت نبى كريم ﷺ خپلو ټولو بيبيانو ته اختيار كړو اوټولو هغه اوونيل چه څه حضرت عائشه رضي الله عنها اونيلى وو.

**قوله:** وَعَدَلَ وَعَدَلْتُ مَعَهُ بِإِدَاوَةٍ فَتَبَرَّزَ: عدل يعنى دوى رضي الله عنه د لارې نه يو طرفته شو. ما هم لوټه واخستله او يو طرفته شوم،دوى د براز دپاره لاړل «تبرز أي خرج وذهب للبراز .اداوة» لوټه.د اوبو لوښې (۱)

په «واعجبا» كښې دوه اقواله دى، يودا چه واعجبا تنوين سره اسم فعل په معنى د «أتعجب» ده لكه «واها» اسم فعل دې په معنى خومره ښكلې دې . دويم قول دادې چه بغير د تنوين نه «واعجبا» دې اصل كښې دا «واعجبى» دې ياء ئې تخفيفًا الف سره بدله كړې ده لكه «والهفا» يا «وأسفا» او ياد «حسرتا» الفاظ. (۲)

علامه زمخشرى فرمائى چه داسې معلوميږى چه حضرت عمر فاروق رضي الله عنه دا الفاظ د ناخوښئ په طوروئيلې دى.دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما سوال دوى ته خوښ نه وو، د ابن شهاب زهرى هم دا خيال دې ، په صحيح مسلم كښې دى «قال الزهرى: والله ما سأله عنه ولم يكتمه» (۳) علامه قرطبى رحمه الله ددې الفاظو نه دناخوښئ دا مفهوم لرې ګڼړى. (۴) او حقيقت هم دادې چه حضرت عمر فاروق رضي الله عنه دا الفاظ د ناخوښئ داظهار دپاره نه وو وئيلى بلكه د تعجب په طور

---

۱ ) واصل تبرزمن البراز وهو موضح ا لخالى البارز غن البيوت ثم اطلق على نفس الفعل (فتح البارى:۳٤۸/۹)

۲ ) ارشادالسارى: ۱۱/ ٤۸۰).

۳ ) صحيح مسلم : ۱/ وفتح البارى: ۳٤۹/۹).

٤ ) فتح البارى: ۳٤۹/۹).

ني ونيلي دى چه ته دومره لوئي عالمې او دا واقعه تاته معلومه نه ده . نو د كتاب التفسير په روايت كښې د حضرت ابن عباس رضي الله عنه قول منقول دې چه هغوى حضرت عمر فاروق رضي الله عنه ته اوونيل «والله ان كنت لأريد أن أسالك عن هذا منذ سنة فما أستطيع هيبة لك» نو حضرت عمر فاروق رضي الله عنه اوفرمائيل چه «فلا تفعل ما ظننت أن عندى من علم فاسالنى فان كان لى علم خبرته خبرك به» (۱) ددې نه معلوميږى چه د حضرت ابن عباس رضي الله عنه سوال په حضرت عمر فاروق رضي الله عنه باندې خراب نه وو لګيدلې.

**قوله:** كُنْتُ أَنَا وَجَارٌ لِي مِنَ الْأَنْصَارِ: د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه د هغه ګاوندى نوم بعضو حضراتو عتبان بن مالك خودلې دې . ليكن حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه د ده نوم اسود بن خولى بن عبدالله دې . (۲)

**قوله:** مِنْ عَوَالِي الْمَدِينَةِ: «عوالى» «عالية» جمع ده ددې نه مدينې ته نزدې مشرق طرفته كلى مراد دى. (۳)

**قوله:** نَتَنَاوَبُ النُّزُولَ: «تناوب» يو څيز نمبر په نمبر كول . نوبت په نوبت كول.

**قوله:** فَصَخِبْتُ عَلَى امْرَأَتِي: «صخب (س) صخبا» چغې وهل . په بعضو نسخوكښې «سخبت» سين سره دې . د دواړو يو معنى ده.(۴)

**قوله:** لا تستكثرى النبى صلى الله عليه وسلم اى لا تطلبى منه الكثير:(۵): «غسان» قبيله غسان مراد دې . چه ددې د سردار اوبادشاه نو حارث بن ابى ثمر وو. (۶)

«تنعل الخيل» «تنعل» باب افعال نه دې . آسونو ته نعلونه لګول.

«أثم هو» همزه استفهاميه دې . «ثم» ظرف مكان دې . يعنى آيا په كور كښې حضرت عمر فاروق رضي الله عنه شته دې.

«يوشك» افعال مقاربه كښې دې . «جَمَعْتُ عَلَيَّ ثِيَابِي» ما خپلې جامې انغښتې . جمع مې كړې . په كوركښې سړى سره مختصر لباس وى . څادر وغيره ايږدى. مطلب دادې چه څادر وغيره ما واغوستلو او روان شوم.

«مَشْرُبَةٍ» كمره . بالا خانه «لِغُلَامٍ لَهُ أَسْوَدَ» ددې غلام نوم رباح ليكلې شويدې . (۷)

---

۱) اوګورئ صحيح بخارى . كتاب التفسير . سورة التحريم : ۱۸٦٦/٤ . رقم الحديث: ٤٦۲۹).
۲) فتح البارى: ۳۵۰/۹).
۳) فتح البارى: ۳۵۰/۳).
٤) فتح البارى: ۳۵۱/۹).
۵) ارشادالسارى: ٤۸۱/۱۱).
٦) ارشاد السارى: ٤۸۱/۱۱).
۷) فتح البارى: ۳۵۸/۹).

**قوله:** فَإِذَا هُوَ مُضْطَجِعٌ عَلَى رِمَالِ حَصِيرٍ: يعني په جوړ شوى پوزكى باندې ملاست وو، هيڅ بستره پرې نه وه، ددې وجې پوزكى د حضرت نبى كريم ﷺ په ملا مباركه كښې نښې جوړې كړې وې.

په دې حديث كښې د «رمال» الفاظ تشريح كوى او علامه ابن اثير ليكى چه:

«الرمال ما رمل اى نسج يقال رمل الحصير وأرمله فهو مرمول ومرمل، قال الزمخشري: ونظيره الحطام والركام لما حطم وركم وقال غيره: الرمال جمع رمل بمعنى مرمول كخلق الله بمعنى مخلوقه والمراد انه كان السرير قد نسج وجهه بالسعف ولم يكن على السرير وطاء سوى الحصير» (١)

او حافظ ابن حجر ليكى، «رمال: بكسر الراء وقد تضم.. تقول رملت الحصير وأرملته اذا نسجته وحصير مرمول أى منسوج والمراد هنا ان سريره كان مرمولا بما يرمل به الحصير» (٢)

**قوله:** وِسَادَةٍ مِنْ أَدَمٍ حَشْوُهَا لِيفٌ: د چمړې تكيه چه په هغې كښې دننه دكهجورو پوستكى وى. «ليف» د كهجورې پوستكى «حشو» نه دتكيه كپړه كښې چه كوم اضافى څيز مالوچ وغيره ډكوى هغه ترې مراد دې.

**قوله:** فَقُلْتُ اللهُ أَكْبَرُ: دا وئيل يا خوتعجب په طور وو، دامام بخارى رحمه الله هم دا رائې ده او هغوى ابواب الادب ص٩١٨ باندې يو ترجمه قائم كړې ده، دهغې نه ددې وضاحت كيږى.(٣)

دبعضو شراح خيال دې چه حضرت عمر فاروق رضى الله عنه دا الفاظ په طور دشكريه ادا كړل چه حضرت محمد ﷺ طلاق نه دې وركړې. دا دالله تعالى لوئې كرم دې. كه تاسو طلاق وركړې وې نو دحضرت عمر فاروق رضى الله عنه لور ته به هم طلاق شوې وې. (۴)

**قوله:** وقال عبيد بن حنين سمع ابن عباس عن عمر فقال اعتزل النبى ﷺ ازواجه: دا ئې په مينځ كښې د عبيد بن حنين تعليق ذكر كړو، په دې تعليق كښې د «طلق» په ځائې د «اعتزل» كلمه ده. كتاب التفسير كښې دې تعليق لره امام موصوف موصولاً نقل كړې دې. (۵)

مخكښې حديث «فقلت خابت حفصه وخسرت ....» دا سند باب سره متعلق دې او موصول دې. د مخكښې حديث تسلسل دې. په مينځ كښې دعبيد بن حنين جمله معترضه په طور ذكر شوې ده. ددې تعليق ذكركولو سره دامام بخارى رحمه الله مقصد دادې چه د «طلق»

---

١) اوګورئ النهايه لابن الاثير: ٢/٢۶۵).
٢) فتح البارى: ٩/٣٥٨).
٣) اوګورئ صحيح بخارى. كتاب الادب باب التكبير والتسبيح عندالتعجب ).
٤) ٩/٣٥٩).
۵) اوګورئ صحيح بخارى كتاب التفسير سوره التحريم: ۴/١٨۶۶، رقم الحديث: ۴۶٢٩).



په لفظ باندې تول روايات متفق نه دی ، په بعضو كښې «طلق» اوبعضو كښې «اعتزل» لفظ دې. كه د «طلق» لفظ لره درست تسليم كړې شي نوپه دې صورت كښې به ددې انصارى باره كښې وئيلې شى چه دې د منافقانو د پروپيګنډې نه متاثر شوې وو. حضرت نبى كريم ﷺ ګوشه نشين شوې وو ،اهل نفاق دا بې سره بې پښو خبره مشهوره كړه چه حضرت نبى كريم ﷺ طلاق وركړې ده او خلقودا نقل كړه. (١)

**قوله: ثُمَّ قُلْتُ وَأَنَا قَائِمٌ أَسْتَأْنِسُ:** يعنى بيا ماوونيل چه ، په دې حال كښې چه څه ولاړ اوم مانوس كيدم ،«أَسْتَأْنِسُ» دا ماقبل نه حال دې ، علامه قرطبى رحمه الله فرمائى. چه دامحل استفهام دې ، اصل كښې «أَأَسْتَأْنِسُ» دې يوهمزه تخفيفًا حذف كړې شوې دې . يعنى آيا څه مانوس كيدې شم اوخبره كولې شم ،ليكن ړومبئ معنى ظاهر د ه. (٢)

**قوله: غَيْرَ أَهَبَةٍ ثَلَاثَةٍ:** «أهبة» دهمزه اوباء فتحه سره» دا «اهاب» نه خلاف قياس جمع دې،(٣) چمړې ته وئيلې شى.

**قوله: من شدة موجدته عليهن: موجدة:** غضب ، غصه. ددې حديث به آخر كښې دى چه حضرت نبى كريم ﷺ دهغه خبرې په وجه خفه شو او دبيبيانو نه بيل شوې وو چه كومه خبره حضرت حفصه رضي الله عنها حضرت عائشه رضي الله عنها په مخكښې ظاهر كړې وه ، هغه څه خبره وه؟ ددې متعلق تفصيل د سورة تحريم په تفسير كښې تير شوې دې. (۴) هغه ځائې كښې دې اوكتلې شى.

دحديث مناسبت ترجمة الباب سره واضح دې چه دې كښې حضرت عمرفاروق رضي الله عنه خپلې لور حضرت حفصه رضي الله عنها ته نصيحت كړې وو.

## ٨٣ = بَاب صَوْمِ الْمَرْأَةِ بِإِذْنِ زَوْجِهَا تَطَوُّعًا

[۴٨٩٦] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنْ هَمَّامِ بْنِ مُنَبِّهٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَصُومُ الْمَرْأَةُ وَبَعْلُهَا شَاهِدٌ إِلَّا بِإِذْنِهِ [ر:۴٨٩٩]

ښځه د خاوند داجازت نه بغير نفلى روژه نيولې شى ،امام بخارى رحمه الله په ترجمة الباب كښې هيڅ حكم نه دې لګولې ،البته ددې لاندې چه كوم حديث ذكر كړې دې ،دهغې نه عدم جواز معلوميږى .

دتطوع قيد ئې په دې وجه اولګولوچه په فرض روژه كښې د خاوند اجازت ضرورى نه وى ، نفلى روژه كښې البته ښځه ددې مكلف ده چه هغه د خاوند نه اجازت واخلى او روژه اونيسى(٥)

---

١ ) فتح البارى: ٣٥٥/٩).
٢ ) فتح البارى: ٣٥٩/٩).
٣ ) فتح البارى: ٣۶٠/٩).
۴ ) اوګورئ كشف البارى: كتاب التفسير صفحه: ۶٨۴).
٥ ) الابواب والتراجم: ٧۴/٢).

دخاوند داجازت نه بغیر که ښځه نفلي روژه اونیسي نو اکثرو دې ته حرام اوبعضو ورته مکروه وئیلي ده. امام نووي رحمه الله دحرمت قول ته او مهلب مکروه تنزیهي قول ته ترجیح ورکړې ده. البته دروژه نیولو نه پس روژه معتبره اوصحیح وي. لیکن ښځه به ګنهګاره وي او ددې د قبولیت معامله الله ﷻ سره ده. (۱)

په سند کښې عبدالله نه عبدالله بن مبارك مراد دې ، حدیث کښې دی که دښځې خاوند حاضر وي نو هغه به روژه نه نیسي خو دده نه به اجازت اخلي.

البته که خاوند په سفر باندې دې یا داشان بیمار دې چه هغه دښځې نه استمتاع نشي حاصلولې نو په داسې صورت کښې هغه روژه نیولې شي، که هغه دسفرنه راشي اوښځه روژه داره وه نوهغه دده دپاره روژه فاسدولې شي اوپه دې کښې هیڅ قسمه کراهت نشته دې.(۲)

## ۸۵=بَاب إِذَا بَاتَتْ الْمَرْأَةُ مُهَاجِرَةً فِرَاشَ زَوْجِهَا

[۴۸۹۷] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عَدِيٍّ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ سُلَيْمَانَ عَنْ أَبِي حَازِمٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا دَعَا الرَّجُلُ امْرَأَتَهُ إِلَى فِرَاشِهِ فَأَبَتْ أَنْ تَجِيءَ لَعَنَتْهَا الْمَلَائِكَةُ حَتَّى تُصْبِحَ

[۴۸۹۸] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَرْعَرَةَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ زُرَارَةَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا بَاتَتْ الْمَرْأَةُ مُهَاجِرَةً فِرَاشَ زَوْجِهَا لَعَنَتْهَا الْمَلَائِكَةُ حَتَّى تَرْجِعَ [ر: ۳۰٦۵].

مطلب دادې چه خاوند کله ښځه د جماع دپاره رابلي او هغه بغیر د څه عذر نه نه راځي نوملائك په دې باندې ترصبا پورې لعنت وائي ،او خاوند چه د خفګان په حالت کښې شپه تیره کړي.

په دویم روایت کښې دی چه فرښتې په دې باندې لعنت وائي تر دې پورې چه هغه ښځه (خاوند لره دپرېښودلو نه) رجوع اوکړي.

## ۸٦=بَاب لَا تَأْذَنِ الْمَرْأَةُ فِي بَيْتِ زَوْجِهَا لِأَحَدٍ إِلَّا بِإِذْنِهِ

امام بخاري رحمه الله دا وئیل غواړي چه ښځې لره دا جائز نه دی چه دخاوند د اجازت نه بغیر دخپل خاوند کور ته څوك راولي ،که هغه ددې رشته دارولې نه وي.

دحضرات مالکیه په نیز دښځې پلار او رور ددې کور ته داخلیدیشي بغیر داجازت نه. ددوی دپاره اجازت ضروري نه دې. هغه په دلیل کښې د صلة الرحم روایات پیش کوي. وائي چه ددوی په منع کولو سره به قطع رحمي لازم رازي او حالانکه صله رحمي واجب او ضروري ده. (۳)

---

۱) فتح الباري: ۳٦۹/۹).
۲) فتح الباري: ۳٦۹/۹).
۳) الابواب والتراجم: ۷۴/۲).

دحضرات حنفيه په دې مسئله كښې درې اقواله دى.

① يوقول د مطلقًا ممانعت دې يعنى هيڅوك هم دخاوند د اجازت نه بغير كور ته راوستل صحيح نه دى.

②دويم قول دادې چه درشته دارانو دخول بغير د اجازت نه ممنوع نه دى ، البته ډير ساعت ناستې او اوږدې خبرې اترې كول ممنوع دى.

③اودريم قول دادې چه د ښځې مور پلار د دې دخاوند داجازت نه بغير په هفته كښې يوورځ راتلې شى،خاوند ته حق نشته چه دوى منع كړى. داشان كه مور پلار كره ښځه په هفته كښې يو ځل تلل غواړى نودې دپاره هم اجازت دې ، البته نورو رشته داروكره په كال كښې يو ځل اجازت دې دخاوند د اجازت نه بغير . (۱)

[۴۸۹۹] حَدَّثَنَا اَبُوالْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ حَدَّثَنَا اَبُوالزِّنَادِ عَنْ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَحِلُّ لِلْمَرْاَةِ اَنْ تَصُومَ وَزَوْجُهَا شَاهِدٌ اِلَّا بِاِذْنِهِ وَلَا تَاْذَنَ فِي بَيْتِهِ اِلَّا بِاِذْنِهِ وَمَا اَنْفَقَتْ مِنْ نَفَقَةٍ عَنْ غَيْرِ اَمْرِهِ فَاِنَّهُ يُؤَدَّى اِلَيْهِ شَطْرُهُ وَرَوَاهُ اَبُوالزِّنَادِ اَيْضًا عَنْ مُوسَى عَنْ اَبِيهِ عَنْ اَبِي هُرَيْرَةَ فِي الصَّوْمِ

**قوله: وَمَا اَنْفَقَتْ مِنْ نَفَقَةٍ عَنْ غَيْرِ اَمْرِهِ فَاِنَّهُ يُؤَدَّى اِلَيْهِ شَطْرُهُ:** ښځې كه د خاوند د اجازت نه بغير دده دمال او ګټې څخه خرچ كړل نو دده نيمه حصه به خاوندته ملاويږى. يعنى د نيمې ثواب بهخاوند ته ملاويږى.

مطلب دادې چه خاوندمالك دې ، ، دملك په وجه ده ته به نيمه حصه ثواب ملاويږى ، او كه ښځې په انفاق باندې خرچ كړو نو دانفاق په وجه به نيمه حصه ثواب ښځې ته ملاويږى.

ليكن دا په دې صورت كښې دى چه خاوند ورته ددومره مقدار اجازت نه وو كړې صراحتًا ليكن عرفًا دومره مقدار دخرچ كولو ښځه مجاز وى. يا دادى چه دخرچ كولو په وخت كښې ئې صراحتًا اجازت نه وى وركړې ، ليكن سابق نه ئې دې ته اجازت وركړې وى . نوداسې صورت كښې كه ښځه دمال دومره حصه دخير په لار كښې خرچ كړى نو ددې ثواب به نيم خاوند ته ملاويږى. ځكه چه هغه دده ګټه وه، اوچونكه انفاق ښځې كړې دې نو ددې وجې نيم ثواب به ښځې ته ملاويږى حديث كښې دى چه«عن غيرامره» نه «عن غير امره الصريح» مراد دى يعنى صريح اجازت دانفاق په وخت كښې نه وى ، او «امر صريح» مخكښې اجازت يا عرفى اجازت منافى نه وى.

ليكن كه ښځه دخاوند په مال كښې دده داجازت نه بغير دومره مقدار خرچ كړى چه دې ته دهغې عرفًا اجازت نه وو او نه ورته خاوند د سابق نه اجازت وركړې وو نو داجائز نه دى ، داسې صورت كښې به ښځې ته ثواب نه ملاويږى بلكه ګنهګاره به وى. (۲)

---

۱) مذكوره درې واړه اقوال اوګورئ: الهدايهة ،كتاب الطلاق ،باب ا لنفقه : ۴۱۸/۲ ، صاحب هدايه آخرى قول لره مفتى به ګڼړلې دې).

۲) اوګورئ فتح ا لبارى:۳۷۰/۹).

**قوله:** وَرَوَاهُ أَبُو الزِّنَادِ أَيْضًا عَنْ مُوسَى عَنْ أَبِيهِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ فِي الصَّوْمِ

مقصد دادي چه روايت باب چه د ((شعيب عن ابي الزناد عن الاعرج)) د طريق نه دې، په دريو احكامو باندې مشتمل دې. ① اذن زوج نه بغير دصوم حكم ② اذن زوج نه بغير د دخول بيت حكم ③ او امر صريح نه بغير دانفاق حكم . امام بخاري رحمه الله مذكوره تعليق لره ذكركړو او اشاره ئې اوكړو چه ابو الزناد يو بل سند ((عن موسى عن ابيه)) طريق سره هم يو روايت نقل كړې او په دې كښې درې احكامونه صرف دصوم والا حكم مذكور دې چه ښځه دخاوند داجازت نه بغير روژه نشي نيولې .

په تعليق كښې موسى نه موسى بن ابى عثمان مراد دې . دده دپلار نوم تبان يا عمران دې . او دده كنيت عثمان دې ، بخاري كښې دده صرف يو تعليق دې ، په بل ځائې كښې دده ذكر نشته دې. (۱)

دا تعليق امام احمد اونسائي وغيره موصولاً نقل كړې دې. (۲)

## باب

[۴۹۰۰] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا اسْمَاعِيلُ اَخْبَرَنَا التَّيْمِيُّ عَنْ اَبِي عُثْمَانَ عَنْ اُسَامَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ قُمْتُ عَلَى بَابِ الْجَنَّةِ فَكَانَ عَامَّةَ مَنْ دَخَلَهَا الْمَسَاكِينُ وَاَصْحَابُ الْجَدِّ مَحْبُوسُونَ غَيْرَ اَنَّ اَصْحَابَ النَّارِ قَدْ اُمِرَ بِهِمْ اِلَى النَّارِ وَقُمْتُ عَلَى بَابِ النَّارِ فَاِذَا عَامَّةُ مَنْ دَخَلَهَا النِّسَاءُ [ر: ۶۱۸۱].

حضرت نبى كريم صلى الله عليه وسلم فرمائي چه زه به دجنت په دروازه باندې ولاړ يم او عام طور به جنت كښې داخليدو والا مساكين وى ، او اغنياء او مالدار په حساب كتاب كښې ګير وى . ليكن داصحاب النار دپاره به نار ته د بوتلو حكم شوې وى . اوځه به د دوزخ په دروازه ولاړ يم او په دوزخ كښې به عام طور سره ښځې داخليږي.

د ترمذى په يو روايت كښې راځى چه فقراء به نصف يوم مخكښې د اغنياء نه جنت ته داخليږي. او دآخرت ورځ زرو كالو ده ، لهذا هغوى به پنځه سوه كاله مخكښې جنت ته داخليږي. (۳)

سفيان بن عيينه نه نقل شوى دى چه په اصل كښې اغنياء به خپلې دروازې پريږدى او غلطئ سره به د فقراء دروازې ته راشى . دوى به بيا خپلې دروازې ته بوتلې شى . دا فاصله به پنځه سوه كاله وى . ددې وجې به جنت ته داخليدو كښې به دوى ته پنځه سوه كاله اوليږي. (۴)

۱ ) عمده القاري: ۱۸۶/۲۰).
۲ ) عمدة القاري: ۱۸۶/۲۰).
۳ ) اوګورئ سنن ترمذى . وفيض البارى: ۴۰/۴/).
۴ ) البدرالسارى: ۳۰۳/۴ . وقوت المغتذى : ۶۱/۲).

لیکن دروایت ظاهری الفاظ سره ددې توجیه تائید نه کیږی «واصحاب الجد محبوسون» نه خومتبادر دادی چه دوی ته به په حساب وکتاب کښې ناوخته شی.
جهنم کښې عام طور د ښځو داخلیدو باندې اشکال کیږی چه دجنتیانو په باره کښې رازی چه «لکل واحد منهم زوجتان» جنت کښې به هر سړی ته دوه ښځې ملاویږی. بیا هر کله چه عام طور سره ښځې جهنم ته داخلیږی نو جنتیانو ته به څنګه دوه دوه ښځې ملاویږی؟.
ددې جواب دادې چه په صفحه یوشپیتم (۶۱) باندې یو روایت تیرشوې دې ، په هغې کښې دی چه «لکل امری منهم زوجتان من الحور العین» (۱)
او یو جواب داهم کړې شوې دې چه په شروع کښې به ښځې په جهنم کښې زیاتې وی اوبیا به دهغه ځائې سزا مکمل کیدونه پس چه کله دوی جنت ته داخلې شی نو هر یو جنتی ته به دوه دوه ښځې ملاویږی. (۲)
داباب بلاترجمه دې او کالفصل من الباب السابق دې ، بعضو نسخوکښې دباب لفظ مذکور نه دې ، په دې صورت کښې دا ماقبل باب «لا تاذن المراة» لاندې راوړې شوې دې.
دباب او حدیث په مینځ کښې مناسبت داشان به وی چه په دې حدیث کښې اشاره اوکړې شوه چه ښځې دمذکوره نهی په وجه عموماً مرتکب وی ، دې وجې نه اکثر به جهنم کښې وی ، حافظ ابن حجر لیکی چه :

«وسقط للنفسی لفظ " باب " فصار الحدیث الذی فیه من جملة الباب الذی قبله ومناسبته له من جهة الاشارة الی ان النساء غالبا یرتکبن النهی المذکور ومن ثم کن اکثر من دخل النار» (۳)

## ۸۷=بَاب كُفْرَانِ الْعَشِيرِ وَهُوَ الزَّوْجُ وَهُوَ الْخَلِيطُ مِنْ الْمُعَاشَرَةِ فِيهِ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

[۴۹۰۱] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبَّاسٍ أَنَّهُ قَالَ خَسَفَتْ الشَّمْسُ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَصَلَّى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالنَّاسُ مَعَهُ فَقَامَ قِيَامًا طَوِيلًا نَحْوًا مِنْ سُورَةِ الْبَقَرَةِ ثُمَّ رَكَعَ رُكُوعًا طَوِيلًا ثُمَّ رَفَعَ فَقَامَ قِيَامًا طَوِيلًا وَهُوَ دُونَ الْقِيَامِ الْأَوَّلِ ثُمَّ رَكَعَ رُكُوعًا طَوِيلًا وَهُوَ دُونَ الرُّكُوعِ الْأَوَّلِ ثُمَّ سَجَدَ ثُمَّ قَامَ فَقَامَ قِيَامًا طَوِيلًا وَهُوَ دُونَ الْقِيَامِ الْأَوَّلِ ثُمَّ رَكَعَ رُكُوعًا طَوِيلًا وَهُوَ دُونَ الرُّكُوعِ الْأَوَّلِ ثُمَّ رَفَعَ فَقَامَ قِيَامًا طَوِيلًا وَهُوَ دُونَ الْقِيَامِ الْأَوَّلِ ثُمَّ رَكَعَ رُكُوعًا طَوِيلًا وَهُوَ دُونَ الرُّكُوعِ الْأَوَّلِ ثُمَّ رَفَعَ ثُمَّ سَجَدَ ثُمَّ انْصَرَفَ وَقَدْ تَجَلَّتْ الشَّمْسُ

۱) اوګورئ صحیح البخاری: کتاب بدء الخلق ،باب ماجاء فی صفه الجنه وانهار مخلوقه: ۴۶۱/۱).
۲) مرقاه المفاتیح: ۳:۲۰۰ (۳۲۰).
۳) فتح الباری: ۳۷۲/۹).

فَقَالَ انَّ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ ايَتَانِ مِنْ ايَاتِ اللّهِ لَا يَخْسِفَانِ لِمَوْتِ احَدٍ وَلَا لِحَيَاتِهِ فَاذَا رَائتُمْ ذَلِكَ فَاذْكُرُوا اللّهَ قَالُوا يَا رَسُولَ اللّهِ رَايْنَاكَ تَنَاوَلْتَ شَيْئًا فِي مَقَامِكَ هَذَا ثُمَّ رَايْنَاكَ تَكَعْكَعْتَ فَقَالَ انِّي رَايْتُ الْجَنَّةَ اوْ ارِيتُ الْجَنَّةَ فَتَنَاوَلْتُ مِنْهَا عُنْقُودًا وَلَوْ اخَذْتُهُ لَاكَلْتُمْ مِنْهُ مَا بَقِيَتِ الدُّنْيَا وَرَايْتُ النَّارَ فَلَمْ ارَ كَالْيَوْمِ مَنْظَرًا قَطُّ وَرَايْتُ اكْثَرَ اهْلِهَا النِّسَاءَ قَالُوا لِمَ يَا رَسُولَ اللّهِ قَالَ بِكُفْرِهِنَّ قِيلَ يَكْفُرْنَ بِاللّهِ قَالَ يَكْفُرْنَ الْعَشِيرَ وَيَكْفُرْنَ الاحْسَانَ لَوْ احْسَنْتَ الَى احْدَاهُنَّ الدَّهْرَ ثُمَّ رَاتْ مِنْكَ شَيْئًا قَالَتْ مَا رَايْتُ مِنْكَ خَيْرًا قَطُّ [ر:٢٩].

[٤٩٠٢] حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ الْهَيْثَمِ حَدَّثَنَا عَوْفٌ عَنْ ابِي رَجَاءٍ عَنْ عِمْرَانَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اطَّلَعْتُ فِي الْجَنَّةِ فَرَايْتُ اكْثَرَ اهْلِهَا الْفُقَرَاءَ وَاطَّلَعْتُ فِي النَّارِ فَرَايْتُ اكْثَرَ اهْلِهَا النِّسَاءَ تَابَعَهُ ايُّوبُ وَسَلْمُ بْنُ زَرِيرٍ [ر:٣٠٦٩].

د «عشير» دوه معنې دي يو دزوج او بله دملګرى ،نو ابوعبيده دقران پاك دآيت «ولبئس المولى ولبئس العشير» كښې د «عشير» معنى خليط بيان كړې ده. (١)

دامام بخارى رحمه الله مقصد دادې چه دخاوند نافرمانى كول ممنوع دى.

نوامام بخارى رحمه الله چه كوم حديث بيان فرمائيلې دې، ددې په آخركښې دى چه ما جهنم اوكتلو چه په دې كښې ښځې ډيرې وې. حضرات صحابه كرام رضي الله عنهم ددې وجه اوپوښتله.نو حضرت نبى كريم صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل چه «بكفرهن» ددوى دكفر په وجه.صحابه كرام تپوس كوى «يكفرن بالله» آيا دوى به د الله جل جلاله نه انكار كوى. نو حضرت نبى كريم صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل «يكفرن العشير . ويكفرن الاحسان» دخاوند نافرمانى كوى ، داحسان ناشكرى كوى ، كه تاسو دوى سره ټول عمر ښيګړه كوئى اوبيا تاسو څه خبره ددې د طبيعت خلاف اوكړه نو وائى چه ما هېڅله ستاسو دلاسه څه ښيګړه اونه ليده. اوظاهر دى چه دا ناشكرى ده د خاوند او د ښيګړې او احسان هم او ددوى دناشكرى به‌ذوى لره جهنم ته دتلو سبب وى.

مولانا انورشاه كشميرى رحمه الله فرمائى چه‌په‌جهنم كښې د ښځو دكثرت دامشاهده كليه‌نه ده بلكه‌دا يو جزئى مشاهده ده. يعنى چه‌كوم وخت كښې چه دوى مشاهده اوكړه‌نو په هغه وخت كښې دښځو كثرت وو .ددې نه دا لازم نه دى چه‌په جهنم كښې‌هميشه به دښځوكثرت وى. نو فيض البارى كښې دى چه :

«وقد مر من ان مشاهدته تلك ليست كلية بل مشاهد جزئية تقتصر على هذه الحال فقط ويؤيده ما عند البخارى فى الصفحة الآتية : ٣٨٣، طبع الهند، اطلعت فى الجنة فرأيت أكثر اهلها الفقراء و اطلعت فى النار فرأيت أكثر اهلها النساء ففيه اشعار بانها مشاهدة اذ ذاك ، لو أراد الضابطة الكلية لقال: الرجال بدل الفقراء ليستقيم تقابله بالنساء ولكنه ذكر الفقر من جانب وذكر النساء من جانب فظهر انه لم يرد بيان الضابطة»(٢)

---

١) فتح البارى: ٩/٣٧٣).

٢) فيض البارى: ٤/٣٠٤).

دباب رومبې حديث ابواب الكسوف کښې تيرشوې دې .او په هغه ځائې کښې په دې باندې بحث شوې دې. (۱)

د دويم حديث په آخر کښې دی چه :

**قوله:** تابعه ايوب وسلم بن زرير: يعنې ايوب او سلم بن زرير دعوف چه دابورجاء نه نقل کوی متابعت کوی.

د ايوب متابعت لره امام نسائی او سلم بن زرير روايت لره امام بخاری رحمه الله صفة الجنة کښې موصولاً نقل کړې دې.(۲)

## ۸۸=باب لزوجك عليك حق قاله أبو جحيفة عن النبی صلى الله عليه وسلم [ر:۱۸۶۷].

دابوجحفه رحمه الله تعليق لره امام بخاری رحمه الله په کتاب الصوم کښې موصولاً نقل کړې دې. (۳)

رومبی باب کښې امام بخاری رحمه الله داارشاد فرمائيلې وو چه په ښځه باندې دخاوندحق دې او ددې حق نه ادا کولو په وجه اکثرې ښځې به جهنم کښې وی. په دې باب کښې امام بخاری دا خودل غواړی چه په خاوندباندې د ښځې حق دې.

[۴۹۰۲] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا الأَوْزَاعِيُّ قَالَ حَدَّثَنِي يَحْيَى بْنُ أَبِي كَثِيرٍ قَالَ حَدَّثَنِي أَبُو سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ قَالَ حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا عَبْدَ اللَّهِ أَلَمْ أُخْبَرْ أَنَّكَ تَصُومُ النَّهَارَ وَتَقُومُ اللَّيْلَ قُلْتُ بَلَى يَا رَسُولَ اللَّهِ قَالَ فَلَا تَفْعَلْ صُمْ وَأَفْطِرْ وَقُمْ وَنَمْ فَإِنَّ لِجَسَدِكَ عَلَيْكَ حَقًّا وَإِنَّ لِعَيْنِكَ عَلَيْكَ حَقًّا وَإِنَّ لِزَوْجِكَ عَلَيْكَ حَقًّا [ر:۱۰۷۹].

په روايت کښې دی چه «ان لزوجك عليك حقا» ددوی منشا دا وه چه داشان که تاسو مسلسل روژې نيسئ او قيام مو ا ختيار کړو نو کمزوری به شئ ،او تاسو به دخپلو بيبانو حق ادا نه کړئی شئ. صرف نان نفقه دهغې حق نه دې.

**د ښځې سره دصحبت نه کولووالا حکم:** اوس سوال دا پيدا ګيږی که يو سړې خپلې بی بی سره صحبت نه کوی نو ددې څه حکم دې ؟.

امام مالك رحمه الله فرمائی که يو سړې بلا عذر نه داسې کوی نو ده ته دې تنبيه ورکړې شی ،که هغه بيا هم صحبت نه کوی نو ددواړو په مينځ کښې دې تفريق اوکړې شی. (۴)

دامام احمد بن حنبل رحمه الله همدا قول نقل کړې شوې دې. (۵)

---

۱) راجع صحيح البخاری: کتاب الکسوف باب الصلوة فی کسوف الشمس رقم الحديث: ۱۰۴۰ . ص: ۲۰۵).

۲) عمده القاری: ۱۸۸/۲۰).

۳) عمدة القاری: ۱۸۸/۲۰).

۴) فتح الباری: ۳۷۳/۹).

۵) فتح الباری: ۳۷۳/۹).

دامام شافعي رحمه الله مشهور قول دادې چه‌په خاوند باندې صحبت واجب نه دې ، او يو قول دادې چه‌دنكاح نه پس يو ځل صحبت كول واجب دى (۱)
بعضو اسلافو نه‌منقول دى چه‌په څلورو شپو كښې يو ځل واجب دى. بعضې وائى چه‌په يو طهر كښې يو ځل واجب دى. (۲) دحضرات حنفيه مسلك دا دې چه‌دنكاح نه پس يو وار خو واجب دى او دې نه پس وجوب ديانة دې ، قضاء نه ده ، محقق بن همام فرمائى چه دمدت ايلاء يعنى څلور مياشتوكښې يو وار وطى كول ضرورى دى. ددې نه زيات تاخير درست نه دى.(۳)
اوكه ښځه پخپله په وطى دترك وطى او ترك جماع باندې راضى وى نوپه دې صورت كښې به هيڅ باقى نه وى.

## ۸۹=بَابُ الْمَرْأَةُ رَاعِيَةٌ فِي بَيْتِ زَوْجِهَا

[۴۹۰۴] حَدَّثَنَا عَبْدَانُ اخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اخْبَرَنَا مُوسَى بْنُ عُقْبَةَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ كُلُّكُمْ رَاعٍ وَكُلُّكُمْ مَسْئُولٌ عَنْ رَعِيَّتِهِ وَالْأَمِيرُ رَاعٍ وَالرَّجُلُ رَاعٍ عَلَى اهْلِ بَيْتِهِ وَالْمَرْأَةُ رَاعِيَةٌ عَلَى بَيْتِ زَوْجِهَا وَوَلَدِهِ فَكُلُّكُمْ رَاعٍ وَكُلُّكُمْ مَسْئُولٌ عَنْ رَعِيَّتِهِ [ر:۸۵۳].
ښځه په كور كښې نګرانه وى ، داولاد تربيت او دخاوند دكور حفاظت ددې په ذمه لازم دى.

## ۹۰=بَاب قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالَى الرِّجَالُ قَوَّامُونَ عَلَى النِّسَاءِ بِمَا

فَضَّلَ اللّٰهُ بَعْضَهُمْ عَلَى بَعْضٍ...الَى قَوْلِهِ...انَّ اللّٰهَ كَانَ عَلِيًّا كَبِيرًا (النساء:۳۴)
[۴۹۰۵] حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ مَخْلَدٍ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ قَالَ حَدَّثَنِي حُمَيْدٌ عَنْ انَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ الَى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ نِسَائِهِ شَهْرًا وَقَعَدَ فِي مَشْرُبَةٍ لَهُ فَنَزَلَ لِتِسْعٍ وَعِشْرِينَ فَقِيلَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ انَّكَ الَيْتَ عَلَى شَهْرٍ قَالَ انَّ الشَّهْرَ تِسْعٌ وَعِشْرُونَ [ر:۳۷۱].
امام بخارى رحمه الله په دې باب كښې دايلاء والا روايت نقل كړې دې ، امام اسماعيسى رحمه الله په دې باندې ا شكال كړې دې چه دا روايت دآيت مترجم بها «الرجا قوامون»سره مرتبط نه دې. د دواړو په مينځ كښې مناسبت نشته دې. (۴)
حافظ ابن حجر رحمه الله جواب كړې دې چه امام بخارى رحمه الله دآيت كريمه‌ابتدائى حصه صرف دترجمې جزء نه دې جوړكړې بلكه هغوى فرمائيلى دى چه «الى قوله.ان الله كان عليما

---

۱ ) فتح ا لبارى: ۳۷۳/۹).
۲ ) فتح ا لبارى: ۳۷۳/۹).
۳ ) د حنفيه مسلک اودابن همام قول دپاره اوګورئ: فتح التقدير ، كتاب النكاح ، باب القسم : ۳۰۲/۳).
٤ ) فتح البارى: ۳۷٤/۹ . وفى اللامع: ۳۲۷/۹ . دلاله الروايه عليه من حيث ان الزوج كان له الايلاء والامتناع عن قربانها ، ولا يمكن ذالک للمراه ان قصدت).

حکیما» پوره آیت دامام بخاری رحمه الله پیش نظردې، اوپوره آیت کښې «فعظوهن واهجروهن فی المضاجع» الفاظ هم موجود دی. او ایلاء کښې ازواج مطهرات نه هجر موندې شوې دې. حضرت نبی کریم ﷺ ددې نه بیلتون اختیار کړې وو، ددې وجې روایت او آیت په مینځ کښې مطابقت اومناسبت موندې شی. (۱)

## ۹۱- بَابُ هِجْرَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نِسَاءَهُ فِي غَيْرِ بُيُوتِهِنَّ وَيُذْكَرُ عَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ حَيْدَةَ رَفْعُهُ غَيْرَ أَنْ لَا تُهْجَرَ إِلَّا فِي الْبَيْتِ وَالْأَوَّلُ أَصَحُّ

امام بخاری رحمه الله فرمائی چه رسول الله ﷺ دخپلو بیبیانو نه بیل وو، ددوی کورونو کښې ئې اعتزال اونکړو، بلکه بالا خانې ته لاړل او په هغه خانې کښې ئې قیام اوکړو.

مهلب وائی چه امام بخاری رحمه الله ددې ترجمې نه دې خبرې طرفته اشاره کول غواړی چه یو هجر فی البیوت وی او یو هجر فی غیر البیوت وی، نو هجر فی البیوت ډیر سخت وی، د ښځې دپاره دا خبره ناقابل برداشت وی چه خاوند ددې په کور کښې موجود وی اوبیا هغه ددې نه اعراض کوی، ددې وجې حضرت نبی کریم ﷺ دا سخته طریقه دااختیار په خائې په بالاخانه کښې قیام اوکړو. د امام بخاری رحمه الله مقصد دادې چه ښځې سره که د هجر صورت پیښ شی نوپه دې کښې دې نرمی کول پکار دی او هغه صورت اختیارول پکار دی چه نسبتاً سخت نه وی. (۲)

ابن منیر مالکی رحمه الله فرمائی چه مهلب د امام بخاری رحمه الله کوم مقصد بیان کړې دې دا بعید دې بلکه امام بخاری رحمه الله د هجر ددواړه صورتونو دجواز بیانول غواړی چه هجر فی البیوت هم جائز دې او هجر فی غیر البیوت هم جائز دې. (۳)

**قوله: ویذکر عن معاویة بن حیدة رفعه «غیر ان لا تهجر الا فی البیت» والاول اصح:** ددې نه دحضرت معاویه بن حیده قشیری رضی الله عنه روایت طرفته اشاره ده. چه هغه امام احمد رحمه الله او امام ابوداود رحمه الله نقل کړی دی چه حضرت نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی چه ازواج نه دې په کور کښې هجرت اوکړې شی. (۴)

امام بخاری رحمه الله «والا ول اصح» اووئیل د حضرت معاویه بن حیده روایت دضعف اومرجوح کیدو طرفته اشاره کوی چه هجرت صرف په کور کښې منحصر نه دې، هجرفی البیت اوفی غیر البیت دواړه درست دې لکه څنګه چه دحضرت انس رضی الله عنه په روایت کښې دی چه ددې نه مخکښې باب کښې تیرشو. امام دې روایت ته اصح وئیلی دی.

«رفعه» یعنی معاویه بن حیده نه دا حدیث مرفوعاً منقول دې.

---

۱) فتح الباری: ۹/ ۳۷٤).
۲) الابواب والترجم: ۲/ ۷٤).
۳) فتح الباری: ۹/ ۳۷۶).
٤) فتح الباری: ۹/ ۳۷۵ وارشاد الساری: ۱۱/ ٤۹۲).

[۴۹۰۶] حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ ح وحَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللهِ أَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ قَالَ أَخْبَرَنِي يَحْيَى بْنُ عَبْدِ اللهِ بْنِ صَيْفِيٍّ أَنَّ عِكْرِمَةَ بْنَ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ الْحَارِثِ أَخْبَرَهُ أَنَّ أُمَّ سَلَمَةَ أَخْبَرَتْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَلَفَ لَا يَدْخُلُ عَلَى بَعْضِ أَهْلِهِ شَهْرًا فَلَمَّا مَضَى تِسْعَةٌ وَعِشْرُونَ يَوْمًا غَدَا عَلَيْهِنَّ أَوْ رَاحَ فَقِيلَ لَهُ يَا نَبِيَّ اللهِ حَلَفْتَ أَنْ لَا تَدْخُلَ عَلَيْهِنَّ شَهْرًا قَالَ إِنَّ الشَّهْرَ يَكُونُ تِسْعَةً وَعِشْرِينَ يَوْمًا [ر: ۱۸۱۱]

[۴۹۰۷] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللهِ حَدَّثَنَا مَرْوَانُ بْنُ مُعَاوِيَةَ حَدَّثَنَا أَبُو يَعْفُورٍ قَالَ تَذَاكَرْنَا عِنْدَ أَبِي الضُّحَى فَقَالَ حَدَّثَنَا ابْنُ عَبَّاسٍ قَالَ أَصْبَحْنَا يَوْمًا وَنِسَاءُ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَبْكِينَ عِنْدَ كُلِّ امْرَأَةٍ مِنْهُنَّ أَهْلُهَا فَخَرَجْتُ إِلَى الْمَسْجِدِ فَإِذَا هُوَ مَلْآنُ مِنَ النَّاسِ فَجَاءَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ فَصَعِدَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ فِي غُرْفَةٍ لَهُ فَسَلَّمَ فَلَمْ يُجِبْهُ أَحَدٌ ثُمَّ سَلَّمَ فَلَمْ يُجِبْهُ أَحَدٌ ثُمَّ سَلَّمَ فَلَمْ يُجِبْهُ أَحَدٌ فَنَادَاهُ فَدَخَلَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ أَطَلَّقْتَ نِسَاءَكَ فَقَالَ لَا وَلَكِنْ آلَيْتُ مِنْهُنَّ شَهْرًا فَمَكَثَ تِسْعًا وَعِشْرِينَ ثُمَّ دَخَلَ عَلَى نِسَائِهِ

دابو يعفور نوم عبدالرحمان بن عبيد دې. دې دكوفې اوسيدونكې دې . ثقه دې . صحيح بخارى كښې دده صرف دا يوحديث دې. (۱)

حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمائى چه يو ورځ مونږ دسحر په وخت كښې اوكتل چه دحضرت نبى كريم ﷺ ازواج تولې ژاړى او په دوى كښې هر يو سره خپل خپل يو يو رشته دار موجود وو .څه مسجد نبوى ﷺ ته لاړم او اومې كتل نو مسجد نبوى ﷺ دخلقونه ډك دې. حضرت عمر فاروق رضي الله عنه راغلو اوحضرت نبى كريم ﷺ لره ورغلو. حضرت نبى كريم ﷺ بالا خانه كښې ناست وو. حضرت عمر فاروق رضي الله عنه هغه ځائې ته لاړو او سلام ئې اوكړو چا جواب ورنكړو . بيا ئې سلام اوكړو .چا جواب ورنكړو ، بيا ئې سلام اوكړو ،چاجواب ورنكړو ، بيا حضرت بلال رضي الله عنه حضرت عمر فاروق رضي الله عنه رابللو ، دوى رضي الله عنه د حضرت نبى كريم ﷺ نه تپوس اوكړو چه تاسو خپلو بيبيانو ته طلاق وركړې دې ؟ حضرت نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چه نه ليكن ما يو مياشت پورې ددوى نه ايلاء اختيار كړې ده.

**قوله:** فنـاداه: په دې كښې دفاعل ذكر نشته دې . دابو نعيم اونسائى په روايت كښې د حضرت بلال نوم دې . دابونعيم په روايت كښې دى چه «فناداه بلال فدخل» (۲)

دا روايت ددې نه مخكښې تفصيلى تير شوې دې. په هغې كښې وو چه غلام اسود رباح حضرت عمرفاروق رضي الله عنه راوبللو او د ابونعيم اونسائى په روايت كښې دحضرت بلال نوم دې.(۳).

۱) عمده القارى : ۱۹۱/۲۰).
۲) فتح البارى: ۳۷۷/۹).
۳) فتح البارى: ۳۷۷/۹).

ليكن په دواړو كښې تطبيق كيديشې چه حضرت بلال رضي الله عنه دحضرت نبى كريم ﷺ سره دننه په كمره كښې وو او رباح بهر دروازې سره وو. حضرت بلال رضي الله عنه اجازت په ملاويدوسره آوازوكړو اورباح حضرت عمر فاروق رضي الله عنه ته واپس راوبللو
څكه چه هغه بهر دروازې سره وو .داشان دواړو كښې هيڅ تعارض نشته دې. (١)
په دې روايت كښې دى چه حضرت عمر فاروق رضي الله عنه سلام اوكړو او هيڅا ورته جواب ورنكړو يعنى خاموش وو اوددې نه مخكښې تفصيل تير شوې دې چه حضرت عمر فاروق رضي الله عنه غلام ته داجازت دپاره اخستلو دپاره ونيلى وواو غلام هر ځل اوئيل چه ما ستا ذكر اوكړوليكن حضرت نبى كريم ﷺ هيڅ جواب رانكړو.
ددې تعارض حل دادې چه په دې ځائې كښې روايت باب كښې اختصار دې. اواصل صورت حال هغه وو چه كوم مخكښې تفصيلى بيان كړې شو. په دې ځائې كښې داختصار غرض سره دحضرت عمر فاروق رضي الله عنه اجازت اخستل «سلم عليه فلم يجبه احد» سره تعبير كړې شو.
په دې روايت كښې دا خبره هم معلومه شوه چه دايلاء دا واقعه دفتح مكه نه پس ده څكه چه حضرت ابن عباس رضي الله عنه په دې وخت كښې حاضر وو. لكه څنګه چه روايت باب كښې دى او حضرت ابن عباس رضي الله عنه فتح مكه نه پس هجرت اوكړواو مدينې منورې ته ئې تشريف راوړو. (٢)
داشان دايلاء دا واقعه دحجاب نزول نه پس ده. څكه چه دنزول حجاب حكم دحضرت زينب رضي الله عنها د نكاح په وخت كښې راغلې دې . اودحضرت زينب رضي الله عنها نكاح دخليفه ابن خياط او ابوعبيده په نيز په دريمه هجرئى كښې او دحافظ شرف الدين دمياطى په نيز په څلورمه هجرئى كښې او دواقدى او طبرى اوحافظ ابن حجر په نيز پنځه هجرئى كښې شوې ده ، په دې كښې چه دكوم كال هم د واقعه وى تاهم دايلاء دا واقعه ددې نه پس ده. (٣)
دمسلم په بعضو رواياتوكښې دى چه قصه د تخيير نزول حجاب نه مخكښې راپيښه شوې وه . دا ديوراوى وهم دې . څكه چه د تخييردا واقعه دايلاء سره راپيښه شوې وه او واقعه دايلاء نزول حجاب نه پس په نهه هجرئى كښې ده. (۴)

## ٩٢=بَاب مَا يُكْرَهُ مِنْ ضَرْبِ النِّسَاءِ

وَقَوْلِ اللّٰهِ وَاضْرِبُوهُنَّ (النساء:٣۴) اى ضَرْبًا غَيْرَ مُبَرِّحٍ

[۴٩٠٨] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيهِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ زَمْعَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَجْلِدُ اَحَدُكُمُ امْرَاَتَهُ جَلْدَ الْعَبْدِ ثُمَّ يُجَامِعُهَا فِي اٰخِرِ الْيَوْمِ [ر:٣١٩٧].

---

١) فتح البارى: ٩/٣٧٧.
٢) فتح البارى: ٩/٣٥٦.
٣) احكام القران للمفتى محمد شفيع : ٣/٣٠٧.
۴) مذكوره تفصيل دپاره اوګورئ فتح البارى: ٩/٣٥٦، ٣٥٧.

امام بخارى رحمه الله ددې ترجمة الباب په ذريعه تطبيق وركول غواړى ، دقران پاك آيت ﴿فَعِظُوهُنَّ وَاهْجُرُوهُنَّ فِي الْمَضَاجِعِ وَاضْرِبُوهُنَّ﴾، ددې آيت كريمه نه دښځو دوهلو اجازت معلوميږى او روايت باب كښې دى چه څنګه چه غلام وهې داشان ښځې مه وهئ ،بيا دې نه پس تاسوته دې سره به د صحبت كولو ضرورت پيښيږى نوانبساط اوانشراح به څنګه وى.ددې روايت نه دضرب ممانعت معلوميږى.

امام بخارى رحمه الله اوفرمائيل چه يو دې ضرب شديد او بل دې ضرب خفيف،آيت كريمه كښې دضرب خفيف اجازت دې او روايت كښې د ضرب شديد ممانعت دې ، نودقران پاك آيت كښې«واضربوهن» نه پس امام اضافه اوفرمائيله چه«أى ضربا غير مبرح» يعنى داسې ئې وهئ چه تكليف نه وركوى. (۱)«جلد(ض)جلدا» : وهل ، په كوړا وهل.

## ۹۳=بَاب لَا تُطِيعُ الْمَرْأَةُ زَوْجَهَا فِي مَعْصِيَةٍ

[۴۹۰۹] حَدَّثَنَا خَلَّادُ بْنُ يَحْيَى حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ نَافِعٍ عَنْ الْحَسَنِ هُوَ ابْنُ مُسْلِمٍ عَنْ صَفِيَّةَ عَنْ عَائِشَةَ أَنَّ امْرَأَةً مِنْ الْأَنْصَارِ زَوَّجَتْ ابْنَتَهَا فَتَمَعَّطَ شَعَرُ رَأْسِهَا فَجَاءَتْ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرَتْ ذَلِكَ لَهُ فَقَالَتْ إِنَّ زَوْجَهَا أَمَرَنِي أَنْ أَصِلَ فِي شَعَرِهَا فَقَالَ لَا إِنَّهُ قَدْ لُعِنَ الْمُوصِلَاتُ[ر:۵۵۹۰].(۲)

ښځې ته د خاوند د اطاعت او فرمانبردارئى حكم دې ، ليكن كه خاوند دمعصيت او دالله ﷻ دنافرمانئ حكم وركوى نو بيا دده اطاعت جائزنه دې ، «لا طاعة لمخلوق فى معصية الخالق».

حديث باب كښې دى چه دحضرت نبى كريم ﷺ په خدمت كښې يوانصارى ښځه حاضره شوه چه دې دخپلې لور واده كړې وو. ددې د سر ويښته د چيچك دبيمارئى په وجه ختلى وو ، دې حضرت نبى كريم ﷺ ته ددې ذكر اوكړو اودې نه پس ئې اووئيل چه څه ددې په سر كښې نور ويښته اولږوم ،حضرت نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چه نه ، په ويښته لګولو باندې لعنت دې.

**ويښته لګولو كښې دنورو ويښتو ملاويدو حكم:** دامام ابو حنيفه رحمه الله ،او دامام شافعى رحمه الله اودامام احمد رحمه الله په نيزوصل بشعر الادمى خو نا جائز دى ليكن د انسان دوېښتو نه علاوه دتور رنګ تاروغيره سره كه وصل اوكړې شى نو جائز دى. (۳)

امام مالك رحمه الله مطلقًا دعدم جواز قائل دې ، نه وصل بشعر الادمى دده په نيز جائز دې او نه وصل بشئ ، آخر دده په نيز جائز دى . (۴)

---

۱ ) الابواب والتراجم: ۲/ ۷۴).

۲ ) واخرجه البخارى ايضا فى كتاب اللباس ، باب الوصل فى الشعر رقم الحديث: ۵۹۳۴ ، واخرجه مسلم فى كتاب اللباس والزينة باب تحريم فعل الواصلة والمسوصلة رقم الحديث : ۲۱۲۳ ، واخرجه النسائى فى كتاب الزينة ،باب الموتصلة رقم الحديث: ۹۳۷۶).

۳ ) تعليقات لامع الدارى: ۹/ ۳۳۰).

٤ ) تعليقات لامع الدارى: ۹/ ۳۳۰).

علامه نووی رحمه الله همدا قول اختیار کړي دي. قاضي عیاض دا قول اکثر علماء ته منسوب کړي دي. (۱) امام بخاری رحمه الله په کتاب اللباس کښې مخکښې په دې باندې مستقل باب قائم کړي دې، (۲)

«تمعط الشعر» دبیمارۍ په وجه ویښته غورزیدل.

## ۹۴=باب وَإِنْ امْرَأَةٌ خَافَتْ مِنْ بَعْلِهَا نُشُوزًا أَوْ إِعْرَاضًا (النساء ۱۲۸)

[۴۹۰۰] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَامٍ اَخْبَرَنَا اَبُومُعَاوِيَةَ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا وَاِنْ امْرَأَةٌ خَافَتْ مِنْ بَعْلِهَا نُشُوزًا اَوْ اِعْرَاضًا قَالَتْ هِيَ الْمَرْأَةُ تَكُونُ عِنْدَ الرَّجُلِ لَا يَسْتَكْثِرُ مِنْهَا فَيُرِيدُ طَلَاقَهَا وَيَتَزَوَّجُ غَيْرَهَا تَقُولُ لَهُ اَمْسِكْنِي وَلَا تُطَلِّقْنِي ثُمَّ تَزَوَّجْ غَيْرِي فَاَنْتَ فِي حِلٍّ مِنْ النَّفَقَةِ عَلَيَّ وَالْقِسْمَةِ لِي فَذٰلِكَ قَوْلُهُ تَعَالٰى فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا اَنْ يَصَّالَحَا بَيْنَهُمَا صُلْحًا وَالصُّلْحُ خَيْرٌ [ر: ۲۳۱۸].

حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائي چه آیت کریمه ﴿وَإِنِ امْرَأَةٌ خَافَتْ مِنْ بَعْلِهَا نُشُوزًا﴾ نه هغه ښځ مراد ده چه یو سړی سره وی او هغه سړې دا خپل ځان سره اوسول نه غواړی. بلکه دې ته طلاق ورکول غواړی او بلې ښځې سره دنکاح اراده لری. نودا ښځه دې خپل خاوندته اووائی چه ته لږ صبر اوکړه او ماته طلاق مه راکوه، اګر که ته غیرسره نکاح کوې، ځما نان نفقه او نمبر دواړوندته خلاص ئې، د قرآن پاك آیت ﴿فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا أَنْ يُصْلِحَا بَيْنَهُمَا صُلْحًا وَالصُّلْحُ خَيْرٌ﴾ نه هم دا مراد دی. (یعنی مذکوره صورت کښې که ښځه خاوند د جدائی او فراق په ځائې صلح اوکړی او یو ځائې اوسیدل غواړی نو ددوی دپاره بهتر دی).

دا باب اوحدیث کتاب التفسیر کښې هم تیر شوې دې.

**قوله:** لا يستكثر منها: «استكثر من الشئ» دیر کول، دډیرو رغبت کول. یعنی هغه سړې دې ښځې سره صحبت رغبت نه کوی، یا ددې ښه خیال نه ساتی.

داسې ښځه چه خپل نمبر معاف کړی ا بیا رجوع کول غواړی نو د ائمه ثلاثه په نیز هغه رجوع کولې شی. (۳)

دامام مالك رحمه الله یو قول دې چه دائمه ثلاثه مطابق دې او دویم قول ئې دادې چه دې ته درجوع حق نه دې حاصل. حضرت حسن بصری اوابراهیم نخعی نه هم دعدم رجوع قول منقول دې.

۱) تعلیقات لامع الداری: ۹/ ۳۳۰).
۲) اوګورئ صحیح بخاری، کتاب اللباس، باب الموصله: ۲/ ۸۷۹).
۳) اوګورئ فتح الباری: ۹/ ۳۸۰، وفتح التقدیر: ۳/ ۴۱۶، وعمده القاری: ۲۰/ ۱۹۴).

# ٩٥ = باب العزل

[۴۹۱۱] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ عَنْ ابْنِ جُرَيْجٍ عَنْ عَطَاءٍ عَنْ جَابِرٍ قَالَ كُنَّا نَعْزِلُ عَلَى عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ عَمْرٌو أَخْبَرَنِي عَطَاءٌ سَمِعَ جَابِرًا رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ كُنَّا نَعْزِلُ وَالْقُرْآنُ يَنْزِلُ
وَعَنْ عَمْرٍو عَنْ عَطَاءٍ عَنْ جَابِرٍ قَالَ كُنَّا نَعْزِلُ عَلَى عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالْقُرْآنُ يَنْزِلُ

[۴۹۱۲] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ أَسْمَاءَ حَدَّثَنَا جُوَيْرِيَةُ عَنْ مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ عَنْ الزُّهْرِيِّ عَنْ ابْنِ مُحَيْرِيزٍ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ أَصَبْنَا سَبْيًا فَكُنَّا نَعْزِلُ فَسَأَلْنَا رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ أَوَإِنَّكُمْ لَتَفْعَلُونَ قَالَهَا ثَلَاثًا مَا مِنْ نَسَمَةٍ كَائِنَةٍ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ إِلَّا هِيَ كَائِنَةٌ [ر:۲۱۱۶].

دعزل مطلب دادې چه دجماع په وخت کښې سړې انزال فرج نه بهر اوکړی. دعزل په حکم کښې اختلاف دې. علامه ابن حزم رحمه الله فرمائی چه عزل حرام دې. (۱) هغه د حضرت جذامه بنت وهب اسدی روایت نه استدلال کوی چه کوم امام مسلم نقل کړې دې چه حضرت نبی کریم ﷺ دعزل متعلق فرمائی چه :

«ذالك الواد الخفی» (۲) د واد معنی ژوندې ښخول دی.

لیکن جمهور علماء داحادیث باب په بناء باندې عزل لره جائز ګرزولې دې. او دحضرت جذامه په روایت کښې دی چه بعض حضرات ورته منسوخ وئیلې دې. اوبعضو دې ته کراهت تنزیهی باندې محمول کړې دې چه عزل جائز دې لیکن مکروه تنزیهی دې (۳)

دعزل په سلسله کښې لږ تفصیل دادې چه حره یعنی د آزدې ښځې داجازت نه بغیر عزل جائزنه دې. د ائمه ثلاثه هم دا مذهب دې. اود امام شافعی رحمه الله یو قول ددې مطابق دې او دویم قول دادې چه داجازت نه بغیر هم عزل جائز دې.

د وینځې داجازت نه بغیر آقا عزل کولې شی. اوکه وینځه دچا په نکاح کښې وی نو په دې صورت کښې دجمهور علماء په نیز اجازت ضروری دې. امام ابوحنیفه رحمه الله، امام احمد رحمه الله او دمالکیه په نیز دآقا نه اجازت دې واخستې شی. اودده اجازت به کافی وی. صاحبین فرمائی چه دوینځې نه به اجازت اخلی.

۱) فتح ا لباری: ۳۸۵/۹).
۲) اوګورئ صحیح مسلم : ۴۶۶/۱ ، کتاب النکاح ).
۳) فتح الباری: ۳۸۵/۹ ، ۳۸۶ ، وشرح الطیبی ، کتاب النکاح باب المباشره : ۲۸۲/۶).

د امام شافعی رحمه الله مذهب دادې چه د واده شوې ښځې دپاره عزل دپاره اجازت ضروری نه دې د امام احمد رحمه الله یو روایت ددې مطابق دې. (۱)

---

۱) دمذکوره مذاهب او تفصیل دپاره اوګورئ ، فتح الباری: ۳۸۴/۹_۳۸۵ ، دحنفیه مذهب دپاره اوګورئ فتح التقدیر: ۳۷۹/۳.

ښځې سره دمقاربت په وخت کښې آخری لمحاتوکښې سړې چه خپله منی بهر خارج کړی نو دې ته عزل وئیلې شی.

موجوده دور کښې دعزل مختلف صورتونه رائج دی او احکام هم ددې مختلف دی په دې خانې ددې صورتونو او ددې احکامو یو مختصر شان تعارف به دفائدې نه خالی نه وی. دعزل مقصد دادې چه دسړی منی دښځې رحم ته اونه رسی او حمل اونشی . ددې مقصد دحصول دپاره چه کومه طریقه اختیارولې شی هغه به په عزل کښې شمیرلې شی. دعزل یا موانع حمل اسباب په دوه رنګه دی. ① مستقل او دائمی مانع حمل ② عارضی اووختی مانع حمل.

دمستقل او دائمی مانع حمل مطلب دادې چه څه داسې تدبیر اختیارول چه دې سره دتوالد وتناسل سلسله همیشه دپاره منقطع کړی شی،عصرحاضرکښې عموما ددې لاندینې دوه طریقې مروجې دی.

(الف) نس بندی: بچی راوړو والا نسونه د دواړو طرفونو نه پریکول او تړل.

(ب)ګروه بندی: په دې طریقه کښې نسونه دپریکولو نه بغیر داشان تړلې شی . چه دماده منویه اخراج ممکن نه وی ، ګروه بندی اګرچه یو عارضی مانع حمل تدبیر ګڼړلې شی لیکن عملاً دا مستقل اودائمی وی.

(ج) تقطیع و تخریج : ددې طر یقه داده چه دښځې بیضه دانئی یعنی رحم پریکړی او خیتې نه بهر کړې شی چا ددې نه حمل اونشی ، دا دړې واړه طریقې عمل جراحی سره رو بعمل راوړلې شی.

دسړی دپاره څه داسې تدبیر چه هغې سره مستقل طور قوت توالد وتناسل او ددې صلاحیت او استعداد بالکل د بیخ نه ختم کړې شی په یو حال کښې هم دا جائز نه دی . ددې وجې مذکوره درې واړه طریقې شرعی لحاظ سره جائز نه دی.

دښځې دپاره هم عام حالات کښې داشان تدبیر اختیارول جائز نه دی چه هغې سره دبچې پیداکیدو صلاحیت ختم شی. البته سخت وخت کښې ددې ګنجائش شته دې. چه ددې صورت دادې چه دیوښځې متعلق ماهر ډاکټر دتحقیق نه پس قطعی او یقینی طور سره دا اووائی که سلسله توالد وتناسل ختم نه کړې شوه او حمل اوشو نو ددې دولادت هیڅ صورت نشته دې . اودښځې دپاره دمرګ نه سوا هیڅ خلاصې نشته دې ، داسې حالات کښې مستقل مانع حمل تدبیر اختیارولې شی ځکه چه دادشریعت مسلمه اصول دی چه ((الضرورات تبیح المحظورات)) .

عارض مانع حمل تدبیرونه:یعنی هغه تدبیرونه چه د هغې په استعمال سره د یوې مودې پورې حمل نه قرارېږی خود توالد او تناسل استعداد او صلاحیت برقرار وی ددې مروجه صورتونه لاندې دی

(الف) عزل : دا هغه زړه اوساده طریقه ده چه ابتدائې اسلام نه نَنه پورې رائج ده ، هغه دا چه دانزال په وخت کښې سړې خپله منی بهر خارج کړی.

(ب) دښځې درحم خله بندولې شی چه دسړی منی رحم ته اونه رسی. موجوده دور کښې ددې یو صورت لوپ کارېږي دې . دا د انګریزئی د T شکل کښې د تانبې یو تار وی. چه دا ډاکټر د ښځې په رحم کښې دننه داشان فټ کړی چه سړی منی د ښځې رحم ته دننه نه پرېږدی. دې طریقه کښې عام طور دښځې په ماهوارئی کښې بې قاعدګی پیداشی.

(ج) دغلاف آله استعمال ( یعنی کنډوم) دایو پسته اونرمه باریکه غباره وی ، د هوا نه بغیر دا غباره مباشرت نه مخکښې سړې ئې خپل عضوتناسل ته واغوندوی لکه څنګه چه پښې ته موزه اچولې شی او لاس ته دستانه اچولې شی ، په دې صورت کښې عضو تناسل مکمل طور بندشی (په

**قوله: كنا نعزل على عهد النبي والقران ينزل:** ددې مطلب دادې كه عزل حرام وى نو قران پاك كښې به ددې حرمت نازل شوې وو. ليكن حرمت نه دې نازل شوې نو

---

دې پرده غونډې راشي) او مباشرت په وخت كښې دسړى منى د اندام مخصوصه په خانې دې كنډم ته راشي ، دى وجې د حمل د ختميد ننانوې فى صد انديښنه ختمه شى.

(د) مانع حمل ګولئ يا د مانع حمل انجكشن استعمال ، ددې استعمال سره حمل نه كيږى ليكن دا طريقه دصحت دپاره مضره ده ، دجديد تحقيق مطابق ددې وجې سره په وينه كښې خطرناكه حده پورې دچربى كمې راولى.

(س) داوبو پچكارئ سره رحم وينځل ، دجماع نه پس داوبو پچكارئى سره رحم وينځلې شى ، چه ماده منويه كه رحم ته رسيدلې وى نو چه هغه راوزى.

**عارضى موانع حمل دجواز صورتونه :**

دې لاندو صورتونوكښې بلاكراهت مانع حمل تدابير اختيارولې شى.

① دووږ بچو په مينځ كښې مناسبه وقفې دپاره ، چه هر بچى ته دمور طرفنه توجه او پرورش ملاؤ شى لكه رومبى بچې په ايام رضاعت كښې دې اواستقرار حمل اوشو،نودمور پئ به مضرصحت شى،چه دې سره ددې بدن كښې ضعف او كمزورى پيدا كيديشى ، ددې نه علاوه دبچو په مينځ كښې مناسبه وقفه نه ساتلوسره به د مور پرورش به تقسيم شى چه دې سره دبچى صحت متاثره كيديشى.

② دبچى باره كښې دا خطره دظن غالب په درجه كښې وى چه هغه په خطرناك موروثى بيمارئى كښې مبتلا كيديشى. (جديد فقهى مباحث : ۳۱۸/۱).

③ كه ښځه دومره كمزورې وى دحمل زوربه برداشت نكړې شى نو دحمل دتكليف يا اولاد درد وغيره به برداشت نه كړې شي يا دولادت نه پس دا ډيره كمزورې كيديشى اوددې انديښنه وى نو په دې صورت كښې هم دمنع حمل اجازت دې . (ضبط ولادت:۱۹).

④ بعضو فقهائې كرام تصريح كړې ده كه ښځه بداخلاقه ، سخت مزاجه او خاوند ورته دطلاق وركولو اراده لرى او انديښنه وى چه داولاد پيداكيدو نه پس بداخلاقئ كښې به اضافه وى. نوداسې صورت كښې هم منع حمل يعنى عزل درست دې ، شاميه كښې دى چه ((اوكانت الزوجة سيئة الخلق ويريد فراقها يخاف ان تحبل ، شاميه :۴۱۲/۲).

⑤ د فقهى په كتابونوكښې دا خبره په وضات سره موجود ده چه د فسادزمان په وجه او بداخلاقئ په وجه داولادپيدا كيدو ويره وى نو داسې صورت كښې هم عزل جائز دې.

((وفى الفتاوى ان خاف من ا لولد السوء فى الحرة يسعه العزل لغير رضاها لفساد الزمان..... وبه جزم القهستانى حيث قال هذا اذالم يخف على الولد السوء لفساد الزمان والافتجور بلاذنها (شاميه : ۴۱۲/۲).

دعارضى مانع حمل عدم جواز صورتونه :① دمعاشى تنګئ په وجه عزل كول ، چه بچى كم اوشى او ددوى مستقبل بهتر وى،دا عذر شرعى نه دې څكه چه دمعاش اعتبار سره دمستقبل بهترى دالله تعالى په ذمه ده،ددې وجې دا دعزل په اعذار كښې نه شى شميرلې (ضبط ولادت : ۲۰).

② دموجوده دور فيشن وروكې خاندان دپاره هم دا تدبير جائز نه دې ، د وړوكى خاندان تصور داسلام دمزاج اوماحول هم اهنګ نه دى.

③ دعارضى منع حمل هغه تدبيرونه جائز نه دى چه هميشه دپاره دمايوسئ سبب جوړ شى.

④ محض اولاد سره اعراض مقصود وى يعنى صرف همدا نيت وى چه اولاد دې اونه شى.

⑤ ددې محرك داسې غرض وى چه داسلامى اصولو خلاف وى لكه د جينئ پيدا كيدو دويرې عزل كول (ضبط ولادت : ۲۰).

معلومه شوه چه عزل جائز دې ليکن ښځه چه ونيلې شوې دې چه دضرورت لاندې جائزدې.

## ۹۶-باب القُرْعَةِ بَيْنَ النِّسَاءِ إِذَا أَرَادَ سَفَرًا

امام بخاري رحمه الله دا ونيل غواړي چه کله سړې سفر باندې ځي نو هغه کيف ماتفق خپله هره يو بى بى خان سره بوتلې شي يا ددې قرعه اندازي کول پکاردي.

علامه موفق رحمه الله فرمائي چه قرعه اندازئي نه بغير سفر کول داکثر اهل علم په نيز ناجائز دې. دشوافع په نيز هم دنزاع په صورت کښې قرعه نه بغير سفر کول جائز نه دى. (۱)

امام مالك رحمه الله فرمائي چه هغه ته اختيار دې چه څوك بوځي ، ددې وجې په سفر کښې خاص طور باندې مناسبت بې حد ضروري وى نو ددې وجې دسفر دحالاتو پيش نظر چه کومه يوه ښځه زياده مناسبه وى نو هغه دې بوځي. په دې کښې دقرعه اندازئي ضرورت نشته دې. (۲)

دحضرات حنفيه په نيز قرعه اندازي حجت ملزمه نه ده ، صرف تطييب قلب دپاره دا اختيارولې شي او ددوى په نيز قرعه اندازي صرف دمستحب په درجه کښې ده. (۳)

[۴۹۱۳] حَدَّثَنَا أَبُونُعَيْمٍ حَدَّثَنَا عَبْدُالْوَاحِدِ بْنُ أَيْمَنَ قَالَ حَدَّثَنِي ابْنُ أَبِي مُلَيْكَةَ عَنْ الْقَاسِمِ عَنْ عَائِشَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا خَرَجَ أَقْرَعَ بَيْنَ نِسَائِهِ فَطَارَتْ الْقُرْعَةُ لِعَائِشَةَ وَحَفْصَةَ وَكَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا كَانَ بِاللَّيْلِ سَارَ مَعَ عَائِشَةَ يَتَحَدَّثُ فَقَالَتْ حَفْصَةُ أَلَا تَرْكَبِينَ اللَّيْلَةَ بَعِيرِي وَأَرْكَبُ بَعِيرَكِ تَنْظُرِينَ وَأَنْظُرُ فَقَالَتْ بَلَى فَرَكِبَتْ فَجَاءَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى جَمَلِ عَائِشَةَ وَعَلَيْهِ حَفْصَةُ فَسَلَّمَ عَلَيْهَا ثُمَّ سَارَ حَتَّى نَزَلُوا وَافْتَقَدَتْهُ عَائِشَةُ فَلَمَّا نَزَلُوا جَعَلَتْ رِجْلَيْهَا بَيْنَ الْإِذْخِرِ وَتَقُولُ يَا رَبِّ سَلِّطْ عَلَيَّ عَقْرَبًا أَوْ حَيَّةً تَلْدَغُنِي وَلَا أَسْتَطِيعُ أَنْ أَقُولَ لَهُ شَيْئًا

روايت کښې دى چه حضرت حفصه رضي الله عنها حضرت عائشه رضي الله عنها ته اوونيل چه نن شپه ته ځما په اوښ سوره شه او ځه به ستا په اوښ سوره شم. اوبيا اوګوره چه (ځما اوښ ځنګه تيز ځي)او ځه ګورم چه ( ستا اوښ ځنګه ځي يا ته هغه طر فته اوګورې چه کوم طرفته ځه ګورم او ځه هغه طرفته اوګورم چه کوم طرفته ته ګورې).

حضرت حفصه رضي الله عنها دپوخ عمر ښځه وه اوحضرت عائشه رضي الله عنها کم عمره وه. حضرت حفصه رضي الله عنها حضرت عائشه رضي الله عنها داشان اوغلوله. ددې منشاء داوه چه دحضرت نبى کريم صلى الله عليه وسلم عادت دادې چه دشپې حضرت عائشه رضي الله عنها سره سفر کوى. داسعادت دې ماته ولې حاصل نه وى، حضرت نبى کريم صلى الله عليه وسلم به دحضرت عائشه رضي الله عنها اوښ اوګورى اورابه شي اوپه دې کښې به ځه موجوده يم نوماسره به خبرې اترې اوکړي.

---

۱) اوګورئ المغنى لابن قدامه : ۲۳۸/۷ ،کتاب النکاح مساله : ۵۷۳۱ ، وارشاد السارى: ۵۰۱/۱۱).

۲) اوګورئ الابواب والتراجم: ۷۵/۲).

۳) فتح التقدير: ۴۱۵/۳).

نو حضرت عائشه رضي الله عنها د حفصه رضي الله عنها په دهوکه کښې ر اغله او اوښ ئې بدل کړو ، حضرت نبی کریم ﷺ حضرت عائشه رضي الله عنها لره ورغلو نو وې کتل چه په هغه ځائې کښې دحضرت دعائشه رضي الله عنها په ځائې حضرت حفصه رضي الله عنها وه. حضرت نبی کریم ﷺ هغې ته سلام اوکړو اوتیرشو ،بل طرفته چه حضرت عائشه رضي الله عنها نبی کریم عليه السلام خپل خان سره اونه موندو نو هغې ته ډیر افسوس اوشو.

هرکله چه لښکر پړاو اوکړو نو حضرت عائشه رضي الله عنها دا ذخر په وخوکښې پښې دننه کړې اوکیښناسته او وې وئیل چه ائې الله ﷻ ما باندې څه مار لړم مقرر کړه چه ما اوچیچي. څه حضرت نبی کریم ﷺ ته وئیلې هم نشم. (ځکه چه غلطی ځما خپله ده ، غرض دا چه حضرت عائشه رضي الله عنها شرمنده هم وه او پریشانه هم). ((طارت القرعة لعائشة أی حصلت))

## ٩٧=بَابُ الْمَرْأَةِ تَهَبُ يَوْمَهَا مِنْ زَوْجِهَا لِضَرَّتِهَا وَكَيْفَ يَقْسِمُ ذٰلِكَ

[٤٩١٤] حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ عَنْ هِشَامٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ أَنَّ سَوْدَةَ بِنْتَ زَمْعَةَ وَهَبَتْ يَوْمَهَا لِعَائِشَةَ وَكَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْسِمُ لِعَائِشَةَ بِيَوْمِهَا وَيَوْمِ سَوْدَةَ

دا خبره ماقبل تیره شوې ده چه یو ښځه خپل نمبر خپلې یو بنې ته هبه کولې شی ((وکیف یقسم ذالك)) سړې به دا څنګه تقسیموی. یعنی که یو ښځه خپل نمبر خپلې یو بنې ته ورکړی نو سړې به دا څنګه تقسیموی. امام بخاری رحمه الله دې قسمت لره بیان نه کړو بلکه دائې علی سبیل الاستفهام ذکر کړې دې.

ددې تقسیم طریقه کار دادې چه مو هوبه په دې نمبر کښې به په منزله د واهبه وی. دواهبه دپاره چه کومه ورځ وی هغه به د موهوبه په حصه کښې راځی. لکه دموهوبه خپله ورځ په دوئمه ورځ ده اودا ابه نمبر په څلورم ورځ دې نو موهوبه ته به اوس دوه ورځې ملاویږی. یو دوئمه چه ددې خپله ده او یو څلورمه ورځ چه دا ورځ ده. په دې کښې خاوند دپاره داشان کول صحیح نه دی چه موهو به ته دوه ورځې پرله پسې ورکړی یعنی دوئمه او دریمه ځکه چه په دې صورت کښې به نورو بنوته حرج وی. اوکه موهوبه دنمبر ورځ د واهبه د ورځې سره متصل ده نو بیا موهوبه ته به دوه ورځې متصل ملاویږی. (١)

**دنمبر قسم مسنون طریقه** په دې سلسله کښې دحضرت نبی اکرم ﷺ طریقه دا وه چه حضرت نبی کریم ﷺ به دهرې یو دپاره یو ورځ اویو شپه مقرر کوله.

ددې وجې بعض داهل علم دا خیال دې چه د نمبر په سلسله کښې یو شپه او ورځې نه زیاته موده یو ته نسه دی ورکول پکار. امام مالك رحمه الله ، ابوثور رحمه الله او شوافع کښې ابواسحاق مروزی هم دا رائې ده . (٢)

---

١ ) عمده القاری: ٢٠/١٩٨).
٢ ) عمدة القاری: ٢٠/١٩٨، ١٩٩).

دامام شافعی رحمه الله په نیز یوم ولیلة حساب مستحب اوبهتر دې ، بیاهم د دوه دوه او دریو دریوشپو حساب لګولو سره هم دنمبر ایښودو ګنجائش دجواز موجود دې. ددې نه زیات مکروه دي. (۱)

علامه جوینی رحمه الله فرمائی چه د نمبر دا موده دمدت ایلاء یعنی څلورمیاشتونه زیات ته دې پکار. ددې نه کم جائزدي.لکه دیویو میاشت میاشتې حساب هم لګولې شی، (۲)

حضرات حنفیه فرمائی چه په دې کښې تحدید او تعیین نه دې بلکه د زوج او ازواج په خپلو کښې رضامندئی باندې موقوف دی. (۳)

## ۹۸=بَاب الْعَدْلِ بَيْنَ النِّسَاءِ

وَلَنْ تَسْتَطِيعُوا أَنْ تَعْدِلُوا بَيْنَ النِّسَاءِ إِلَى قَوْلِهِ وَاسِعًا حَكِيمًا (النساء:۱۲۹،۱۳۰).

دامام بخاری رحمه الله مقصد دادې چه د ښځو په مینځ کښې عدل او مساوات په دې څیزونو کښې واجب دې چه کوم اختیاری دی لکه نان نفقه ، سکنی وغیره غیراختیاری څیزونوکښې دمسا وات سړې مکلف نه دې ،که یو ښځې سره دسړی فطری طور محبت زیات دې اودوئمې سر کم دې نو دا قابل مواخذه نه دې.

حضرت نبی کریم ﷺ به عدل بین الازواج فرمائیل حالانکه په حضرت نبی کریم ﷺ باندې عدل واجب نه وو. لیکن ددې باوجود به حضرت نبی کریم ﷺ فرمائیل چه«اللهم هذا قسمی فيما أملك فلا تلمني فيما تملك ولا أملك»، امام ترمذی رحمه الله ددې تقسیر محبت او مودت کړې دې.(۴)

## ۹۹=باب: اذا تزوج البكر على الثيب

[۴۹۱۵] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا بِشْرٌ حَدَّثَنَا خَالِدٌ عَنْ أَبِي قِلَابَةَ عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وَلَوْ شِئْتُ أَنْ أَقُولَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَكِنْ قَالَ السُّنَّةُ إِذَا تَزَوَّجَ الْبِكْرَ أَقَامَ عِنْدَهَا سَبْعًا وَإِذَا تَزَوَّجَ الثَّيِّبَ أَقَامَ عِنْدَهَا ثَلَاثًا [ر:۴۹۱۶]

ثیبه ښځه مخکښې نه سړی سره موجوده وی اوسړې یوپیغلې ښځې سره واده اوکړی نو دده سره د اوسیدو ترتیب څه وی. امام بخاری رحمة الله علیه ددې ترجمې لاندې دحضرت انس رضی الله عنه حدیث نقل کوی اوهغه ترتیب بیانوی چه کوم کښې مسنون دادی چه دې باکره سره به سړې اووه ورځې وی. او ددې اووه ورځو نه پس به نمبر بیا شروع کیږی ، دا اووه ورځې به په نمبر کښې نه شمیرلې کیږی.

---

۱) عمده القاری: ۱۹۹/۲۰).

۲) عمدة القاری: ۱۹۹/۲۰).

۳) اوګورئ الهدایه ، کتاب النکاح باب القسم : ۳۱۹/۲).

۴) اخراجه ابوداودٌ رقم الحدیث : ۲۱۳٤ ، والترمذی ، رقم الحدیث ، ۱۱٤۰ ، والدارمی : رقم الحدیث : ۲۱۲۷ ، وابن ماجه : ۱۹۷۱ ، رقم الحدیث: ٤۲۰۵ ، والحاکم : ۱۸۷/۲ ، اوګورئ عمده القاری: ۱۹۹/۲۰).

امام بخاری رحمة الله علیه ددې باب لاندې چه کوم حدیث ذکر فرمائیلې دې په هغې کښې د «علی الثیب» الفاظ نه دی بلکه صرفل دادی چه باکره سره د واده کولو نه پس دې سره اووه ورځې پاتې کیدل سنت دی. لیکن هم په دې حدیث کښې په بل طریق کښې چونکه د «علی الثیب» الفاظ دی ددې وجې ترجمه کښې هم د «علی الثیب» الفاظ امام بخاری رحمه الله استعمال کړل. نو په دې راتلونکی حدیث کښې د حضرت انس رضی الله عنه دا الفاظ دی.

امام بخاری رحمه الله په ترجمة الباب کښې «اذا تزوج البکر» شرط ذکر فرمائیلې دې ، مخکښې حدیث باندې اکتفا کولو سره جزاء نه ذکر کوی.

## ۱۰۰=بَاب إِذَا تَزَوَّجَ الثَّيِّبَ عَلَى الْبِكْرِ

[۴۹۱۶] حَدَّثَنَا يُوسُفُ بْنُ رَاشِدٍ حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ عَنْ سُفْيَانَ حَدَّثَنَا أَيُّوبُ وَخَالِدٌ عَنْ أَبِي قِلَابَةَ عَنْ أَنَسٍ قَالَ مِنَ السُّنَّةِ إِذَا تَزَوَّجَ الرَّجُلُ الْبِكْرَ عَلَى الثَّيِّبِ أَقَامَ عِنْدَهَا سَبْعًا وَقَسَمَ وَإِذَا تَزَوَّجَ الثَّيِّبَ عَلَى الْبِكْرِ أَقَامَ عِنْدَهَا ثَلَاثًا ثُمَّ قَسَمَ
قَالَ أَبُو قِلَابَةَ وَلَوْ شِئْتُ لَقُلْتُ إِنَّ أَنَسًا رَفَعَهُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَالَ عَبْدُ الرَّزَّاقِ أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ عَنْ أَيُّوبَ وَخَالِدٍ قَالَ خَالِدٌ وَلَوْ شِئْتُ قُلْتُ رَفَعَهُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [ر: ۴۹۱۵]

ددې باب لاندې هم د حضرت انس رضی الله عنه حدیث ذکر فرمائیلې شوې دې چه د باکره موجودګئ کښې ثیبه سره واده اوکړې شی نو درې ورځو پورې دې سره اوسیدې شی او بیا به نمبر شروع کیږی.

په دې مسئله کښې حضرات حنیفه اود ائمه ثلاثه اختلاف دې ، د ائمه ثلاثه په نیز د مذکوره حدیث مطابق د نکاح جدید نه پس د باکره دپاره اووه ورځې او ثیبه دپاره د درې ورځو زائد وی او بیا به نمبر شروع شی. (۱) او ثیبه ، باکره ، قدیمه اود جدیده هیڅ فرق نشته دې.(۲) حضرات حنفیه ددې نصوص نه استدلال کوی چه په دې کښې د مساوات مطلق ذکر راغلې دې. لکه د قرآن پاك آیت دې چه ﴿فَإِنْ خِفْتُمْ أَلَّا تَعْدِلُوا فَوَاحِدَةً﴾ په د ې کښې د قدیم ، جدید وغیره هیڅ قید نشته دې. (۳)

دا شان طحاوی وغیره د حضرت ام سلمه روایت نقل کړې دې چه حضرت نبی کریم صلی الله علیه وسلم کله دې سره نکاح اوکړه او حضرت نبی کریم صلی الله علیه وسلم دې سره درې ورځې قیام اوکړو ، بیا کله چه حضرت نبی کریم نورو ازواج مطهرات لره ورغلو نو حضرت ام سلمه رضی الله عنها د حضرت نبی کریم

۱) عمده القاری: ۲۰/۲۰۱).
۲) عمدة القاری: ۲۰/۲۰۱ ، والهدایه مع الفتح القدیر: ۳/۴۱۰ ، باب القسم).
۳) فتح القدیر: ۳/۴۱۰).

ﷺ كرته مباركه اونيوله نو حضرت نبي كريم ﷺ اوفرمائيل چه «ليس لك على اهلك هوان ان شئت سبعت عندك وسبعت عندهن وان شئت ثلثت ثم درت قالت ثلث» (۱)

امام محمد رحمة الله عليه ددې حديث مطلب دا بيان کړې دې ام سلمه ﷺ دا اوګنړله که حضرت نبي کريم ﷺ اووه ورځې ماسره وى او او بيا اووه اووه ورځې نوروسره وى نو ځما نمبر خو به ډيرې ورځې پس راځي. ددې وجې هغې وته اوونيل چه تاسو درې ورځې پاتې شئ. ددې نه معلوم شوه که دې اووه ورځې ورکړې شوې نو ټولو ازواج مطهرات ته به اووه اووه ورځې ورکولې شى ، اوکه دې ته درې ورځې ورکړې شوې نو بيا به ټولو ته درې درې ورځې ورکولې شى. معلومه شوه خصوصيت هيڅ نشته دې. (۲)

جمهور علماء کرام فرمائى چه ددې مطلب دا نه دې بلکه ددې مطلب دادې که ستا سره اووه ورځې تيرې کړم نو بيا به نوروازاوج مطهرات سره اووه اووه ورځې تيرې کړم . او که ستا سره درې ورځې تيرې کړم نو چونکه ته نوى ئې نو بيا نورو بيبيانو سره درې درې ورځې نه تيروم .يو يو ورځ به پاتې کيږم او بيا به تاله راشم. په دويم ځل به ستا دومر حق وى لکه څومره چه دنورو وى. اوحضرت ام سلمه ﷺ چه کوم روايت په مسلم کښې نقل شوې دې ، ددې نه دجمهور علماء کرام دخيال تائيد کيږى.(۳)

ثيبه سره د نکاح جديد کولونه پس د ائمه ثلاثه په نيزدنمبر نه علاوه دې ته به درې ورځې ملاويږى. ليکن که د دريو ورځ نه زيات شواو اووه ورځې شو نودا اووه ورځې به په نمبر کښې محسوب وى. (۴)

حاصل دادې چه دانصوص مطلقه دحنفيه تائيد کوى،او نور دنصوص آئمه ثلاثه تائيد کوى.

**قوله: وقال عبدالرزاق،اخبرنا يوسف عن ايوب وخالد قال خالد:لو شئت لقلت رفعه الى النبي ﷺ:** راوئ حديث خالد فرمائى که څه غواړم نو دا وئيلې شم چه حضرت انس ﷺ دې حديث ته مرفوعاً وئيلې دې ، «لو شئت لقلت .....» ددې قول قائل په اختلاف کښې دى.امام بخارى ﷫ د اتعليق ذکر کوى او دې اختلاف طرفته اشاره کوى ، د پورته باب حديث موصول کښې ددې قول قائل ابوقلابه دې ،په هغه ځائې کښې دى چه «قال ابوقلابة لوشئت ....» اوعبدالرزاق په روايت کښې دى چه ددې قول قائل دابو قلابه شر شاګرد دې .

۱) شرح معانى الاثار للطحاوى، كتاب النكاح، باب مقدار ما يقيم الرجل، عند الثيب اوالبكر اذا تزوجها: ۱۹/۲).

۲) راجع الموطا للامام محمد: كتاب النكاح باب الرجل تكون عنده نسوه كيف يقسم بينهن ص: ۲۴۲) .

۳) اوګورئ ،صحيح مسلم ، كتاب النكاح ، باب قدر ما تستحقه البكر والثيب: ۴۷۲/۱ . وشرح مسلم للنووى : ۴۷۲/۲ . وشرح معانى الاثار للطحاوى : ۱۹/۲ ، وشرح الرزقانى على موطا امام مالک كتاب النكاح : ۱۳۵/۳).

۴) شرح مسلم للنووى : ۴۷۲/۲ . وشرح معانى الاثار: ۱۹/۲).

## ١٠١ = بَاب مَنْ طَافَ عَلَى نِسَائِهِ فِي غُسْلٍ وَاحِدٍ

[٤٩١٧] حَدَّثَنَا عَبْدُ الأَعْلَى بْنُ حَمَّادٍ حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ حَدَّثَنَا سَعِيدٌ عَنْ قَتَادَةَ أَنَّ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ حَدَّثَهُمْ أَنَّ نَبِيَّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَطُوفُ عَلَى نِسَائِهِ فِي اللَّيْلَةِ الْوَاحِدَةِ وَلَهُ يَوْمَئِذٍ تِسْعُ نِسْوَةٍ

امام بخارى رحمة الله عليه ددې ترجمې مقصد دادې چه هر جماع دپاره مستقل غسل كول واجب نه دى بلكه غسل نه بغير خپلو مختلفو بيبيانو سره جماع كولې شى.

داحديث په كتاب الغسل كښې «باب اذا جامع ثم دعا» لاندې تير شوې دې او په هغه ځاى كښې په دې باندې تفصيل بحث تير شوې دې.

## ١٠٢ = بَاب دُخُولِ الرَّجُلِ عَلَى نِسَائِهِ فِي الْيَوْمِ

[٤٩١٨] حَدَّثَنَا فَرْوَةُ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ مُسْهِرٍ عَنْ هِشَامٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا انْصَرَفَ مِنَ الْعَصْرِ دَخَلَ عَلَى نِسَائِهِ فَيَدْنُو مِنْ إِحْدَاهُنَّ فَدَخَلَ عَلَى حَفْصَةَ فَاحْتَبَسَ أَكْثَرَ مِمَّا كَانَ يَحْتَبِسُ

[ ۴۹۶۷ ، ۵۱۱۵ ، ۵۲۷۷ ، ۵۲۹۱ ، ۵۳۵۸ ، ۶۵۷۱ ، وانظر: ۴۶۲۸].

دامام بخارى رحمه الله مقصد دادې چه «عدل بين الازواج» كښې اصل اعتبار دشپې دې چه په دشپې به دچا نمبر وى ، په دې كښې به بلې ښځې سره پاتې كيدل جائز نه دى. ليكن كه د ورځې يو بى بى ته دكار يا دخه ضرورت دپاره ورشى نو دا دعدل منافى نه دى.

په حديث باب كښې دى چه حضرت نبى كريم ﷺ به د عصر دمونځ نه پس خپلو بيبيانو لره ورتلو او هريو سره به خه وخت تيرولو ، يو ورځ حضرت حفصه رضي الله عنها لره ورغلل او په هغه ځاى كښې لږ شان دمعمول نه وزيات پاتې شو . معلوم شوه چه د ورځې مختلفو بيبيانو لره تللې شى.

ددې حديث نه بعضو حضراتو استدلال كړې دې چه دشرب عسل واقعه حضرت حفصه رضي الله عنها سره شوې وه . بعضو دحضرت سوده رضي الله عنها نوم خودلې دې ليكن ما قبل تير شوى دى چه صحيح قول دادې چه هغه واقعه دحضرت زينب رضي الله عنها سره پيښه شوې وه. (١)

## ١٠٣ = بَاب إِذَا اسْتَأْذَنَ الرَّجُلُ نِسَاءَهُ فِي أَنْ يُمَرَّضَ فِي بَيْتِ بَعْضِهِنَّ فَأَذِنَّ لَهُ

«يمرض: صيغة المجهول من التمريض وهو القيام على المريض وتعاهد حاله _ فاذن له بتشديد النون لانه جمع مونث غائب من الماضى» (٢)

---

١) اوگورئ كشف البارى، كتاب التفسير تفسير سوره التحريم: ۶۸۵).
٢) عمده القارى: ٢٠٢/٢٠).

مطلب دادې چه سړې بيمار وي او هغه دخپلو بيبيانونه اجازت واخلي چه هغه به خپل وخت په خپلې مرضئ سره يو سره تيروي او ددوی د طرفنه اجازت ملاؤ شي نو دې سره منتقل كيدېشي . دنمبر او عدل دا منافي نه دی.

نو حضرت نبی كريم د مرض وفات په ورځوكښې حضرت عائشه رضي الله عنها سره وو اوباقي ازواج مطهرات حضرت نبی كريم ﷺ ته اجازت وركړې وو.

[۴۹۱۹] حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي سُلَيْمَانُ بْنُ بِلَالٍ قَالَ هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ اَخْبَرَنِي اَبِي عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا اَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَسْاَلُ فِي مَرَضِهِ الَّذِي مَاتَ فِيهِ اَيْنَ اَنَا غَدًا اَيْنَ اَنَا غَدًا يُرِيدُ يَوْمَ عَائِشَةَ فَاَذِنَ لَهُ اَزْوَاجُهُ يَكُونُ حَيْثُ شَاءَ فَكَانَ فِي بَيْتِ عَائِشَةَ حَتّٰى مَاتَ عِنْدَهَا قَالَتْ عَائِشَةُ فَمَاتَ فِي الْيَوْمِ الَّذِي كَانَ يَدُورُ عَلَيَّ فِيهِ فِي بَيْتِي فَقَبَضَهُ اللّٰهُ وَاِنَّ رَاْسَهُ لَبَيْنَ نَحْرِي وَسَحْرِي وَخَالَطَ رِيقُهُ رِيقِي [ر:۸۵۰].

حضور نبی اكرم ﷺ باندې عدل بين الازواج واجب وو كه نه ؟

په حضرت نبی كريم ﷺ باندې عدل بين الازواج واجب ووكنه نه؟ حضرات حنفيه دعدم وجوب قائل دی، هم داد مالكيه راجح قول دې ، لكه څنګه چه علامه زرقاني ليكلي دی چه امام غزالي رحمه الله همدا قول صحيح ګنړلې دې ،س اوعلامه بلقيني رحمه الله او علامه سيوطي رحمه الله فرمائي چه ((وهوالمختار للادلة الصريحة)) (۱)

ليكن د اكثرو شوافع او حنابله په نيزعدل بين الازواج واجب وو .(۲) هغه دحديث باب نه استدلال كوی ، حنفيه دا په استحباب باندې محمول كوی چه په حضرت نبی كريم ﷺ باندې واجب نه وو. ليكن دخپل طرفنه به ئې دعدل اهتمام كولو.

## ۱۰۴=بَاب حُبِّ الرَّجُلِ بَعْضَ نِسَائِهِ اَفْضَلَ مِنْ بَعْضٍ

[۴۹۲۰] حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ عَنْ يَحْيٰى عَنْ عُبَيْدِ بْنِ حُنَيْنٍ سَمِعَ ابْنَ عَبَّاسٍ عَنْ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ دَخَلَ عَلٰى حَفْصَةَ فَقَالَ يَا بُنَيَّةِ لَا يَغُرَّنَّكِ هٰذِهِ الَّتِي اَعْجَبَهَا حُسْنُهَا حُبُّ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِيَّاهَا يُرِيدُ عَائِشَةَ فَقَصَصْتُ عَلٰى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَتَبَسَّمَ [ر:۸۹]

ددې باب نه دامام بخاری رحمه الله مقصد دا وئيل دی چه دعدل تعلق محبت اوتعلق قلبی سره نه دې ځكه چه هغه يوغير اختياری څيز دې، حضرت نبی كريم ﷺ حضرت عائشه رضي الله عنها سره ډير محبت وو . حضرت عمر فاروق رضي الله عنه پخپله ددې اقرار كوی.

---

۱) دحنفيه مذهب دپاره اوګورئ حاشيه ترمذی للشيخ احمد علی السهارنفوی : ۲۱۷/۱ ، باب ماجاء فی التسويه بين الضرائر. دمالكيه مذهب دپاره اوګورئ شرح الزرقاني علی موطا الامام مالک كتاب النكاح : ۱۳۵/۳)

۲) عمدة القاري: ۲۰۳/۲۰).

## ١٠٥= باب المتشبع بما لم ينل وما ينهى من افتخار الضرة

«متشبع» باب تفعل نه د اسم فاعل صيغه ده د «تشبع» معنى ده ډير كول، ډير ظاهرول «التشبع بما لم ينل» معنى ده چه كوم نسان‌ته حاصله نه وى دا د خپل ځان دپاره حاصل شوې ظاهرول چه نورو ته معلوم شى چه دا څيزده ته حاصل دې ،حديث كښې مخكښې دداسې سړى حكم رازى.

**قوله: وما ينهى من افتخار الضرة:** يو بنې ته دبلې بنې په مقابله كښې داسې د دروغو افتخارممنوع دې چه‌دبنې د سوزولو دپاره‌هره ورځ بيانوى چه خاوند نن څما دپاره‌داسې جامې راوړى دى.داسې كالې ئې راوړې دې ، ليكن په حقيقت كښې هېڅ نه وى ، خو كه‌يو بنځې سره دخاوند واقعى محبت وى زيات اوهغه ددې محبت ذكر اوكړى نو په دې كښې هيڅ باك نشته دې،بعضونسخوكښې دى چه«اضجار الضرة» دې «اضجار الضرة أى ا لحاق الغم والقلق اياها»(١) مطلب دادې چه‌بنې لره په غم او قلق كښې اخته كول منع دى.

[٤٩٢١] حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ هِشَامٍ عَنْ فَاطِمَةَ عَنْ أَسْمَاءَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ح حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ هِشَامٍ حَدَّثَتْنِي فَاطِمَةُ عَنْ أَسْمَاءَ أَنَّ امْرَأَةً قَالَتْ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّ لِي ضَرَّةً فَهَلْ عَلَيَّ جُنَاحٌ إِنْ تَشَبَّعْتُ مِنْ زَوْجِي غَيْرَ الَّذِي يُعْطِينِي فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمُتَشَبِّعُ بِمَا لَمْ يُعْطَ كَلَابِسِ ثَوْبَيْ زُورٍ

يوبنځې دحضرت نبى كريم ﷺ نه تپوس اوكړو چه‌يارسول الله ﷺ څما يو بن ده كه څه «دهغې د سوزلو دپاره دهغې په مخكښې» دخپل خاوند د طرفنه‌چه څومره‌هغه سوزل كوى ماسره ددې نه زيات دهغې سره‌اوكړم نو آيا څه به گناهنگاره يم ؟حضرت نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چه نه وركړې شوې څيزظاهرولو دالا داسې دې لكه څنگه چه څوك د دروغو دوه جامې واغوندى.

علامه خطابى رحمه الله فرمائى چه‌د «ثوب» لفظ په دې كښې په طور د محاورې اوپه طور دمثال استعمال شوې دې.او مطلب دادې چه‌داسې سړې صاحب زوراوصاحب كذب يعنى دروغژن وى. لكه څنگه چه‌دچا په صفائى بيانولو كښې ونيلې شى «وهو ظاهر الثوب»مراد ددې نه ثوب نه دې بلكه نفس رجل وى. (٢)

ابو سعيدضرير اوفرمائيل چه‌د دروغو گواهئ وركولو والا دوه‌ښكلې جامې واغوندى او گواهى وركوى جه‌ددې ظاهرى حالت اوكتلې شى او په دوى باندې د دروغو گمان نه وى.

---

١) عمده القارى: ٢٠/٢٠٣، ٢٠٤).

٢) فتح البارى: ٩/٣٩٧).

علامه خطابی رحمه الله دنعیم بن حماد نه په دې سلسله کښې یو حکایت هم نقل کړې دې چه یو قبیله کښې دظاهری هیئت په اعتبار سره یو باوقاره سړې اوسیدو ، هرکله چه به د دروغو ګواهی ورکول شروع شو نو دوی به دوه جامې اغوستلې او ګواهی به ورکوله ، اودده د ظاهری کیفیت او لباس به وجه به دده ګواهی قبلولې شوه. خلقو به ونیل «امضاها بثوبیه» یعنی دده دجامو په ذریعه دده ګواهی قبوله کړې شوه. نوداشان دې دوؤ کپړو طرفته دزور نسبت شروع شو ، ونیلې کیږی چه «کلابس ثوبی زور» حاصل دادې چه دا په مذکوره پس منظر کښې یو محاوره جوړه شوې ده.(۱)

په حدیث کښې «ثوبی زور» په تنبیه راوړلو کښې دا حکمت هم دې چه په دېکښې په خپل نفس باندې دروغ دی چه کوم څیز ملاؤ نشو دهغې اظهار دې. او په نوروباندې هم دروغ دی چه کوم څیز ده ته ورکړې شوې نه دې هغې نسبت ته طرفته کولې شی . داشان د دروغو ګواهی ورکونکې په خپل ځان باندې ظلم کوی ، او مشهود علیه باندې هم ظلم کوی. (۲)

په حدیث کښې حضرت نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه سوال کولو والا دکومې ښځې ذکر دې، حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه ددې او ددې د خاوند متعلق ماته معلوم نشو چه دده نوم څه وو او دوی څوك وو. (۳)

## ۱۰۶=بَاب الْغَيْرَةِ

د غیرت او تغیر ماده یو ده . غیرت په تغیر باندې دلالت کوی . اصطلاح کښې غیرت هغه طبعی خفګان ته ونیلې شی چه د څه داسې څیز په وجه انسان ته نه لاحق شی چه په هغې کښې انسان شرکت کول نه خوښوی. (۴)

وَقَالَ وَرَّادٌ عَنِ الْمُغِيرَةِ قَالَ سَعْدُ بْنُ عُبَادَةَ لَوْ رَأَيْتُ رَجُلًا مَعَ امْرَأَتِي لَضَرَبْتُهُ بِالسَّيْفِ غَيْرَ مُصْفَحٍ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَتَعْجَبُونَ مِنْ غَيْرَةِ سَعْدٍ لَأَنَا أَغْيَرُ مِنْهُ وَاللَّهُ أَغْيَرُ مِنِّي [ر:۳۷۲]

حضرت سعد بن عبادة رضی الله عنه فرمائی که ما څوك خپلې ښځې سره اولیدو نو څه دهغه په توره اوژنم.

«مصفح» دا د «صفح» نه دې، دتورې پلن والی ته ونیلې شی . دباب افعال نه صیغه د اسم فاعل هم کیدیشی او اسم مفعول هم. داسم فاعل په صورت کښې د «ضربت» ضمیر دفاعل نه حال به وی یعنی څه به ده لره وهم . په دې حال کښې چه د تلوار په لنډوالی سره به نه وی

۱) فتح الباری:۳۹۷/۹).
۲) فتح الباری: ۳۶۷/۹ . وعمده القاری: ۲۰۴/۲۰).
۳) فتح الباری: ۳۹۷/۹).
٤) قال صاحب المشارق: مغنی الغیره تغیر القلب وهیجان الغضب بسبب المشارکه فی الاختصار من احد الزوجین بالاخر وتحریمه وذبه عنه (عمده القاری: ۲۰۵/۲۰).

(بلكه د توري په مخ سره به دې ختم كړم) او داسم مفعول په صورت كښې دا ((السيف)) نه به حال وى يعنى په دې حال سره چه دې به پلن والى او چوړائى سر نشى وهلې ، بلكه په تيره مخ به وهلې شى .(۱)

حضرت نبى كريم ﷺ دده دخبرې په آوريدو سره اوفرمائيل چه تاسوبه دسعد رضی الله عنه په خبره تعجب كښې شوى يئ ، خه دده نه زيات غيرت مند يم او الله ﷻ خما نه زيات غيرت مند دې. دا تعليق امام بخارى رحمه الله مخكښې په كتاب الحدود كښې موصولاً نقل كړې دې. (۲)

په دې خائې كښې حديث مكمل نه دې ، په مسند احمد كښې مكمل سياق و سباق سره دې چه دهغې الفاظ دى:

((لما نزلت هذه الاية : والذين يرمون المحصنات ، الاية قال سعد بن عبادة ، اهكذا انزلت . فلو وجد لكاع متفخذها رجل لم يكن لى ان احركه ولا اهيجه حتى اتى باربعة شهداء فوالله لا اتى باربعة شهداء حتى يقضى حاجته فقال رسول الله ﷺ يامعشر الانصار الا تسمعون مايقول سيدكم ؟ قالوا يا رسول الله ﷺ لا تلمه فانه رجل غيور والله ما تزوج امرأة قط الا عذراء ولا طلق امرأة فاجترأ رجل منا ان يتزوجها من شدة غيرته فقال سعد ، والله انى لاعلم يا رسول الله انها الحق وانها من عند الله ولكنى عجبت))(۳)

[ ۴۹۲۲] حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا اَبِى حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ عَنْ شَقِيقٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ عَنِ النَّبِىِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا مِنْ اَحَدٍ اَغْيَرُ مِنَ اللّٰهِ مِنْ اَجْلِ ذٰلِكَ حَرَّمَ الْفَوَاحِشَ وَمَا اَحَدٌ اَحَبَّ اِلَيْهِ الْمَدْحُ مِنَ اللّٰهِ [ر:۴۳۵۸].

حضرت نبى عليه السلام فرمائيلى دى چه دالله تعالى نه زيات خوك غيرت مند نشته دې ، هم په دې وجه الله ﷻ دبې حيائى كارونه حرام كړل ، اوالله ﷻ نه هيچا ته هم خيله مدحه زياته خوښه نه ده.

دغيرت په نسبت په دې حديث كښې الله ﷻ طرفته كړې شوې دې د متقدمين په مسلك كښې داشان الفاظو كښې تفويض وتسليم هم بهتر دې ، متاخرين فرمائى چه دداشان الفاظو نسبت الله ﷻ ته دغايت او نتيجې اعتبار سره دې ، دمبداء اعتبار سره نه دې ، دغيرت نتيجه او غايت دادې چه دې خيز لره باقى نشى پريښودې چه په كوم باندې غيرت رازى ، الله ﷻ ته په فواحشو باندې غيرت رازى ، ددې وجې الله ﷻ دې لره حرام كرزولى دى. (۴)

---

۱ ) فتح البارى: ۴۰۱/۹).

۲ ) اوګورئ صحيح بخارى ، كتاب الحدود: ۲/ ، قوله : اتعجبون من غيرة سعد " الهمزة فيه للاستفهام يجوز ان يكون على سبيل الاستحضار ويجوز ان يكون على سبيل الانكار يعنى لاتعجبوا من غير سعد وانا اغيرمنه من سعد (عمدة القارى: ۲۰۵/۲۰)

۳ ) فتح البارى: ۴۰۱/۹، ۴۰۲).

۴ ) راجع عمده القارى: ۲۰۵/۲۰).

[۴۹۲۳] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَا اُمَّةَ مُحَمَّدٍ مَا اَحَدٌ اَغْيَرَ مِنَ اللّٰهِ اَنْ يَرَى عَبْدَهُ اَوْ اَمَتَهُ تَزْنِي يَا اُمَّةَ مُحَمَّدٍ لَوْ تَعْلَمُوْنَ مَا اَعْلَمُ لَضَحِكْتُمْ قَلِيْلًا وَلَبَكَيْتُمْ كَثِيْرًا [ر: ۹۹۷].

په دې حديث کښې دهغه خطبې يوحصه نقل کړې شوې ده چه کومه حضرت نبی کريم ﷺ ارشاد فرمائيلې وه او په کتاب الکسوف کښې تيره شوې ده .په هغه ځائې کښې په دې باندې بحث تيرشوې دې. (۱)

[۴۹۲۴] حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمَاعِيْلَ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ عَنْ يَحْيَى عَنْ اَبِي سَلَمَةَ اَنَّ عُرْوَةَ بْنَ الزُّبَيْرِ حَدَّثَهُ عَنْ اُمِّهِ اَسْمَاءَ اَنَّهَا سَمِعَتْ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ لَاشَيْءَ اَغْيَرُ مِنَ اللّٰهِ وَعَنْ يَحْيَى اَنَّ اَبَا سَلَمَةَ حَدَّثَهُ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ حَدَّثَهُ اَنَّهُ سَمِعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (۲)

[۴۹۲۵] حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا شَيْبَانُ عَنْ يَحْيَى عَنْ اَبِي سَلَمَةَ اَنَّهُ سَمِعَ اَبَا هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهُ قَالَ اِنَّ اللّٰهَ يَغَارُ وَغَيْرَةُ اللّٰهِ اَنْ يَاْتِيَ الْمُؤْمِنُ مَا حَرَّمَ اللّٰهُ (۳) «عن يحيى ان اباسلمة» دا ماقبل سند باندې معطوف دې او موصول دې .

امام بخاری رحمه الله دوه سندونه بيان کړی دی. ① موسى بن اسماعيل عن همام عن يحيى عن ابى سلمة عن ابى هريرة عن النبى ﷺ. ② ابونعيم عن شيبان عن يحيى عن ابى سلمة عن ابى هريرة عن النبى ﷺ .

يحيى باندې دواړه سندونه يوځائې کيږی . په دې ځائې کښې چه کوم الفاظ دحديث منقول دی «ان الله يغار وغيرة الله ان ياتى المومن ماحرم الله» حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه په ظاهر د دواړو سندونو الفاظ يو دی اودا الفاظ د دواړو سندونو دی.(۴)

[۴۹۲۶] حَدَّثَنَا مَحْمُوْدٌ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ قَالَ اَخْبَرَنِي اَبِي عَنْ اَسْمَاءَ بِنْتِ اَبِي بَكْرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَتْ تَزَوَّجَنِي الزُّبَيْرُ وَمَا لَهُ فِي الْاَرْضِ مِنْ مَالٍ وَلَا مَمْلُوْكٍ وَلَا شَيْءٍ غَيْرَ نَاضِحٍ وَغَيْرَ فَرَسِهِ فَكُنْتُ اَعْلِفُ فَرَسَهُ وَاَسْتَقِي الْمَاءَ وَاَخْرِزُ غَرْبَهُ وَاَعْجِنُ وَلَمْ اَكُنْ اُحْسِنُ اَخْبِزُ وَكَانَ يَخْبِزُ جَارَاتٌ لِي مِنَ الْاَنْصَارِ وَكُنَّ نِسْوَةَ صِدْقٍ وَكُنْتُ اَنْقُلُ النَّوَى مِنْ اَرْضِ الزُّبَيْرِ الَّتِي اَقْطَعَهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى رَاْسِي وَهِيَ مِنِّي عَلَى ثُلُثَيْ فَرْسَخٍ

---

۱ ) اوګورئ صحيح البخاری: کتاب الکسوف . باب الصدقه فی الکسوف رقم الحديث: ۱۰۴۴).

۲ ) اخرجه مسلم فی التوبه .باب غيره الله تعالى وتحريم الفواحش رقم : ۲۷۶۱ . ۲۷۶۲ . (ان ياتى المومن) اى نهية ان ياتى المومن المحرمات).

۳ ) (۴۹۲۵) الحديث اخرجه النسائى غيران ذكر (ان لا يانى) مكان (ان ياتى ) باب غيرة النساء ووجدهن اخرجه البخارى ايضا فى كتاب الادب باب مايجوز من الهجران لمن عصى . رقم الحديث : ۶۰۷۸. واخرجه مسلم فى فضائل الصحابة باب فى فضل عائشة رضى الله عنها رقم الحديث: ۲۴۳۹).

۴ ) فتح البارى: ۴۰۲/۹).

فَجِئْتُ يَوْمًا وَالنَّوَى عَلَى رَاسِي فَلَقِيتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَعَهُ نَفَرٌ مِنَ الْأَنْصَارِ فَدَعَانِي ثُمَّ قَالَ اخْ اخْ لِيَحْمِلَنِي خَلْفَهُ فَاسْتَحْيَيْتُ اَنْ اَسِيرَ مَعَ الرِّجَالِ وَذَكَرْتُ الزُّبَيْرَ وَغَيْرَتَهُ وَكَانَ اَغْيَرَ النَّاسِ فَعَرَفَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنِّي قَدِ اسْتَحْيَيْتُ فَمَضَى فَجِئْتُ الزُّبَيْرَ فَقُلْتُ لَقِيَنِي رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعَلَى رَاسِي النَّوَى وَمَعَهُ نَفَرٌ مِنْ اَصْحَابِهِ فَاَنَاخَ لِاَرْكَبَ فَاسْتَحْيَيْتُ مِنْهُ وَعَرَفْتُ غَيْرَتَكَ فَقَالَ وَاللّٰهِ لَحَمْلُكِ النَّوَى كَانَ اَشَدَّ عَلَيَّ مِنْ رُكُوبِكِ مَعَهُ قَالَتْ حَتَّى اَرْسَلَ اِلَيَّ اَبُو بَكْرٍ بَعْدَ ذٰلِكَ بِخَادِمٍ تَكْفِينِي سِيَاسَةَ الْفَرَسِ فَكَاَنَّمَا اَعْتَقَنِي [ر: ۲۹۸۲].

حضرت اسماء بنت ابى بكر صديق رضي الله عنهما فرمائي چه كله ماسره زبير واده اوكړو نو نه هغه سره مال ووا و نه زمكه او نه وينځه غلام وو.سوا د اوبو راښكلو اوښان اوآس نه هيڅ نه وو. دده آس نه به ما څرول ،اوبه به مې راوړې ،ددې ډول به مې صحيح كولواواوړه به مې اغړل ، البته ماته په ښه طريقه روټئ پخول نه راتلل. خما روټئ به انصارو ګاونډيانو پخولې ، هغوى ډيرې پاكې ښځې وې،حضرت نبى كريم ﷺ چه كومه زمكه زبير ته وركړې وه نو ما به دهغې نه د كهجورو ګيټى راوړل .هغه ځائې دوه ميله لرې وو.يو ورځ ما په سر باندې ګټې اېښودې وو او واپس راتلم چه ماته حضرت نبى كريم ﷺ ملاؤ شو.حضرت نبى كريم ﷺ سره څو اهم صحابه كرام هم وو. حضرت نبى كريم ﷺ ماته آوازاوكړو. بيا ئې خه په اوښ باندې خپل شاته كېښناستلو دپاره اوښ ته اخ ا خ اووئيل .خو ماته سړوسره په تګ كښې شرم را تلو. ماته دزبير غيرت هم ياد شو او هغه ډير غيرت مند وو.حضرت نبى كريم ﷺ پوهه شو او خه شرميږم نو حضرت نبى كريم ﷺ روان شول ، ما زبير ته اووئيل چه ماته په لار كښې حضرت نبى كريم ﷺ ملاؤشوې وو .خما په سر باندې ګيډې وواو هغوى سره څو صحابه كرام هم وو. حضرت نبى كريم ﷺ ماته په اوښ د كيښناستو دپاره اوفرمائيل خو ماته شرم راغلواو ماته ستاغيرت هم معلوم دې. زبير اوئيل چه حضرت نبى كريم ﷺ سره دسوريدو نه ماته ستا ګيډې اوچتول دتولو نه زيات سخت دى. (خكه چه حضرت نبى كريم ﷺ سره كيښناستل خه دشرم باعث نه وو .ليكن داشان ګيډى اوچتول دزمكې نه راوړل مالره دعار او طعنې نه زيات دى).

دې نه پس حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه يوخادم اوليږلو ماته چه هغه د آسونو پرورش كولو ، اوهغه مالره كافى شوچه ګنى هغه خه ددې بوج نه آزاده كړم.

«ناضح» هغه اوښ چه كوم باندې اوبه راوړلې شى«اعلف»ازضرب،څرول ، څريدل«استقى» داد افنفعال نه دمتكلم صيغه ده «استقى من ا لنهر»نهر وغيره نه اوبه راوړل «اخرز غربه» ما به دده ډول صحيح كولو«خرز(ض،خرزا» ګنډل «غرب» ډول «اعجن (ض ن) عجنا» اوړه اغړل . «نسوة صدق» رينتونې ښځې«صدق» طرفته اسم اضافت كولې شى،په قرآن پاك كښې دى چه«ان لهم قدم صدق عند ربهم (النوى» زړې«اقطعه اقطاعا» زمكه وركول .«على راس النوى» نه

حال دې «اى كنت انقل النوى حال كونها على راسى من ارض الزبير»«اغاغ» دهمزه کسره او دخاء سکون سره» دا کلمه داوښ کینولو دپاره وئیلې شی. «سیاسة الفرس» دآس نګرانی.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه ظاهر هم دادی چه دا واقعه نزول حجاب نه مخکښې ده، تر دې وخته پورې دپردې حکم نه وو نازل شوی. (۱)

[۴۹۲۷] حَدَّثَنَا عَلِيٌّ حَدَّثَنَا ابْنُ عُلَيَّةَ عَنْ حُمَيْدٍ عَنْ أَنَسٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عِنْدَ بَعْضِ نِسَائِهِ فَأَرْسَلَتْ إِحْدَى أُمَّهَاتِ الْمُؤْمِنِينَ بِصَحْفَةٍ فِيهَا طَعَامٌ فَضَرَبَتْ الَّتِي النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي بَيْتِهَا يَدَ الْخَادِمِ فَسَقَطَتْ الصَّحْفَةُ فَانْفَلَقَتْ فَجَمَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِلَقَ الصَّحْفَةِ ثُمَّ جَعَلَ يَجْمَعُ فِيهَا الطَّعَامَ الَّذِي كَانَ فِي الصَّحْفَةِ وَيَقُولُ غَارَتْ أُمُّكُمْ ثُمَّ حَبَسَ الْخَادِمَ حَتَّى أُتِيَ بِصَحْفَةٍ مِنْ عِنْدِ الَّتِي هُوَ فِي بَيْتِهَا فَدَفَعَ الصَّحْفَةَ الصَّحِيحَةَ إِلَى الَّتِي كُسِرَتْ صَحْفَتُهَا وَأَمْسَكَ الْمَكْسُورَةَ فِي بَيْتِ الَّتِي كَسَرَتْ [ر: ۲۳۴۹]

داحدیث په کتاب المظالم کښې تیر شوی دی. حضرت نبی کریم ﷺ خپلې یو بی بی سره وو. دونمې بی بی دهغې کورته پلیټ اولیږلو د خوراك. حضرت نبی کریم ﷺ چه کومې سره وو. هغې ته دغیرت په وجه غصه راغله. او دخادم دلاسه ئې پلیټ مات کړو. حضرت نبی کریم ﷺ دپلیټ ماتې ټکړې جمع کړې او وې فرمائیل چه ستا مور په غصه شوه. بیا چه چا پلیټ مات کړې وو دهغې دکور نه روغ پلیټ ورکړو او واپس ئې کړو خادم. اومات شوې پلیټ ئې دهغې په کور کښې کیخودو.

حافظ ابن حجر رحمه الله لیکلی دی چه حضرت نبی کریم ﷺ کومې ښځې په کور کښې وو، هغه حضرت عائشه رضی الله عنها وه. او روتې لیږونکې حضرت زینب بنت جحش رضی الله عنها وه. (۲)

«غارت امکم» کښې خطاب غلام او چه کوم حاضر ووهغوی ته وو، او «امکم» نه هغه زوجه مراد ده چه کومې پلیټ مات کړې وو. (۳)

[۴۹۲۸] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ أَبِي بَكْرٍ الْمُقَدَّمِيُّ حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ دَخَلْتُ الْجَنَّةَ أَوْ أَتَيْتُ الْجَنَّةَ فَأَبْصَرْتُ قَصْرًا فَقُلْتُ لِمَنْ هَذَا قَالُوا لِعُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ فَأَرَدْتُ أَنْ أَدْخُلَهُ فَلَمْ يَمْنَعْنِي إِلَّا عِلْمِي بِغَيْرَتِكَ قَالَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ يَا رَسُولَ اللَّهِ بِأَبِي أَنْتَ وَأُمِّي يَا نَبِيَّ اللَّهِ أَوَعَلَيْكَ أَغَارُ [ر: ۳۴۸۶].

[۴۹۲۹] حَدَّثَنَا عَبْدَانُ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ عَنْ يُونُسَ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي ابْنُ الْمُسَيَّبِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ بَيْنَمَا نَحْنُ عِنْدَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جُلُوسٌ فَقَالَ رَسُولُ

---

۱) فتح الباری: ۹/۴۰۵).
۲) فتح الباری: ۹/۴۰۵).
۳) فتح الباری: ۹/۴۰۶).

اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَمَا اَنَا نَائِمٌ رَاَيْتُنِي فِي الْجَنَّةِ فَاِذَا امْرَاَةٌ تَتَوَضَّا اِلَى جَانِبِ قَصْرٍ فَقُلْتُ لِمَنْ هٰذَا قَالُوا هٰذَا لِعُمَرَ فَذَكَرْتُ غَيْرَتَكَ فَوَلَّيْتُ مُدْبِرًا فَبَكَى عُمَرُ وَهُوَ فِي الْمَجْلِسِ ثُمَّ قَالَ اَوَعَلَيْكَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ اَغَارُ [ر:۳۰۷۰].

دا حديث په كتاب المناقب كښې دحضرت عمر فاروق رضي الله عنه په مناقبوكښې تير شويدې.

«فاذا امراة تتوضا» باندې بعضوحضراتو وئيلى دى چه دجنت ښځې به پاكې وى ، هغوى ته به داودس كولو ضرورت نه وى ، ددې وجې دا تصحيف دې اصل كښې «وضاء» يا «شوهاء» لفظ دې ، چه ددې معنى ښكلې ده يعنى هغه ځائې كښې په ښكلې ښځې وى. ليكن حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه د «تتوضاء» لفظ تصحيف نه دې بلكه صحيح دې ، باقى جنت كښې ددې ښځو اودس كول د نظافت دپاره نه دى وو بلكه په طور دعادت وو. (۱)

داودى ددې حديث نه استدلال كړې دې چه جنت كښې به حورې مونځ ادا كوى ، او اودس به كوى ، (۲)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائيلى دى چه جنت كښې دعبادت مكلف نه كيدونه دالازميږى نه چه هغه ځائې كښې به اختيار او شوق سره عبادت نه كيږى. (۳)

## ۱۰۷ = بَابُ غَيْرَةِ النِّسَاءِ وَوَجْدِهِنَّ

«وجد» غصې ته وئيلې شى ، علامه انور شاه كشميرى رحمة الله عليه فرمائى چه :

«وجدهن: وله اربعة مصادر، وجدانا، ووجدا، وموجدا، ووجودا وباعتبار مصادر الاربعة تختلف معان والمناسب لترجمة المصنف وموجدتهن بدل وجدهن فان الوجد ترجمة» زړه را ډكيدل ، «وليس بمناسب ههنا» . (۴)

امام بخارى رحمه الله دا وئيل غواړى چه په ښځو كښې د غيرت ماده زياته وى او هغوى زر غصه كيږى ، لهذا ددوى دا قسم څه كيفيت مخكښې راشى نو دې هغوى لره معذوره اوګڼړلې شى.

امام بخارى رحمه الله ترجمه كښې څه تفصيل پيش نه كړو ځكه چه په دې سلسله كښې څه قاعده كليه نشته دې. احوال او اشخاص اعتبار سره په دې كښې اختلاف وى.

ښځې ته كه په سړى باندې غيرت او غصه رازى او ددې څه تهوس وجه او ثبوت وى لكه هغه ددې په زنا او ددې په حقوق زوجيت كښې كوتاهى كوى نو دا شان غيرت شرعى طور جائز دې، ليكن كه څه دليل او ثبوت نه وى نو صرف د ظن او وهم په بنياد باندې ښځه دغيرت

---

۱) فتح البارى: ۹/۴۰۶).
۲) فتح البارى: ۹/۴۰۶) .
۳) فتح البارى: ۹/۴۰۶).
٤) فيض البارى: ٤/۳۰۷).

اظهار كوى نو شرعى طور دا ښه نه دى ،البته كه ښځې طرفته په دې كښې دحدنه تجاوز نه وى نو سړى ته پكار دى چه دا معذوره اوګڼرى. او صبر و تحمل نه كار اخلى.(۱)

[۴۹۳۰] حَدَّثَنَا عُبَيْدُ بْنُ اِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا اَبُو اُسَامَةَ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا قَالَتْ قَالَ لِى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنِّى لَاَعْلَمُ اِذَا كُنْتِ عَنِّى رَاضِيَةً وَاِذَا كُنْتِ عَلَىَّ غَضْبَى قَالَتْ فَقُلْتُ مِنْ اَيْنَ تَعْرِفُ ذٰلِكَ فَقَالَ اَمَّا اِذَا كُنْتِ عَنِّى رَاضِيَةً فَاِنَّكِ تَقُولِينَ لَا وَرَبِّ مُحَمَّدٍ وَاِذَا كُنْتِ عَلَىَّ غَضْبَى قُلْتِ لَا وَرَبِّ اِبْرَاهِيمَ قَالَتْ قُلْتُ اَجَلْ وَاللَّهِ يَا رَسُولَ اللَّهِ مَا اَهْجُرُ اِلَّا اسْمَكَ [ر:۵۷۲۸].

حضرت عائشه ﷺ فرمائى چه حضرت نبى كريم ﷺ ماته اوفرمائيل چه كله ته خما نه خوشحاله يې يا خفه ئې نو ماته پته لږى. حضرت عائشه ﷺ فرمائى چه ما تپوس اوكړو چه هغه څنګه؟ نو حضرت نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چه كله ته خما نه خوشحاله ئې نو ته په هغه وخت كښې دقسم په وخت ((لا ورب محمد)) وائې او كله ته خفه ئې نو ((لاورب ابراهيم)) وائې.

حضرت عائشه ﷺ فرمائى چه ما اوئيل چه دا صحيح دى، ليكن په الله تعالى قسم يارسو الله ﷺ چه څه صرف ستاسو نوم پرېږدم (ليكن ستاسو ذات سره چه كوم خما دزړه تعلق دې هغه بهر حال برقرار وى).

داحديث په دې ځائې كښې امام بخارى ﷺ په ړومبى ځل ذكر كړې دې ، او دحديث مناسبت ترجمة الباب نه ظاهر دې.

حضرت عائشه ﷺ دخفګان په وخت كښې په ټولو نبيانو كښې دحضرت ابراهيم ﷺ نوم اخلى او ((لا ورب ابراهيم)) وئيل څكه چه دحضرت ابراهيم ﷺ په ټولو نبيانوكښې حضرت نبى كريم ﷺ سره زيات نزدې تعلق وو. داد حضرت عائشه ﷺ پوهه او ذهانت نتيجه وه چه دخفګان په وخت كښې چه كله حضرت نبى كريم ﷺ دنوم نه عدول اختياروى نو دداسې نبى ﷺ نوم به ئې اخستلو چه حضرت نبى كريم ﷺ ته زيات نزدې وو. (۲)

ددې حديث متعلق نور بحثونه به انشاء الله تعالى په كتاب التوحيد كښې رازى. ((اعان الله تعالى على الوصول الى ذالك بحوله وقوته)).

[۴۹۳۱] حَدَّثَنِى اَحْمَدُ ابْنُ اَبِى رَجَاءٍ حَدَّثَنَا النَّضْرُ عَنْ هِشَامٍ قَالَ اَخْبَرَنِى اَبِى عَنْ عَائِشَةَ اَنَّهَا قَالَتْ مَا غِرْتُ عَلَى امْرَاَةٍ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَمَا غِرْتُ عَلَى خَدِيجَةَ لِكَثْرَةِ ذِكْرِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِيَّاهَا وَثَنَائِهِ عَلَيْهَا وَقَدْ اُوحِىَ اِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ يُبَشِّرَهَا بِبَيْتٍ لَهَا فِى الْجَنَّةِ مِنْ قَصَبٍ [ر:۳۶۰۵].

حضرت عائشه ﷺ فرمائى چه ماته به څومره غيرت د حضرت خديجه ﷺ په سلسله كښې

---

۱) فتح البارى: ۲۰۷/۹).
۲) فتح البارى: ۴۰۹/۹).

راتلو دومره به درسول الله ﷺ په بله بى بى باندې نه راتلو ، ځكه چه حضرت نبى كريم ﷺ به دهغې اكثر ذكر كولو ، اودهغې به ئې ډير تعريف كولو ، حضرت نبى كريم ﷺ طرفته وحى شوې وه چه حضرت نبى كريم ﷺ دې هغې ته په جنت كښې دموتى دمحل زيرې وركړى.
((قصب))بانړس ته هم وائى اومرواريد تازه هم ،((زبرجد))تازه ته هم وائى ،چه قيمتى جواهر ورته وئيلې شى . مطلب دادې چه دقيمتى جواهراتو موتيانو نه ددوى دپاره جنت كښې يومحل تيار شوې دې ، (۱)داحديث ابواب المناقب كښې((باب تزوج النبى خديجه ﷺ)) كښې تير شوې دې ، او هم په هغه ځائې كښې په دې باندې بحث شوې دې.

## ۱۰۸=بَابُ ذَبِّ الرَّجُلِ عَنْ ابْنَتِهِ فِي الْغَيْرَةِ وَالْإِنْصَافِ

ددې ترجمې مقصد دادې چه كه دچا لور دبل چا په نكاح كښې ده او دده لور سره ځه داسې واقعه راپيښه شى چه دده دغيرت سبب جوړ شى نو پلار دخپلې لور دطرفنه دفاع كولې شى ، داشان دفاع په عصبيت جاهليت كښې داخله نه ده.

[۴۹۳۲] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ عَنْ الْمِسْوَرِ بْنِ مَخْرَمَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ وَهُوَ عَلَى الْمِنْبَرِ إِنَّ بَنِي هِشَامِ بْنِ الْمُغِيرَةِ اسْتَأْذَنُوا فِي أَنْ يُنْكِحُوا ابْنَتَهُمْ عَلِيَّ بْنَ أَبِي طَالِبٍ فَلَا آذَنُ ثُمَّ لَا آذَنُ ثُمَّ لَا آذَنُ إِلَّا أَنْ يُرِيدَ ابْنُ أَبِي طَالِبٍ أَنْ يُطَلِّقَ ابْنَتِي وَيَنْكِحَ ابْنَتَهُمْ فَإِنَّمَا هِيَ بَضْعَةٌ مِنِّي يُرِيبُنِي مَا أَرَابَهَا وَيُؤْذِينِي مَا آذَاهَا هَكَذَا قَالَ [ر:۸۸۳].

علامه ذهبى رحمه الله فرمائى چه داهغه حديث دې چه ددې تخريج آئمه خمسه ،بخارى ، مسلم، ابوداود ، ترمذى اونسائى هم ديو استاد قتيبه نه كړې دې. دا حديث په ابواب المناقب كښې تير شوې دې. (۲)

.په روايت كښې دى چه حضرت نبى كريم ﷺ په منبر باندې خطبه كښې اوفرمائيل چه بنو هاشم بن مغيره( چه دابوجهل دخاندان خلق وو) ځما نه اجازت غوښتلې دې چه هغه دخپلې لور( دعكرمه خور) نكاح على بن ابى طالب سره اوكړى ليكن ځه به هغوى ته هيڅ كله هم اجازت ورنكړم، كه على بن ابى طالب ځما لور ته طلاق وركړى اوهغې سره نكاح كول غواړى نو اودې كړى.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه دا د حضرت نبى كريم ﷺ په خصائص كښې شمارلې شى چه دحضرت نبى كريم ﷺ لور سره بل څوك په نكاح كښې جمع كول جائز نه دى.

اوداهم كيديشى چه دا دحضرت نبى كريم ﷺ په خصائص كښې شمير نه كړې شى ، بلكه اووئيلې شى چه دا دحضرت نبى عليه السلام د حضرت فاطمه رضى الله عنها د خاطره او زړه دپاره وئيلى وو.
اودا دحضرت فاطمه رضى الله عنها په خصوصيت باندې هم محمول كولې شو چه هغې بله ښځه په

۱ ) عمده ا لقارى: ۲۰/۲۱۱).
۲ ) صحيح البخارى: ابواب المناقب ، باب ذكر اصهار النبى ﷺ رقم الحديث: ۳۷۲۹).

نکاح کښې جمع کول جائز نه وو. (۱) والله اعلم.

**قوله:** يريبني ما رابها: دا باب افعال نه دې ، ((ارابني))هغه وخت کښې وائی چه کله يو سړی نه ته بدی او تکليف محسوس کړې ، علامه ابن اثير النهاية فرمائی چه:

((يريبني ما يريبها اى يسوء نى ما يسوء ها ويزعجني مايزعجها يقال رابني هذا الامر وارابني اذا رايت منه ماتكره))(۲)

## ۱۰۹=بَاب يَقِلُّ الرِّجَالُ وَيَكْثُرُ النِّسَاءُ

وَقَالَ ابُو مُوسَى عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَتَرَى الرَّجُلَ الْوَاحِدَ يَتْبَعُهُ ارْبَعُونَ امْرَاةً يَلُذْنَ بِهِ مِنْ قِلَّةِ الرِّجَالِ وَكَثْرَةِ النِّسَاءِ[ر:۱۳۴۸]

[۴۹۳۳] حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ الْحَوْضِيُّ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ انَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ لَاحَدِّثَنَّكُمْ حَدِيثًا سَمِعْتُهُ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يُحَدِّثُكُمْ بِهِ احَدٌ غَيْرِي سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ انَّ مِنْ اشْرَاطِ السَّاعَةِ انْ يُرْفَعَ الْعِلْمُ وَيَكْثُرَ الْجَهْلُ وَيَكْثُرَ الزِّنَا وَيَكْثُرَ شُرْبُ الْخَمْرِ وَيَقِلَّ الرِّجَالُ وَيَكْثُرَ النِّسَاءُ حَتَّى يَكُونَ لِخَمْسِينَ امْرَاةً الْقَيِّمُ الْوَاحِدُ[ر:۸۰]

مطلب دادې چه دقيامت په علاماتوکښې يوداهم دې چه دسړو قلت به شی او د ښځو کثرت . حضرت ابو موسى اشعرى رضي الله عنه دحضرت نبى عليه السلام نه نقل کوی چه تاسو به يو سړی پسې څلوينښت ښځې اوګورئی چه دده په پناه کښې به وی.

دحضرت ابوموسى اشعرى رضي الله عنه داتعليق امام بخارى رحمه الله په کتاب الزکاة کښې موصولاً نقل کړې دې. (۳)

مخکښې دحضرت انس رضي الله عنه په روايت کښې دپنځوسو ښځو ذکر دې ، ليکن په دواړو کښې هيڅ تضاد نشته دې ځکه چه عدد اقل د اکثر نفی نه کوی . همداشان هم کيديشی چه عدد خاص مراد نه وی بلکه کثرت مراد وی. (۴)

د حضرت انس رضي الله عنه دا روايت په کتاب العلم کښې تير شوې دې او په هغه ځائې کښې په دې باندې بحث شوې دې . (۵)

---

۱) مذکوره تفصيل دپاره اوګورئ فتح البارى: ۴۱۱/۹).
۲) النهايه لابن الاثير : ۲۸۷/۲ ، باب الراء مع الياء).
۳) اوګورئ صحيح بخارى ، کتاب الزکاه باب الصدقات قبل الرد رقم الحديث : ۱۴۱۴ ، ص : ۲۸۰).
۴) فتح البارى: ۴۱۳/۹).
۵) اوګورئ صحيح البخارى: ، کتاب العلم ، باب رفع العلم وظهور الجهل : ۱۸/۱).

## ۱۱۰ = باب لَا يَخْلُوَنَّ رَجُلٌ بِامْرَأَةٍ إِلَّا ذُو مَحْرَمٍ وَالدُّخُولُ عَلَى الْمُغِيبَةِ

دحضرت امام بخاری رحمه الله مقصد دادې چه ښځې سره دمحرم نه علاوه بل چاسره خلوت اختیارولو اجازت نشته دې ، داشان که څوك ښځه مغیبه ده یعنی ددې خاونددې نه غائب دې چرته بهر تلې دې نو دې سره هم سوا دمحرم نه دبل چا د راتللو اجازت نشته دې.

«دخول» لره مجرور هم لوستلې شی.په دې صورت کښې ددې عطف «امراة» باندې به وی یعنی «لا یخلون رجل بالدخول علی المغیبة» او دې لره مرفوع هم ونیلې شی ، په دې صورت کښې دا مبتداء محذوف دپاره به خبر جوړ شی. «ای وکذا الدخول علی الغیبة» (۱)

«مغیبة» باب افعال نه صیغه داسم فاعل مونث صیغه ده. هغه ښځې ته ونیلې شی چه دهغې خاوند هغې سره نه وی ، چرته به تلې وی.

[۴۹۳۴] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا لَيْثٌ عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ عَنْ أَبِي الْخَيْرِ عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِيَّاكُمْ وَالدُّخُولَ عَلَى النِّسَاءِ فَقَالَ رَجُلٌ مِنَ الْأَنْصَارِ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَفَرَأَيْتَ الْحَمْوَ قَالَ الْحَمْوُ الْمَوْتُ

حضرت رسول کریم ﷺ فرمائیلی دی چه ښځو لره دراتلو نه پرهیز کونی ،یو انصاری سړی تپوس اوکړو یارسول الله ﷺ د لیور متعلق څه حکم دې؟ حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه لیور خو مرګ دې.

حافظ ابن حجر رحمه الله لیکلی دی چه ددې تپوس کوونکی انصاری نوم معلوم نشو (۲)

«الحمو» دخاوند دطرفنه په رشته دارو باندې ددې لفظ اطلاق کیږی لکه لیور، دلیور خونې ،دلیور تره وغیره، علامه قسطلانی لیکی چه :

«الحمو الموت: ای لقاؤه مثل لقاء الموت اذا لخلوة به تودی الی هلاك الدین ان وقعت المعصیة اوالنفس ان وجب الرجم اوهلاك المراة بفراق زوجها اذا حملته الغیرة علی المراة علی طلاقها» (۳)

او امام نووی رحمه الله په شرح مسلم کښې لیکی چه :

«الحموالمراد به هنا اقارب الزوج غیر ابائه وابنائه لانهم محارم للزوجة ، ویجوز لهم الخلوة به ولا یوصفون بالموت وانما المراد الاخ وابن الاخ ونحوهما ممن یحل لها تزویجه لولم تکن متزوجة وقد جرت العادة بالتساهل فیه فیخلوا الاخ بامراة اخیه فشبهة بالموت وهو اولی بالمنع من الاجنبی لشهبه اکثر من الاجنبی والفتنة به امکن من الوصول الی المراة والخلوبها من غیر نکیر علیه بخلاف الاجنبی» (۴)

---

۱) عمده القاری: ۲۱۳/۲۰).
۲) فتح الباری: ۴۱۴/۹).
۳) ارشاد الساری: ۵۱۹/۱۱).
۴) شرح مسلم لنوی ، کتاب السلام ،باب الخلوه بالاجنبه : ۲۱۶/۲).

[٤٩٣٥] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا عَمْرٌو عَنْ اَبِي مَعْبَدٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَخْلُوَنَّ رَجُلٌ بِامْرَاَةٍ اِلَّا مَعَ ذِي مَحْرَمٍ فَقَامَ رَجُلٌ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ امْرَاَتِي خَرَجَتْ حَاجَّةً وَاكْتُتِبْتُ فِي غَزْوَةِ كَذَا وَكَذَا قَالَ ارْجِعْ فَحُجَّ مَعَ امْرَاَتِكَ [ر: ١٧٦٣]

داحديث په كتاب الحج كښې تير شوې دې او په هغه ځاې كښې په دې باندې بحث شوې دې .(١)

## ١١١=بَابُ مَا يَجُوزُ أَنْ يَخْلُوَ الرَّجُلُ بِالْمَرْأَةِ عِنْدَ النَّاسِ

[٤٩٣٦] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ هِشَامٍ قَالَ سَمِعْتُ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ جَاءَتِ امْرَاَةٌ مِنَ الْاَنْصَارِ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَخَلَا بِهَا فَقَالَ وَاللّٰهِ اِنَّكُنَّ لَاَحَبُّ النَّاسِ اِلَيَّ [ر: ٣٥٧٥].

د امام بخارى رحمه الله مقصد دادې چه دخلقو په موجودګئ كښې كه يو ښځې سره په خلوت كښې څه خبره اوكړې شي نو په دې كښې څه باك نشته دې ، لكه هغه څه د مسئلې تپوس كوى ، او دعامو خلقو په مخكښې نه شي وئيلې شرميږى نو يو طرفته دې شي اودې سره دې خبره اوكړى. روايت باب فضائل انصار كښې تير شوې دې ، (٢) .

## ١١٢=بَابُ مَا يُنْهَى مِنْ دُخُولِ الْمُتَشَبِّهِينَ بِالنِّسَاءِ عَلَى الْمَرْأَةِ

[٤٩٣٧] حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ اَبِي شَيْبَةَ حَدَّثَنَا عَبْدَةُ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيهِ عَنْ زَيْنَبَ بِنْتِ اُمِّ سَلَمَةَ عَنْ اُمِّ سَلَمَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ عِنْدَهَا وَفِي الْبَيْتِ مُخَنَّثٌ فَقَالَ الْمُخَنَّثُ لِاَخِي اُمِّ سَلَمَةَ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِي اُمَيَّةَ اِنْ فَتَحَ اللّٰهُ لَكُمُ الطَّائِفَ غَدًا اَدُلُّكَ عَلَى بِنْتِ غَيْلَانَ فَاِنَّهَا تُقْبِلُ بِاَرْبَعٍ وَتُدْبِرُ بِثَمَانٍ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَدْخُلَنَّ هٰذَا عَلَيْكُنَّ [ر: ٤٠٦٩]

داسې سړې چه د هغه حركات او چال دښځو پشان وى نو يو اجنبى ښځې ته دده تګ جائز نه دې، ممنوع دې .

«مخنث» (دنون په فتحه او كسره سره) هغه سړى ته وائى چه په كلام او حركات او سكنات كښې دښځو سره مشابهت لرى .كه دچا خلقت داسې دې چه نوبيا قابل ملامت نه دې ، ليكن كه په تكلف سره داسې مشابهت اختيار كړى نو درست نه دې ، قابل مذمت دې ،(٣)

دحديث باب تشريح په كتاب المغازى كښې تيره شوې ده.(٤)

---

١ ) اوګورئ صحيح البخارى، كتاب الحج ، باب حج نساء).
٢ ) صحيح البخارى ، ابواب المناقب ، باب قول النبى ﷺ للانصار انتم احب الناس الى رقم ا لحديث : ٣٧٨٦ ص ، ٧٧٥).
٣ ) فتح البارى: ٤١٨/٩).
٤ ) اوګورئ كشف البارى كتاب المغازى ، باب غزوه الطائف : ٥٤٦).

## ۱۱۳- بَاب نَظَرِ الْمَرْأَةِ إِلَى الْحَبَشِ وَنَحْوِهِمْ مِنْ غَيْرِ رِيبَةٍ

[۴۹۳۸] حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ الْحَنْظَلِيُّ عَنْ عِيسَى عَنْ الْأَوْزَاعِيِّ عَنْ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا قَالَتْ رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْتُرُنِي بِرِدَائِهِ وَأَنَا أَنْظُرُ إِلَى الْحَبَشَةِ يَلْعَبُونَ فِي الْمَسْجِدِ حَتَّى أَكُونَ أَنَا الَّتِي أَسْأَمُ فَاقْدُرُوا قَدْرَ الْجَارِيَةِ الْحَدِيثَةِ السِّنِّ الْحَرِيصَةِ عَلَى اللَّهْوِ [ر: ۴۴۳]

د امام بخاری رحمة الله علیه مقصد دادې چه بغیر دشهوت نه که ښځه سړو ته ګوری نو داجائز دی. چه په کوم ځائې کښې دفتنې اندیښنه نه وی. هم دا آئمه ثلاثه مذهب دې اود امام شافعی رحمه الله یو قول ددې مطابق هم دې ، ددوی دوئم قول د عدم جواز دې. امام نووی رحمه الله دې دوئم قول ته ترجیح ورکوی. (۱)

ددوی استدلال دحضرت ام سلمه رضی الله عنها روایت نه دې چه هغه فرمائی چه:

((كنت انا وميمونة جالستين عند رسو الله ﷺ فاستاذن عليه ابن ام مكتوم رضی الله عنه فقال احتجبا منه فقلنا يا رسول الله ﷺ اليس اعمى لا يبصرنا ولا يعرفنا فقال افعميا وان انتما الستما تبصرانه)) (۲)

جمهور علماء روایت باب نه استدلال کوی ، امام نووی رحمه الله روایت باب متعلق فرمائی چه دا د نزول حجاب نه مخکښې واقعه ده. یا دهغه وخت چه کله حضرت عائشه رضی الله عنها نابالغ وه.

لیکن دامام نووی رحمه الله پورتنئ دواړه خبرې صحیح نه دی. ځکه دروایت باب بعض طرق کښې دی چه مذکوره واقعه ، وفد حبشه دراتلونه پس ده. او دوفدحبشه آمد په اوومه(۷) هجرئی کښې شوې وه. په هغه وخت کښې دحضرت عائشه رضی الله عنها عمر مبارك ۱۶ کاله وو. نوداشان د حجاب حکم هم نازل شوې وو(۳)

دحضرت ام سلمه رضی الله عنها د ذکر شوی روایت جواب جمهور دا ورکوی چه مذکوره حکم په تقوی باندې محمول دې .د فتوی بیان نه دې ، یا دا حکم دحضرت عبدالله ابن مکتوم سره خاص دې . ځکه چه هغه نابیناوو ،او دنابینا دبدن نه بعضې داسې حصې د ښکاره کیدو امکان وی چه دښځې هغې ته کتل په هرحال کښې ناجائز وی. نوحافظ ابن حجر رحمه الله لیکی:

((والجمع بين الحديثين ان يكون فى قصة الحديث الذى ذكره نهيان شئ يمنع النساء من رؤيته لكون ابن ام مكتوم كان اعمى فلعه كان منه شئ ينكشف ولا يشعربه ويقوى الجواز استمرار العمل على جواز خروج النساء الى المساجد والاسواق والاسفار متنقبات لئلا يراهن الرجال ولم يومر الرجال قط بالا نتقاب لئلا يراهم النساء فدل على تغاير الحكم بين الطائفتين)) (۴)

---

۱) اوګورئ الابواب والتراجم : ۷۶/۲ ، وفتح الباری: ۴۲۱/۹ ، وارشاد الساری: ۵۲۳/۱۱).

۲) الابواب والتراجم: ۷۶/۲).

۳) فتح الباری: ۴۲۱/۹).

۴) فتح الباری: ۴۲۱/۹).

بهر حال حضرت امام بخاری رحمه الله دا باب قائم كړې او ددې لاندې ئې دحضرت عائشه رضي الله عنها حديث نقل كړو او دا وئيل غواړى چه ښځه اجنبى سړى ته كتلې شى .نو شيخ الحديث حضرت مولانا زكريا رحمة الله عليه ليكى چه :

((والجملة ان الغرض من الترجمة بيان جواز نظر المراة الى الرجل الاجنبى وهو كذالك عند الائمة الثلاثة كما يظهر من النقول المتقدمة ويخالف مذهب الشافعية على قول))(١)

البته دا جواز په هغه وخت كښې دې چه كله دفتنې انديښنه نه وى.نو ترجمة الباب كښې د ((من غير ريبة)) نه دې طرفته اشاره ده.

## ١١٤=بَابُ خُرُوجِ النِّسَاءِ لِحَوَائِجِهِنَّ

[٤٩٣٩] حَدَّثَنَا فَرْوَةُ بْنُ اَبِى الْمَغْرَاءِ حَدَّثَنَا عَلِىُّ بْنُ مُسْهِرٍ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ خَرَجَتْ سَوْدَةُ بِنْتُ زَمْعَةَ لَيْلًا فَرَآهَا عُمَرُ فَعَرَفَهَا فَقَالَ اِنَّكِ وَاللّٰهِ يَا سَوْدَةُ مَا تَخْفَيْنَ عَلَيْنَا فَرَجَعَتْ اِلَى النَّبِىِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرَتْ ذٰلِكَ لَهُ وَهُوَ فِى حُجْرَتِى يَتَعَشّٰى وَاِنَّ فِى يَدِهِ لَعَرْقًا فَاَنْزَلَ اللّٰهُ عَلَيْهِ فَرُفِعَ عَنْهُ وَهُوَ يَقُولُ قَدْ اَذِنَ اللّٰهُ لَكُنَّ اَنْ تَخْرُجْنَ لِحَوَائِجِكُنَّ

دامام بخارى رحمه الله مقصد دادې چه دنزول حجاب نه پس هم ښځې به په پرده كښې دكور نه بهر دخپلو ضرورتونو دپاره تلې.

روايت كښې دى چه حضرت سوده بنت زمعه(دپردې دحكم نه پس ) دشپې په وخت كښې بهر اووتله نو حضرت عمر فاروق رضي الله عنه هغه اوپيژندله ( په كتاب التفسير كښې روايت دې چه((وكانت امراة جسيمة لا تخفى على من يعرفها))او كتاب الوضوء په روايت كښې دى چه((وكانت امراة طويلة)) الفاظ دى. اوهغې ته ئې اووئيل چه ائې سوده ته زمونږ نه نشې پټيدلې ، نو هغه حضرت نبى اكرم صلى الله عليه وسلم لره راغله او ددې خبرې ذكر ئې اوكړو . حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائى چه حضرت رسول اكرم صلى الله عليه وسلم په هغه وخت كښې خما په حجره كښې وو او د شپې روټئ ئې خوړله.او ددوى په لاس كښې هډوكئ وو . حضرت نبى كريم صلى الله عليه وسلم باندې وحى راغله. هركله چه دنزول وحى كيفيت ددوى نه ختم شو نو حضرت رسول كريم صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل چه((قد اذن الله لكن ان تخرجن لحوائجكن))دخپلو ضرورتو دپاره دوتلو الله تعالى تاسو ته اجازت دركړې دې.

((عرق))(دعين په فتحه اودراء په سكون سره)غوښې والا هډوكې . ((فرفع عنه،، ماكان فيه من الشدة بسبب نزول الوحى))(٢)

داحديث په كتاب التفسير كښې تير شوې دې او په كتاب الوضوء كښې هم تير شوې دې.(٣)

---

١) الابواب والترجم:٢/٧٦).

٢) ارشاد السارى: ١١/٥٢٤).

٣) صحيح البخارى . كتاب الوضوء باب خروج النساء الى البراز رقم الحديث : ١٤٦ . وكتاب التفسير. باب قوله ( لا تدخلوا بيوت النبى .... رقم الحديث: ٤٧٩٥).

## ١١٥=باب استئذان المرأة زوجها في الخروج إلى المسجد وغيره

[٤٩٤٠] حدثنا علي بن عبد الله حدثنا سفيان حدثنا الزهري عن سالم عن ابيه عن النبي صلى الله عليه وسلم اذا استاذنت امرأة احدكم الى المسجد فلا يمنعها [ر:٨٢٤]

امام بخاری رحمه الله مسئله خو دا خودل غواړی که بنځه دکور نه بهر تلل غواړی نو هغه د خاوند اجازت اخستلو نه پس تللې شی .ليكن ددې مسئلې دپاره دوی سره څه روايت نشته دې. نو ددې وجې هغوی د خروج الی ا لمسجد والا حديث نه استدلال اوکړو. کنې د خروج الى المسجد مسئله پخپله په ابواب الصلوة کښې تيره شوې ده.(١) اوس هغه په دې ځائې کښې ذکر کوی اوغير مسجد دپاره دزوج اجازت سره دخروج جواز خودل غواړی چه کله خروج الى المسجددپاره ښځې نه دخاوند داجازت دضرورت وی نو غير مسجد طرفته خروج دپاره په طريقه اولى به دا اجازت اخلى.

## ١١٦=باب ما يحل من الدخول والنظر إلى النساء في الرضاع

[٤٩٤١] حدثنا عبد الله بن يوسف اخبرنا مالك عن هشام بن عروة عن ابيه عن عائشة رضي الله عنها انها قالت جاء عمي من الرضاعة فاستاذن علي فابيت ان اذن له حتى اسال رسول الله صلى الله عليه وسلم فجاء رسول الله صلى الله عليه وسلم فسالته عن ذلك فقال انه عمك فاذني له قالت فقلت يا رسول الله انما ارضعتني المرأة ولم يرضعني الرجل قالت فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم انه عمك فليلج عليك قالت عائشة وذلك بعد ان ضرب علينا الحجاب قالت عائشة يحرم من الرضاعة ما يحرم من الولادة [ر:٢٥٠١].

ددې باب نه داامام بخاری رحمه الله مقصد دادې چه درضاعت رشته قائميدو نه پس دسرى دپاره دپردې حکم باقی پاتې نشی اوچه کومو ښځو سره درضاعت رشته قائم ده هغوې له سړې تلې شی.

## ١١٧=باب لا تباشر المرأة المرأة فتنعتها لزوجها

[٤٩٤٢] حدثنا محمد بن يوسف حدثنا سفيان عن منصور عن ابي وائل عن عبد الله بن مسعود رضي الله عنه قال قال النبي صلى الله عليه وسلم لا تباشر المرأة المرأة فتنعتها لزوجها كانه ينظر اليها

[٤٩٤٣] حدثنا عمر بن حفص بن غياث حدثنا ابي حدثنا الاعمش قال حدثني شقيق قال سمعت عبد الله قال قال النبي صلى الله عليه وسلم لا تباشر المرأة المرأة فتنعتها لزوجها كانه ينظر اليها

---

١) اوګورئ صحيح البخاری کتاب الصلاة خروج النساء الى المساجد بالليل والغلس رقم الحديث : ٨٢٤.

مطلب دادې چه د یو ښځې دپاره دا جائز نه دی چه هغه یو ښځې سره په یو څادر کښې څملی او بیا دهغې دبدن کوائف دخپل خاوندپه مخکښې بیان کړی . ظاهر دی چه په دې کښې دافتنې اندیښنه ده. ممکن دی چه دخاوند طبیعت دخپلې ښځې په ځائې هغه ښځې طرفته مائل کوی ، چه دهغې په وجه هغه خپلې ښځې ته طلاق ورکړی یا هغه ښځې سره په ګناه کښې اخته شی نوددې وجې دا جائز نه دی چه هغه دبلې ښځې اوصاف خپل خاوند ته بیان کړی.

## ۱۱۸=بَاب قَوْلِ الرَّجُلِ لَأَطُوفَنَّ اللَّيْلَةَ عَلَى نِسَائِي

په دې ترجمه کښې دامام بخاری رحمه الله مقصد دادې که یو سړې چاته دا اووائی چه نن شپه به خپلې ښځې لره ورځم نوداجائزدی ، او په مخکښې باب کښې چه دکوم نعت اووصف ممانعت دې دا په هغې کښې داخل نه دی ، حضرت شیخ الحدیث مولانا زکریا رحمه الله لیکی:

«والظاهر عندی فی غرض الترجمة ان المصنف اشار بذلك الی ان القول المذكور واظهار ذالك الامر لايدخل فی النعت المنهی عند المذكور فيما سبق فتامل» (۱)

[۴۹۴۴] حَدَّثَنِي مَحْمُودٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنْ ابْنِ طَاوُسٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ عَلَيْهِمَا السَّلَام لَأَطُوفَنَّ اللَّيْلَةَ بِمِائَةِ امْرَأَةٍ تَلِدُ كُلُّ امْرَأَةٍ غُلَامًا يُقَاتِلُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَقَالَ لَهُ الْمَلَكُ قُلْ إِنْ شَاءَ اللَّهُ فَلَمْ يَقُلْ وَنَسِيَ فَأَطَافَ بِهِنَّ وَلَمْ تَلِدْ مِنْهُنَّ إِلَّا امْرَأَةٌ نِصْفَ إِنْسَانٍ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ قَالَ إِنْ شَاءَ اللَّهُ لَمْ يَحْنَثْ وَكَانَ أَرْجَى لِحَاجَتِهِ [ر: ۳۲۴۲]،

دا روایت په کتاب الانبیاء کښې تیر شوې دې. ددې په آخر کښې دی چه «لوقال ان شاء الله لم يحنث وكان ارجى لحاجته» یعنی که حضرت سلیمان علیه السلام ان شاء الله وئیلې وې نو دده قسم به نه ماتیدو او دحاجت پوره کیدوامیدبه زیات وو.

## ۱۱۹=بَاب لَا يَطْرُقْ أَهْلَهُ لَيْلًا إِذَا أَطَالَ الْغَيْبَةَ مَخَافَةَ أَنْ يُخَوِّنَهُمْ أَوْ يَلْتَمِسَ عَثَرَاتِهِمْ

[۴۹۴۵] حَدَّثَنَا آدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا مُحَارِبُ بْنُ دِثَارٍ قَالَ سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَكْرَهُ أَنْ يَأْتِيَ الرَّجُلُ أَهْلَهُ طُرُوقًا

[۴۹۴۶] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا عَاصِمُ بْنُ سُلَيْمَانَ عَنْ الشَّعْبِيِّ أَنَّهُ سَمِعَ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ يَقُولُ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَطَالَ أَحَدُكُمْ الْغَيْبَةَ فَلَا يَطْرُقْ أَهْلَهُ لَيْلًا [ر: ۱۷۰۷]

---

۱) الابواب والتراجم:۲/۷۶).

د امام بخاری رحمة الله علیه مقصد دادې چه که طویل سفر وی او دکور نه سړې کافی لرې وی نو ده له پکار دی چه اچانك کور ته نه راځي. داسې نه چه یوناګوار شکل اووینی او بیا دټول عمر دپاره ئې ژوند تریخ وی.

د«اطال الغیبة» قید په دې وجه دې که ورځ دوؤ دپاره تلې وی نو په داسې صورت کښې اچانك کور ته راتللو کښې هیڅ حرج نشته دې ، ځکه چه په داسې صورت کښې کور والو ته معلوم وی چه سفر د دوؤ ورځو دې.

امام بخاری رحمه الله مخکښې په ترجمة الباب کښې قید لګولې دې «مخافة ان یخونهم اویلتمس عثراتهم» دباب په روایت کښې دا قید نشته دې ، بیا ترجمه څنګه ثابت شوه؟ .

ددې جواب دادې چه دا ترجمه دترجمه شارحه نه ده یعنی وئیل دادی چه په حدیث کښې ممانعت په دې وجه دې چه کوم امام بخاری رحمه الله په ترجمه الباب کښې ظاهر کړې دې. یعنی په حدیث کښې دوارد حکم علت امام په ترجمه کښې بیان فرمائیلې دې . دا ترجمه په علت الحکم فی الحدیث په بیان کښې او تشریح باندې مشتمل ده.

هم داشان د بخاری په روایت کښې اګرچه قید نشته لیکن دصحیح مسلم په روایت کښې دا اضافه ده چه «نهی رسول الله صلی الله علیه وسلم ان یطرق الرجل اهله لیلا یتخونهم اویطلب عثراتهم» (۱) په دې روایت کښې دمذکوره اضافې وجې سره امام په ترجمة الباب کښې «مخافة ان یخونهم اویلتمس عثراتهم» الفاظ زیات کړی دی. «یخونهم» باب تفعیل نه دې . «خون ، ، تخوینا» خوك خیانت طرفته منسوب کول ،په دې کښې ضمیر فاعل ، رجل اوضمیر مفعول اهل طرفته راجع دې . مطلب دادې چه سړې دې دشپې په وخت کښې خپل کور والو ته نه راځی ددې اندیښنې په وجه چه هسې نه هغه دا خیانت طرفته منسوب کړی یا ددې غلطئ تلاش نه کړی ، یعنی ممکن دی چه کور والا په ښه حالت کښې نه وی او دشپې اچانك راتلونکې اوګوری اودې لره خائن اوګڼری. په دې وجه دشپې په وخت کښې کور ته اچانك راتلل نه دی پکار، علامه قسطلانی رحمه الله لیکی :

«والعلة فی ذالك انه ربما یجدا اهله علی غیراهبة من التنظیف والتزین المطلوب من المراة فیکون ذالك سببا للنفرة بینهما اویجدها علی غیرحالة مرضیة والستر مطلوب بالشرع» (۲)

ابن التین فرمائی چه «یخونهن» او «عشراتهن» نون سره پکار دی ځکه چه مرجع جمع مونث دې . لیکن روایت کښې «یخونهم» میم سره دې ، ددې تاویل دا کیدیشی چه اهل نه صرف ښځه مراد نه ده بلکه اولادهم په دې کښې شامل دې ، ددې وجې تغلیباً دجمع مذکر ضمیر استعمال کړې شو. (۳)

---

۱) اوګورئ صحیح مسلم کتاب الاماره باب کراهه الطروق وهو الدخول لیلا: رقم الحدیث: ۱۹۲۸).
۲) ارشاد الساری: ۵۲۹/۱۱).
۳) فتح الباری: ٤۲۵/۹ ، وارشادالساری: ۵۲۹/۱۱).

## ۱۲۰=بَاب طَلَبِ الْوَلَدِ

[۴۹۴۷] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ عَنْ هُشَيْمٍ عَنْ سَيَّارٍ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنْ جَابِرٍ قَالَ كُنْتُ مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي غَزْوَةٍ فَلَمَّا قَفَلْنَا تَعَجَّلْتُ عَلَى بَعِيرٍ قَطُوفٍ فَلَحِقَنِي رَاكِبٌ مِنْ خَلْفِي فَالْتَفَتُّ فَإِذَا أَنَا بِرَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا يُعْجِلُكَ قُلْتُ إِنِّي حَدِيثُ عَهْدٍ بِعُرْسٍ قَالَ فَبِكْرًا تَزَوَّجْتَ أَمْ ثَيِّبًا قُلْتُ بَلْ ثَيِّبًا قَالَ فَهَلَّا جَارِيَةً تُلَاعِبُهَا وَتُلَاعِبُكَ قَالَ فَلَمَّا قَدِمْنَا ذَهَبْنَا لِنَدْخُلَ فَقَالَ أَمْهِلُوا حَتَّى تَدْخُلُوا لَيْلًا أَيْ عِشَاءً لِكَيْ تَمْتَشِطَ الشَّعِثَةُ وَتَسْتَحِدَّ الْمُغِيبَةُ قَالَ وَحَدَّثَنِي الثِّقَةُ أَنَّهُ قَالَ فِي هَذَا الْحَدِيثِ الْكَيْسَ الْكَيْسَ يَا جَابِرُ يَعْنِي الْوَلَدَ

[۴۹۴۸] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْوَلِيدِ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ سَيَّارٍ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا دَخَلْتَ لَيْلًا فَلَا تَدْخُلْ عَلَى أَهْلِكَ حَتَّى تَسْتَحِدَّ الْمُغِيبَةُ وَتَمْتَشِطَ الشَّعِثَةُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَعَلَيْكَ بِالْكَيْسِ الْكَيْسِ تَابَعَهُ عُبَيْدُ اللّٰهِ عَنْ وَهْبٍ عَنْ جَابِرٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْكَيْسِ [ر: ۴۴۳]

ددې ترجمې نه د امام بخاري رحمة الله عليه مقصد دادې چه نکاح کولو سره دسړې مقصد محض لذت حاصلول او خواهش پوره کول نه وي ، بلکه طلب ولد ددې پيش نظر دې.

په حديث کښې دی چه حضرت نبی کريم ﷺ حضرت جابر رضی الله عنه ته «الکيس الکيس» اوفرمائيل ، امام بخاری رحمه الله ددې تفسير په ولد سره اوکړو. اواشاره ئې دې طرفته اوکړه چه دوطی مقصد طلب ولد وی، ابن حبان د «الکيس» تفسير په جماع سره کړې دې. (۱)

د «الکيس» اصل معنی عقل او دانشمندی ده ، ددې وجې بعضو حضراتو په حديث کښې واقع ددې لفظ تشريح داسې کړې ده چه کوره ته دسفر نه کور ته روان ئې ، هسې نه چه غلبه شهوت کښې تاته څه خيال نه وی او ستا ښځه دحيض په حالت کښې وی اوبيا هم ته جماع اوکړې ، داسې نه دی کول پکار ،عقل او دانشمندی اختيارول پکاردی. (۲)

**قوله:** قَالَ وَحَدَّثَنِي الثِّقَةُ أَنَّهُ قَالَ فِي هَذَا الْحَدِيثِ الْكَيْسَ الْكَيْسَ: قائل هشيم دې چه د امام بخاری رحمه الله داستاذ مسدد شيخ دې ، هغوی اووئيل چه يو ثقه راوی په دې حديث کښې د «الکيس الکيس ياجابر» الفاظو اضافه کړې ده. حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائيلی دی چه دا ثقه راوی دې غالبًا دا شعبه دې ، ځکه چه امام بخاری رحمه الله ددې نه پس

---

۱) فتح الباري: ۴۲۸/۹).

۲) مجمع بحار الانوار: ۴۵۳/۴).

د شعبه روايت نقل كړي دي ،او په هغې كښې دا الفاظ دي. (١)

**قوله: تابعه عبيدالله عن وهب عن جابر عن النبي ﷺ في الكيس:** يعنى عبيدالله بن عمرو د شعبي متابعت لفظ الكيس كښې كړې دې ، هغوى هم عن وهب عن جابر په طريق مذكوره حديث كښې دا الفاظ نقل كړى دى.

عبيدالله بن عمرو مذكوره تعليق په كتاب البيوع كښې امام بخارى رحمه الله موصولاً نقل كړې دې. (٢)

## ١٢١=بَاب تَسْتَحِدُّ الْمُغِيبَةُ وَتَمْتَشِطُ الشَّعِثَةُ

[٤٩٤٩] حَدَّثَنِي يَعْقُوبُ بْنُ اِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ اَخْبَرَنَا سَيَّارٌ عَنْ الشَّعْبِيِّ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي غَزْوَةٍ فَلَمَّا قَفَلْنَا كُنَّا قَرِيبًا مِنْ الْمَدِينَةِ تَعَجَّلْتُ عَلَى بَعِيرٍ لِي قَطُوفٍ فَلَحِقَنِي رَاكِبٌ مِنْ خَلْفِي فَنَخَسَ بَعِيرِي بِعَنَزَةٍ كَانَتْ مَعَهُ فَسَارَ بَعِيرِي كَاحْسَنِ مَا انْتَ رَاءٍ مِنْ الْاِبِلِ فَالْتَفَتُّ فَاذَا اَنَا بِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ اِنِّي حَدِيثُ عَهْدٍ بِعُرْسٍ قَالَ اَتَزَوَّجْتَ قُلْتُ نَعَمْ قَالَ اَبِكْرًا اَمْ ثَيِّبًا قَالَ قُلْتُ بَلْ ثَيِّبًا قَالَ فَهَلَّا بِكْرًا تُلَاعِبُهَا وَتُلَاعِبُكَ قَالَ فَلَمَّا قَدِمْنَا ذَهَبْنَا لِنَدْخُلَ فَقَالَ اَمْهِلُوا حَتَّى تَدْخُلُوا لَيْلًا اَيْ عِشَاءً لِكَيْ تَمْتَشِطَ الشَّعِثَةُ وَتَسْتَحِدَّ الْمُغِيبَةُ

د امام بخارى رحمه الله مقصددي ترجمة الباب نه دادې چه دكومې ښځې خاوند په سفر تلې وى اودكور نه غائب وى ، هركله چه دهغه دراتلو وخت نزدې شي نو ښځې ته پكار دى چه خپل بدن پاك كړى او ږمنځ وغيره اوكړى ،زيرناف وينسته واخلى.

په دې ځائې كښې داستحداد لفظ استعمال كړې شوې دې، چه ددې معنى استره استعمالول دى .ليكن نن سبا ډير نور څيزونه رائج دى، ښځې هغه هم استعمالولې شى.

## ١٢٢=بَاب وَلَا يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ اِلَّا لِبُعُولَتِهِنَّ اِلَى قَوْلِهِ لَمْ يَظْهَرُوا عَلَى عَوْرَاتِ النِّسَاءِ (النور:٣١)،

[٤٩٥٠] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ اَبِي حَازِمٍ قَالَ اخْتَلَفَ النَّاسُ بِاَيِّ شَيْءٍ دُووِيَ جُرْحُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ اُحُدٍ فَسَاَلُوا سَهْلَ بْنَ سَعْدٍ السَّاعِدِيَّ وَكَانَ مِنْ آخِرِ مَنْ بَقِيَ مِنْ اَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْمَدِينَةِ فَقَالَ وَمَا بَقِيَ مِنْ النَّاسِ اَحَدٌ اَعْلَمُ بِهِ مِنِّي كَانَتْ فَاطِمَةُ عَلَيْهَا السَّلَام تَغْسِلُ الدَّمَ عَنْ وَجْهِهِ وَعَلِيٌّ يَاْتِي بِالْمَاءِ عَلَى تُرْسِهِ فَاُخِذَ حَصِيرٌ فَحُرِّقَ فَحُشِيَ بِهِ جُرْحُهُ [ر:٢٤٠].

---

١) فتح البارى: ٩/٤٢٧).

٢) صحيح البخارى كتاب البيوع باب شراء الدواب والحمير رقم الحديث ٢٠٩٧. ص. ٤١٤).

دامام بخاري رحمه الله مقصد دادې چه ښځه خپل مواقع زينت خپل خاوند ، خپل پلاراو خپل خونې وغيره په مخکښې ظاهرولې شي.
دروايت نه ظاهر دی چه حضرت فاطمه رضي الله عنها خپل لاسونه او مخ دحضرت نبی عليه السلام په مخکښې ظاهر کړل چه ددې نه معلوم شو چه مواضع زينت ښځه دخپل پلار په مخکښې ظاهرولې شي.

**قوله**: وكان من اخرمن بقي من اصحاب النبي ﷺ بالمدينة: مدينه منوره کښې حضرت سهل بن سعد ساعدی رضي الله عنه دټولونه اخری صحابی وو. لېکن داحديث دراوی کيدو په اعتبار سره آخری صحابی دی. ګنی حضرت سهل دژوند د آخری ايام کښې محمود بن الربيع رضي الله عنه او محمود بن لبيد رضي الله عنه مدينه منوره کښې وو. اودا دواړه صحابيان ووز ليکن دحضرت نبی کريم ﷺ نه ددوی سماع ثابته نه ده.(۱)

«ترس» ډهال ته ونيلې شي يعنې حضرت علي رضي الله عنه په ډهال کښې اوبه راوړې اواچولې ئې ، ديو پوزکی ټکړه ئې واخستله اووې سيزله ، او دحضرت نبی کريم ﷺ زخم ددې نه ډک شو،

«حشي» بروزن «دعي» دا باب نصر نه دماضي مجهول صيغه ده.«حشا(ن)حشوا ... الوسادة بالقطن»

تکيه ډکول مالوچ «فحشي به جرحه» يعنې ددې پوزکی په ذريعه دحضرت نبی کريم ﷺ زخم ډك شو.

**فائده** : امام بخاري رحمه الله په ترجمة الباب کښې چه کوم آيت کريمه ذکر فرمائيلې دې ، علامه شبير احمد عثماني دهغې په تفسير کښې ليکی:
" سنګار په عرف کښې خارجی او کسب کښې آرائش ته وئيلې شي . لکه لباس يا کالی وغيره سره چه حاصل شي ،داحقر په نيزد " زينت " ترجمه د " سنګار " په ځائې" زيبائش " کړې شوې وې نو زيات جامع او مناسب به وې . دزيبائش لفظ هر قسم خلقی او کسب کښې زينت ته شامل دې . که هغه دجسم پيدائشی ساخت سره متعلق وی يا پوشاك وغيره خارجی ټيس ټپاس سره ، خلاصه او مطلب دادې چه دښځې دپاره د هيڅ قسمه خلقی يا کسبی زيبائش اظهار بجزد محرم چه دهغې ذکر مخکښې رازی د هيچا په مخکښې جائز نه ده .خو چه د څومره زيبائش ظهور ضروری دې او ددې ظهوربسبب عدم قدرت يا ضرورت نه شی منع کيدې . ددې دمجبورئی په وجه يا بضرورت دهغې پرده نه کولو کښې هيڅ باك نشته دې(بشرطيکه دفتنې ويره نه وی)دحديث او آثار نه ثابتيږی مخ اوتلی په«الاما ظهر منها» کښې داخل دی. ځکه چه ډير دينی او دنياوی ضرورتونه ددې په کهلاؤ ساتلو کښې مجبور وی. که ددې دپټولو مطلقاً حکم اوکړې شی نو دښځو دپاره به په کاروبار کښې سخته پريشانی او مشکل پيداشی . مخکښې فقهاء کرامو«قدمين»هم په دې اندامونوباندې قياس کړی دی.اوکله چه اعضا مستثنی شو نو ددې متعلقات لکه ګوتمه ، چهلا ، يا نکريزې يا کاجل وغيره هم په دې استثنا کښې داخليدل به منلې کيږی.

۱) فتح الباري: ۴۲۹/۹).

ليكن دادې واضح وي چه په «الا ما ظهر منها» كښې صرف ښځو لره په ضرورت كښې دديې اندامونو د كهلاؤ ساتلو اجازت دې ،نامحرم سړي ته اجازت نشته دې چه هغوى دې سترګې جنګوي او ددوى داند امونو نظاره دې كوى ، شاند ددې وجې ددې اجازت نه مخكښې دغض بصر حكم مومناتو ته اوونيلو .معلوم شو چه يو طرف دچا د اندامونو ښكاره كولو اجازت دې لره مستلزم نه دې چه بل ته دې كتل هم جائز وى. آخر سړى چه دكومو دپاره د پردې حكم نشته دې ، په دې پورتنى آيت كښې دې ښځو ته دكتلو نه منع كړې شوى دى ، او داشان داكتل پكار دى چه په دې آيتونو كښې محض د ستر مسئله بيان شوې ده ، يعنى ددې نه قطع نظر كولو سره چه په خپل كور كښې دننه وى يا بهر . ښځه دچا په مخكښې دبدن كومه حصه دچا په مخكښې ښكاره كول جائزدى،باقى مسئله دحجاب يعنى شريعت دې لره په كومو حالاتو كښې دكور نه بهر وتل او دسيروسياحت اجازت وركړې دې په دې ځائې كښې مذكور نه دى. اومونږ چه دفتنې نه كيدو كوم شرط زيات كړې دې نو هغه دنورو دلائلو او قواعدشرعيه نه ماخوذدى چه په ادنى مراجعت نصوص اوتپوس كولو سره معلوميدى. (١)

## ١٢٣= بَاب وَالَّذِينَ لَمْ يَبْلُغُوا الْحُلُمَ مِنْكُمْ

[٤٩٥١] حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَابِسٍ سَمِعْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا سَأَلَهُ رَجُلٌ شَهِدْتَ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْعِيدَ أَضْحًى أَوْ فِطْرًا قَالَ نَعَمْ وَلَوْلَا مَكَانِي مِنْهُ مَا شَهِدْتُهُ يَعْنِي مِنْ صِغَرِهِ قَالَ خَرَجَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَصَلَّى ثُمَّ خَطَبَ وَلَمْ يَذْكُرْ أَذَانًا وَلَا إِقَامَةً ثُمَّ أَتَى النِّسَاءَ فَوَعَظَهُنَّ وَذَكَّرَهُنَّ وَأَمَرَهُنَّ بِالصَّدَقَةِ فَرَأَيْتُهُنَّ يَهْوِينَ إِلَى آذَانِهِنَّ وَحُلُوقِهِنَّ يَدْفَعْنَ إِلَى بِلَالٍ ثُمَّ ارْتَفَعَ هُوَ وَبِلَالٌ إِلَى بَيْتِهِ [ر:٩٨].

دامام بخارى رحمه الله مقصد ددې ترجمة الباب نه دادې چه نابالغه بچى چه تراوسه پورې جنسى مسائلو نه ناواقف وى، هغوى ښځو لره راتلې شى ، حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما هم داسې بچې وو . ددې وجې هغه به هم راتلو.

## ١٢٤= بَاب طَعْنِ قول الرجل لصاحبه هل اعرستم الليلة الرَّجُلِ ابْنَتَهُ فِي الْخَاصِرَةِ عِنْدَ الْعِتَابِ

[٤٩٥٢] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْقَاسِمِ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ عَاتَبَنِي أَبُو بَكْرٍ وَجَعَلَ يَطْعُنُنِي بِيَدِهِ فِي خَاصِرَتِي فَلَا يَمْنَعُنِي مِنْ التَّحَرُّكِ إِلَّا مَكَانُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَرَأْسُهُ عَلَى فَخِذِي [ر:٣٢٧].

امام بخارى رحمه الله دوه مسئلې بيان كړى دى ، يو دا چه آيا سړې بل سړى ته داونيلې شى چه تا دشپې خپلې بى بى سره هم بسترى كړې ده . او دونمه مسئله داده چه دعتاب په موقع

---

١) تفسير عثمانى ، تفسيرسوره النور: ٢٧١ ، ٢٧٢).

باندې پلار خپله لوره اوهلې شي ، ترکومې چه د دوئمې مسئلې تعلق دې هغه خو د حضرت عائشه ﷺ او حضرت ابوبکر صديق ﷺ دقصې نه صفا صفا معلوميږي ليکن دوېمه مسئله دحديث باب نه ثابته نه ده.

① علامه كرمانى ﷫ فرمائى چه په ترجمة الباب كښې مذكوره دوېمه مسئله دصحيح بخارى په اكثرو نسخو كښې نشته دې ، (۱) نو د فتح البارى په نسخه كښې صرف «باب طعن الرجل ابنته فى الخاصرة عند العتاب» الفاظ دى. حافظ ابن حجر ﷫ فرمائى چه په ترجمة الباب كښې دوېمې مسئلې اضافه ابن بطال په خپله شرح كښې كړې ده. (۲) كه مذكوره مسئله واقعى ترجمة الباب كښې وى بيا داشكال هيڅ خبره نشته دې .البته كه دت مسئله وى نو بيا ترجمة الباب او حديث په مينځ كښې ربط سلسله كښې مختلف توجيهات بيان كړې شوى دى.

② نو ابن منير مالكى ﷫ فرمائى چه د پلار دپاره دا ممنوع دى چه هغه دخپلې لور په خاصره باندې لاس كيږدى. ليكن په حالت دعتاب كښې ددې اجازت دې. لكه څنګه چه حديث باب كښې دحضرت صديق اكبر ﷺ حالت عتاب كښې داسې اوكړل ، كه د محبت خبرې كيږى نو په داسې مخصوص حالت كښې تپوس كولې شى نو هغه ليكى :

«والجامع بينهما ان كلا الامرين مستثنى فى بعض الحالات فامساك الرجل بخاصرة لمثل وابنته ممنوع الا مثل هذه الحاجة وسوال الرجل صاحبه عما فعله فى كسر بيته ممنوع وقد ورد النهى الا فى هذه الحالة المقتضية للبسط» (۳)

③ مولانا رشيداحمد گنگوهى ﷫ فرمائى چه ترجمة الباب كښې مذكوره مسئله امام بخارى ﷫ دحديث نه قياس په ذريعه ثابت كړى . په حديث كښې دى چه حضرت ابوبكر صديق ﷺ حضرت نبى كريم ﷺ لره راغلو نو حضرت نبى كريم ﷺ په دې حالت كښې هغه دراتلو نه منع كړو نو ددې نه داعراس متعلق دسوال جواز بطريق اولى معلوميږى ځكه چه دسوال درجه خو بهر حال دې حالت كښې كم دې نو حضرت فرمائى چه :

«اراد اثبات ذالك قياسا على ما ذكر فى الحديث ان ابابكر دخل عليهما والنبى ﷺ واضع راسه على فخذها فلما لم يمنعه ذالك علم جواز سواله عن الاعراس بالطريق الاولى لانه ادون من ذالك وايسر» (۴)

---

۱) اوګورئ شرح البخارى للكرمانى: ۱۹/۱۷۶).

۲) فتح البارى: ۹/۴۳۱).

۳) المتوارى على تراجم ابواب البخارى لابن منير : ۲۹۱ . ومغنى الكسر الجانب والناحية ).

٤) لامع الدارى : ۹/۳۳۸، ۳۳۹ . وفى تقرير المكى وراسه على فخذى فيه الترجمه لانه لما جاز ان يرى احد هذه الحاله بين المراوزوجته جاز ان يقول له هل اعرستم الليله (وانظر تعليقات لامع الدارى: ۹/۳۳۸).

④حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه امام بخارى رحمه الله په ترجمة الباب کښې مذکوره مسئله ذکر کوى او مخکښې بياض پريږدى چه په هغه ځائې کښې ددې مسئلې داثبات متعلق څه حديث لکه ابوطلحه او ام سليم قصه مشهوره ده چه دده دبچى انتقال شوې وو . ام سليم حضرت ابوطلحه رضي الله عنه ته اونه وئيل ، دواړو شپه تيره کړه،بيا سحر ئې هغه ته اووئيل. حضرت ابوطلحه رضي الله عنه حضرت نبى اکرم صلى الله عليه وسلم ته دامسئله بيان کړه نو حضرت نبى کريم صلى الله عليه وسلم

اوفرمائيل چه ((هل اعرستم الليلة)) نوهغوى اووئيل چه نعم.
دا قصه امام مخکښې په کتاب العقيقه کښې ذکر کړې ده . نو امام بخارى رحمه الله دمذکوره مسئله دثبوت دپاره داشان څه حديث ذکر غوښتل ليکن هغه بياض باقى شو او هغه ته دحديث ذکر کولو موقع ملاؤ نشو ، نو حضرت حافظ ابن حجر رحمه الله ليکى:

((والذى يظهرلى ان المصنف اخلى بياضها ليكتب فيه الحديث الذى اشار اليه وهوهل اعرستم اوشيئا مايدل عليه وقد وقع ذالك فى قصه ابى طلحة وام سليم عند موت ولديهما وكتمتها ذالك عنه حتى تعشى وبات معها فاخبر بذالك ابوطلحة النبى صلى الله عليه وسلم فقال اعرستم الليلة قال نعم ، وسيأتى بهذا اللفظ فى اوائل كتاب العقيقة))(۱)

⑤حضرت شيخ الحديث مولانا زکريا رحمه الله فرمائى چه امام بخارى رحمه الله دتشحيذ اذهان دپاره حديث نه دې ذکر کړې چه قارى پخپله غور او تدبر اوکړى ددې وجې ئې مناسب حديث راوښکلو. نو هغه ليکى چه :

((والاوجه عند هذا العبد النصف وهو الراجع عندى فى امثال هذه المواضع ان الامام البخارى رحمه الله كثيرا مايخلى الابواب عن الروايات تشحيذ لاذهان اشارة الى انه يثبت بحديث وارد فى صحيحه فينبغى ان يجهد فى التتبع والتدبر يسهر الليالى)) (۲)

۱ ) فتح البارى: ۴۳۱/۹).
۲ ) الابواب والترجم:۷۷/۲).

# کتاب الطلاق

## کتاب الطلاق :الأحادیث (۴۹۵۳-۵۰۳۵)

د صحیح بخاری کتاب الطلاق په دری پنځوس بابونو باندې مشتمل دې مونږ چه کومه نسخه د متن په طوراختیار کړې ده په دې کښې (۵۱) بابونه دی په اصل کښې په بعضې نسخو کښې چرته لفظ د ،،باب،، شته اوپه بعضې کښې نشته مثلاً دا مونږ چه کومه نسخه اختیار کړې ده په دې کښې اولنې باب د ((إذا طلقت الحائض))نه شروع کیږی اودحافظ اوعینی په نسخو کښې اولنې باب د قرآن کریم په آیت((یا ایها النبی إذا طلقتم..))باندې قائم شوې دې حال دا چه زمونږ په نسخې کښې په دې باندې باب نشته په کتاب الطلاق کښې امام بخاری یو سل اتلس احادیث ذکر کړی دی په دې کښې (۲۶) احادیث تعلیقاً یا متابعتاً مذکور دی دوه نوی احادیث مکرر دی او شپږ ویشت (۲۶) احادیث په کتاب الطلاق کښې په اول ځل راغلی دی په دې کښې یوولس داحادیثو نه سوا د باقی احادیثو تخریج امام مسلم هم کړې دې په کتاب الطلاق کښې د صحابو رضی الله عنهم او سلفو نه نوی (۹۰) آثار امام بخاری ذکر کړی دی

په کتاب الطلاق کښې امام بخاری د لعان، ظهاراوعدت مسائل هم بیان کړی دی دعدت مسائل امام د ۳۵ بابونونه پس ذکر کړی دی په بعضې نسخو کښې هلته د مستقل ،،کتاب العدة،، عنوان هم شته ـ

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

# ۷۱=كتاب الطلاق

## بَاب قَوۡلُ اللّٰهِ تَعَالٰى: يَاأَيُّهَا النَّبِيُّ إِذَا طَلَّقۡتُمُ النِّسَاءَ فَطَلِّقُوهُنَّ لِعِدَّتِهِنَّ وَأَحۡصُوا الۡعِدَّةَ [الطلاق: ۱] أَحۡصَيۡنَاهُ [ يٰس : ۱۲] حَفِظۡنَاهُ وَعَدَدۡنَاهُ وَطَلَاقُ السُّنَّةِ أَنۡ يُطَلِّقَهَا طَاهِرًا مِنۡ غَيۡرِ جِمَاعٍ وَيُشۡهِدَ شَاهِدَيۡنِ

د طلاق معنی لغة رفع القید ده او اصطلاح شرع کښې دنکاح دقید رفع الید ته طلاق وئیلې شی. (۱)

مخکښې امام بخاری رحمه الله آیت ذکر کړې دې ﴿يَاأَيُّهَا النَّبِيُّ إِذَا طَلَّقۡتُمُ النِّسَاءَ﴾ ((طَلَّقۡتُمۡ)) دجمعې صیغه یا خو تعظیما استعمال کړې شوې ده یا امت هم په دې کښې شامل دې، تقدیر عبارت دې.((یا ایها النبی وامته اذ طلقتم.....))اودا هم احتمال دې چه((قل)) محذوف اومنلې شی تقدیر به عبارت به وی،((یا ایها النبی قل لامتك اذا طلقتم))(۲)

((لعدتهن))کښې لام وخت دپاره دې او دعدت نه عدت الرجال مراد دې،دعدت دوه قسمونه دی. ① یو عدت الرجال او ② دویم عدت النساء . عدت الرجال ته عدت الطلاق هم وئیلې شی . مراد ددې نه هغه زمانه ده چه په هغې کښې سړی ته دطلاق ورکولو دپاره مامور کړې شوې وی.او هغه د طهر زمانه ده. دعدت النساء نه هغه زمانه مراد ده چه په هغې کښې ښځه عدت تیروی.هغه موقت الحیض دې،(۳)

د((واحصوا العدة)) مفهوم متعین کولو دپاره((احصیناه))چه قران پاك کښې په بل ځائې کښې راغلی دی تفسیر دې،دا تفسیر دابو عبیده دې. (۴)

دې نه پس مصنف د طلاق دسنت تعریف کړې دې چه سړې په داسې طهر کښې دې طلاق ورکړی چه په هغې کښې هغه جماع نه وی کړې اوبیا ددې عدت تیر کړی.دحضرات ائمه ثلاثه مسلك هم دادې. (۵)

او حضرات حنفیه په دې ځائې کښې د طلاق سنت دوه صورتونه دی . یو صورت خو دا دې چه داسې طهر کښې دې طلاق ورکړې شی چه په هغې کښې ئې جماع نه وی کړې،اودې نه پس دعدت تیرولو نه پس ښځه دې پرېښودې شی او هیڅ طلاق دې ورنکړې شی.

او دویم صورت دادې چه سړې دې په یو طهر کښې یو طلاق ورکړی، بیا په دویم طهر کښې

۱) فتح ا لباری: ۴۳۳/۹، عمده القاری: ۲۲۵/۲۰).
۲) فتح الباری: ۴۳۴/۹،عمده القاری: ۲۲۵/۲۰).
۳) فیض الباری: ۳۰۹/۴).
۴) فتح البار: ۴۳۴/۹).
۵) المغنی لابن قدامه کتاب الطلاق : ۲۷۸/۷).

دونم طلاق ورکړې شي. او په دریم طهر کښې دې دریم طلاق ورکړې شي.
ړومبی صورت ته احناف طلاق احسن وائي او دویم صورت ته طلاق حسن وائي او ددوی په نیز طلاق احسن او طلاق حسن دواړه طلاق سنت کښې شامل دی. سفیان ثوری رحمه الله نه هم دا نقل دی. (۱)

مګر دجمهورو په نیز طلاق سنت صرف ړومبې صورت دې، امام بخاری رحمه الله د جمهورو تائید کړې دې.

[۴۹۵۳] حَدَّثَنَا اسْمَاعِيلُ بْنُ عَبْدِاللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِاللّٰهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا انَّهُ طَلَّقَ امْرَاتَهُ وَهِيَ حَائِضٌ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَأَلَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ ذٰلِكَ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُرْهُ فَلْيُرَاجِعْهَا ثُمَّ لِيُمْسِكْهَا حَتّٰى تَطْهُرَ ثُمَّ تَحِيضَ ثُمَّ تَطْهُرَ ثُمَّ انْ شَاءَ امْسَكَ بَعْدُ وَانْ شَاءَ طَلَّقَ قَبْلَ انْ يَمَسَّ فَتِلْكَ الْعِدَّةُ الَّتِي امَرَ اللّٰهُ انْ تُطَلَّقَ لَهَا النِّسَاءُ [ر: ۳۶۲۵].

حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه فرمائی چه هغوی خپلې ښځې ته دحضرت نبی کریم ﷺ په زمانه کښې د حیض په حالت کښې طلاق ورکړو. حضرت عمرفاروق رضی الله عنه ددې متعلق د حضرت نبی اکرم ﷺ نه تپوس اوکړونو حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه دې ته درجوع کولو حکم . بیا دې دا روخان سره اوساتی، تر دې پورې چه پاکه شي، بیا ورته حیض راشي، بیا پاکه شي ،بیا که هغه غواړی نو دې نه پس دې خپل خان سره اوساتی او که غواړی نو دصحبت کولونه مخکښې دې طلاق ورکړی. هم دا هغه عدت دې چه دهغې دپاره ښخوته طلاق ورکولو حکم الله ﷻ ورکړې دې.

**قوله: طلق امراته وهي حائض:** ددې ښځې نوم علامه نووی رحمه الله په تهذیب کښې آمنه بنت غفار لیکلې دې، بعضو امنه بنت عمار اود مسند احمدپه روایت کښې نوار راغلې دې. حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه په دې روایتونوکښې تطبیق کیدیشی چه آمنه ئې نوم اونوار ئې لقب وی. (۲)

**قوله: مره فلیراجعها:** که چا دحیض په حالت کښې خپلې بی بی ته طلاق ورکړو نو د طلاق نه درجوع متعلق دائمه اختلاف دې . د امام مالك رحمه الله او امام داود ظاهری رحمه الله په نیز رجوع کول واجب دی. امام احمد رحمه الله نه هم دا روایت دې او دحنفیه په نیز هم‌دا مختار دی. (۳) ځکه چه حدیث باب کښې ((فلیراجعها)) دامر صیغه ده. چه په وجوب باندې دلالت کوی، لهذا رجوع کول واجب دی. ((عملا بحقیقة الامرورفعا للمعصیة بقدر الممکن))

---

۱) اوګورئ مختصر اختلاف العلماء للطحاوی : ۳۷۵/۲ . طلاق السنه رقم المسئله: ۸۷۹والهدایه کتاب الطلاق : ۳۵٤/۲).
۲) فتح الباری: ٤۳۵/۹ .وتلخیص الحبیر: ۲۰۶/۲).
۳) اوګورئ المغنی لابن قدامه : ۱۰۰/۷ .البحر الرائق: ۲٤۲/۳ . ورد المختار: ۲۲۳/۳).

دامام شافعی رحمه الله په نیزرجوع کول مستحب دی اودحنابله مختار مسلك هم دادي. (۱)

**قوله: ثُمَّ لِيُمْسِكْهَا حَتَّى تَطْهُرَ ثُمَّ تَحِيضَ ثُمَّ تَطْهُرَ:** مطلب دادې چه په کوم حیض نې طلاق ورکړې وو.دې سره دې متصل طهر کښې طلاق نه ورکوی بلکه دې نه پس حیض چه کله راشی او بیابل طهر راشی نو هم په دې دويم طهر کښې طلاق ورکولې شی.

چه په کوم حیض نې طلاق ورکړې دې دې سره متصل طهر کښې طلاق دشافعیه او حنفیه د دواړو داصح قول مطابق جائز نه دې بلکه دراتلونکی طهر انتظار دې اوشی او دا انتظار واجب دې.

دامام احمد رحمه الله او امام مالك په نیز دا جائز دی. البته که طهر ثانی پورې طلاق موخر کړې شی نو مستحب دی،دامام ابوحنیفه رحمه الله یوروایت هم ددې مطابق دې.

حافظ ابن تیمیه رحمه الله ((المحرر))کښې قول اول اختیار کړې دې،طهر اول کښې طلاق ورکولو ته هغه بدعت وئیلی دی. (۲)

امام بخاری رحمة الله علیه په دې مسئله کښې څه تفصیل نه دې بیان فرمائیلې .

حدیث باب دحنفیه او شوافع مستدل دې.

## ۱=بَاب إِذَا طُلِّقَتْ الْحَائِضُ يُعْتَدُّ بِذَلِكَ الطَّلَاقِ

یعنی که ښځې ته په حیض کښې طلاق ورکړې شو نو ددې طلاق اعتبار به کولې شی ،امام بخاری رحمه الله واضحه فیصله کړې ده چه دجمهور او ائمه اربعه مسلك دادې چه په حیض کښې طلاق ورکول حرام دی،لیکن طلاق به واقع کیږی. (۳)

حافظ ابن تیمیه رحمه الله، علامه ابن قیم رحمه الله، علامه ابن حزم رحمه الله،ابراهیم بن اسماعیل بن علیه رحمه الله اودبعضو روافضو مذهب دادې چه په حیض کښې دطلاق اعتبار نشته دې،طلاق به واقع کیږی نه . (۴)

داحضرات دابو داود رحمه الله ددې روایت نه استدلال کوی چه کوم هغوی د((ابوالزبیرعن ابن عمر))په طریق نقل کړې دې .((طلق عبدالله بن عمر امراته وهی حائض علی عهد رسول الله ﷺ فسأل عمر رسول الله ﷺ فقال ان عبدالله بن عمر طلق امراته وهی حائض قال عبدالله فردها علی ولم یرها شیئا))(۵)

ددې حدیث په آخر کښې دی چه((ولم یرها شیئا))ددې نه استدلال کوی او داحضرات فرمائی چه په حیض کښې طلاق معتبر نه دې.

---

۱) المغنی لابن قدامه: ۱۰۰/۷. وتکمله فتح الملهم : ۱۳۵/۱).

۲) اوګورئ فتح الباری: ۴۳۸/۹،والبحر الرائق : ۲٤۲/۳ . والمغنی: ۱۰۱/۷).

۳) اوګورئ بدائع الصنائع،فصل واما حکم طلاق البدعه : ۹۶/۳،المجموعه شرح المهذب العلاق فی الحیض یحتسب: ۷۸/۱۶).

٤) فیض الباری: ٤/،والمحلی لابن حزم لا یحل ان یطلق امراته فی حیتها : ۶۱/۱۰،وزاد المعاد،حکم رسول الله ﷺ فی تحریم طلاق الحائض : ۲۲۱/۵).

۵) سنن ابی داود تفریع ابواب الطلاق باب فی طلاق السنه :۲۵۲/۲، رقم: ۵۸۱۲).

جمهور ددې استدلال مختلف جوابونه ورکوی.

① رومبې جواب دادې چه د((ولم یرها شیئا))اضافه د ابوالزبیر تفرد دې،امام ابوداود رحمه الله فرمائی که د ابوالزبیر نه علاوه دا الفاظ بل چا نه روایت شوی نه دی. (۱)
ابن عبدالبر دا الفاظ منکر گنړلی دی. (۲)

② اوکه دا الفاظ درست او صحیح اومنلې شی نو حافظ ابن عبدالبر فرمائی چه ددې مطلب به دا وی چه((لم یرها شیئا مستقیما لکونها لم تقع علی السنة))یعنی دحیض په ورځو کښې حضرت نبی کریم صلی الله علیه وسلم د طلاق ورکولو اقدام لره صحیح اونه گنړلو. علامه خطابی رحمه الله او امام شافعی رحمه الله هم ددې الفاظو دمنلو په صورت کښې داشان مطلب بیان کړې دې. (۳)

③ حضرت مولانا خلیل احمد سهارنپوری رحمه الله فرمائی چه د((لم یرها))ضمیر د((رجعة))طرفته هم واپس کیدیشی((ای لم یرا الرجعة شیئا ممنوعا))یعنی طلاق نه رجوع کول حضرت نبی کریم صلی الله علیه وسلم ممنوع اونه گنړل.(۴)

دجمهورو استدلال په دې ځائې کښې دآخری روایت نه دې،په هغې کښې حضرت عبدالله بن حضرت عمر فاروق رضی الله عنه فرمائی چه((حسبت علی بتطلیة))په دې کښې تصریح ده چه هغوی دحیض په زمانه کښې چه کوم طلاق ورکړې وو هغه معتبر اوگنړلې شو.

[۴۹۵۴] حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ أَنَسِ بْنِ سِيرِينَ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ عُمَرَ قَالَ طَلَّقَ ابْنُ عُمَرَ امْرَأَتَهُ وَهِيَ حَائِضٌ فَذَكَرَ عُمَرُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لِيُرَاجِعْهَا قُلْتُ تُحْتَسَبُ قَالَ فَمَهْ

وَعَنْ قَتَادَةَ عَنْ يُونُسَ بْنِ جُبَيْرٍ عَنْ ابْنِ عُمَرَ قَالَ مُرْهُ فَلْيُرَاجِعْهَا قُلْتُ تُحْتَسَبُ قَالَ أَرَأَيْتَ إِنْ عَجَزَ وَاسْتَحْمَقَ حَدَّثَنَا أَبُو مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ حَدَّثَنَا أَيُّوبُ عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنْ ابْنِ عُمَرَ قَالَ حُسِبَتْ عَلَيَّ بِتَطْلِيقَةٍ [ر:۴۶۲۵].

د((فمه))باره کښې دوه احتماله دی.

① یو دا چه ما استفهامیه دې او((ه))وقف دپاره ده،((ای فما یکون ان لم تحتسب))یعنی هغه به طلاق ولې شمار نه وی؟ .(۵)

② اودویم احتمال دادې چه((هاء))اصلیه وی او((مه))لره کلمه زجر اومنلې شی،((ای کف عن

۱ ) سنن ابو داود تفریع ابواب الطلاق : ۶۵۲/۲،رقم : ۵۸۱۲).
۲ ) فتح الباری: ۴۴۳/۹).
۳ ) فتح الباری: ۴۴۳/۹).
۴ ) بذل المجهود: ۶۱/۳).
۵ ) فتح ا لباری: ۴۴۱/۹،وقال ابن عبدالبر : قول ابن عمر : فمه،معناه فای شئ یکون اذالم یعتدبها انکار القول السائل ایعتدبها فکانه قال وهل من ذالک بد).

هذا الكلام فانه لابد من وقوع الطلاق بذالك» (١)

**قوله:** وَعَنْ قَتَادَةَ عَنْ يُونُسَ بْنِ جُبَيْرٍ: ددې عطف سند اول كښې «عن انس بن سيرين» باندې دې اودا موصول دې (٢)

**قوله:** أَرَأَيْتَ إِنْ عَجَزَ وَاسْتَحْمَقَ: په دې جمله كښې درې مطلبونه بيان شوى دى .

① يودا كه هغه ( ابن عمر رضي الله عنهما په صحيح طريقه باندې د طلاق وركولو نه» عاجز شو او هغه ( دحيض په حالت كښې طلاق وركړو) دحماقت ارتكاب ئې اوكړو نو آيا طلاق به واقع نه وى اوآيا ددې اعتبار به كولې نه شى؟ ظاهر دې چه كولې به شي.

② او دويم مطلب دادې كه هغه ښځې طرفته د رجوع كولو نه عاجزه شوې وې او حضرت نبى كريم صلى الله عليه وسلم د حكم تعميل ئې نه وې كړې نو دحماقت ارتكاب به ئې كړې وې نو آيا طلاق به وى نه واقع شوې، طلاق خو به واقع شوې وې، .(٣)

مذكوره دواړو صورتونو كښې «إِنْ عَجَزَ وَاسْتَحْمَقَ» شرط دې اوجزاء محذوف ده، «الا يقع الطلاق»

③ علامه كرمانى رحمه الله فرمائى چه دا هم ا حتمال دې كه «ان» لره نافيه اومنلې شى، «اى لم يعجز ابن عمر ولا استحمق لانه ليس بطفل ولا مجنون» يعنى ابن عمر رضي الله عنهما نه يوعاجزه سړې دې او نه هغه په حماقت كښې داسې اوكړل څكه چه هغه څه بچې يا مجنون خونه دې .(٤)

## ٢=بَابُ مَنْ طَلَّقَ وَهَلْ يُوَاجِهُ الرَّجُلُ امْرَأَتَهُ بِالطَّلَاقِ

مذكوره ترجمة الباب په دوه جزونو باندې مشتمل دې، ړومبې جز «من طلق» دا جز ابن بطال حذف كړې دې څكه چه دهغه په نيز ددې هيڅ معنى نشته دې. (٥)

امام ابن حجر رحمه الله فرمائى چه ددې نه دامام بخارى رحمه الله مقصد دطلاق شرعى جواز خودل دى. امام ابوداود رحمه الله يو بل حديث روايت كړې دې «أبغض الحلال الى الله الطلاق» ليكن دا روايت هغه صورت باندې محمول دې چه كله طلاق بغير دڅه سبب نه وركړې شى. (۶)

علامه عينى رحمه الله فرمائى چه «من طلق» كلام غير مفيد دې. خوكه تقديرى عبارت ويستې شى نو په دې صورت كښې به دا كلام مفيد كيدې شى. او تقديرى عبارت داشان ويستې شى چه «هذا باب فى بيان حكم من طلق امراته هل يباح له ذالك» يعنى آيا طلاق وركول

---

١ ) فتح البارى: ٩/٤٤١.
٢ ) فتح البارى: ٩/٤٤٠.
٣ ) مذكوره دواړو مطلبونو دپاره اوګورئ فتح البارى: ٩/٤٤١.
٤ ) شرح الكرمانى: ١٩/١٧٩.
٥ ) فتح البارى: ٩/٤٤۶، وعمده القارى: ٢٠/٢٢٩.
۶ ) فتح البارى: ٩/٤٤۶.

مباح دي ؟امام بخاري رحمه الله جواب نه دې ذکرکړې،جواب محذوف دې،«نعم»یعنی آو جی طلاق ورکول جائز دی.(۱)

د ترجمة الباب دونم جز دې«هل يواجه الرجل امراته باطلاق»يعنى آيا ښځې ته باالمشافه طلاق ورکولې شی؟ په دې ځائې کښې هم جواب ذکر نه دې فرمائیلې«اعتمادا على ما يفهم من حديث الباب»او په دې ځائې کښې هم هغه جواب دې يعنى«نعم».

امام بخاري رحمه الله دې جزسره لفظ د«هل»راوړی او دې طرفته اشاره کوی چه بالمشافه طلاق ورکول خلاف اولي دی، خوکه ضرورت وی نو بله خبره ده.(۲)

[۴۹۵۵] حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ حَدَّثَنَا الْأَوْزَاعِيُّ قَالَ سَأَلْتُ الزُّهْرِيَّ أَيُّ أَزْوَاجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اسْتَعَاذَتْ مِنْهُ قَالَ أَخْبَرَنِي عُرْوَةُ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا أَنَّ ابْنَةَ الْجَوْنِ لَمَّا أُدْخِلَتْ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَدَنَا مِنْهَا قَالَتْ أَعُوذُ بِاللَّهِ مِنْكَ فَقَالَ لَهَا لَقَدْ عُذْتِ بِعَظِيمٍ الْحَقِي بِأَهْلِكِ قَالَ أَبُو عَبْد اللَّهِ رَوَاهُ حَجَّاجُ بْنُ أَبِي مَنِيعٍ عَنْ جَدِّهِ عَنْ الزُّهْرِيِّ أَنَّ عُرْوَةَ أَخْبَرَهُ أَنَّ عَائِشَةَ قَالَتْ

په دې حديث کښې چه کومه واقعه بيان شوې ده دهغې تفصيل راتلونکو دوؤحديثونوکښې رازی. دحديث په آخر کښې دی چه«لَقَدْ عُذْتِ بِعَظِيمٍ الْحَقِي بِأَهْلِكِ»«الحقى باهلك»طلاق به کنايه ده، حضرت نبی علیه السلام دا جمله باالمشافه هغه ته اووئیله،معلوم شو چه سړې ښځې ته باالمشافه طلاق ورکولې شی.

**قوله:** قَالَ أَبُو عَبْد اللَّهِ رَوَاهُ حَجَّاجُ بْنُ أَبِي مَنِيعٍ عَنْ جَدِّهِ عَنْ الزُّهْرِيِّ: دابو منيع نوم عبيدالله بن ابى زياد دې،اودې دحجاج نيکه دې،دحجاج دوالد نوم يوسف دې، حجاج او دده د نیکه ابومنیع امام بخاري رحمه الله صحيح کښې صرف تعليقًا روايت ذکر کړې دې،موصولاً دده نه هيڅ روايت نه دې اخستې. (۳)

دا تعليق ذهيلی په زهريات کښې موصولاً نقل کړې دې،(۴)

[۴۹۵۶] حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ غَسِيلٍ عَنْ حَمْزَةَ بْنِ أَبِي أُسَيْدٍ عَنْ أَبِي أُسَيْدٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ خَرَجْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى انْطَلَقْنَا إِلَى حَائِطٍ يُقَالُ لَهُ الشَّوْطُ حَتَّى انْتَهَيْنَا إِلَى حَائِطَيْنِ فَجَلَسْنَا بَيْنَهُمَا فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اجْلِسُوا هَا هُنَا وَدَخَلَ وَقَدْ أُتِيَ بِالْجَوْنِيَّةِ فَأُنْزِلَتْ فِي بَيْتٍ فِي نَخْلٍ فِي بَيْتِ أُمَيْمَةَ بِنْتِ

---

۱) عمده القاری: ۲۲۹/۲).
۲) فتح الباری: ۴۴۶/۹).
۳) فتح الباری: ۴۴۷/۹، وعمده القاری: ۲۳۰/۲۰ ).
۴) فتح الباری: ۴۴۷/۹).

النُّعْمَانِ بْنِ شَرَاحِيلَ وَمَعَهَا دَايَتُهَا حَاضِنَةٌ لَهَا فَلَمَّا دَخَلَ عَلَيْهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ هَبِي نَفْسَكِ لِي قَالَتْ وَهَلْ تَهَبُ الْمَلِكَةُ نَفْسَهَا لِلسُّوقَةِ قَالَ فَأَهْوَى بِيَدِهِ يَضَعُ يَدَهُ عَلَيْهَا لِتَسْكُنَ فَقَالَتْ أَعُوذُ بِاللَّهِ مِنْكَ فَقَالَ قَدْ عُذْتِ بِمَعَاذٍ ثُمَّ خَرَجَ عَلَيْنَا فَقَالَ يَا أَبَا أُسَيْدٍ اكْسُهَا رَازِقِيَّتَيْنِ وَأَلْحِقْهَا بِأَهْلِهَا

[۴۹۵۷] وَقَالَ الْحُسَيْنُ بْنُ الْوَلِيدِ النَّيْسَابُورِيُّ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ عَبَّاسِ بْنِ سَهْلٍ عَنْ أَبِيهِ وَأَبِي أُسَيْدٍ قَالَا تَزَوَّجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُمَيْمَةَ بِنْتَ شَرَاحِيلَ فَلَمَّا أُدْخِلَتْ عَلَيْهِ بَسَطَ يَدَهُ إِلَيْهَا فَكَأَنَّهَا كَرِهَتْ ذَلِكَ فَأَمَرَ أَبَا أُسَيْدٍ أَنْ يُجَهِّزَهَا وَيَكْسُوَهَا ثَوْبَيْنِ رَازِقِيَّيْنِ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ أَبِي الْوَزِيرِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ عَنْ حَمْزَةَ عَنْ أَبِيهِ وَعَنْ عَبَّاسِ بْنِ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ عَنْ أَبِيهِ بِهَذَا [ر: ۵۳۴۳].

مذكوره دواړو احاديثو كښې امام بخارى رحمه الله دابنة الجون واقعه ليكلې ده، په صحيح بخارى كښې داشان دوه واقعات دى.

**دابنته الجون واقعه:** ① يوواقعه خوپه دې ځائې كښې حديث باب كښې ده .حضرت ابواسيد رضي الله عنه فرمائى چه مونږ حضرت نبى كريم ﷺ سره يو نخلستان طرفته اووتلو، چه هغې ته شوط وائى. هركله چه مونږ ددې دواړو ديوالونو طرفته ورغلو نوحضرت نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چه په دې ځائې كښې كينئ .حضرت نبى كريم ﷺ دننه تشريف يوړو. هغه ځائې ته جونيه (چه دهغې نوم اميمه وو) راوستې شوې وه، اميمه په نخلستان كښې يو كور كښې راكوزه كړې شوې وه. حضرت نبى كريم ﷺ دې ته نزدې شو نو وې فرمائيل چه ((هبى نفسك)) خپل ځان هبه كړه. هغې اووئيل ((هل تهب الملكة نفسها للسوقة)) آيا شهزادګئ خپل ځان رعايا ((عام سړى) ته خپل نفس هبه كولې شى؟حضرت نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چه خپل لاس په دې باندې دايښودو دپاره وړاندې كړوچه هغې ته تسكين وركړى. هغې اووئيل چه ((اعوذ بالله منك)) ( خه ستا نه دالله ﷻ پناه غواړم ). حضرت نبى كريم عليه السلام اوفرمائيل چه ((قد عذت بمعاذ)) (تا دداسې ذات پناه اوغوښتله چه دهغه پناه غوښتلې شى) بيا حضرت نبى كريم عليه السلام مونږ لره تشريف راوړو، او وې فرمائيل چه ائې ابو اسيده دې ته دوه رازقى جامې وركړه، دا دده كور والو ته اورسوه.

دابن سعد رضي الله عنه په روايت كښې په دې كښې دومره قدرې اضافه ده چه په دې كښې ابو اسيد رضي الله عنه فرمائى چه نعمان بن الجون كندى حضرت نبى كريم عليه السلام لره داسلام قبلولو دپاره راغلو. او حضرت نبى كريم عليه السلام ته ئې اونيل چه آيا خه دې (خپلې لور سره) سره ستا واده اونكړم چه دعربو ډيره ښكلې ښځه ده؟ . حضرت نبى كريم عليه السلام اومنل او واده ئې اوكړو. دښځې راوستلو دپاره حضرت ابواسيد رضي الله عنه اوليږلې شو، ابواسيد هغه راوستله اودبنوساعده په مذكوره باغ كښې ئې پريښوده. اوراغلو حضرت نبى كريم عليه السلام ته ئې اطلاع وركړه نو حضرت نبى كريم ﷺ هغه ځائې ته لاړو اودا واقعه پيښه شوه. (۱)

۱) فتح البارى: ۴۴۸/۹، وطبقات ابن سعد، ذكر من تزوج رسول الله ﷺ من النساء فلم يجمعهن: ۱۴۳/۸، ۱۴۴)

د صحيح بخاري احاديث باب نه څو خبرې راوزي
① يو داچه‌دمذكوره ښځې نوم‌اميمه بنت نعمان بن شراحيل وو
②دونم دا چه حضرت نبى كريم ﷺ دې سره واده اونكاح كړې وه
③ دريم داچه‌مذكوره ښځه په دې نكاح باندې راضى نه وه.
④ حضرت نبى كريم ﷺ ته ددې دخفګان علم نه وو.
⑤ پنځم دا چه كله حضرت نبى كريم ﷺ هغې لره ورغلو نو هغې دخفګان اظهار اوكړو او حضرت نبى كريم ﷺ ته ددې خفګان علم اوشو نو دوه رازقى جامې ئې وركړې دمتعه په طور اوهغې ته ئې طلاق وركړو او رخصت ئې كړه.
اوس داخبره‌پاتې كيږى چه هغه ولې راضى نه وه.په روايت باب كښې ددې ذكر نشته دې. دومره خبره خو متعين ده چه هغې ته دحضرت نبى كريم ﷺ د رتبې او مقام او عظمت علم نه وو.((وهل تهب الملكة نفسها للسوق))الفاظ نه ظاهر دى چه‌دحضرت نبى كريم ﷺ د مقام نبوت او شان عظمت نه ناواقفه وه. اوس داشان يو بله واقعه اوګورئ.
②دويمه واقعه امام بخارى رحمة ا لله عليه مخكښې په كتاب الاشربة كښې باب الشرب فى الاقداح كښې ذكركړې ده. حضرت سهل بن سعد رضی الله عنه فرمائى چه د حضرت‌رسول كريم ﷺ په مخكښې دعربو ديوښځې ذكر اوشونو حضرت‌رسول كريم ﷺ ابواسيد رضی الله عنه ته حكم اوفرمائيل چه دې لره پيغام اوليږى. ابواسيد دې لره پيغام اوليږلو،نوهغه راغله اودبنو ساعده په كوركښې ايساره شوه.حضرت‌رسول كريم ﷺ راوتلو او هغې لره ئې تشريف يوړو نو وې‌كتل چه هغه ښځې‌خپل سر ټيټ كړې وو،هركله‌چه هغې سره حضرت‌رسول كريم ﷺ خبرې اوكړې نوهغې اووئيل چه((اعوذ باالله منك))نو حضرت‌رسول كريم ﷺ اوفرمائيل چه ماتاته پناه دركړه (اودائې رخصت كړه).
دې نه نه بعد ددې ښځې نه تپوس اوكړو چه تاته پته ده دا څوك‌وو؟هغې اووئيل چه نه . خلقو ورته اووئيل چه دا خوحضرت نبى‌كريم ﷺ وو چه تا لره ئې دنكاح پيغام درليږلې وو،نوبيا هغې ښځې اووئيل چه څه بدبخته يم.
دابن سعد رضی الله عنه په روايت كښې دى چه دجونيه نوم اسماء بنت النعما بن ابى الجون وو. هركله چه راوستلې شوه نو ددې د ډول سنګار دپاره‌حضرت عائشه رضی الله عنها او حضرت حفصه رضی الله عنها لاړې. دا ډيره حسينه وه‌نو ددې‌وجې دوى ډيرې ويريدې كه حضرت رسول كريم ﷺ دې سره واده اوكړو نودې طرفته به ئې پوره توجوشى. نوددې وجې دا ئې اولمسوله چه كله حضرت رسول كريم ﷺ تالره راشى نو ته اووايه چه((اعوذباالله منك))ځكه چه حضرت رسول كريم ﷺ ته دا جمله ډيره خوښه ده. نوكله چه حضرت رسول كريم ﷺ تشريف راوړو دې لره‌نو دې مذكوره جمله اووئيله‌چه ددې په وجه حضرت رسول كريم ﷺ دې ته طلاق وركړو.
حضرت رسول كريم ﷺ ته چه كله ددې نه پس معلوم شو حقيقت حال چه بعض ازواج مطهرات دا په دې جمله وئيلو باندې آماده كړې وه نوحضرت رسول كريم ﷺ اوفرمائيل چه

((انهن صواحب يوسف وكيدهن عظيم))(١)
دا دربيع الاول نهمي (٩) هجرئ واقعه ده.(٢)
**آيامذكوره دواړه واقعات يو دي يا بيلې بيلې ؟:** مذكوره دواړو واقعاتو ته بعضې حضرات يو واقعه وائي،ليكن څو څيزونه په دې كښې مشترك كيدو نه باوجود څه خبرې په دې كښې مختلفې دي.
لكه دا چه په رومبئ واقعه كښې چه حضرت رسول كريم ﷺ اميمه سره واده كړې وه نودديې وجې امام بخارى رحمه الله ددې واقعې لاندې ذكر كوى،ظاهر دى چه طلاق په هغه وخت كښې وركولې شى چه كله رومبئ نكاح اوشوه،((الحقى باهلك))لره په طلاق باندې په هغه وخت كښې محمول كولې شى چه كله مخكښې دنكاح ثبوت اومنلې شى، كه نكاح نه وې شوې نوبيا د((الحقى باهلك))الفاظ طلاق كښې نشى شميرلې،اوترجمة الباب((وهل يواجه الرجل باالطلاق))نه نه ثابتيږى. علامه ابن عبدالبردې ښځې سره د حضرت رسول كريم ﷺ په نكاح باندې اجماع نقل كړې ده.(٣)
خو په دوئمه واقعه كښې د واده ذكر نشته دې،بلكه تصريح ده چه حضرت رسول كريم ﷺ صرف پيغام وركړې وو،داشان رومبئ واقعې نه معلوميږى چه هغه ښځه راضى نه وه. خو دبلې واقعې نه معلوميږى چه هغه راضى وه.ليكن هغې د((اعوذبك منك))جمله په دهوكه كښې وئيلې وه.اوحقيقت حال معلوميدو نه پس دې ته افسوس اوشو.

---

١) فتح البارى: ٤٤٩/٩،وطبقات ابن سعد: ١٤٤/٨، ١٤٥). په دې ځائې كښې چاته دا شبه كيديشى چه هغه په دې جمله وئيلو باندې ولې آماده شوه،اوبه داشان لمسولو كښې هغه ولې راغله،حالانكه هغې ته ددې جملې معنى معلوم وه چه دجمله مخاطب به نه دپناه غوښتلو دپاره ده،اومخاطب ددې نه د خوشحاليدو په ځائې خفه شى، ددې جواب دا وركولې شى چه په حقيقت كښې عهدجاهليت كښې دعربو قبائل كښې داخبره مشهوره وه چه كومه ښځه د صحبت دپاره تياره نه وى اودې سره په زبردستئ سره جماع اوكړې شي نودده بچى به شريف او قوى وى. صحبت دپاره دښځې پخپله راضى كيدو دپاره اوددې دخواهش په نتيجه كښې دښځې دسرى دپاره زر منل ښه خبره نه گڼلې كيده،په دې سلسله كښې دښځې بې رغبتى ښه خيال كولې شو. په ((اعوذبالله منک ))كښې اظهار د بې رغبتئ دې،ممكن دى چه داجمله دې دنورو ښځو په وينا هم ددې تاثر لاندې وئيلې وى،مشهور حماسى شاعر ابوكبير هذلى د تابط شرا تعريف هم په دې حواله كړې دې وائى:

ممن حملن به وهن عواقد حبک النطاق فشب غير مهبل
حملت به فى ليلة مزودة كرها و عقد نطاقها لم يحلل

①يعنى هغه چه ددې خلقو نه ده چه هغې سره ښځې په دې حال كښې حامله كيږى چه هغوى دتهه بند رسو لره لگوى (يعنى دصحبت دپاره تيارې نه وى ) نو هغه ډير په موج كښې خوان شو.
② دده مور ده سره حامله شوه ديو ويرې او پريشانئ او زبردستئ او مجبورئ په شپه كښې،په دې حال كښې چه ددې كمر بند غوټه نه وه پرانيستې شوې ).
٢) طبقات ابن سعد: ١٤٥/٨).
٣) اوگورئ الاستيعاث لابن عبدالبر (على هامش الاصابه ) : ٢٢٨/٤).

ددې وجې په ظاهره دواړه بيل بيل واقعات دی.
په دې خانې کښې حديث باب کښې ددې ښځې نوم اميمه راغلې دې، بعضو روايتونوکښې اسماء دې، بعض حضرات فرمائی چه اميمه لقب او اسماء نوم دې. (۱)
ليکن قوی خبره دامعلوميږی چه په دويمه واقعه کښې چه د کومې ښځې ذکر دې ددې نوم اسماء دې، ړومبئ واقعه د حضرت ابو اسيد ﷺ نه مروی ده او دويمه واقعه د حضرت سهل ﷺ نه نو حافظ ابن حجر رحمه الله ليکی چه :

((القصة التي في حديث ابي اسيد فيها اشياء مغايرة لهذه القصة فيقوى التعدد، ويقوى ان التي في حديث ابي اسيد اسمها اميمة والتي في حديث سهل اسمها اسماء والله اعلم، واميمة كان قد عقد عليها ثم فارقها وهذه لم يعقد عليها بل جاء ليخطبها فقط)) (۲)

**آيا داشان ډير واقعات راغلی دی يا دا يو واقعه ده؟**: اوس دا خبره پاتې کيږی چه د حضرت رسول کريم ﷺ د نکاح په سلسله کښې داشان متعدد واقعات راپيښ شو يا هم دا يو واقعه راغلې ده؟

حقيقت دادی چه ددې متعلق رواياتو کښې ډې زيات اختلاف موندې شی، ددې اندازه تاسو ددې نه اولګوئی چه د رواياتو سلسله کښې د ښځو نومونه تقريباً لس (۱۰) ملاويږی.
① اميمه بنت النعمان بن شراحيل ② اسماء بنت النعمان بن الحارث بن شراحيل ③ فاطمه بنت الضحاك بن سفيان ④ عمره بنت يزيد بن عبيد ⑤ عمره بنت الجون ⑥ عمره بنت معاويه کنديه ⑦ سنا بنت سفيان بن عوف کلابيه ⑧ عاليه بنت ظبيان بن عمرو ⑨ امامة (۱۰) مليكة (۳)

بيا د فراق او جدا کيدو متعلق هم د مختلف اسباب ذکر ملاويږی.
① د بخاری په روايت کښې دی چه دې ((اعوذ بالله منك)) وئيلی وو.
② بعض رواياتو کښې دی چه کله حضرت رسول کريم ﷺ داخل شو او دا ئې راوبلله نو دې اوئيل ((تعال انت)) نو ددې وجه حضرت رسول کريم ﷺ دې ته طلاق ورکړو.
③ بعضو روايتونو کښې دی چه په هغې برص مرض وو، ددې وجې دوی ورته طلاق ورکړو، (۴)
علامه ابن اثير اسد الغابة کښې ليکی چه :

((واما اللواتي تزوجهن ولم يدخل بهن او خطبهن ولم يتم له العقد او استعاذت منه ففارقها فقد اختلف فيهن وفي اسباب فراقهن اختلافا كثيرا)) (۵)

---

۱) فتح الباری: ۴۴۸/۹.
۲) فتح الباری: ۴۴۹/۹.
۳) اوګورئ طبقات ابن سعد، ذكر من تزوج رسول الله ﷺ من النساء فلم يجمعن: ۱۴۱/۸، وفتح الباری: ۴۴۹/۹، واسد الغابه فی معرفه الصحابه ذكر زوجاته ﷺ: ۱۴۳/۱.
۴) فتح الباری: ۴۴۷/۹.
۵) اسدالغابه فی معرفه الصحابه: ۱۴۳/۱، ذكر زوجاته ﷺ.

او علامه ابن عبدالبر رحمه الله فرمائی چه :

((الاختلاف فيها (اى فى الكندية) وفى صواحباتها اللواتى يجتمع بهن عظيم)).د(۱)

**د مذکوره ښځې انجام:** بیا چه کومې ښځې حضرت نبی کریم ﷺ سره پناه اخستې وه،ددې دانجام متعلق هم روایتونوکښې اختلاف دې.

① بعضو روایتونوکښې دی چه هغه ښځه دې نه پس پښیمانه وه. تر دې پورې چه هغه ددې غم دلاسه مړه شوه.(۲)

② بعضو روایتونوکښې دی چه حضرت نبی کریم ﷺ نه پناه غوښتلو والااسماء بنت النعمان نومې ښځې دابواسید نه تپوس اوکړو چه اوس څه اوکړم ؟ابو اسید اووئیل چه په خپل کور کښې په پرده کښې اوسه او هېڅوك دې تاسره د نكاح كولو اميد نه ساتی. نو هغه همد اشان وه،تر دې پورې چه د حضرت عثمان رضی الله عنه په زمانه کښې انتقال شوه.(۳)

③ او یو روایت کښې دی چه اسماء بنت النعمان ددې نه پس مهاجر امیه مخزومی سره واده اوکړو. حضرت عمر رضی الله عنه ته چه کله ددې علم اوشو نودې ته ئې دسزا ورکولو حکم اوکړو لیکن دې اووئیل چه((والله ماضرب علی حجاب ولا سمیت بام المومنین))(یعنی په خدائې زه دحضرت نبی کریم ﷺ په حرم کښې نه یم راغلې اونه ماته دام المومنین لقب ملاؤ شوې دې )نو حضرت عمر فاورق رضی الله عنه اراده ترك كړه.

مهاجر ابن امیه نه پس قیس بن مکشوح دې سره واده اوکړو.(۴)

حضرت نبی اکرم علیه السلام نه جدائی اختیارولو والا یو ښځې باره کښې دی چه هغې به دې نه پس څپیاکې ټولولې لیکن دابن سعد په روایت کښې دی چه هغه ښځه وه چه هغې د تخییر دآیت نازلیدو نه پس حضرت نبی اکرم علیه السلام داختیارولو په ځائې جدائی اختیار کړې وه. دې نه پس هغه په خپله فیصله باندې شرمنده وه. اوددې حالت داشو چه څپیاکې به ئې ټولولې او خرڅولې به ئې او خپل ځان ته به ئې بدبخته وئیل.(۵) اوس د روایت الفاظ اوګورئې.

**قوله:** حدثنا ابو نعيم وقد اتى بالجونية:دا واقعه دربیع الاول نهمې(۹) هجرئی ده لکه څنګه چه تیر شو.((حائط))د کهجورو باغ ته وئیلې شی.(۶)

**قوله:** فأنزلت في بيت نخل اميمة بنت النعمان: امیمه مرفوع ده،دا خو یا ((الجونية))نه بدل دې اویا عطف بیان دې،دویم((فی بیت))تنوین سره دې،((امیمة))طرفته مضاف

---

۱ ) اسدالغابة فی معرفة الصحابة : ۱۵/۷ . (واسماء بنت النعما،رقم الحديث ۶۷۱۶).

۲ ) فتح الباری: ۴۵۰/۹).

۳ ) اوګورئ الاصابه فی تمیز الصحابه (القسم الاول اسماء بنت النعمان ) : ۲۳۴/۴).

٤ ) الاصابه فی تمیز الصحابه: ٤٤١/٤. و طبقات ابن سعد: ١٤٧/٨).

۵ ) طبقات ابن سعد،ذکر تخییر نساء : ۱۹۱/۸،وانظر ایضا: ۱۹۲/۸).

۶ ) الحائط هوالبستان من النخيل اذا كان عليه جدار (عمدہ القاری: ۲۳۱/۲۰).

نه دي، ((فی بیت)) لره مکرر ذکر کړې شو. مقصد دا بیانول دی چه هغه کور په نخلستان کښې وو، ددې وجې د ((فی بیت)) نه پس ((فی نخل)) اضافه اوکړې شوه. لیکن د ((فی نخل)) اضافې سره دا وهم کیدیشو چه دا بدل الغلط دې اومراد ترې په نخلستان کښې کوزول دی، چه په هغه خانې کښې کور نه وو، ددې وهم لرې کولو دپاره دوباره ((فی بیت)) ئې ذکر کړو چه په نخلستان کښې کور وو. په دې کور کښې کوزه شوې وه . نو حضرت گنگوهی رحمه الله لیکی چه:

((قوله : فی بیت فی لفظ نخل فی بیت لما کان المقصود ذکر نزولها فی بیت واقع فی نخل ولم یکن لفظ فی بیت کافیا لذالك زاد لفظ فی نخل، فتوهم ان یکون بدلا غلطا عنه او یکون المعنی انزلها فی نخل الا ان ذکر البیت تشبیها اومجازا اعاد لفظ البیت ثانیا لدفع هذه الاحتمالات)) (۱)

**قوله: ومعها دايتها حاضنة لها:** یعنی دې سره ددې پرورش کولووالا دائی هم وه. حافظ ابن حجر رحمه الله لیکلی دی چه ددې دائی نوم ماته معلوم نشو. (۲)

**قوله: وهل تهب الملكة نفسها للسوقة:** ((سوقة)) بازاری ته نشی ونیلې بلکه ((سوقة)) هغه سړی ته وائی چه کوم عامی وی او د بادشاه دخاندان سره ددې تعلق نه وی، مفرد جمع دواړو دپاره راتلې شی. بازاری سړی ته عربئ کښې ((سوقی)) ونیلې کیږی. (۳)

**یو اشکال او دهغې جواب:** بعضې خلقو په دې باندې اشکال کړې دې چه ددې مکالمې نه معلومیږی چه نکاح ئې نه وه شوې، بیا حضرت نبی اکرم ﷺ دې لره ورغلل او دې طرفته ئې لاس اوږد کړو، د نکاح نه مخکښې خو دا صحیح نه معلومیږی.

ددې جواب دادې چه حضرت نبی اکرم ﷺ ته دا اختیار حاصل دې چه هغه ښځې سره د هغې داجازت نه بغیر نکاح اوکړی. یو ښځې ته د حضرت نبی اکرم ﷺ د نکاح پیغام لیږل دا راوستل او په دې کښې رغبت اختیارول د نکاح دپاره کافی دی. د ((هبی لی نفسك)) الفاظ خو صرف تطییب دخاطر دپاره ونیلی وو . حافظ ابن حجر رحمه الله لیکلی:

((والجواب انه ﷺ کان له ان یزوج من نفسه بغیر اذن المراة وبغیر اذن ولیها فکان مجرد ارساله الیها واحضارها ورغبتها فیها کافیا فی ذالك ویکون قوله : هبی لی نفسك تطییبا لخاطرها واستمالة لقلبها)) (۴)

حضرت شیخ الحدیث مولانا محمد زکریا رحمه الله فرمائی چه څما په نیز دا راجح جواب دې چه نکاح ددې واقعې نه مخکښې شوې وه، روایت کښې د ((تزوج)) لفظ صراحتًا موجود دې، په هغه وخت کښې د ((هبی لی نفسك)) جمله دوی د تقریب او تالیف دپاره فرمائیلې وه،

---

۱) لامع الداری: ۴۳۱/۹ . کتاب الطلاق).
۲) فتح الباری: ۴۴۸/۹).
۳) عمده القاری: ۲۳۱/۲۰،وفتح الباری: ۴۴۸/۹).
۴) فتح الباری: ۴۵۰/۹).

کنی نفس نکاح خو ددې نه مخکښې شوې وه.(۱)

**قوله:** قد عذت بمعاذ: «معاذ» دمیم په فتحې سره ظرف مکان دی، «اسم مکان العوذ» علامه عینی رحمه الله فرمائی چه مصدر میمی هم کیدیشی. دظرف مکان په صورت کښې مصدر په معنی داسم فاعل وی، ترجمه به دارنګ وی چه د پناه ورکونکی ذات پناه.(۲)

«اکسیها رازقیین»: «رازقیین» صفت دې «ای ثوبین رازقیین» دا تثنیه ده. «رازقی» د سین کتان اوږده کپړه وه.(۳)

**قوله:** الحقها باهلها: په دې روایت کښې خطاب حضرت ابواسید ته دې، او په رومبی روایت کښې خطاب نیغ په نیغه دې ښځې ته وو، ممکن دی چه رومبئ ښځې ته «الحقی باهلك» اوونیل دې نه پس نې دحضرت ابو اسید ته داجمله اوونیله.

«الحقی باهلك» کنایات طلاق نه دې، که څوك دا لفظ خپلې ښځې ته اووائی او دطلاق نیت ئې وی نو طلاق به واقع شی، ددې تفصیل به مخکښې راشی.

**قوله:** وقال الحسین بن الولید النیسابوری....: داتعلیق دې، ابونعیم دې لره مستخرج کښې موصولا نقل کړې دې.(۴) ددې نه مخکښې دا روایت امام بخاری رحمه الله دابونعیم رحمه الله نه نقل کړې دې، حسین او ابونعیم دواړه د عبدالرحمان بن الغیسل نه روایت نقل کوی، لیکن د عبدالرحمان شیخ ددواړو روایتونو کښې مختلف دې، د ابو نعیم په روایت کښې دی چه دعبدالرحمان شیخ حمزه دې او د حسین روایت کښې دی چه دده شیخ عباس بن سهل دې.

دې نه پس امام بخاری رحمه الله دریم طریق عبدالله بن محمد نه نقل کړې دې، په دې کښې دعبدالرحمان دشیوخو ذکر دې، دحمزه هم او د عباس بن سهل هم، معلوم شو عبدالرحمان سره داحدیث دحمزه او عباس دواړو واسطو سره راغلو.

**قوله:** ابراهیم بن ابی الوزیر: ابراهیم بن ابی الوزیر حجازی دې، د ابو الوزیر نوم عمر بن مطرف دې. دابراهیم زمانه کښې ا مام بخاری رحمه الله وو، لیکن دهغه سره دامام ملاقات اونشو. ددې وجې دهغه نه ئې بالواسطه روایت نقل نه کړو. په کال ۲۱۰ هجرئې ته نزدې دده وفات اوشو. بخاری کښې دده صرف دا یوحدیث روایت شوې دې.(۵)

[۴۹۵۸] حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ حَدَّثَنَا هَمَّامُ بْنُ يَحْيَى عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَبِي غَلَّابٍ يُونُسَ بْنِ جُبَيْرٍ قَالَ قُلْتُ لِابْنِ عُمَرَ رَجُلٌ طَلَّقَ امْرَأَتَهُ وَهِيَ حَائِضٌ فَقَالَ تَعْرِفُ ابْنَ

۱) اوګورئ تعلیقات لامع الداری: ۳۴۳/۹).
۲) عمده القاری: ۲۳۲/۲۰).
۳) عمدة القاری: ۲۳۲/۲۰).
٤) فتح الباری: ٤٥١/۹).
۵) مذکوره تفصیل دپاره اوګورئ فتح الباری: ٤٥١/۹).

عُمَرَ اَنَّ ابْنَ عُمَرَ طَلَّقَ امْرَاَتَهُ وَهِيَ حَائِضٌ فَاَتَى عُمَرُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرَ ذٰلِكَ لَهُ فَاَمَرَهُ اَنْ يُرَاجِعَهَا فَاِذَا طَهُرَتْ فَاَرَادَ اَنْ يُطَلِّقَهَا فَلْيُطَلِّقْهَا قُلْتُ فَهَلْ عَدَّ ذٰلِكَ طَلَاقًا قَالَ اَرَاَيْتَ اِنْ عَجَزَ وَاسْتَحْمَقَ [ر:۳۶۲۵].

ددې حديث مناسبت دترجمة الباب د رومبي جز «من طلق» نه خو بالكل ظاهرده او دويم جزء «وه يواجه الرجل» سره هم ددې مناسبت ابن منير بيان كړې دې، اوهغه دا چه حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما خپلې ښځې ته دنافرمانۍ په وجه طلاق وركړې وو. اودسې صورت كښې سړې عام طور بالمشابه او ښځې ته براه راست طلاق وركوى. ددې وجې د حديث مناسبت دترجمة الباب دواړو جزءونوسره دې.(۱)

حافظ ابن حجر رحمة الله عليه فرمائى چه دا ونيل حضرت ابن عمر رضي الله عنهما دنافرمانۍ په وجه خپلې ښځې ته طلاق وركړې ووغير مستند دې بلكه دمسند امام احمد په يوروايت كښې دى چه : «كان تحتى امراة احبها وكان عمر يكرهها فقال طلقها فاتيت النبى ﷺ فقال اطع اباك» (۲)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه په دې روايت كښې چه دكومې ښځې ذكر دې شائد هم دې ښځې ته حضرت ابن عمر رضي الله عنهما طلاق وركړې وى په حالت دحيض كښې، او ظاهر دى چه دا طلاق دنافرمانۍ په وجه نه وو وركړې شوې بلكه دخپل پلار دحكم داطاعت كښې وركړې وو، ګنى بذات خود خوهغه دا خوښوله.(۳)

## ۳- بَابُ مَنْ اَجَازَ طَلَاقَ الثَّلَاثِ لِقَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى اَلطَّلَاقُ مَرَّتَانِ فَاِمْسَاكٌ بِمَعْرُوفٍ اَوْ تَسْرِيحٌ بِاِحْسَانٍ [البقرة:۲۲۹]

وَقَالَ ابْنُ الزُّبَيْرِ فِي مَرِيضٍ طَلَّقَ لَا اَرَى اَنْ تَرِثَ مَبْتُوتَتُهُ
وَقَالَ الشَّعْبِيُّ تَرِثُهُ وَقَالَ ابْنُ شُبْرُمَةَ تَزَوَّجُ اِذَا انْقَضَتِ الْعِدَّةُ قَالَ نَعَمْ قَالَ اَرَاَيْتَ اِنْ مَاتَ الزَّوْجُ الْاٰخَرُ فَرَجَعَ عَنْ ذٰلِكَ

په دې ځاى كښې دوه مسئلې دى او ترجمة الباب نه دې دواړو طرفته اشاره كيديشى.

**درې طلاقه يو ځائې وركول جائزدى كه نه؟** رومبۍ مسئله ده چه درې طلاقه يو ځائې وركول جائز دى كه نه؟ د امام ابوحنيفه رحمه الله او امام مالك رحمه الله په نيز جائز نه دى. اوامام احمد رحمه الله نه هم يو روايت ددې مطابق دې.(۴)

د امام شافعي رحمه الله په نيز درې طلاقه يوځائې وركول حرام نه دى، جائزدى ، د امام احمد رحمه الله دويم روايت همدادې .(۵)

۱) فتح البارى: ۴۵۱/۹).
۲) فتح البارى: ۴۵۲/۹).
۳) فتح البارى: ۲۵۲/۹).
۴) المغنى لابن قدامه: ۱۰۲/۷، وتكمله فتح الملهم: ۱۵۲/۱، كتاب الطلاق).
۵) وتكمله فتح الملهم: ۱۵۲/۱.)

دامام شافعي رحمه الله استدلال دحضرت عويمر عجلاني رضي الله عنه د قصې نه دې چه لعان نه فارغيدو نه پس هغوى خپلې ښځې ته درې طلاقه ورکړل اوحضرت نبى كريم ﷺ په باندې نكير اونه فرمائيلو چه ددې نه جوازمعلوميږى.(۱)

دحنفيه د طرفنه ددې استدلال جواب ورکړې شوې دې چه دامام شافعي رحمه الله په نيز لعان كښې دښځې دلعان نه مخکښې دخاوند دلعان سره د دواړو په مينځ كښې فرقت واقع كيږى،دلعان نه پس كه خاوند طلاق ورکړى نو طلاق به نه واقع كيږى،ځكه چه هغه د مخکښې نه بائنه شوې وه،ددې وجې دده دمذهب مطابق مذكوره واقعه كښې دحضرت عويمر طلاق واقع نشو، بيا به ددې نه استدلال كول څنګه صحيح وى.(۲)

داخو دامام شافعي رحمه الله دهغوى دمذهب مطابق د استدلال الزامي جواب دې .

دحنفيه دمذهب مطابق ددې جواب دادې چه ممكن دى چه دا واقعه د دريو طلاقو په يو وخت دوركولو دممانعت نه مخکښې وى ددې وجې حضرت رسول كريم عليه السلام نكير اونه فرمائيلو.(۳)

اودا هم وجه كيديشي چه دطلاق نه بغير چونكه فرقت د لعان په جهت واقع كيدو،ددې وجې حضرت نبى كريم عليه السلام نكير اونه فرمائيلو.

حضرات حنفيه اومالكيه په خپل مذهب باندې دمحمود بن لبيد روايت نه استدلال كوى چه امام نسائى رحمة الله عليه نقل كړې دې چه يو سړى خپلې ښځې ته درې طلاقه ورکړل په يو ځائې،حضرت نبى كريم عليه السلام ته چه كله معلوم شو نو حضرت نبى كريم عليه السلام دغصې نه اودريدل او وې فرمائيل چه((ايلعب بكتاب الله وانا بين اظهركم))(۴)

حافظ ابن حجر رحمه الله ددې روايت رجال لره ثقات او ابن كثير دې لره جيد ګڼړلې دې .(۵)

**آيا درې طلاقه به يوشميرلې شى يا درې؟**: دونمه مسئله داده چه كه يوسړې خپلې ښځې ته درې طلاقه وركړى په يو مجلس كښې يا په يو كلمه كښې په يو ساه وركړى نو دا به يو شميرلې كيږى يا درې،په دې كښې اختلاف دې.

① دجمهور، سلف،آئمه اربعه اود اكثر علماء كرام قول دادې چه درې به شميرلې شى، او درې طلاقه به واقع شى، چه ددې په وجه به حرمت مغلظه واقع شى،تر كومې پورې چه دا ښځه بل چاسره نكاح اونكړى اوهغه سره هم بسترى اونكړى، تر هغه وخته پورې دړومبى خاوند دپاره حلاله نه ده.(۶)

② دويم مسلك د ادې چه يوبه هم واقع نه وى،دشيعه جعفرى هم دامسلك دې.(۷)

---

۱ (تكمله فتح الملهم: ۱۵۲/۱).
۲ ) احكام القران للجصاص:۴۵۴/۱).
۳ ) احكام القران للجصاص: ۴۵۴/۱).
٤ ) سنن النسائى. كتاب الطلاق،باب الثلاث ا لمجموعه وما فيها من التغليظ: ۹۹/۲).
۵ ) فتح البارى: ۴۵۳/۹،وتكمله فتح الملهم: ۱۵۲/۱).
۶ ) المغنى لابن قدامه: ۱۰۴/۷).
۷ ) شرح الاسلام للحلّى الشيعى : ۵۷/۲ (كذا فى فى التكمله : ۱۵۳/۱).

امام نووى رحمه الله دحجاج بن ارطاة، محمد بن اسحاق او د ابن مقاتل هم دا مسلك نقل كړې دې.(۱)

دريم مسلك دبعضو ظاهريه او علامه ابن تيميه او علامه ابن قيم دې، دا حضرات فرمائى چه په دې صورت كښې به يو طلاق رجعى واقع كيږى.(۲) نن سبا غير مقلدين هم دا قول اختياروى.

**دظاهريه رومبې استدلال:** دا حضرات صحيح مسلم كښې دحضرت ابن عباس روايت نه استدلال كوى، په هغې كښې دى چه:

«كان الطلاق على عهد رسول الله ﷺ وابى بكر رضي الله عنه وسنتين من خلافة عمر، طلاق ثلاث واحدة فقال عمر بن الخطاب ان الناس قد استعجلوا فى امر قد كانت لهم فيه اناة فلو امضيناه عليهم فامضاه عليهم»(۳)

ددې حديث نه دا خبره صراحتًا ظاهريږى چه درې طلاقه د حضرت نبى كريم ﷺ اوحضرت ابوبكرصديق رضي الله عنه اوحضرت عمر فاروق رضي الله عنه د خلافت په رومبئ زمانه كښې يوشميرلې كيدو، بيا حضرت عمر فاروق رضي الله عنه دې لره درې اوګرزول.

**د جمهورو دطرفنه ددې خبرې جوابات:** د جمهور عالمانو طرفنه ددې روايت متعددو طريقو سره جوابونه وركړې شو.

① يو جواب دا وركړې شوې دې چه دثلث واحد ګرزول د غير مدخول بها دپاره وو. اسحاق بن راهويه اوزكريا ساجى شافعى دا جواب وركړې دې.(۴)

خوداجواب په هغه وخت كښې صحيح كيديشى چه كله څوك «انت طالق، انت طالق، انت طالق» درې ځل اووائى او طلاق وركړى، په دې صورت كښې به رومبى ځل (انت طالق) سره بائنه شى او باقى چونكه محل پاتې نشو نو ددې وجې يو طلاق به واقع شى. ليكن كه چا «انت طالق ثلاثا» اووئيل او طلاق ئې وركړو نو په دې صورت كښې د«ثلاثا» عدد دماقبل نه نشى جدا كولې اودرې طلاقه به واقع شى، نو په رومبى صورت كښې دغيرمدخول بها په حق كښې ثلث لره واحد ګرزولې شى ليكن په دويم صورت كښې به درې واقع كيږى.(۵)

② دويم جواب دا وركړې شو چه اصل مسئله داده چه كه څوك درې ځل د طلاق الفاظ اووائى اودده مقصد دتاكيد وى، تاسيس نه وى، و ديانته داسې صورت كښې به درې طلاقه واقع نه وو، بلكه صرف يو به وى.

دحضرت نبى كريم ﷺ په دوركښې، عهدصديقى، اوداابتدائى عهد فاروقى كښې به خلقو «انت طالق» درې ځل وئيل. ليكن ددې منشاء اومقصود به جديد نه وى بلكه هغوى به

---

۱) شرح مسلم للنووى. ۴۷۸/۱، باب طلاق الثلاث).
۲) زاد المعاد: ۲۴۸/۵. وتكمله فتح الملهم: ۱۵۳/۱).
۳) صحيح مسلم، كتاب الطلاق، باب طلاق الثلاث: ۴۷۷/۱).
۴) فتح البارى: ۴۵۵/۹).
۵) فتح البارى: ۴۵۵/۹).

صرف دتاكيد په غرض سره دوباره او دريم باره «انت طالق» د هر اول، او دخلقو په ديانت باندې چونكه په هغه وخت كښې اعتماد وونو ددې وجې د تاكيد او تاسيس په سلسله كښې دهغوى دقول اعتبار به كولې شو. كه يو سړى به درې ځل د طلاق الفاظ ونيلو نه پس بيانول چه ځما نيت دتاكيد وو، دتاسيس نه وو، نو دا قول به قضاءً قبلولې شو.

ليكن بعد كښې چه كله دخلقو كثرت شو او د ديانت معيار د مخكښې خلقو پشان پاتې نشو نو حضرت عمر فاروق رضي الله عنه اعلان اوفرمائيلو كه چا درې طلاقه وركړل نو دتاكيد قول به معتبر نه وى بلكه ظاهرى الفاظو باندې به فيصله كولې شى او دا به درې طلاقه منلې كيږى.

دا جواب دابن سريج نه نقل كړې شوې دې، ابو العباس قرطبى رحمه الله او علامه نووى رحمه الله دې جواب لره اصح الاجوبة ګرځولې دې.(۱)

(۲): دريم جواب د «واحدة» تاويل باندې مشتمل دې چه «كان الثلاث واحدة» معنى داده چه په هغه وخت كښې به دحضرت نبى كريم صلى الله عليه وسلم په زمانه درې يو وو. ليكن كله چه دحضرت عمر فاروق رضي الله عنه زمانه كښې راغله نو خلقو درې طلاقونه وركول، نو حضرت عمر فاروق رضي الله عنه د دريو طلاقونو واقع كيدو اعلان اوكړو.

ددې جواب مطابق عهد نبوى صلى الله عليه وسلم او عهد فاروقى رضي الله عنه كښې طلقات ثلاث حكم كښې څه تبديلى رانغله. صرف دخلقو په عادتونو كښې دتبديلۍ بيان روايت دې، نو ابوزرعه فرمائى چه:

«معنى هذا الحديث عندى ان ما تطلقون انتم ثلاثا كانوا يطلقون واحدة قال النووى، وعلى هذا فيكون الخبر وقع عن اختلاف عادة الناس خاصة لا عن تغير الحكم فى الواحدة»(۲)

دې جواب لره ابن العربى راجح ګرځولې دې.(۳)

**دظاهريه دويم قول**: دعلامه بن تيميه او علامه ابن قيم دويم استدلال حديث ركانه نه دې چه كوم حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه مروى دې. په دې كښې دى چه:

«طلق ركانة بن عبد يزيد امراته ثلاثا فى مجلس واحد، فحزن عليها حزنا شديدا فسأله رسول الله صلى الله عليه وسلم كيف طلقتها؟ قال طلقتها ثلاثا قال: فقال فى مجلس واحد؟ قال نعم، قال: فانما تلك واحدة فارجعها ان شئت قال: فراجعها».

امام احمد او ابويعلى دا حديث نقل كړې دې او دمحمد بن اسحاق په طريق سره دا ئې صحيح ګرځولې دې.(۴)

**د ركانه دحديث جواب**: ددې جواب دادې چه د حضرت ركانه د طلاق واقعه كښې په رواياتو

---

۱) مذكوره تفصيل دپاره اوګورئ فتح البارى: ۴۵۶/۹، اوګورئ شرح مسلم لنووى: ۴۷۸/۱، وتفسير قرطبى: ۱۳۰/۳، تفسير سورة البقرة، المسالة الخامسة).

۲) فتح البارى: ۴۵۶/۹).

۳) فتح ا لبارى: ۴۵۶/۹).

۴) فتح البارى: ۴۵۴/۹، ۳۵۳).

كښې اختلاف دې.مذكوره روايت كښې خو د «طلقها ثلاثا» الفاظ دى،ليكن سنن ابى داود كښې «طلقها البتة» الفاظ دى.(۱) امام ابوداود د «البتة» والا حديث راجح ګرزولې دې، ددې وجې چه دا روايت دحضرت ركانه دكور والو نه مروى دې،او دكور په معامله كښې كور والو ته زيات علم وى.(۲) ددې وجې دا خبره صحيح معلوميږى چه حضرت ركانه خپلې بى بى ته درې طلاقه نه وو وركړى بلكه «انت طالق البتة» سره ئې طلاق وركړې وو.او چونكه «البتة» اطلاق درېو باندې هم كيږى،كه څوك ددې لفظ نه د درېو نيت اوكړى او ددې وجې بعضوراويانو روايت بالمعنى كړې دې او دائې «طلقها ثلاث» سره تعبير كړې دې.

خلاصه داشوه چه حضرت ركانه «انت طالق البتة» سره طلاق وركړې وو او هغه ددې نه ديوطلاق نيت كړې وو، حضرت رسول كريم ﷺ دده تصديق اوفرمائيل او دوباره ئې دده دنكاح حكم اوكړو.په حديث كښې دى چه درجوع نه دوباره نكاح كول مراد دى.نو مسئله هم داده كه يوسړى «انت طالق البتة» الفاظوسره طلاق وركړو نو يو طلاق بائن به واقع كيږى او درجوع په صورت كښې به دوباه نكاح كوى.(۳)

او فرض كړه كه تسليم كړې شى چه حضرت ركانه درې طلاقه وركړى وو نو هم دې واقعې سره دجمهورو خلاف استدلال درست نه دې بلكه دابوداود،ترمذى ،ابن ماجه،اودارمى په روايتونوكښې تصريح ده چه حضرت ركانه دحضرت رسول كريم ﷺ په مخكښې قسم اوكړو او وې وئيل چه «والله ماأردت الا واحدة» (۴) چه څما نيت ديووو اودا خبره مخكښې تيره شوې ده چه حضرت رسول كريم ﷺ په زمانه كښې د درېو طلاقو وركولو په صورت كښې كه يو سړى به ددې نه ديو مراد اخستلو دعوى كوله نو دهغه دا خبره به قضاءً قبلولې شوه.

كه درې طلاقه يوشميرلې كيدې نو حضرت رسول كريم ﷺ به دحضرت ركانه نه حلف نه اخستلو،دعلامه ابن تيميه مذهب هم دا دې چه درې طلاقه مطلقًا يو شميرلې كيږى،اګركه طلاق وركونكې ددې نه د درېوطلاقونونيت اوكړى (۵)

حاصل دكلام دادې چه د حضرت ركانه د واقعې نه زيات نه زيات داخبره معلوميږى چه حضرت رسول كريم ﷺ دنيت په تاكيد كښې د هغه تصديق كړې وو،نو ددې واقعې نه په دې خبر باندې استدلال كول درست نه دى چه طلقات ثلاث يو شميرلې كيږى اګر چه بنيت تاسيس وى.

بيا دعلامه ابن تيميه وغيره مستدل مذكوره دواړو روايتونو يومشترك جواب داهم دې چه

---

۱) سنن ابى داود،كتاب الطلاق ،باب فى البتة: ۲۶۳/۲،رقم الحديث : ۲۲۰۶).
۲) سنن ابوداود : ۲۶۳/۲، ۲۶۴).
۳) تكملة فتح الملهم : ۱۵۹/۱).
٤) اوګورئ سنن ابى داود،كتاب الطلاق،باب فى البتة: ۲۶۳/۲،اوګورئ تكملة: ۱۶۰/۱).
۵) تكملة الملهم: ۱۶۰/۱).

دا دواړه روایات دحضرت ابن عباس رضی الله عنه نه منقول دی او حضرت ابن عباس رضی الله عنه خپله فتوی د طلقات ثلاث دوقوع ده. هرکله چه دهغه فتوی او بیان شوی روایت کښې تعارض راغلو نو ترجیح به فتوې ته ورکولې شی ځکه چه هغه دجمهورو مطابق ده، نو ابن المنذر رحمه الله لیکی چه:

«لایظن بابن عباس رضی الله عنه انه یحفظ عن النبی صلی الله علیه وسلم شیئا ویفتی بخلافه فیتعین المصیر الی الترجیح، والاخذ بقول الاکثر اولی من الاخذ بقول الواحد اذا خالفهم»(۱)

دحضرت ابن عباس رضی الله عنه دا فتوی دمجاهد په طریق امام ابوداود رحمه الله په صحیح سند سره نقل کړې ده، مجاهد فرمائی چه:

«کنت عند ابن عباس، فجاءه رجل فقال انه طلق امراته ثلاثا، فسکت حتی ظننت ان سیردها الیه فقال ینطلق احدکم فیرکب الحموقة ثم یقول یا ابن عباس یا ابن عباس ان الله قال ومن یتق الله یجعل له مخرجا، وانکم لم تتق الله فلا اجدلک مخرجا عصیت ربک وبانت منک امراتک»(۲)

**د جمهورو دلائل:** ① امام بخاری رحمه الله په باب کښې چه کوم درې احادیث ذکر فرمائیلی دی دا درې واړه دجمهورو دلیل دی، نو په ړومبې روایت کښې دی چه«فطلقها ثلاثا قبل ان یامره رسول الله صلی الله علیه وسلم» دوئم روایت کښې دی چه امراة رفاعه وائی«ان رفاعة طلقنی فبت طلاقی» او د کتاب الادب روایت کښې دی چه«طلقنی اخر ثلاث تطلیقات» او دریم حدیث کښې هم د دریو طلاقو ذکر دې.

② حضرت حسن بن علی رضی الله عنه خپلې بی بی ته طلاق ورکړو، بیا دوی ته افسوس اوشو او وې فرمائیل چه:

«لولا انی سمعت جدی اوحدثنی ابی انه سمع جدی یقول ایما رجل طلق امراته ثلاثا عند الاقراء اوثلاثا مبهمة لم تحل له حتی تنکح زوجا غیره، لراجعتها»(۳)

③ په سنن دارقطنی کښې دحضرت عباده بن صامت رضی الله عنه نه روایت دې چه یوسړی خپلې بی بی ته زر طلاقونه ورکړل، دده ځوئې دحضرت نبی کریم صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې حاضر شو اووې وئیل چه خمونږ پلار خمونږ مور ته زر طلاقونه ورکړل، نو په دې باندې حضرت نبی کریم صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه:

«ان اباکم لم یتق الله تعالی فیجعل له من امره مخرجا بانت بثلاث علی غیر السنة وتسعمائة وسبعة وتسعون اثم فی عنقه»(۴)

بیا که دا تسلیم کړې شی چه په عهد نبوی صلی الله علیه وسلم او عهد صدیقی رضی الله عنه کښې درې طلاقه بنیت تاکید یو شمیرلې شو او قضاءً به په دې کښې د طلاق ورکولو والا دقول اعتبار کولې شو،

---

۱) فتح الباری: ۹/۴۵۵).

۲) فتح الباری: ۹/ ۴۵۳).

۳) السنن الکبری للبیهقی، کتاب الخلع والطلاق باب /ماجاء فی مضاء الطلاق والثلاث: ۷/۳۳۶).

۴) اوګورئ سنن دارقطنی، کتاب الطلاق: ۴/۲۰، وقال الدار قطنی: رواته مجهولون وضعفا الاشیخینا ابن عبدالباقی)

خو دحضرت فاروق اعظم رضی الله عنه په زمانه کښې مطلقاً د درې طلاقو په وقوع باندې ا جماع مقررشوه،هغوی دا فیصله اوکړه چه درې طلاقه به واقع کیږی اګر که په نیت دتاکید سره وی. او ټولو صحابه کرامو رضی الله عنهم دا تسلیم کړه. هیڅ مخالفت اونکړونو امام طحاوی رحمه الله، حافظ ابن عبدالبر رحمه الله،ابن العربی رحمه الله،حافظ ابن حجر رحمه الله اوعلامه ابن الهمام رحمه الله د طلاق ثلاث باندې اجماع نقل کړې ده.(۱)

هم دا وجه ده دعربو سلفی علماء کرامو چه عموماً علامه ابن تیمیه او علامه ابن القیم اقوالو ته ترجیح ورکوی،په دې مسئله کښې دوی سره اختلاف کړې دې،اوددوی دقول د اختیارولو په ځائې هغوی اتفاق سره دجمهور امت مطابق درې طلاقه په وقوع باندې فتوی ورکړې ده .(۲)

«الطلاق مرتان فامساك بمعروف او تسريح باحسان»

امام بخاری رحمه الله دترجمة الباب دثبوت دپاره مذکوره آیت پیش کړې دې،په دې آیت کریمه کښې ترجمة الباب باندې دوه طریقو سره استدلال کیدیشی.

① د«الطلاق مرتان»دوه معنې دی،«مرة بعد مرة»نو کله چه دوه طلاقه جمع کول جائز دی نو درې طلاقه هم جمع کول جائز کیدل پکار دی.(۳)

② لیکن په دې باندې اشکال کوی او علامه کرمانی رحمه الله فرمائی چه دا قیاس مع الفارق دې،ځکه چه دوه طلاقونه جمع کولو سره حرمت مغلظه نه ثابتیږی،او د دریو طلاقو جمع کولو سره حرمت مغلظه واقع کیږی . ددې وجې په یوبل باندې قیاس نه شی کولې.(۴)

دترجمة الباب دثبوت دپاره دویم استدلال داسې کیدیشی چه«او تسريح باحسان»کښې د «تسريح»معنی دپرېښودو.ده.دا عام ده،درې طلاقه ورکولو سره هم شامل دی. چه دې سره د طلقات ثلاث دوقوع جواز معلومیږی.ددې د تائید ابن ابی حاتم روایت نه کیږی چه حضرت نبی کریم صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې یو سړې حاضر شو اوتپوس ئې اوکړو چه په«الطلاق مرتان» کښې الله جل جلاله د دوؤ طلاق ذکر کړې دې د دریم طلاق ذکر چرته دې ؟حضرت نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمائي چه«اوتسريح باحسان»دا دریم طلاق دې.(۵) ددې تفسیر مطابق ترجمة الباب ثبوت باندې آیت کریمه نه استدلال بالکل واضح دې.

خود «اوتسریح باحسان»یوتفسیرد سدی رحمه الله نه منقول دې.دهغې مطابق تسریح یعنی د

---

۱ ) اوګورئ شرح معانی الاثار،باب الرجل،یطلق امراته اثلاثا معا : ۲۹/۲،وشرح موطاللزرقانی : ۱۶۷/۳، وفتح الباری: ۴۵۷/۹،وعمدة الاثاث: ۳۷).

۲ ) اوګورئ احسن الفتاوی: ۱۲۵/۴).

۳ ) عمدة القاری: ۲۳۴/۲۰).

۴ ) فتح الباری: ۴۵۷/۹).

۵ ) عمدة القاری: ۲۳۴/۲۰،وفتح الباری: ۴۵۷،۴۵۸/۹).

پرېښودو مطلب دادې چه ښځې ته دوه طلاقه ورکولو نه پس د عدت دتیریدو دپاره پرېښودې شی اورجوع دې اونکړې شی،دعدت دتیریدو نه پس ښځه به آزاده وی. د آیت کریمه معنی ده چه طلاق دوه ځله دې. دوه ځله طلاق ورکولو نه پس دوه صورتونه دی چه یاخودې رجوع اوکړی او دخپلې ښځې نکاح دې ایساره کړی. یا دې بیا رجوع نه کوی،عدت دې پوره کیدو ته پرېږدی. دعدت دپوره کیدو نه پس ښځه به آزاده وی. بیا دې نه پس په آیت کریمه کښې دخلع بیان دې،دې نه پس((فان طلقها))سره د دریم طلاق ذکر دې.(۱)

ددې تفسیر مطابق آیت کریمه نه په ترجمة الباب باندې استدلال درست نه دې.

**قوله:** وقال ابن الزبیر في مریض طلق : لاارى ان ترث مبتوتة: امام بخاری رحمه الله دحضرت عبدالله بن زبیر دا اثر نقل کړې دې،چه ددې تعلق د امراة الفار سره دې .که چا خپلې ښځې ته په مرض الموت کښې طلاق ورکړو نو په دې صورت کښې به هغې ته فار ونیلې شی. دده ښځې ته به وراثت ملاویږی یا نه،په د ې کښې اختلاف دې.

د((امراة الفار حکم)): حضرات حنفیه فرمائی چه خاوند د ښځې په زمانه دعدت کښې مړ شوې دې نو بیاخو به وراثت ملاویږی لیکن که دعدت تیریدونه پس مړشوې دې نو بیا به وراثت نه ملاویږی.

امام شافعی رحمه الله فرمائی چه د امراة الفار به وراثت نه وی . دخاوند انتقال که عدت کښې دننه شوې وی یا دعدت تیریدو نه پس وی.

امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائی چه ترکومې پورې د بل سړی سره نکاح نه وی کړې تر هغه وخته پورې به وارثه وی اوکه نکاح ئې اوکړه نو بیا به وارثه نه وی. ددوی په نیز دوراثت ملاویدو اونه ملاویدو مدار په بله نکاح سره دې،عدت باندې نه دې.

امام مالك رحمه الله فرمائی چه امراة الفار به مطلقاً وارثه وی،که هغه لس نکاحونه هم اوکړی او دادې پرله پسې ولې نه وی.(۲)

حضرت عبدالله بن زبیر رضی الله عنه فرمائی چه وارثه به نه وی،دهغوی د تعلیق امام عبدالرزاق موصولاً نقل کړې دې.(۳)

**قوله:** وقال الشعبی : ترثه: امام شعبی رحمه الله فرمائی چه امراة الفار به وارثه وی،ددوی داتعلیق سعید بن منصور موصولاً نقل کړې دې.(۴)

**قوله:** وقال ابن شبرمة : تزوج اذاانقضت العدة قال نعم: ((تزوج))دافعل مضارع دې، په اصل کښې تتزویج دې، یو تاء ئې تخفیفاحذف کړې شوې ده . حرف داستفهام په دې ځائې کښې محذوف دې.(۵) قاضی ابن شبرمه حضرت شعبی رحمه الله ته اوونیل چه آیا دا

۱ ) فتح الباري: ۴۵۸/۹).
۲ ) مذاهب مذکوره تفصیل دپاره اوګورئ: الابواب والتراجم: ۱)
۳ ) فتح الباري: ۴۵۸/۹).
۴ ) فتح الباري: ۴۵۸/۹).
۵ ) عمدة القاري: ۲۳۴/۲).

ښځه د عدت تيريدو نه پس واده كولې شي ؟شعبى رحمه الله اوفرمائيل چه«نعم»په دې باندې قاضى ابن شبرمه په شعبى رحمه الله باندې اعتراض اوكړو او وې وئيل چه«ان مات الزوج الاخر» يعنى‌دا اووايه كه بل خاوند ئې فوت شى نو په دې خائې كښې دا تعليق مختصر دې . په بل روايت كښې دى چه«فان مات هذا اومات الاول اترث زوجين»(١) يعنى كه‌دا دويم خاوند ئې هم مړ شو او ړومبې خاوند ئې هم مړ شونو آيا دا ښځه په دې صورتونوكښې د دواړو خاوندانو وارثه به وى؟ تاسو وائې چه هغه به دعدت نه پس هم وارثه وى‌نو اوس خو هغه د دويم خاوند هم وارثه شوه او اول هم . نو يو ښځه به د دوؤ خاوندانو وارثه وى.په دې باندې شعبى دخپل قول نه رجوع اوكړه‌اووې وئيل چه دعدت تيريدو نه پس‌به هغه وارثه نه وى.او هم دا دحنفيه مسلك دې چه دعدت تيريدو نه پس كه زوج‌اول مړشو نو د وراثت استحقاق به نه وى او كه دعدت‌تيريدو نه مخكښې مړشو نو چونكه‌دعقد تعلق شته دې اوس هم‌لهذا دې لره به وارثه ګنړلې شى.

[۴۹۵۹] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ ابْنِ شِهَابٍ أَنَّ سَهْلَ بْنَ سَعْدٍ السَّاعِدِيَّ أَخْبَرَهُ أَنَّ عُوَيْمِرًا الْعَجْلَانِيَّ جَاءَ إِلَى عَاصِمِ بْنِ عَدِيٍّ الْأَنْصَارِيِّ فَقَالَ لَهُ يَا عَاصِمُ أَرَأَيْتَ رَجُلًا وَجَدَ مَعَ امْرَأَتِهِ رَجُلًا أَيَقْتُلُهُ فَتَقْتُلُونَهُ أَمْ كَيْفَ يَفْعَلُ سَلْ لِي يَا عَاصِمُ عَنْ ذَلِكَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَأَلَ عَاصِمٌ عَنْ ذَلِكَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَكَرِهَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَسَائِلَ وَعَابَهَا حَتَّى كَبُرَ عَلَى عَاصِمٍ مَا سَمِعَ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا رَجَعَ عَاصِمٌ إِلَى أَهْلِهِ جَاءَ عُوَيْمِرٌ فَقَالَ يَا عَاصِمُ مَاذَا قَالَ لَكَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ عَاصِمٌ لَمْ تَأْتِنِي بِخَيْرٍ قَدْ كَرِهَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَسْأَلَةَ الَّتِي سَأَلْتُهُ عَنْهَا قَالَ عُوَيْمِرٌ وَاللَّهِ لَا أَنْتَهِي حَتَّى أَسْأَلَهُ عَنْهَا فَأَقْبَلَ عُوَيْمِرٌ حَتَّى أَتَى رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَسْطَ النَّاسِ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَرَأَيْتَ رَجُلًا وَجَدَ مَعَ امْرَأَتِهِ رَجُلًا أَيَقْتُلُهُ فَتَقْتُلُونَهُ أَمْ كَيْفَ يَفْعَلُ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ أَنْزَلَ اللَّهُ فِيكَ وَفِي صَاحِبَتِكَ فَاذْهَبْ فَأْتِ بِهَا قَالَ سَهْلٌ فَتَلَاعَنَا وَأَنَا مَعَ النَّاسِ عِنْدَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا فَرَغَا قَالَ عُوَيْمِرٌ كَذَبْتُ عَلَيْهَا يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنْ أَمْسَكْتُهَا فَطَلَّقَهَا ثَلَاثًا قَبْلَ أَنْ يَأْمُرَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
قَالَ ابْنُ شِهَابٍ فَكَانَتْ تِلْكَ سُنَّةَ الْمُتَلَاعِنَيْنِ [ر: ۴۱۳].

دا د لعان متعلق دحضرت عويمر عجلانى رضى الله عنه روايت دې،په دې باندې مخكښې باب اللعان كښې بحث رازى.

امام بخارى رحمه الله په دې خائې كښې دا په دې وجه ذكر كړې دې چه‌دحضرت عويمر رضى الله عنه

---

١) فتح البارى: ٤٥٨/٩).

خپلې بي بي ته دريو طلاقو وركولو ذكر دې، دروايت په آخر كښې دی چه «فطلقها ثلاثا قبل ان يامره رسول الله ﷺ» د دې جملې نه امام بخارى رحمه الله په «جمع بين الطلقات الثلاث» باندې استدلال كړې دې.

**يو اشكال او دهغې جواب** : په دې ځائې كښې دا اشكال كيديشي چه د امام شافعى رحمه الله په مسلك باندې لعان نه فرقت واقع كيږي اود طلاق مقصود حاصليږي ،نو بيا ددوى دمذهب مطابق حضرت عويمر رضي الله عنه طلاق خو بې محل دې.

ددې جواب دادې چه امام بخارى د امام شافعى رحمه الله په مسلك باندې دخپل استدلال بنياد اينبودى نه دى. دامام مقصد دادې چه حضرت عويمر رضي الله عنه دحضرت نبى كريم ﷺ په مخكښې درې طلاقه وركړل،او حضرت نبى كريم ﷺ هيڅ نكير اونه فرمائيلو نو معلوم شو چه په يو وخت كښې درې طلاقه وركول جائز دى.(١)

[٤٩٦٠] حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ عُفَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنِي اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِي عُقَيْلٌ عَنْ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ أَخْبَرَنِي عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ أَنَّ عَائِشَةَ أَخْبَرَتْهُ أَنَّ امْرَأَةَ رِفَاعَةَ الْقُرَظِيِّ جَاءَتْ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّ رِفَاعَةَ طَلَّقَنِي فَبَتَّ طَلَاقِي وَإِنِّي نَكَحْتُ بَعْدَهُ عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ الزَّبِيرِ الْقُرَظِيَّ وَإِنَّمَا مَعَهُ مِثْلُ الْهُدْبَةِ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَعَلَّكِ تُرِيدِينَ أَنْ تَرْجِعِي إِلَى رِفَاعَةَ لَا حَتَّى يَذُوقَ عُسَيْلَتَكِ وَتَذُوقِي عُسَيْلَتَهُ

امام بخارى رحمه الله دا حديث په دې ځائې كښې ذكر كړې دې ځكه چه په دې كښې دى چه «ان رفاعة طلقنى فبت طلاقى» كښې يو احتمال خو دادې چه هغه «انت طالق البتة» الفاظ سره طلاق وركړې وو.

دويم احتمال دادې چه ده درې طلاق په يو ځائې وركړې وو ځكه چه دريو طلاقو سره عصمت نكاح قطع كيږي.

ددې دويم احتمال صورت كښې ترجمة الباب ثابتيږي.

دريم احتمال دادې چه ده درې طلاقه بيل بيل متفرق طور سره وركړل. ددې دريم احتمال تائيد يوبلې طريقې سره كيږي چه كوم ا مام مخكښې په كتاب الادب كښې ذكر كړې دې،په دې كښې دى چه «طلقنى اخر ثلاث تطليقات»(٢) نو په دې صورت به دا وئيلې شى چه دامام بخارى مقصد ترجمة الباب نه دوه ځيزونه ثابتول دى.

يو خودا وئيل غواړى كه درې طلاقه يو ځائې وركړې شى نو ددې اعتبار به كولې شى،د رومبى حديث نه دا ثابت شو اودويم نه دا ثابتول غواړى چه درې طلاقه وركول كښې ځه كراهت نشته دې لكه ځنګه چه امراة رفاعه قصه كښې دى.

---

١) فتح البارى: ٤٥٩/٩).
٢) فتح البارى: ٤٥٩/٩).

[۴۹۶۱] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ قَالَ حَدَّثَنِي الْقَاسِمُ بْنُ مُحَمَّدٍ عَنْ عَائِشَةَ أَنَّ رَجُلًا طَلَّقَ امْرَأَتَهُ ثَلَاثًا فَتَزَوَّجَتْ فَطَلَّقَ فَسُئِلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَتَحِلُّ لِلْأَوَّلِ قَالَ لَا حَتَّى يَذُوقَ عُسَيْلَتَهَا كَمَا ذَاقَ الْأَوَّلُ

ددې حديث مناسبت دترجمة الباب سره بالكل واضح دى.

## ۴=بَاب مَنْ خَيَّرَ نِسَاءَهُ

وَقَوْلِ اللَّهِ تَعَالَى قُلْ لِأَزْوَاجِكَ إِنْ كُنْتُنَّ تُرِدْنَ الْحَيَاةَ الدُّنْيَا وَزِينَتَهَا فَتَعَالَيْنَ أُمَتِّعْكُنَّ وَأُسَرِّحْكُنَّ سَرَاحًا جَمِيلًا [ر: الاحزاب ۲۸].

[۴۹۶۲] حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا أَبِي حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ حَدَّثَنَا مُسْلِمٌ عَنْ مَسْرُوقٍ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا قَالَتْ خَيَّرَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاخْتَرْنَا اللَّهَ وَرَسُولَهُ فَلَمْ يَعُدَّ ذَلِكَ عَلَيْنَا شَيْئًا

[۴۹۶۳] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا عَامِرٌ عَنْ مَسْرُوقٍ قَالَ سَأَلْتُ عَائِشَةَ عَنِ الْخِيَرَةِ فَقَالَتْ خَيَّرَنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَفَكَانَ طَلَاقًا قَالَ مَسْرُوقٌ لَا أُبَالِي أَخَيَّرْتُهَا وَاحِدَةً أَوْ مِائَةً بَعْدَ أَنْ تَخْتَارَنِي

كه يو سړى خپلې ښځې ته اختيار ورکړواو وې وئيل چه «اختارى نفسك»نو په دې صورت کښې به دوه احتماله وى يا خو به هغه ښځه خپل خاوند اختياروى او يا به خپل نفس اختياروى.

كه هغه خپل خاوند اختياروىنوآئمه اربعهاو جمهور علماء كرام فرمائى چهپه دې صورت کښې به طلاق نه وى واقع .(۱)

البتهحضرت على رضی اللہ عنہ نه منقول دى چهپه دې صورت کښې به يو طلاق رجعى واقع شى اود حضرت زيد بن ثابتپه نيزبه په دې صورت کښې يو طلاق بائن واقع وى.(۲)

امام بخارى رحمہ اللہ دا ترجمهقائم کړه او ددې نقطه نظر ترديدئې اوکړو اودا وئيل غواړى چه ښځه خاوند لره اختيار ورکړىنو طلاق به واقع نه وى ځکه چه حضرت نبى كريم ﷺخپل ازواج اختيار کړى وو،او ددې اختيار نه پس کله چه ازواج حضرت نبى كريم ﷺ لره اختيار کړو نو طلاق واقع نه شو.نو دباب په ړومبى حديث کښې حضرت عائشه رضی اللہ عنہا فرمائى چه حضرت رسول الله ﷺچه کله مونږ ته اختيار راکړواو مونږ الله او دهغه رسول ﷺ اختيار کړو نو دا په طلاق اونه شميرلې شو.

اود باب په دوئم حديث کښې فرمائى چه مونږ حضرت نبى كريم ﷺ لره ا ختيار کړې وو نو آيا زمونږ حضرت نبى كريم ﷺ لره اختيارول طلاق وو ؟ استفهام انكارى دې، يعنى جوړ

۱) فتح البارى: ۹/ ۴۶۰).

۲) فتح البارى :۹/ ۴۶۰ وعمدة القارى: ۲۰/ ۲۳۸).

نشو، معلوم شو چه تخيير زوج لره طلاق کنړل درست نه دی.
دويم احتمال دادي چه هغه خپل ځان اختيار کړی، خاوند لره اختيار نه کړی په دې صورت کښې د امام مالك رحمه الله په نيز درې طلاقه واقع كيږی . (١)

دحنفيه په نزد يو طلاق به واقع كيږی. (٢)
دامام شافعی او امام احمد په نيز به يو طلاق رجعی واقع وی.(٣)

**قوله:** قال مسروق لاابالى اخيرتها واحدة ومائة بعدان تختارنى: دباب د دويم روايت راوی مسروق فرمائی چه ښځه ما اختيار کړی نو دې نه پس ځما هيڅ پرواه نشته دې ما يو ځل اختياروركړې وو يا سل ځل .
دا تعليق نه دې بلکه ماقبل سند سره موصول دی.(۴)

## ٥=بَابٌ إِذَا قَالَ فَارَقْتُكِ أَوْ سَرَّحْتُكِ أَوِ الْخَلِيَّةُ أَوِ الْبَرِيَّةُ أَوْ مَا عُنِيَ بِهِ الطَّلَاقُ فَهُوَ عَلَى نِيَّتِهِ

وَقَوْلُ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ وَسَرِّحُوهُنَّ سَرَاحًا جَمِيلًا [الاحزاب: ٤٩] وَقَالَ وَأُسَرِّحْكُنَّ سَرَاحًا جَمِيلًا [الاحزاب: ٢٨] وَقَالَ فَإِمْسَاكٌ بِمَعْرُوفٍ أَوْ تَسْرِيحٌ بِإِحْسَانٍ [البقرة: ٢٢٩] وَقَالَ أَوْ فَارِقُوهُنَّ بِمَعْرُوفٍ [الطلاق: ٢] وَقَالَتْ عَائِشَةُ قَدْ عَلِمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّ أَبَوَيَّ لَمْ يَكُونَا يَأْمُرَانِي بِفِرَاقِهِ [ر ٤٥٠٧].

امام بخاری رحمه الله د طلاق صريح مسئلې بيانولو نه پس اوس د طلاق كنائی بيان كوی.
**د طلاق صريح الفاظ:** د طلاق صريح متعلق د حضرات آئمه اختلاف دې چه شريعت کښې ددې دپاره كوم الفاظ مخصوص دی.
دحضرات دليل حنفيه نقطه نظريه ده چه هم يو لفظ د طلاق صريح د پاره مخصوص دې او هغه دې لفظ د«طلاق»(٥)هم دا دامام شافعی رحمه الله قول قديم دې(٦) قاضی عبدالوهاب مالكی هم دا لفظ اختيار کړې دې(٧) اوعلامه احمد مالكی رحمه الله په خپل مختصر کښې هم دا د مالكيه مسلك نقل کړې دې(٨) حنابله کښې ابوعبدالله ابن حامد هم دا اختيار کړې دې(٩)

---

١) تكملة الملهم:١/١٧٣) .
٢) تكملة فتح المهلهم : ١/١٧٣).
٣) المغنى لابن قدامة : ٧/١٤٢، وتكملة فتح الملهم: ١/١٧٣).
٤) عمدة القارى: ٢٠/٢٣٨).
٥) عمدة القارى: ٢٠/٢٣٨).
٦) فتح البارى: ٩/٤٦٢.عمدة القارى: ٢٠/٢٣٨).
٧) فتح البارى : ٩/٤٦٢.عمدة القارى: ٢٠/٢٣٨).
٨) هذا الكتاب ليس موجود لدينا).
٩) المغنى لابن قدامة،كتاب الطلاق : ١٠/١٤ . المغنى لابن قدامة كتاب الطلاق،باب تصريح الطلاق وغيره: ٧/٢٩٤).

اوعلامه موفق حنبلی رحمة ا لله علیه دې لره راجح ګرځلی دی .(۱)
د امام شافعی رحمه الله قول جدید دادې چه طلاق صریح دپاره درې الفاظ خاص دی .
① طلاق ② فراق ③ سراح(۲)
لیکن امام بخاری رحمه الله د فراق او سراح الفاظ په طلاق کښې نه شمیری اوددې وجه داده چه دا دواړه الفاظ چه څنګه دطلاق معنی کښې استعمالیږی داشان غیرطلاق دپاره هم استعمالیږی.

ترجمة الباب کښې امام بخاری رحمه الله فرمائی که یوسړې خپلې ښځې ته «فارقتك» یا «سرحتك» اووائی یا «انت الخلیة» یا «انت البریة» اووائی یا څه بل لفظ اووائی چه هغې نه مراد طلاق اخستې شی نو په دې کښې به د هغه دنیت اعتبار وی، که نیت ئې واقع دطلاق وی نو طلاق به واقع شی او که د طلاق واقع کیدو نیت ئې نه وو نو طلاق به نه واقع کیږی.
دکنایات طلاق په سلسله کښې هم دا مسلك دحضرات حنفیه، شافعیه، او حنابله دې، نو حافظ ابن حجر رحمه الله په دې سلسله کښې ضابطه لیکلې ده چه :

«وضابط ذالك ان كل كلام افهم الفرقة ولو مع دقته يقع به الطلاق مع القصد فاما اذا لم يفهم الفرقة من اللفظ فلا يقع الطلاق ولو قصد اليه كما لو قال : كلي، او اشربي او نحو ذالك»(۳)
دحضرات مالکیه په نیز د کنایه دوه قسمونه دی. ① کنایات ظاهره ② کنایات خفیه .
کنایات ظاهره دهغوی په نیز بغیر دنیت نه طلاق واقع کیږی .لکه «انت بتة، حبلك على غاربك»
البته کنایات خفیه کښې بغیر دنیت نه طلاق نه واقع کیږی لکه «انت حرة، اذهبی، اعزلی»(٤)
په دې خائې کښې ددې خبرې لحاظ ساتل پکار دی چه دالفاظ دکنایات نه دطلاق وقوع دپاره د نیت ضرورت وی . لیکن دلالت الحال هم که ددې خبرې دپاره قرینه جوړیږی چه په دې خائې کښې د طلاق واقع کیدل مقصود وو نو په دې وخت کښې به هم طلاق واقع شی .
لکه څنګه چه د غضب او غصې په حالت کښې یا مذاکره طلاق یا ښځې د طلاق مطالبه اوکړه نوداسې صورت کښې که دکنایه لفظ استعمال کړې شی نودې سره به طلاق واقع شی.(۵)
**کنایه سره به کوم یو طلاق واقع کیږی؟** : بیاپه دې الفاظو سره به کوم یو طلاق واقع کیږی، طلاق بائن یا طلاق رجعی؟ صاحب هدایه لیکی چه دکنایه دوه قسمونه دی، درې الفاظ خو داسې دی چه دې سره به صرف یو طلاق رجعی واقع کیږی او هغه دادی چه «اعتدی، استبری رحمك، انت واحدة» دویم قسم ددې نه علاوه باقی الفاظ دکنایات دی، دې سره به یو طلاق بائن

۱) المغنی لابن قدامة کتاب الطلاق: ۲۹٤/۷).
۲) فتح الباری: ٤٦۲/۹.اوجز المسالک : ۱٤/۱۰.کتاب الطلاق، باب ماجاء فی الخلیة).
۳) فتح الباری: ٤٦٤/۹).
٤) اوجز المسالک کتاب الطلاق باب ماجاء فی الخلیة والبریة: ۱۵،۱٦/۱۰).
۵) اوجز المسالک کتاب الطلاق : ۲۹۸/۷.والهدیة (مع فتح التقدیر) کتاب الطلاق: ۳۹۷/۳).

واقع كيږى،كه چا دې سره ددريو نيت اوكړو نو درې به واقع شى او كه د دوؤ نيت ئې اوكړو نو يو به واقع شى:(۱)

**قوله: وقالت عائشه: قد علم النبى ﷺ ان ابوى لم يكونا يامرانى بفراقه:** داحديث دتخيير حصه ده،چه په كتاب النكاح كښې باب موعظة الرجل لاندې تيره شوې ده. په دې كښې فراق نه طلاق مراد دې،ددې وجې امام بخارى رحمه الله په دې خانې كښې ذكركړې دې (۲)فراق كنايات كښې دې.

## باب مَنْ قَالَ لِامْرَأَتِهِ أَنْتِ عَلَيَّ حَرَامٌ

وَقَالَ الْحَسَنُ نِيَّتُهُ وَقَالَ أَهْلُ الْعِلْمِ إِذَا طَلَّقَ ثَلَاثًا فَقَدْ حَرُمَتْ عَلَيْهِ فَسَمَّوْهُ حَرَامًا بِالطَّلَاقِ وَالْفِرَاقِ وَلَيْسَ هَذَا كَالَّذِي يُحَرِّمُ الطَّعَامَ لِأَنَّهُ لَا يُقَالُ لِطَعَامِ الْحِلِّ حَرَامٌ وَيُقَالُ لِلْمُطَلَّقَةِ حَرَامٌ وَقَالَ فِي الطَّلَاقِ ثَلَاثًا لَا تَحِلُّ لَهُ حَتَّى تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهُ
وَقَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِي نَافِعٌ قَالَ كَانَ ابْنُ عُمَرَ إِذَا سُئِلَ عَمَّنْ طَلَّقَ ثَلَاثًا قَالَ لَوْ طَلَّقْتَ مَرَّةً أَوْ مَرَّتَيْنِ فَإِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَرَنِي بِهَذَا فَإِنْ طَلَّقْتَهَا ثَلَاثًا حَرُمَتْ حَتَّى تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَكَ

كه يوسړې خپلې ښځې ته اووائى چه((انت على حرام))نو ددې څه حكم دې ؟ددې حكم متعلق سلفوكښې اختلاف دې ډير لوئې،او علامه قرطبى رحمه الله فرمائى چه‌په دې كښې اتلس قولونه دى.(۳)

دحضرات حنفيه‌په نيز مسئله داده كه‌هغه ددې جملې نه‌دايلاء اظهار كړې وى،يو طلاق بائن يا د درې طلاقونو نيت ئې اوكړو نو دده نيت به معتبر وى،او چه دكوم څيز ده نيت كړې دې هغه به واقع كيږى البته كه ده د دوؤ طلاق د وقوع نيت اوكړو نودوه طلاقه به واقع نه وى،يو طلاق به واقع كيږى او كه ده‌د څه څيز هم نيت اونكړو نوداسې صورت كښې دمتقدمينوحنفيه په نيز ايلاء به وى او دمتاخيرينو په نيز به يوطلاق بائن واقع وى،فتوى دمتاخرينو په قول باندې ده.(۴)

دامام شافعى رحمه الله په نيزكه ويونكى‌ددې نه‌د طلاق نيت وى‌نوطلاق به واقع كيږى،گنى بيا يمين دې اوكفاره ديمين به دې وركوى.(۵)

امام مالك رحمه الله كه هغه غير مدخول بهادې‌نوبيا خاوند چه كوم نيت كوى نو ددې مطابق فيصله به كيږى.(۶)

---

۱ ) والهداية (مع فتح التقدير) كتاب الطلاق: ۳۹۸/۳).
۲ ) فتح البارى: ۴۶۴/۹).
۳ ) فتح البارى: ۴۶۵/۹).
۴ ) رد المختار،باب الايلاء : ۴۳۴/۳،وتكملة فتح الملهم : ۱۶۲/۱).
۵ ) شرح مسلم للنووى: ۴۷۸/۲،وفتح البارى: ۴۶۵/۹).
۶ ) اوجزالمسالک ،كتاب الطلاق،باب ماجاء فى الخلية: ۲۲/۱۰،وشرح الزرقانى: ۱۶۹/۳).

امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائي که ويونکي څه نيت اونکړو نو ظهار به وي اوکه دطلاق نيت ئې اوکړو نو دده مشهور قول دادې چه په دې صورت کښې به هم ظهار وي او يو قول دادې چه طلاق به واقع نه وي.(۱)

دربيعه،شعبي،اصبغ مالکي په نيز داسې صورت کښې به هيڅ واقع نه وي. (۲)

**قوله:** وقال الحسن : نيته: امام بخاري رحمه الله دخپل طرفنه فيصله نه ده کړې بلکه د حضرت حسن بصري رحمه الله اثر ئې نقل کړې دې چه «انت علي حرام» د ويونکي دنيت اعتبار به وي،امام بخاري رحمه الله ددوي اثر نقل کوي او غالبًا دې طرفته ئې اشاره کړې ده چه ددوي په نيزهم دامختاردې اوهم دا دحنفيه او شافعيه مسلك دې لکه څنګه چه مخکښې تير شو.
عبدالرزاق دا تعليق موصولاً نقل کړې دې.(۳)

**قوله:** وقال اهل علم : اذا طلق ثلاثا فقد حرمت عليه فسموه حراما بالطلاق والفراق: امام بخاري رحمه الله دا دبعض اهل علم قول نقل کړې دې چه په حقيقت کښې ددې حضراتو دليل ذکر فرمائي چه هغوي وائي چه «انت علي حرام» نه درې طلاقه واقع کيږي لکه امام مالك رحمه الله هغه فرمائي چه کله سړې درې طلاقه ورکړي نو ښځه پرې حرامه شي. او خلق دې ته حرام بالطلاق او حرام بالفراق وائي،اوس که يو سړې درې طلاقه ورنکړل ليکن د دريو طلاقو چه کوم اثراونتيجه وي دا په خپله ژبه ادا کړي «انت علي حرام» اووائي نو ددې تقاضا داده چه درې طلاق واقع کيږي.

**قوله:** وليس هذا کالذي يحرم الطعام لانه لايقال للطعام الحل : حرام ويقال للمطلقة : حرام: يعني تحريم مراة او تحريم طعام کښې فرق دې،تحريم مراة نو موثر دې او تحريم طعام موثر نه دې،ددې وجې درې طلاقه واقع کيدو نه پس مطلقه خاوند دپاره حرام ګنړلې شوې دې خو طعام لره حرام نه دې ګڼړلې شوې. که يو سړې اووائي چه «هذا الطعام علي حرام» نو ددې هيڅ اعتبار نشته دې او هغه طعام دده دپاره نه حراميږي.

داد امام شافعي رحمه الله او امام مالك رحمه الله مسلك دې چه «هذا الطعام علي حرام» اعتبار به نه وي اودا کلام به لغو ګنړلې شي.(۴) ددې مطابق امام بخاري رحمه الله فرمائي چه تحريم طعام موثر نه دې،ا مام ابو حنيفه رحمه الله او امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائي چه داسې صورت کښې دا الفاظ به ديمين ګنړلې شي اوکفاره يمين په ده باندې واجب ده.(۵)

---

۱) اوجز المسالک: ۲۳/۱۰).
۲) فتح الباري: ۴۶۵/۹).
۳) عمدة القاري: ۲۳۹/۲۰).
۴) الابواب والتراجم : ۷۸/۲).
۵) الابواب والتراجم : ۷۸/۲).

**قوله: وقال في الطلاق ثلاثا لا تحل له حتى تنكح زوجا غيره:** درې طلاقو متعلق الله ﷻ فرمائي چه«لا تحل له حتى تنكح زوجا غيره»، د عدم حل مطلب دادې چه حرام كيدل خو معلوم شو درې طلاقو سره حرمت غليظه واقع كيږي. لهذا كه چا«انت على حرام» اووئيل چه كوم ددې درېو طلاقو اثر او نتيجه ده نو درې طلاقه واقع كيدل پكار دى او هم دامسلك دامام مالك رحمه الله دې، هركله چه ښخه مدخول بهاوی لكه څنګه چه تيرشو.
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه امام بخاري رحمه الله دتحريم طعام اوتحريم مراة كښې فرق بيان كړې دې، په حقيقت كښې ئې ددې حضراتو ترديد كړې دې چه«انت على حرام»ته لغوه ګڼړی او وائي چه ددې نه طلاق نه واقع كيږي لكه څنګه چه اصبغ مالكي وائي.

**قوله: وقال الليث عن نافع:** حضرت ابن عمر فاروق رضي الله عنهما نه كله د درېو طلاقو متعلق تپوس اوشو نوهغه فرمائي چه دوی يو يا دوه طلاقونه وركړل نو حضرت نبی كريم ﷺ ماته ددې نه درجوع حكم وركړې وو. ليكن كه درې طلاقونه ئې وركړل نو ښخه به حرامه وی تر دې پورې چه دده نه سوا بل چا سره نكاح اوكړي.

**قوله: لو طلقت مرة او مرتين فان النبي ﷺ امرني بهذا:** په دې كښې«امرني بهذا»نه طلاق وركول مراد نه دی بلكه دطلاق نه رجوع وركولو حكم مراد دی.(۱) نودا حديث په كتاب الطلاق په شروع كښې تفصيل سره تيرشوې دې چه حضرت نبی كريم ﷺ حضرت ابن عمر رضي الله عنهما ته درجوع كولو حكم وركړې وو.
دا تعليق امام بخاري رحمه الله ذكر فرمائيلې دې څكه چه په دې كښې دطلاق نه پس دحرمت ذكر دې ،معلوم شو چه كه څوك«انت على حرام»وائي نو درې طلاقه واقع كيږي څكه چه حرمت هم ددې اثر اونتيجه ده.

[۴۹۶۴] حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ طَلَّقَ رَجُلٌ امْرَأَتَهُ فَتَزَوَّجَتْ زَوْجًا غَيْرَهُ فَطَلَّقَهَا وَكَانَتْ مَعَهُ مِثْلُ الْهُدْبَةِ فَلَمْ تَصِلْ مِنْهُ إِلَى شَيْءٍ تُرِيدُهُ فَلَمْ يَلْبَثْ أَنْ طَلَّقَهَا فَأَتَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّ زَوْجِي طَلَّقَنِي وَإِنِّي تَزَوَّجْتُ زَوْجًا غَيْرَهُ فَدَخَلَ بِي وَلَمْ يَكُنْ مَعَهُ إِلَّا مِثْلُ الْهُدْبَةِ فَلَمْ يَقْرَبْنِي إِلَّا هَنَةً وَاحِدَةً لَمْ يَصِلْ مِنِّي إِلَى شَيْءٍ فَأَحِلُّ لِزَوْجِي الْأَوَّلِ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَحِلِّينَ لِزَوْجِكِ الْأَوَّلِ حَتَّى يَذُوقَ الْآخَرُ عُسَيْلَتَكِ وَتَذُوقِي عُسَيْلَتَهُ [ر: ۲۴۹۶].

په دې روايت كښې امراة درفاعه قصه بيان شوې ده، ددې پوره تفصيل مخكښې باب«اذا طلقها ثلاثا بعد العدة»كښې رازی«هنة واحدة يعني«مرة واحدة»

«امراة رفاعه»ته درې طلاق وركړې شوی وو، او دې اول خاوند طرفته دورتګ دپاره دې

۱) فتح الباري: ۴۶۷/۹)

حضرت نبی کریم ﷺ نه تپوس اوکړو ((افاحل لزوجی الاول)) نو حضر نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه ((لا تحلین لزوجك الاول حتی یذیق الاخر عسیلتك)) نو حلاله شرعیه نه بغیر دوی ورته درې طلاقو باندې عدم اطلاق اوفرمائیل، عدم حل حرمت لره مستلزم دې، درې طلاقه ورکولو سره حرمت ثابتیږی.

نو که چا ((انت علی حرام)) اووئیل نو ددې نه درې طلاقه واقع کیدل پکار دی ځکه چه حرمت د دریو طلاقو نتیجه او اثر دې، اوده ددې اثر د پاره وضع شوی لفظ لره استعمال کړل او طلاق نې ورکړو. نو ابن بطال رحمه الله فرمائی چه :

((والی هذه الحجة اشار البخاری بایراد حدیث رفاعة لانه طلق امراته ثلاثا فلم تحل له مراجعتها الا بعد زوج فکذالك من حرم علی نفسه امراته فهو کم طلقها)) (۱)

**دامام بخاری رحمه الله رائې :** شارح بخاری ابن بطال رحمه الله فرمائی چه د امام بخاری رحمه الله رائې داده چه تحریم په منزله د طلقات ثلاث دې. او د مدخول بها متعلق امام مالك هم دا مسلك دې او ماقبل کښې تشریح هم ددې مطابق کړې شوې ده.

لیکن حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه دامام بخاری رحمه الله رائې داده چه داسې صورت کښې د قائل د نیت به اعتبار وی، هغه ((انت علی حرام)) نه چه د کوم څیز نیت کوی هغه به واقع کیږی، او هم دا مسلك دحنفیه مسلك دې ځکه چه امام د ټولو نه مخکښې دحضرت حسن بصری رحمه الله اثر ((نیته)) نقل کړې دې او د امام بخاری رحمه الله عادت دادې چه اختلافی مسائلو کښې دهغه صحابی یا تابعی اثر د ټولو نه مخکښې نقل کړی اودغه دامام مذهب مختار دې، نو حافظ لیکی چه :

((والذی یظهر من مذهب البخاری ان الحرام ینصرف الی نیة القائل ولذالك صدر الباب بقول الحسن بصری، هذه عادته فی موضع الاختلاف مهما صدر به من النقل عن صحابی او تابعی فهو اختیاره)) (۲)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه تحریم طلقات ثلاث نه علاوه هم موندې شی، لکه غیر مدخول بها کښې یو طلاق سره حرمت ثابتیږی. طلاق بائن کښې هم عقد جدید بغیر حرمت ثابتیږی، طلاق رجعی کښې هم عدت تیریدو نه پس حرمت ثابتیږی، معلوم شو چه تحریم طلقات ثلاث کښې منحصر نه دې، داشان تحریم عام دې، او طلقات ثلاث خاص، نو عام نه دخاص وجود باندې څنګه استدلال کولې شی، ځکه چه عام خاص لره مستلزم نه دې، (۳)

لیکن د امام بخاری رحمه الله چه کومه رائې حافظ ابن حجر رحمه الله بیان کړې دې په دې باندې اشکال داکیږی چه په دې صورت کښې امام حدیث رفاعه ددې ترجمة الباب لاندې د ذکر کولو څه ضرورت راپیښ شو او د دواړو په مینځ کښې مناسبت دې، ابن بطال دامام

---

(۱) فتح الباری: ۹/۴۶۷).
(۲) فتح الباری: ۹/۴۷۷).
(۳) فتح الباری: ۹/۴۶۸).

بخارى رحمه الله مسلك بيان كړې دې،ددې مطابق د دواړو په مينځ كښې څه مناسبت او حديث نه داستدلال تفصيل ماقبل كښې بيان كړې شوې دې . ليكن دحافظ بيان شوې رائې په صورت كښې مناسبت ظاهر نه دې،نوحضرت شيخ الحديث مولانا زكريا ليكى:

((وكان رايي اولا في ذالك ماذهب اليه الحافظ من ان ميل البخارى الى قول الحسن كما هو الظاهر من صنيعه لكن النظر الدقيق يشعر الى انه مال الى قول مالك للروايات المرفوعة الواردة في الباب ولم يقتصر البخارى على قول الحسن فقط بل ذكر في الترجمة اقوالا اخر ايضا))(١)

## ٧=بَابٌ لِمَ تُحَرِّمُ مَا أَحَلَّ اللَّهُ لَكَ [ر: التحريم ١].

[۴۹۶۵] حَدَّثَنِي الْحَسَنُ بْنُ صَبَّاحٍ سَمِعَ الرَّبِيعَ بْنَ نَافِعٍ حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ عَنْ يَعْلَى بْنِ حَكِيمٍ عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ أَنَّهُ أَخْبَرَهُ أَنَّهُ سَمِعَ ابْنَ عَبَّاسٍ يَقُولُ إِذَا حَرَّمَ امْرَأَتَهُ لَيْسَ بِشَيْءٍ وَقَالَ لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِي رَسُولِ اللَّهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ [ر: ۴۶۲۷].

**قوله: ربيع بن نافع:** د ربيع بن نافع كنيت ابو توبه دې،دې په خپل كنيت سره مشهور دې،د حلب اوسيدونكې دې،امام بخارى رحمه الله دهغوى په زمانه كښې وو، ليكن دملاقات متعلق ابن حجر رحمه الله فرمائي چه ماته معلوم نشو چه ملاقات ئې شوې دې كه نه ؟ . امام بخارى رحمه الله باب حديث حسن بن صباح په واسطه سره ددوى نه نقل كوى اومزارعت كښې د هغوى دا تعليق ذكركړې دې،صحيح بخارى كښې دهغوى صرف دا دوه روايتونه دى يو تعليقاً او يو موصولاً.(۲)

امام ابوداود دده بكثرت روايتونه اخستى دى،امام ترمذى نه علاوه باقى ا صحاب الصحاح دهغوى نه زوايتونه نقل كړى دى. ددوى باره كښې وئيلې شو چه دوى دابدالونه وو. په كال ۲۴۱ هجرئى كښې دوى وفات شو.(۳)

**قوله: ابن عباس يقول:اذا حرم امراته ليس بشئ:** حضرت ابن عباس رضي الله عنه به فرمائيل كه يو سړې خپلې بى بى ته اوائى چه((انت على حرام)) نو هيڅ به نه وى او فرمائى چه ((لقد كان لكم فى رسول الله اسوة حسنة))ددې نه ماريه قبطيه طرفته ته اشاره دې،چه داامام نسائى دحضرت انس رضي الله عنه نه په صحيح سندسره نقل كړې دې چه حضرت نبى كريم ﷺ حضرت ماريه قبطيه لره په خپل ځان باندې حرامه كړې وه نو په دې باندې دا آيت نازل شو چه((يا ايها النبى لم تحرم ما احل الله......))(۴) ددې نه استدلال كوى او حضرت ابن عباس رضي الله عنه به

---

١) تعليقات لامع الدارى: ۳۵۱/۹).
٢) فتح البارى: ۴۶۹/۹).
٣) اوګورئ تهذيب المكال: ۱۰۶/۹،اوسيراعلام النبلاء: ۶۵۳/۱۰،وتذكرة الحفاظ : ۴۷۲/۲).
٤) ارشادالسارى: ۲۵/۱۲).

فرمائيل چه تحريم مراة به موثر نه وى چه ځنګه حضرت نبى كريم ﷺ تحريم ماريه لره قران پاك غير موثر ګنړلې دې .

د((ليس بشئ))معنى داده چه كيديشى چه څه هم واقع نشى . نه طلاق نه يمين بلكه دا كلام لغو دې،او داهم احتمال دې چه ددې نه مراد طلاق دې يعنى تحريم امراه نه طلاق نه كيږى،دا دويم احتمال ته حضرت حافظ اقرب وئيلى دى،ځكه چه په كتاب التفسير كښې د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما دا تعليق تيرشوې دې،په دې كښې دى چه((فى الحرام يكفر))داشان اسماعيلى ددوى نه نقل كړى دى چه((اذا حرم الرجل امراته فانما هى يمين يكفرها))نو((ليس بشئ))كښې د طلاق نفى دې،ديمين نه ده.(١)

حضرت كشميرى رحمه الله فرمائى چه دادحضرت ابن عباس رضي الله عنهما تفرد دې .(٢)

[٤٩٦٦] حَدَّثَنِي الْحَسَنُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ صَبَّاحٍ حَدَّثَنَا حَجَّاجٌ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ قَالَ زَعَمَ عَطَاءٌ أَنَّهُ سَمِعَ عُبَيْدَ بْنَ عُمَيْرٍ يَقُولُ سَمِعْتُ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَمْكُثُ عِنْدَ زَيْنَبَ بِنْتِ جَحْشٍ وَيَشْرَبُ عِنْدَهَا عَسَلًا فَتَوَاصَيْتُ أَنَا وَحَفْصَةُ أَنَّ أَيَّتَنَا دَخَلَ عَلَيْهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلْتَقُلْ إِنِّي أَجِدُ مِنْكَ رِيحَ مَغَافِيرَ أَكَلْتَ مَغَافِيرَ فَدَخَلَ عَلَى إِحْدَاهُمَا فَقَالَتْ لَهُ ذَلِكَ فَقَالَ لَا بَلْ شَرِبْتُ عَسَلًا عِنْدَ زَيْنَبَ بِنْتِ جَحْشٍ وَلَنْ أَعُودَ لَهُ فَنَزَلَتْ يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ لِمَ تُحَرِّمُ مَا أَحَلَّ اللَّهُ لَكَ إِلَى إِنْ تَتُوبَا إِلَى اللَّهِ لِعَائِشَةَ وَحَفْصَةَ وَإِذْ أَسَرَّ النَّبِيُّ إِلَى بَعْضِ أَزْوَاجِهِ لِقَوْلِهِ بَلْ شَرِبْتُ عَسَلًا [ر:٤٦٢٨].

**قوله: فتواصيت انا وحفصة:** حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائى چه ما او حضرت حفصه رضي الله عنها يو بل ته وصيت اوكړو چه حضرت نبى كريم مونږ كښې چاله هم تشريف راوړى نو حضرت نبى كريم ﷺ ته دې اووئيلې شى چه((انى لاجد منك ريح مغافير اكلت مغافير؟))

نو حضرت نبى كريم ﷺ په دوى كښې يو كره تشريف يوړو( په روايت كښې تصريح نشته دې ليكن غالب دادى چه مراد ترې حضرت حفصه رضي الله عنها ده ) .(٣)نو هغوى هغه جمله اووئيله نو حضرت نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چه((لابل شربت عسلا عند زينب بنت جحش ولن اعودله))او د سورة تحريم په تشريح كښې دومره اضافه ده چه((وقد حلفت لا تخبرى بذالك احدا))يعنى ما قسم خوړلې دې،اوس به څه دوباره شهد نه استعمالوم. نو په دې باندې ﴿يا ايها النبى لم تحرم ما نه تر ان تتوبا الى الله........﴾پورې آيت نازل شو.

---

١) فتح البارى: ٤٧٠/٩).
٢ ) فيض البارى: ٣١٤/٤).
٣ ) فتح البارى: ٤٧٢/٩)

((ان تتوبا الى الله))((لعائشة وحفصة))يعنى دتوبه دا قول دحضرت عائشه ﷺ او حضرت حفصه ﷺ دپاره وو،خكه مذكوره دې دواړو جوړه كړې وه.

**قوله:** واذا اسر النبي الى بعض ازواجه حديثا لقوله شربت عسلا: يعنى د سورة تحريم دا مذكوره آيت هم دحضرت نبى كريم ﷺ دقول((شربت عسلا ... ولن اعود له ...))په وجه نازل شو،په آيت كښې چه دكومې سرګوشۍ ذكر دې دهغې نه دحضرت نبى كريم ﷺ دا قول مراد دې.

[۴۹۶۷] حَدَّثَنَا فَرْوَةُ بْنُ أَبِي الْمَغْرَاءِ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ مُسْهِرٍ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا قَالَتْ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُحِبُّ الْعَسَلَ وَالْحَلْوَاءَ وَكَانَ إِذَا انْصَرَفَ مِنَ الْعَصْرِ دَخَلَ عَلَى نِسَائِهِ فَيَدْنُو مِنْ إِحْدَاهُنَّ فَدَخَلَ عَلَى حَفْصَةَ بِنْتِ عُمَرَ فَاحْتَبَسَ أَكْثَرَ مَا كَانَ يَحْتَبِسُ فَغِرْتُ فَسَأَلْتُ عَنْ ذَلِكَ فَقِيلَ لِي أَهْدَتْ لَهَا امْرَأَةٌ مِنْ قَوْمِهَا عُكَّةً مِنْ عَسَلٍ فَسَقَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْهُ شَرْبَةً فَقُلْتُ أَمَا وَاللَّهِ لَنَحْتَالَنَّ لَهُ فَقُلْتُ لِسَوْدَةَ بِنْتِ زَمْعَةَ إِنَّهُ سَيَدْنُو مِنْكِ فَإِذَا دَنَا مِنْكِ فَقُولِي أَكَلْتَ مَغَافِيرَ فَإِنَّهُ سَيَقُولُ لَكِ لَا فَقُولِي لَهُ مَا هَذِهِ الرِّيحُ الَّتِي أَجِدُ مِنْكَ فَإِنَّهُ سَيَقُولُ لَكِ سَقَتْنِي حَفْصَةُ شَرْبَةَ عَسَلٍ فَقُولِي لَهُ جَرَسَتْ نَحْلُهُ الْعُرْفُطَ وَسَأَقُولُ ذَلِكِ وَقُولِي أَنْتِ يَا صَفِيَّةُ ذَاكِ قَالَتْ تَقُولُ سَوْدَةُ فَوَاللَّهِ مَا هُوَ إِلَّا أَنْ قَامَ عَلَى الْبَابِ فَأَرَدْتُ أَنْ أُبَادِيَهُ بِمَا أَمَرْتِنِي بِهِ فَرَقًا مِنْكِ فَلَمَّا دَنَا مِنْهَا قَالَتْ لَهُ سَوْدَةُ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَكَلْتَ مَغَافِيرَ قَالَ لَا قَالَتْ فَمَا هَذِهِ الرِّيحُ الَّتِي أَجِدُ مِنْكَ قَالَ سَقَتْنِي حَفْصَةُ شَرْبَةَ عَسَلٍ فَقَالَتْ جَرَسَتْ نَحْلُهُ الْعُرْفُطَ فَلَمَّا دَارَ إِلَيَّ قُلْتُ لَهُ نَحْوَ ذَلِكَ فَلَمَّا دَارَ إِلَى صَفِيَّةَ قَالَتْ لَهُ مِثْلَ ذَلِكَ فَلَمَّا دَارَ إِلَى حَفْصَةَ قَالَتْ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَلَا أَسْقِيكَ مِنْهُ قَالَ لَا حَاجَةَ لِي فِيهِ قَالَتْ تَقُولُ سَوْدَةُ وَاللَّهِ لَقَدْ حَرَمْنَاهُ قُلْتُ لَهَا اسْكُتِي [ر:۴۹۱۸].

**قوله:** عُكَّةً مِنْ عَسَلٍ: ((عُكَّة))د څرمنې جوړ شوې يو ګول لوښې به وو چه په هغې كښې به صرف شهد او غوړى ايښودلې شو.

((مَغَافِير)):دا د((مغفور))((بضم ا لميم))جمع ده.دا ګوند وى چه په دې كښې خوږوالۍ وى،چه دا د((رمث))((بكسر الراء وسكون الميم))نومې ونې كښې وى . دې ونې لره اوښان خوروى،وائى چه((اغفى الرمث))كله چه په دې كښې دا ماده ظاهره شى((مغفور))كښې ميم امام دفراء په نيز زائد او دجمهورو په نيز اصل دې.(۱)

**قوله:** جَرَسَتْ نَحْلُهُ الْعُرْفُطَ: يعنى دې دشهدو مچۍ به د عرفط رس چوپلې وى((جرست النحل العسل اذا الحسته))د شهدو د مچۍ شهد ختل،چوپل،((عرفط))د هغه ونې نوم دې چه د دې

---

۱) مذكوره تفصيل دپاره اوګورئ فتح البارى: ۴۷۲/۹).

كوند ته مغافير وائى.(۱)

ابن قتبيه فرمائى چه دا يو نبات دې چه ددې ذائقه ترخه او بوئى ئې خراب وى.ددې پاڼې نزدې نزدې وى.په دې كښې ازغى وى.اوددې ميوه سپينه وى. (۲)

**قوله:** تَقُولُ سَوْدَةُ فَوَاللَّهِ مَا هُوَ إِلَّا أَنْ قَامَ عَلَى الْبَابِ فَأَرَدْتُ أَنْ أُبَادِيَهُ بِمَا أَمَرْتِنِي بِهِ فَرَقًا مِنْكِ: حضرت سوده ﷞ حضرت عائشه ﷞ ته اووئيل چه په خدائې حضرت نبى كريم ﷺ دروازې ته تشريف راوړې وو چه ماستا دويرې په وجه حضرت نبى كريم ﷺ سره دخبرو ابتدا كول غوښتل چه دكومې تاماته حكم راكړې وو.

((أباده))دا باب مفاعله مباداة نه دې((فرقا منك خوفا منك.فرق))ويرې ته وئيلې شى .

**قوله:** تَقُولُ سَوْدَةُ وَاللَّهِ لَقَدْ حَرَمْنَاهُ: حضرت سود ﷞ اوفرمائيل چه مونږ حضرت نبى كريم ﷺ دشهدو خوړلو نه منع كړو.حضرت عائشه ﷞اوفرمائيل چه خاموش شه .

((هسې نه چه راز ښكاره شى)).((حرمناه اى منعناه)).

**تعارض روايات او ددې حل:** په دې باب كښې دړومبى روايت نه معلوميږى چه حضرت نبى كريم ﷺ به حضرت زينب ﷞ سره شهد استعمالول. او په آخرى روايت كښې دى چه حضرت نبى كريم ﷺحضرت حفصه ﷞ سره استعمال كړى وو.

بعض حضرات تعدد واقعات باندې محمول كړې دې ليكن محققين علماء ړومبى روايت ته ترجيح وركوى چه حضرت نبى كريم ﷺحضرت زينب ﷞ سره شهد استعمال كړى وو.ددې تفصيل دكشف البارى په كتاب التفسير كښې دسورت تحريم په تفسير كښې تيرشوې دې.(۳)

**د ترجمة الباب مقصد:** حضرت شيخ الحديث مولانا زكريا ﷫ فرمائى چه ځما په نيزدترجمة الباب مقصد د آيتونو تفسير دې چه ددې آيتونودپاره په احاديث باب كښې ذكر شوۍ قصو كښې شوې دې،ددې ورود امام بخارى ﷫ ددې باب لاندې دواړه واقعات ذكر كړل،دتحريم مراد مسئله دبيانولو مقصد نه دى ځكه چه هغه مخكښې باب كښې بيان شوې ده .(۴)

ترجمة الباب په ظاهره د اصبغ مالكى مذهب تائيد كوى.ددوى په نيز تحريم مطلقًا لغو دې كه تحريم مراه وى يا تحريم طعام وشراب وى.نو باب كښې ذكر شوى دحضرت ابن عباس ﷞روايت دتحريم مراة لغو كيدو اوباقى دوه روايتونو نه تحريم شراب(عسل)په لغو كيدو باندې دلالت كوى.

۱) فتح البارى: ۴۷۵/۹).
۲) فتح البارى : ۴۷۵/۹)
۳) اوګورئ كشف البارى: كتاب التفسير: ۶۸۵).
٤) الابواب والتراجم: ۷۸/۲).

## ٨=باب لا طلاق قبل النكاح

وقول الله تعالى يا ايها الذين امنوا اذا نكحتم المؤمنات ثم طلقتموهن من قبل ان تمسوهن فما لكم عليهن من عدة تعتدونها فمتعوهن وسرحوهن سراحا جميلا [ر: الاحزاب: ٤٩] وقال ابن عباس جعل الله الطلاق بعد النكاح

ويروى في ذلك عن علي وسعيد بن المسيب وعروة بن الزبير وابي بكر بن عبد الرحمن وعبيد الله بن عبد الله بن عتبة وابان بن عثمان وعلي بن حسين وشريح وسعيد بن جبير والقاسم وسالم وطاوس والحسن وعكرمة وعطاء وعامر بن سعد وجابر بن زيد ونافع بن جبير ومحمد بن كعب وسليمان بن يسار ومجاهد والقاسم بن عبد الرحمن وعمرو بن هرم والشعبي انها لا تطلق

علامه كرماني رحمه الله فرمائي چه د امام بخاري رحمه الله مقصد دحضرات حنفيه دمذهب ترديد كول دي خكه چه ددوى مذهب قبل النكاح صحت طلاق دي.(١)

علامه عيني رحمه الله فرمائي چه قبل النكاح وقوع طلاق دحضرات حنفيه مسلك نه دې بلكه دا خو دچا مسلك هم نه دې، كرماني او ددوى هم خيالو باندې تعجب دې چه هغه دخپل طرفنه يومذهب جوړوى اوحنفيه طرفته دامنسوب كوى او په دې باندې رد كول شروع كوى.(٢)

په دې باندې دټولو اتفاق دې كه څوك سړې اجنبيه ته اووائى «انت طالق» نو طلاق به واقع نه وى يعني لا طلاق قبل النكاح باندې دټولو اتفاق دې(٣)

**قبل النكاح دتعليق مسئله** : اختلاف په دې كښې دې كه طلاق لره ملك يا سبب ملك سره معلق كړې شى نو دا تعليق به صحيح وى يا نه . لكه يو سړې اووائى چه «اذا زوجت فلانة فهى طالق» نو نكاح كولو نه پس به طلاق واقع وى يا نه، په دې كښې اختلاف دې.

دحضرات حنفيه په نيز دا تعليق صحيح دې او دنكاح نه پس به طلاق واقع شى.

دحضرات شافعيه په نيز دا تعليق لغوه دې او ازواج نه پس به طلاق واقع نه وى.

امام احمد بن حنبل رحمه الله نه ددې مسئلې باره كښې دوه روايتونه دى يو دا چه دحنفيه مطابق، دويم دشافعيه مطابق.

امام مالك رحمه الله نه درې روايتونه دى. يو كښې توقف دې، دويم روايت دشوافع مطابق دې. ليكن هغه مرجوح دې اودريم روايت دادې كه داسې صورت كښې بنځه تعيين اوكړى اوده تعليق كړې وى لكه دا اووائى چه «ان تزوجت هذه المرأة فهى طالق» نو طلاق به واقع شى ليكن كه تعيين اونه كړزو، مطلقًا اوعام الفاظ ئې اووئيل لكه وې وئيل چه «كل امرأة اتزوجها

---

١) شرح الكرماني: ١٩/١٩١،١٩٢).
٢) عمدة القاري: ٢٠/٢٤٥).
٣) عمدة القاري: ٢٠/٢٤٥).

فهى طالق» نوداسې صورت كښې به طلا ق واقع نه وى،او هم دا دمالكيه راجح روايت او مذهب او مختار دى(۱)دعموم په صورت كښې تعليق درست نه دې ځكه چه دا د حلال څيز (نكاح) مطلقًا دحرام كولو مترادف دې اوددې اختيار هيچاته نشته دې(۲)
حضرات شافعيه دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما د اثر نه استدلال كوى،چه كوم په دې څائې كښې امام بخارى رحمه الله نقل كړې دې،دوى فرمائى چه«جعل الله الطلاق بعد النكاح».
ليكن دحنفيه خلاف ددې اثر نه استدلال كول درست نه دى ځكه چه ددې حنفيه هم قائل نه دى،ددې وجې چه اختلاف،تعليق طلاق قبل النكاح كښې دې،طلاق قبل النكاح كښې نه دې،نو علامه عينى رحمه الله ليكى چه :

«هذا لاخلاف فيه ان الله جعل الطلاق بعد النكاح،والحنفية قائلون به،فلايجوز للشافعية ان يحتجوا به عليهم فى مسألة التعليق،فان تعليق الطلاق غير الطلاق لانه ليس بطلاق فى الحال فلا لصحته قيام المحل»(۳)

نو عبدالرزاق په خپل تصنيف كښې دحضرت زهر رحمه الله اثر نقل كړې دې كه چا«كل امرأة اتزوجها فهى طالق»اووئيل نو دده ب دا وينا معتبره وى،په دې باندې معمر دوى ته اووئيل چه«اوليس قدجاء لاطلاق قبل النكاح ولاعتق قبل الملك»نوحضرت زهرى رحمه الله فرمائى چه«انما ذالك ان يقول الرجل امرأة فلان طالق»(۴) يعنى لا طلاق قبل النكاح نه مراد تجيز دې تعليق نه دې .
وجه ددې داده چه دتعليق په صورت كښې كه طلاق واقع شى نو نكاح كښې دراتلونه پس به واقع وى،نوهغه د لا طلاق قبل النكاح مصداق نه دې.

**قوله: قول الله تعالى : يأيها الذين امنوا اذا نكحتم المومنات ثم طلقتموهن :**
امام بخارى رحمه الله ددې ايت كريمه نه لاطلاق قبل النكاح باندې استدلال كړې دې،ځكه چه په دې كښې دى چه«اذا نكحتم المومنات ثم طلقتموهن»په ړومبې د نكاح اوبيا د طلاق ذكر دې،معلوم شو چه د نكاح نه مخكښې طلاق نه واقع كيږى.
ابن التين اوابن منيرفرمائيلى چه د امام دطلاق عدم وقوع قبل النكاح باندې مذكوره آيت نه استدلال كول درست نه دى ځكه چه په آيت كښې بغير د څه حصرنه دطلاق بعدالنكاح دقوع يو صورت ذكر كړې شويدې،دنكاح نه مخكښې دطلاق وقوع اود عدم وقوع نه په دې كښې ذكر دې اونه دسياق كلام نه په دې باندې دلالت كيږى.(۵)
دې نه پس امام بخارى رحمه الله د څلريشتو (۲۴)حضراتو نومونه ذكر كوى او فرمائى چه د

۱) دمذاهب اربعه تفصيل دپاره اوګورئ الابواب والتراجم: ۷۸/۲،او اوګورئ فتح البارى: ۴۸۲،۴۸۳/۹).
۲) فتح البارى: ۴۸٤/۹).
۳) عمدة القارى: ۲۴۶/۲۰).
٤) اوګورئ مصنف عبدالرزاق ۴۲۱/۶ . رقم : ۱۱٤۷۵،وعمدة القارى: ۲۴۶/۲).
۵) عمدة القارى: ۲۴۶/۲۰ . وفتح البارى: ٤۷۷/۹).

نکاح نه قبل ا لطلاق دعدم وقوع قول ددوی نه مروی دي،په دوی کښې حضرت علی رضی الله عنه او عمروبن هرم نه سواتول تابعین دي،عمروبن هرم تبع تابعینو کښې دي.(۱)

## ۹-بَاب إِذَا قَالَ لِامْرَأَتِهِ وَهُوَ مُكْرَهٌ هَذِهِ أُخْتِي فَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ

قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِبْرَاهِيمُ لِسَارَةَ هَذِهِ أُخْتِي وَذَلِكَ فِي ذَاتِ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ [ر:۲۱۰۴].

که چا خپلې ښځې ته((یااختی))(اې خورې ) اووئیل نو دجمهورو په نیز په دې تحریم،طلاق یا ظهار نه واقع کیږی،شیخ ابن الهمام اوعلامه ابن عابدین شامی دحضرات حنفیه دامسلك نقل کړې دي،البته داشان وئیل چه عام حالات کښې مکروه ضرور دي،(۲)

علامه عینی رحمه الله علامه خطابی په حوالې سره دامام ابویوسف رحمه الله مسلك دانقل کړې دي که چا په دې جملې سره څه نیت اونکړو نوتحریم به واقع وی او دې به کفاره ورکوی . د امام محمد رحمه الله په نیزبه دا ظهار وی.(۳)

دامام بخاری رحمه الله مقصد په دې حضراتوباندې رد کیدیشی چه کوم دا مکروه ګڼړلی یا ددې نه دتحریم او دظهاردوقوع قائل دی،نو هغوی فرمائی چه((فلاشئ علیه)).

ددې په کراهت باندې دابوداود دروایت نه استدلال کوی چه کوم هغوی د ابوتمیه هجیمی نه نقل کړې دې چه یو سړی خپلې ښځې ته اووئیل چه((یااخیة))

نو حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه((اختك هی))هغه ستا خور ده چه کومې ته ته اخیة وائې.او دا اطلاق ئې خوښه نه کړو((فکره ذالك ونهی عنه))(۴)

امام ابوداود رحمه الله په دې حدیث باندې ترجمه قائمه کړې ده .((باب فی الرجل یقول لامراته یااختی))ددې ترجې تحت هغوی مذکوره روایت نه علاوه حضرت ابراهیم علیه السلام او دحضرت سارد واقعه هم ذکر کړې ده. امام ابوداود رحمه الله مذکوره دواړه روایتونه ددې باب تحت ذکر کړې دی او دې طرفته ئې اشاره کړې ده چه که سړې مجبور وی او مکره و ی نو ښځې ته په اخت وئیلو کښې هیڅ باك نشته دې.لیکن بغیر دضرورت نه وئیل دابو تمیمه روایت سره مکرود دې.

امام بخاری رحمه الله هم غالبًا دې تفصیل طرفته اشاره کوی اودا وئیل غواړی چه ښځې ته خور وئیل په هر حال مکروه دی،په هغه صورت کښې مکروه دی چه کله بلاضرورت نه اووئیلې شی،ددې وجې حضرت امام بخاری رحمه الله په ترجمه کښې د((وهومکره)) قیدزیات کړې دې،

---

۱ ) عمدة القاری: ۲۰/۲٤۷).
۲ ) فتح القدیر. کتاب الطلاق،باب الظهار: ٤/۹۱).
۳ ) عمدة القاری: ۲۰/۲٤۷).
٤ ) اوګورئ سنن ابی داود،کتاب الطلاق،باب ماجا فی الرجل یقول لامراته ))یا اختی : ۲/۲٦٤ . رقم : ۲۲۱).

دحضرت ابراهیم علیہ السلام او دحضرت ساره بی بی واقعه تیره شوې ده،هغوی هم دمجبورئی په وجه خپلې بی بی ته خور ونیلی وو.(۱)

## ۱۰= بَاب الطَّلَاقِ فِي الْإِغْلَاقِ وَالْكُرْهِ وَالسَّكْرَانِ وَالْمَجْنُونِ وَأَمْرِهِمَا وَالْغَلَطِ وَالنِّسْيَانِ فِي الطَّلَاقِ وَالشِّرْكِ وَغَيْرِهِ

لِقَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْأَعْمَالُ بِالنِّيَّةِ وَلِكُلِّ امْرِءٍ مَا نَوَى [ر:۱]
وَتَلَا الشَّعْبِيُّ لَا تُؤَاخِذْنَا إِنْ نَسِينَا أَوْ أَخْطَأْنَا [ر:۲۸۶]
وَمَا لَا يَجُوزُ مِنْ إِقْرَارِ الْمُوَسْوِسِ
وَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلَّذِي أَقَرَّ عَلَى نَفْسِهِ أَبِكَ جُنُونٌ [ر:۴۹۶۹]
وَقَالَ عَلِيٌّ بَقَرَ حَمْزَةُ خَوَاصِرَ شَارِفَيَّ فَطَفِقَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَلُومُ حَمْزَةَ فَإِذَا حَمْزَةُ قَدْ ثَمِلَ مُحْمَرَّةٌ عَيْنَاهُ ثُمَّ قَالَ حَمْزَةُ هَلْ أَنْتُمْ إِلَّا عَبِيدٌ لِأَبِي فَعَرَفَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ قَدْ ثَمِلَ فَخَرَجَ وَخَرَجْنَا مَعَهُ [ر:۳۷۸]
وَقَالَ عُثْمَانُ: لَيْسَ لِمَجْنُونٍ وَلَا لِسَكْرَانَ طَلَاقٌ
وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: طَلَاقُ السَّكْرَانِ وَالْمُسْتَكْرَهِ لَيْسَ بِجَائِزٍ
وَقَالَ عُقْبَةُ بْنُ عَامِرٍ: لَا يَجُوزُ طَلَاقُ الْمُوَسْوِسِ
وَقَالَ عَطَاءٌ: إِذَا بَدَأَ بِالطَّلَاقِ فَلَهُ شَرْطُهُ
وَقَالَ نَافِعٌ: طَلَّقَ رَجُلٌ امْرَأَتَهُ الْبَتَّةَ إِنْ خَرَجَتْ فَقَالَ ابْنُ عُمَرَ إِنْ خَرَجَتْ فَقَدْ بُتَّتْ مِنْهُ وَإِنْ لَمْ تَخْرُجْ فَلَيْسَ بِشَيْءٍ
وَقَالَ الزُّهْرِيُّ فِيمَنْ قَالَ إِنْ لَمْ أَفْعَلْ كَذَا وَكَذَا فَامْرَأَتِي طَالِقٌ ثَلَاثًا يُسْأَلُ عَمَّا قَالَ وَعَقَدَ عَلَيْهِ قَلْبُهُ حِينَ حَلَفَ بِتِلْكَ الْيَمِينِ فَإِنْ سَمَّى أَجَلًا أَرَادَهُ وَعَقَدَ عَلَيْهِ قَلْبُهُ حِينَ حَلَفَ جُعِلَ ذَلِكَ فِي دِينِهِ وَأَمَانَتِهِ
وَقَالَ إِبْرَاهِيمُ: إِنْ قَالَ لَا حَاجَةَ لِي فِيكِ نِيَّتُهُ وَطَلَاقُ كُلِّ قَوْمٍ بِلِسَانِهِمْ
وَقَالَ قَتَادَةُ: إِذَا قَالَ إِذَا حَمَلْتِ فَأَنْتِ طَالِقٌ ثَلَاثًا يَغْشَاهَا عِنْدَ كُلِّ طُهْرٍ مَرَّةً فَإِنِ اسْتَبَانَ حَمْلُهَا فَقَدْ بَانَتْ مِنْهُ وَقَالَ الْحَسَنُ: إِذَا قَالَ الْحَقِي بِأَهْلِكِ نِيَّتُهُ
وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: الطَّلَاقُ عَنْ وَطَرٍ وَالْعَتَاقُ مَا أُرِيدَ بِهِ وَجْهُ اللَّهِ
وَقَالَ الزُّهْرِيُّ: إِنْ قَالَ مَا أَنْتِ بِامْرَأَتِي نِيَّتُهُ وَإِنْ نَوَى طَلَاقًا فَهُوَ مَا نَوَى
وَقَالَ عَلِيٌّ: أَلَمْ تَعْلَمْ أَنَّ الْقَلَمَ رُفِعَ عَنْ ثَلَاثَةٍ عَنِ الْمَجْنُونِ حَتَّى يُفِيقَ وَعَنِ الصَّبِيِّ حَتَّى يُدْرِكَ وَعَنِ النَّائِمِ حَتَّى يَسْتَيْقِظَ:

---

۱) کشف الباري: کتاب التفسیر،تفسیر سورة بنی اسرائیل : ۳۷۳).

وَقَالَ عَلِيٌّ: وَكُلُّ الطَّلَاقِ جَائِزٌ إِلَّا طَلَاقَ الْمَعْتُوهِ

**داغلاق معنی** : امام ابن ماجه رحمه الله او امام ابو داود رحمة الله عليه د حضرت ابوهريره رضي الله عنه روايت نقل كړی چه «لا طلاق فی الاغلاق» دا د امام ابن ماجه رحمه الله د روايت الفاظ دی، د امام ابو داود رحمة الله عليه د روايت الفاظ دی چه «لاطلاق فی الغلاق» (۱) دغلاق نه اغلاق مراد دې، داغلاق تفسير كښې مختلف اقوال دی .

① بعضو ونيلی دی چه ددې نه جنون مراد دې.(۲)

② ابو عبيده هروی نقل كړی دی چه ددې نه يو ځائې درې طلاقه وركول مراد دې، څكه چه درې طلاقه وركړی نو دې په خپل ځان باندې طلاق بند كړی، او نور د طلاق گنجائش ده سره پاتې نشی.(۳)

③ ابوعبيد داغلاق تفسير په اكراه سره كړې دې، او هم دا ددې مشهور تفسير دې، (۴)

امام ابن ماجه رحمه الله په دې باندې «طلاق المكره» عنوان سره ترجمه قائمه كړې ده چه ددې نه معلوميږی چه د دوی په نيز هم ددې معنیٰ اكراه ده .

④ امام احمد رحمه الله او امام ابوداود رحمة الله عليه ددې تفسير غصې او غضب سره كړې ده.(۵)

عبدالمغافر فارسی په «مجمع الغرائب» كښې ددې تفسير باندې اشكال كړی دی چه ددې د تفسير په صورت كښې به مطلب داوی چه په حالت دغضب كښې به طلاق واقع نه وی، حالانكه طلاق حالت غضب كښې وركولې شی.(۶)

**اقسام دغضب** : ليكن ددې جواب دادې چه داغلاق نه مطلقًا غضب مراد نه دې بلكه دغضب هغه قسم مراد دې چه په هغې كښې دانسان عقل لاړشی. اوهغه ته د خپلې خبرې بالكل شعور نه وی. نو علامه ابن قيم رحمه الله په زادالمعاد كښې دغصې درې قسمونه بيان كړی دی .

① ړومبې قسم دداسې غصې دې چه دسړی عقل بالكل زائله كړی او دده بالكل دخپلې خبرې ادو شعور نه وی، داسې صورت كښې بالاتفاق طلاق نه واقع كيږی.

② دويم قسم دغصې ابتدائی صورت دې چه په دې كښې سړې بالكل په شعور كښې وی او چه څه هغه وائی په هغې پوهيږی. په داسې صورت كښې بالاتفاق طلاق واقع كيږی.

③ دريم قسم دادې چه په غصه كښې استحكام اوشدت راشی ليكن عقل بالكل زائل نه وی

---

۱) الحديث اخرجه ابن ماجه فی كتاب الطلاق باب طلاق المكروه والناسی رقم : ۲۰۴۶.وابوداود.كتاب الطلاق باب فی الطلاق علی غيظ: ر قم : ۲۱۹۳.واحمد : ۲۷۶/۶.والحاكم : ۱۹۸/۲، والبيهقی : ۳۵۷/۷).

۲) فتح الباری: ۴۸۷/۹).

۳) زاد المعاد فی هدی خيرالعباد ذكر احكام رسول الله صلى الله عليه وسلم فی الطلاق: ۲۱۵/۶).

۴) فتح الباری: ۴۸۶/۹).

۵) زاد المعاد: ۲۱۴/۶، ۲۱۵).

۶) اوگورئ: زاد المعاد: ۲۱۵).

نو بیا هم د غصې په وجه هغه د خپل نیت مطابق کار نشی کولې، او په دې دوران کښې زیاتې که اوشی او هغه د نیت مطابق نه وی نو ددې وجې په دې باندې دې نه پس ددې پښیمانی وی او افسوس کوی، دا دریم قسم محل نظر دې ، د علامه ابن قیم په نیز په دې صورت کښې به طلاق واقع نه کیدل راجح دی، (۱)

او علامه شامی رحمه الله فرمائی چه په دې صورت کښې طلاق به واقع وی. (۲)

شیخ الاسلام علامه ابن تیمیه رحمه الله فرمائی چه صحیح دادی چه لفظ اغلاق مفهوم کښې اکراه، غضب، جنون او هر هغه امر شامل دې چه هغې په وجه سړې هوش وحواس او عقل سلامت پاتې نشی. (۳)

**طلاق مجنون ومکروه:** د مجنون طلاق خو بالاتفاق نه واقع کیږی البته د مکره طلاق باره کښې اختلاف دې، حضرات حنفیه، امام شعبی، قتاده، ابراهیم نخعی او سعید بن جبیر فرمائی چه د مکروه طلاق واقع کیږی (۴) ددې وجې د اکراه په وجه صرف رضا فوت کیږی، اختیار نه فوت کیږی نو کله چه اختیار باقی وی نو طلاق واقع کیږی . (۵)

دا حضرات د فرج بن فضاله عن عمرو بن شرحبیل معافری د یو أثر نه هم استدلال کوی چه یو ښځې خپل خاوند په طلاق مجبور کړو او دده نه ئې طلاق حاصل کړو، دا مقدمه حضرت عمر فاروق رضي الله عنه ته پیش شوه نو حضرت عمر فاروق رضي الله عنه هغه طلاق ته صحیح اونیل . (۶)

حضرت ابن عمر رضي الله عنهما او حضرت عمر بن عبدالعزیز نه هم دا شان آثار منقول دی. (۷)

آئمه ثلاثه فرمائی چه مکره طلاق به واقع نه وی ځکه چه د اکراه په وجه اختیار نه پاتې کیږی او د شرعی تصرفاتو دارومدار په اختیار باندې دې، (۸)

دارنګ دا حضرات فرمائی چه په حالت د اکراه کښې د کلمه کفر ونیلو هم اجازت ورکړې شوې دې. «الا من اکره وقلبه مطمئن بالایمان» د اکراه په حالت کښې کلمه د کفر ویونکی باندې احکام د کفر نه جاری کیږی نو طلاق خو کلمه کفر نه ډیر کمې درجې څیز دې، په دې باندې هم طلاق نه دی جاری کیدل پکار (۹)

ترجمة الباب کښې «الاغلاق» نه پس د «والکره» لفظ دې «کره» د کاف په ضمه او د راء په سکون سره» په معنی د الاکراه ده. «اغلاق» نه که غضب مراد واخستلې شی نو په دې

---

۱) او ګورئ زاد المعاد: ۲۱۵/۶).
۲) رد المختار علی رد المختار، کتاب الطلاق، مطلب فی طلاق المدهوش: ۴۹۳/۲).
۳) زاد المعاد: ۲۱۵/۶).
۴) عمدة القاری: ۲۵۰/۲۰).
۵) او ګورئ هدیة، کتاب الطلاق : ۳۵۸/۲) .
۶) زاد المعاد: ۲۰۸/۶).
۷) عمدة القاری: ۲۵۰/۲۰).
۸) او ګورئ الهدایة، کتاب الطلاق: ۳۵۸/۲، لیکن په دې کښې ئې د امام شافعی رحمه الله مذهب نقل کړېدې .
۹) فتح الباری: ۴۸۷/۹).

صورت کښې عطف مغايرت دپاره به وی او معنی به وی «باب الغضب والاکراه» لیکن که د «الاغلاق» تفسیر اکراه سره اوکړې شی نو په دې صورت کښې به دا عطف تفسیری وی.

اودا هم احتمال دې چه دا لفظ «مکره» وی. په دې صورت کښې به تقدیر وی «باب حکم الطلاق فی الاغلاق وحکم المکروه والسکران» (۱)

**طلاق سکران:** دطلاق سکران باره کښې دعلماء کرامو دوه اقوال دی:

① د امام ابو حنیفه رحمه الله او امام مالك رحمة الله علیه په نیز د سکران طلاق به واقع وی او د امام شافعی رحمه الله هم اصح قول دادې، دامام احمد رحمه الله روایت هم ددې مطابق دې. (۲)

② دامام احمد مشهور قول او امام شافعی رحمه الله یو روایت داهم دې چه د سکران طلاق به واقع نه وی، (۳) په حنفیانو کښې امام کرخی رحمه الله اوامام طحاوی رحمه الله دا اختیار کړې دې (۴) په شوافع کښې امام بغوی رحمه الله هم دا رائې ده، (۵)

د حضرت امام بخاری رحمه الله رجحان هم دې طرفته دې.

وجه ددې داده چه هغه دمستئ او مدهوشئ په حالت کښې وی، هغه ته پته نه لږی چه دهغه دخلې نه څه راوزی، او ددې به څه اثرات وی، د قصد اوارادې اعتبار عقل سره دې او دده عقل زائل شوی دې، (۶)

امام طحاوی رحمه الله فرمائی چه دمعتوه طلاق بالاتفاق نه واقع کیږی، سکران هم دسکر او نشې په وجه سره معتوه وی، ددې وجې ددې طلاق به واقع نه وی. (۷)

قائلین وقوع طلاق فرمائی چه دده د عقل زائله کیدو چه کوم سبب دې هغه معصیت دې، ددې وجې حکماً دده عقل به باقی ګنړلې شی چه ددې تنبیه وی، د زجر او تنبیه تقاضاه داده چه دده طلاق واقع وی، (۸)

**«والغلط والنسيان فی الطلاق والشرك وغيره»**

ددې عطف «الطلاق فی الاغلاق» باندې دې، او لفظ، باب دپاره مضاف الیه کیدو په وجه سره مجرور دې یعنی «باب الطلاق فی الاغلاق...... وباب الغلط والنسیان».

**په غلطئ کښې یا په هیره د طلاق ورکولو حکم:** په غلطئ یا هیره کښې دطلاق ورکولو حکم

۱) فتح الباری: ۴۸۸/۹، وعمدة القاری: ۲۰/۲۵۱،۲۵۰).
۲) مذکوره تفصیل دپاره اوګورئ فتح الباری: ۴۸۹/۹).
۳) فتح الباری: ۴۸۹/۹).
٤) الهداية: ۳۵۸/۲، کتاب الطلاق، باب طلاق السنة ).
۵) راجع لمزید التفصیل المغنی لابن قدامة کتاب الطلاق، مسالة، طلاق سکران: ۲۸۹/۷).
۶) الهداية: کتاب الطلاق: ۳۵۸/۲).
۷) فتح الباری: ۱۸۹/۹).
۸) الهداية : ۳۵۹/۲).

کښې هم اختلاف دې.

دجمهورو عالمانو په نیزبه طلاق واقع نه وی، دحنفیه په نیز به واقع وی، (۱)

دحنفیه دلیل دا لاندې مشهورحدیث دې چه کوم امام ابوداود رحمة الله علیه‌نقل کړې دې، «ثلاث جدهن جد وهزلهن جد: النکاح والطلاق والرجعة» (۲) نو کله چه‌دهزل اعتبار اوکړې شی نود خطاء، غلط او نسیان به هم اعتبار کولې شی.

جمهور حضرات د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما د حدیث نه استدلال کوی، چه په هغې کښې دی چه «ان الله تجاوز عن امتی الخطاء والنسیان وما استکرهوا علیه» (۳)

«الشرك وغیره» ددې عطف «الطلاق» باندې دې، یعنی «الغلط والنسیان فی الشرك» مطلب دا دې چه چاپه غلطئ یاپه هیره سره دشرك کلمه اووئیله‌نوبالاتفاق به ددې اعتبارنه وی خکه چه حضرت نبی کریم ﷺ فرمائی چه «الاعمال بالنیة» اوغلطئ او هیره کښې د ویونکی نیت به نه وی.

حضرت امام بخاری رحمه الله ددې مسئلې نه غالبًا طلاق باندې استدلال کړې دې چه کله غلطئ او هیره کښې د شرکیه کلمې اعتبار بالاتفاق نه کیږی نو دطلاق به هم اعتبار نه دی کول پکار، لیکن دحنفیه د طلاق اعتبار د ابوداود دحدیث «جدهن جد وهزلهن جد» په وجه کړې دې.

ابن بطال رحمه الله فرمائی چه د «الشرك» لفظ په دې ځائې کښې صحیح نه دې بلکه صحیح لفظ «الشك» دې، په دې صورت کښې به ددې عطف «النسیان» باندې وی یعنی «باب الغلط والنسیان والشك» (۴)

«وغیره»: حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه «غیره» ضمیر دمجرور «الشرك» طرفته راجع دې «ای غیر الشرك مما هو دونه» (۵)

علامه عینی رحمه الله فرمائی چه ضمیر «المذکور» طرفته راجع دې «ای وغیر المذکور منه الاشیاء المذکور نحو الخطاء وسبق اللسان والهزل» (۶)

**قوله:** لقول النبی ﷺ الاعمال بالنیة: دې کښې دلیل طرفته اشاره ده چه مذکوره

---

۱) عمدة القاری: ۲۰/۲۵۱).

۲) اخرجه امام ابو داود رحمة الله علیه فی الطلاق، باب فی الطلاق علی الهزل رقم: ۲۱۹۴، والترمذی فی الطلاق ،باب ماجاء فی الجدوالهزل رقم: ۱۱۸۴، وصححه الحاکم : ۲/۱۹۸،۱۹۷، واقرة الذهبی وله شواهد یتقوی بها فی تلخیص الحبیر: ۳/۲۰۹).

۳) فتح الباری: ۹/۴۸۸).

۴) فتح الباری: ۹/۴۸۸، وعمدة القاری: ۲۰/۲۵۱).

۵) فتح الباری: ۹/۴۸۸).

۶) عمدة القاری: ۲۰/۲۵۱).

مسائلو كښې دنيت اعتبار وى ،ځكه چه حكم دراصل عاقل مختار اوعامد ذاكر طرفته متوجه كيږى اومكره مختار نه دې،دسكران په حالت كښې په سكر كښې عقل پاتې نشى،د غلط اوناسى هم قصد اواراده نه وى.

**قوله:** وتلا الشعبى :ربنا لا تواخذنا ان نسينا اواخطانا: حضرت عامر بن شراحيل شعبى نه چه كله دناسى او مخطى دطلاق په باره كښې تپوس اوكړې شو نوهغوى دقران پاك دامذكوره آيت مبارك تلاوت اوفرمائيلو او ددې نه ئې استدلال اوكړو چه دناسى او مخطى مواخذه نه دى كيدل پكار.

**قوله:** وَمَا لَا يَجُوزُ طَلَاقُ الْمُوَسْوِسِ: موسوس هغه سړى ته وئيلې كيږى چه هغه ته په كثرت سره وسوسه رازى. كه چاته دطلاق وسوسه راغله نو دجمهورو په نيزپه وسوسه طلاق سره طلاق نه واقع كيږى ځكه دطلاق دپاره تلفظ يا كتابت ضرورى دې اووسوسه كښې نه تلفظ وى او نه كتابت.

د حضرت امام بخارى رحمه الله مقصد ددې په پيش كولو سره دادې چه دموسوس طلاق ددې وجې نه واقع كيږى چه دده نيت نه وى لهذا دسكران ،مكره ناسى هم طلاق واقع كيدل نه دى پكار. ځكه ددوى هم نيت نه وى،حالانكه هلته الفاظ د طلاق موندې شوى دى او دلته الفاظ نشته دې.

ابن سيرين اوابن شهاب زهرى فرمائى چه موسوس كه دطلاق عزم اوكړو نو په دې صورت كښې به طلاق واقع شى،امام مالك رحمه الله نه هم يو روايت ددې مطابق منقول دې،قاضى ابوبكر بن عربى دې لره قوى ګڼړلې دې،(١) ليكن دجمهورو مسلك دا نه دې.

**قوله:** وَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلَّذِي أَقَرَّ عَلَى نَفْسِهِ أَبِكَ جُنُونٌ: دادمخكښې حديث دباب حصه ده چه حضرت نبى كريم ﷺ په مسجد كښې وو،يو سړې راغلو او وې وئيل چه ما زنا كړې ده،حضرت نبى كريم ﷺ ورته څه التفات اونكړو،تر دې پورې چه څلور ځل حضرت نبى كريم ﷺ دهغوى قول رد كړو،دې نه پس حضرت نبى كريم ﷺ هغه راوبللو او وې فرمائيل چه«ابك جنون»آيا ته پاګل ئې،هغه اووئيل چه نه،حضرت نبى كريم ﷺ دا سوال دهغه سړى نه ددې وجې اوكړو چه دهغه مجنون كيدل ثابت شوې وې نو دهغه نه به حد ساقط شوې وې. ددې نه معلوم شو چه دمجنون اقرارا و ا عتراف معتبر نه دې،ددې وجې دده طلاق به هم واقع نه وى،(٢)

**قوله:** وَقَالَ عَلِيٌّ بَقَرَ حَمْزَةُ خَوَاصِرَ شَارِفَيَّ......: دا دهغه طويل حديث حصه ده چه كوم په كتاب المغازى كښې تير شوې دې،(٣) حضرت حمزه رضي الله عنه چه څه اوكړل او څه ئې اووئيل نوچونكه هغه په نشه كښې وو، ددې وجې حضرت نبى كريم ﷺ مواخذه اونه

---

١ ) فتح البارى: ٤٩٢/٩).
٢ ) فتح ا لبارى: ٤٦٣/٩).
٣ ) اوګورئ كشف البارى، كتاب ا لمغازى، باب شهودالملائكة بدر: ١٥٦. ١٥٧).

فرمائيل،چه ددې نه معلوم شو په حالت دسكر كښې مواخذه معاف ده،لهذا دسكران طلاق نه دی واقع كيدل پكار.

**قوله**: وَقَالَ عُثْمَانُ : لَيْسَ لِمَجْنُونٍ وَلَا لِسَكْرَانَ طَلَاقٌ: حضرت عثمان رضي الله عنه فرمائی چه دمجنون او سكران طلاق به نه واقع كيږی،
داتعليق ابن ابی شيبه په صحيح سند سره موصولاً نقل كړې دې.(۱)

**قوله**: وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ : طَلَاقُ السَّكْرَانِ وَالْمُسْتَكْرَهِ لَيْسَ بِجَائِزٍ: يعنی سكران او مستكره (مغلوب مقهور اومجبور) طلاق به واقع نه وی،دې تعليق لره هم په صحيح سند سره ابن ابی شيبه‌موصولاً نقل كړې دې.(۲)

**قوله**: وَقَالَ عُقْبَةُ بْنُ عَامِرٍ: لَا يَجُوزُ طَلَاقُ الْمُوَسْوِسِ: دا تعليق‌چا موصولاً نقل كړې دې دا معلوم نشو .

**قوله**: وَقَالَ عَطَاءٌ: إِذَا بَدَا بِالطَّلَاقِ فَلَهُ شَرْطُهُ: كه يوسړی مشروط طلاق وركړو او په دې كښې ئې طلاق مخكښې ذكركړواوشرط ئې بعدكښې ذكركړو لكه‌داسې ئې اووئيل چه«انت طالق ان دخلت الدار»عطاء فرمائی چه‌په دې صورت كښې به شرط معتبر وی اودا طلاق به مشروط وی په شرط واقع كيدو به طلاق واقع شی.

دجمهورو عالمانو هم دامسلك دې‌چه‌شرط كه مخكښې ذكركړې شی او كه روستوذكركړې شی نو دشرط به بهر حال اعتبار وی،اوطلاق به نه وی واقع،دشرط موندې كيدونه پس به طلاق واقع وی.(۳)

قاضی‌شريح فرمائی چه دتقديم شرط په صورت كښې خو به طلاق مشروط وی ليكن د تاخير شرط په صورت كښې به طلاق واقع شی ،مشروط‌به نه وی.(۴)

ابراهيم نخعی رحمه الله ته چه كله دقاضی شريح دا خبره معلومه شوه نو هغوی ددې ترديد اوكړو او وې فرمائيل چه‌د شرط په تقديم او تاخير دواړو صورتونوكښې به طلاق مشروط وی،امام طحاوی رحمه الله د ابراهيم نخعی دا رائې نقل كړې ده.

حافظ ابن حجر رحمه الله ته په دې خائې كښې وهم شوې دې،هغوی‌دقاضی شريح مسلك لره ابراهيم نخعی طرفته‌ته منسوب كړې دې .

حضرت امام بخاری رحمه الله چه د حضرت عطاء كوم اثر نقل كړې دې هغه دې خبرې طرفته اشاره كولو دپاره دې چه‌په لفظ كښې اصل اعتبار دنيت دې،سړې يو مشروطه خبره كوی دده مقصد اودده نيت‌دا وی چه شرط سره به دا كلام موثر وی او بغيردشرط نه به‌دا موثر نه وی، نوشريعت ددې اعتبار اوكړواو د تحقق شرط نه بغير دده كلام معتبربه نه وی،«انت

---

۱) عمدة القاری: ۲۵۲/۲۰).
۲) عمدة القاری: ۲۵۲/۲۰).
۳) عمدة القاری : ۲۵۳/۲۰.فتح الباری: ۴۶۰/۹).
٤) فتح الباری: ۳۲۵/۵).

طالق ان دخلت الدار»که چا داسې اووئيل نو طلاق به په هغه وخت کښې واقع شي چه کله دخول دار اوشی ځکه چه دويونکی نيت هم دادې نومعلوم شوچه نيت معتبر دې، لهذا دسکران اومکره وغيره طلاق نه دی واقع کيدل پکار، ځکه چه دده نيت نه وی، (۱)

ترجمة الباب سره ددې اثر دامناسبت حضرت گنگوهی رحمه الله بيان کړې دې، (۲)

دحضرت عطاء داتعليق لره عبدالرزاق موصولاً نقل کړې دې(۳)

**قوله: وَقَالَ نَافِعٌ: طَلَّقَ رَجُلٌ امْرَأَتَهُ الْبَتَّةَ إِنْ خَرَجَتْ فَقَالَ ابْنُ عُمَرَ إِنْ خَرَجَتْ فَقَدْ بُتَّتْ مِنْهُ وَإِنْ لَمْ تَخْرُجْ فَلَيْسَ بِشَيْءٍ:** «بتتت»د باء په ضمه اودتاء په تشديد سره د مجهول صيغه ده.

د حضرت ابن عمر رضی الله عنه غلام اوشاگرد حضرت نافع رضی الله عنه سوال اوکړو که چا خپلې ښځې ته طلاق بائن ورکړو خروج دار سره نوددې څه حکم دې، حضرت ابن عمر رضی الله عنه اوفرمائيل که هغه اووتله نو بائنه به شی، ددې وجې دخاوند نيت دادې چه طلاق به تحقق شرط نه پس متحقق وی، معلوم شو چه دنيت اعتبار به وی، (۴) لهذا ماقبل کښې بيان شوی اغلاق، مکروه، سکران، مجنون، غالط اوناسی کيدو په وجه طلاق واقع کيدل نه دی پکار.

دا تعليق چا موصولاً نقل کړې، دامعلوم نشو، (۵)

**قوله: وَقَالَ الزُّهْرِيُّ فِيمَنْ قَالَ إِنْ لَمْ أَفْعَلْ كَذَا وَكَذَا فَامْرَأَتِي طَالِقٌ ثَلَاثًا يُسْأَلُ عَمَّا قَالَ وَعَقَدَ عَلَيْهِ قَلْبُهُ حِينَ حَلَفَ بِتِلْكَ الْيَمِينِ فَإِنْ سَمَّى أَجَلًا أَرَادَهُ وَعَقَدَ عَلَيْهِ قَلْبُهُ حِينَ حَلَفَ جُعِلَ ذَلِكَ فِي دِينِهِ وَأَمَانَتِهِ:** حضرت زهری رحمه الله فرمائی که يو سړی اووئيل که ما داسې اونکړل نو ځما ښځې ته درې طلاقه. يعنی دڅه کاراو دمودې صراحت نې اونکړونو دده نه به ددې قول او دده دنيت باره کښې تپوس کولې شی، که دده څه موده مقرر کړه( چه ځما مراد دومره موده وه که په دومره موده کښې مې دا کار اونکړونو ځما ښځې ته طلاق)نو دده دا قول به ديانتة معتبر گڼړلې شی.

دا تعليق هم ذکر کولو سره دحضرت امام بخاری رحمه الله مقصد دادې چه دنيت اعتبار به وی، (۶) لهذا ماقبل کښې چه داغلاق اواکراه کوم مسائل ذکر شوی دی چونکه په هغې کښې به نيت نه وو ددې وجې طلاق نه دی واقع کيدل پکار.

دا تعليق عبدالرزاق موصولاً نقل کړې دې، (۷)

---

۱) لامع لدراری: ۹/۳۵۶).
۲) تعليقات لا مع الدراری: ۹/۳۵۶).
۳( تغليق التعليق علی صحيح البخاری: ۴/۴۵۵).
۴) لامع الدراری: ۹/۳۵۶):
۵) نو حافظ ابن حجر رحمه الله په تغليق التعليق (۴/۴۵۶) کښې دامام دقول نه پس خالی ځائې پرېښودې دې.
۶) لامع الدراری: ۹/۳۵۷،۳۵۸).
۷) تغليق التعليق: ۴ /۴۵۶).

**قوله**: وَقَالَ إِبْرَاهِيمُ: إِنْ قَالَ لَاحَاجَةَ لِي فِيكِ نِيَّتُهُ: كه يو سړي خپلې ښځې ته اووائي چه " ماته ستا ضرورت نشته "نو دده دنيت مطابق به فيصله كيږي كه نيت ئې دطلاق دې نوطلاق به واقع شي ګني نه،معلوم شو چه اعتبار نيت لره دې.
داتعليق ابن ابى شيبه موصولاً نقل كړې دې،(۱)

**قوله**: وَطَلَاقُ كُلِّ قَوْمٍ بِلِسَانِهِمْ: دهرقوم طلاق به دهغوى دژبې اعتبار سره فيصله كولې شى،دا يو اجماعى فيصله ده. چه ددې په ژبه كښې چه كوم لفظ طلاق دپاره استعماليږي، هغې سره به طلاق واقع شى،ددې نه هم دنيت اعتبار معلوميږى ځكه چه دهر زبان خلق دخپلې محاورې مطابق دطلاق دپاره چه كوم لفظ استعمالوى،ظاهره ده چه ددوى نيت به دطلاق واقع كيدو وى.
ابن ابى شيبه داتعليق موصولاً نقل كړې دې،(۲)

**قوله**: وَقَالَ قَتَادَةُ: إِذَا قَالَ إِذَا حَمَلْتِ فَأَنْتِ طَالِقٌ ثَلَاثًا يَغْشَاهَا عِنْدَ كُلِّ طُهْرٍ مَرَّةً فَإِنِ اسْتَبَانَ حَمْلُهَا فَقَدْ بَانَتْ مِنْهُ: حضرت قتاده رضي الله عنه فرمائى چه كله چا خپلې ښځې ته اووئيل كه ته حامله شوې نو تاته درې طلاقه،نو په هر طهر كښې يو ځل دې سره وطى كولې شى(ځكه چه طهردحيض نه پس رازى،دحيض نه معلوم شوچه حامله نه ده ليكن يو ځل دوطى كولو نه پس چونكه دحامله كيدو امكان دې نوددې وجې په دې طهر كښې دوباره وطى به نه كوى )كه حمل ظاهر شو نوښځه به بائنه شى ځكه چه قائل هم دا نيت كړې وو.
دا تعليق ابن ابى شيبه موصولاً نقل كړې دې .(۳)

**قوله**: وَقَالَ الْحَسَنُ: إِذَا قَالَ الْحَقِي بِأَهْلِكِ نِيَّتُهُ: حضرت بصرى رحمه الله فرمائى كه چا خپلې ښځې ته اووئيل چه«الحقى باهلك» نو دده دنيت اعتبار به كولې شى كه ده دطلاق نيت كړې وو نو طلاق به واقع شى،هم دا دجمهور علماء كرامو اوآئمه اربعه مسلك دې، ظاهريه وائى چه ددې سره به هيڅ نه وى كه دطلاق نيت وى كه نه وى .
داتعليق عبدالرزاق موصولاً نقل كړې دې .(۴)

**قوله**: وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: الطَّلَاقُ عَنْ وَطَرٍ وَالْعَتَاقُ مَا أُرِيدَ بِهِ وَجْهُ اللَّهِ: حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمائى چه طلاق د ضرورت تحت وى اوعتاق نه دالله جل جلاله رضا مقصود وى.دا هم ددې خبرې دليل دې چه دسكران،مكره،خاطى،اودناسى طلاق واقع كيدل نه دى پكار،ځكه چه په دې كښې دضرورت څه اړخ نشته دې،ددې وجې بغير نيت نه

---

۱) تغليق التعليق : ۴۵۶/۴).
۲) تغليق التعليق : ۴۵۶/۴).
۳) تغليق التعليق: ۴۵۶/۴).
۴ ر تغليق التعليق: ۴۵۷/۴).

که دده طلاق واقع شی نو لازم به وی چه بغیر د ضرورت او حاجت نه واقع شو حالانکه طلاق د ضرورت تحت واقع کیږی .(۱)
داتعلیق موصولاً نقل کولوالا معلوم نشو.(۲)

**قوله:** وَقَالَ الزُّهْرِيُّ : إِنْ قَالَ مَا أَنْتِ بِامْرَأَتِي نِيَّتُهُ وَإِنْ نَوَى طَلَاقًا فَهُوَ مَا نَوَى: حضرت زهری رحمه الله فرمائی که چا خپلې ښځې ته اووئیل چه" ته څما ښځه نه ئې "نو دده د نیت اعتبار به کولې شی،که ده دطلاق نیت اوکړو نو طلاق به واقع شی اوکه نیت د طلاق نه وو نونه به وی،بلکه مطلب دادې چه تا بی بی جوړیدو نه پس څما فرمانبرداری اونکړه،ددې جملې نه په فرمانبردارئی باندې ښځه آماده کول مقصود دی نو طلاق به واقع نه وی.
دا تعلیق ابن ابی شیبه موصولاً نقل کړې دې،(۳)

**قوله:** وَقَالَ عَلِيٌّ : أَلَمْ تَعْلَمْ أَنَّ الْقَلَمَ رُفِعَ عَنْ ثَلَاثَةٍ: حضرت علی رضی الله عنه فرمائی چه تاته پته نشته چه دریو نه قلم اوچت شوې دې،
مجنون نه دده دصحیح کیدو پورې،دبچی نه دده دبالغ کیدو پورې،اونائم نه دده د ویښیدو پورې،دې تعلیق سره دمجنون طلاق نه واقع کیدوباندې استدلال مقصود دې .
دا تعلیق موقوفاً او مرفوعاً په دوه رنګه منقول دې،لیکن موقوفاً راجح دې،بغوی دا موصولاً نقل کړې دې،(۴)

**د بچی د طلاق حکم:** هم دادجمهور علماء کرامو مسلك دې چه دمجنون اونائم طلاق به واقع نه وی البته دصبی دطلاق باره کښې اختلاف دې،دشافعیه په نیزدصبی طلاق به واقع کیږی.
لیکن د حضرت امام مالك رحمه الله یو روایت دادې که هغه قریب البلوغ او مراهق وی نو دده طلاق به واقع وی.
حضرت امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائی که هغه دروژې نیولوطاقت لری نو دداسې صبی طلاق به واقع شی . (۵)
دحنفیه په نیز بهدبچی طلاق واقع نه وی،(۶)

**قوله:** وَقَالَ عَلِيٌّ : وَكُلُّ الطَّلَاقِ جَائِزٌ إِلَّا طَلَاقَ الْمَعْتُوهِ: حضرت علی رضی الله عنه فرمائی چه هر طلاق واقع کیږی،لیکن دمعتوه طلاق نه واقع کیږی،دمعتوه نه داسې سړې

۱ ) لامع الدراری: ۴۵۸/۹).
۲ ) تغلیق التعلیق : ۲۵۷/٤).
۳ ) تغلیق التعلیق: ٤۵۷/٤).
٤ ) فتح الباری: ۴۹۱/۹).
۵ ) مذکوره تفصیل دپاره اوګورئ فتح الباری: ۴۹۱/۹).
۶ ) هدایه ج/۲،ص/۳۳).

مراد دي چه دهغه په عقل کښې خلل او فتور وی چه کوم ناقص العقل وی ،مجنون هم په دې کښې داخل دې او صبي هم،(۱)
داتعليق بغوی موصولاً نقل کړې دی (۲)

[۴۹۶۸] حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ اِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ عَنْ زُرَارَةَ بْنِ اَوْفَى عَنْ اَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّ اللّٰهَ تَجَاوَزَ عَنْ اُمَّتِي مَا حَدَّثَتْ بِهِ اَنْفُسَهَا مَا لَمْ تَعْمَلْ اَوْ تَتَكَلَّمْ
قَالَ قَتَادَةُ: اِذَا طَلَّقَ فِي نَفْسِهِ فَلَيْسَ بِشَيْءٍ [ر:۲۳۹۱].

[۴۹۶۹] حَدَّثَنَا اَصْبَغُ اَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ عَنْ يُونُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِي اَبُو سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ جَابِرٍ اَنَّ رَجُلًا مِنْ اَسْلَمَ اَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ فِي الْمَسْجِدِ فَقَالَ اِنَّهُ قَدْ زَنَى فَاَعْرَضَ عَنْهُ فَتَنَحَّى لِشِقِّهِ الَّذِي اَعْرَضَ فَشَهِدَ عَلَى نَفْسِهِ اَرْبَعَ شَهَادَاتٍ فَدَعَاهُ فَقَالَ هَلْ بِكَ جُنُونٌ هَلْ اَحْصَنْتَ قَالَ نَعَمْ فَاَمَرَ بِهِ اَنْ يُرْجَمَ بِالْمُصَلَّى فَلَمَّا اَذْلَقَتْهُ الْحِجَارَةُ جَمَزَ حَتَّى اُدْرِكَ بِالْحَرَّةِ فَقُتِلَ [ر:۶۴۳۴،۶۴۲۹، وانظر:۴۹۷۰].

[۴۹۷۰] حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِي اَبُو سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ وَسَعِيدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ اَتَى رَجُلٌ مِنْ اَسْلَمَ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ فِي الْمَسْجِدِ فَنَادَاهُ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ اِنَّ الْاٰخِرَ قَدْ زَنَى يَعْنِي نَفْسَهُ فَاَعْرَضَ عَنْهُ فَتَنَحَّى لِشِقِّ وَجْهِهِ الَّذِي اَعْرَضَ قِبَلَهُ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ اِنَّ الْاٰخِرَ قَدْ زَنَى فَاَعْرَضَ عَنْهُ فَتَنَحَّى لِشِقِّ وَجْهِهِ الَّذِي اَعْرَضَ قِبَلَهُ فَقَالَ لَهُ ذٰلِكَ فَاَعْرَضَ عَنْهُ فَتَنَحَّى لَهُ الرَّابِعَةَ فَلَمَّا شَهِدَ عَلَى نَفْسِهِ اَرْبَعَ شَهَادَاتٍ دَعَاهُ فَقَالَ هَلْ بِكَ جُنُونٌ قَالَ لَا فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اذْهَبُوا بِهِ فَارْجُمُوهُ وَكَانَ قَدْ اُحْصِنَ وَعَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِي مَنْ سَمِعَ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ الْاَنْصَارِيَّ قَالَ كُنْتُ فِيمَنْ رَجَمَهُ فَرَجَمْنَاهُ بِالْمُصَلَّى بِالْمَدِينَةِ فَلَمَّا اَذْلَقَتْهُ الْحِجَارَةُ جَمَزَ حَتَّى اَدْرَكْنَاهُ بِالْحَرَّةِ فَرَجَمْنَاهُ حَتَّى مَاتَ [ر:۶۴۳۰،۶۴۲۹،۶۷۴۷، وانظر:۴۹۶۹].

دباب د رومبی حدیث نه دطلاق موسوس عدم وقوع باندې حضرت امام بخاری رحمه الله استدلال کړې دې خکه چه په دې کښې دی چه «ان الله تجاوز عن امتی ماحدثت به انفسها» وسوسه باندې مواخذه نشته دې لهذا که د طلاق وسوسه کوم یو سړی ته رازی نو طلاق نه واقع کیږی. (۳)

دې نه روستو حدیث کښې هم دا واقعه بیان شوې ده چه کومه پورته د عقبه بن عامر رضي الله عنه په

---

۱) .فتح الباری: ۹/۴۹۲).
۲) تغلیق ا لتعلیق: ۴/۴۵۷).
۳) عمدة القاری: ۲۰/۲۵۵).

تعليق كښې تيره شوه چه يوسړي دحضرت نبی کریم ﷺ په خدمت کښې حاضر شو اودزنا اقرار ئې اوکړو،نو حضرت نبی کریم ﷺ ورته اوفرمائيل چه((ابك مجنون))آيا ته مجنون ئې څه ؟.نو هغه اووئيل چه نه،که دهغه مجنون کيدل ثابت شوې وې نوپه هغه به حد نه جاری کيدو(۱)معلوم شو چه دمجنون اعتراف معتبر نه دې لهذا دده طلاق هم واقع نه دې .

## ۱۱=بَاب الْخُلْعِ وَكَيْفَ الطَّلَاقُ فِيهِ

وَقَوْلِ اللَّهِ تَعَالَى: وَلَا يَحِلُّ لَكُمْ أَنْ تَأْخُذُوا مِمَّا آتَيْتُمُوهُنَّ شَيْئًا إِلَّا أَنْ يَخَافَا أَلَّا يُقِيمَا حُدُودَ اللَّهِ إِلَى قَوْلِهِ الظَّالِمُونَ [البقرة:۲۲۹].

وَأَجَازَ عُمَرُ الْخُلْعَ دُونَ السُّلْطَانِ وَأَجَازَ عُثْمَانُ الْخُلْعَ دُونَ عِقَاصِ رَأْسِهَا
وَقَالَ طَاوُسٌ إِلَّا أَنْ يَخَافَا أَلَّا يُقِيمَا حُدُودَ اللَّهِ فِيمَا افْتَرَضَ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا عَلَى صَاحِبِهِ فِي الْعِشْرَةِ وَالصُّحْبَةِ وَلَمْ يَقُلْ قَوْلَ السُّفَهَاءِ لَا يَحِلُّ حَتَّى تَقُولَ لَا أَغْتَسِلُ لَكَ مِنْ جَنَابَةٍ

دا د خلع باب دې،((خُلْع))د((خَلْع))نه ماخوذ دې چه ددې معنی نزع او کوزول دی،ښځه خاوند چونکه ديوبل لباس وی لکه څنګه چه په قران پاك کښې دی چه((هن لباس لكم وانتم لباس لهن))او د خلع په ذريعه دا لباس لره کوزولې شی،ددې وجې دې ته خلع وائی،(۲)

علامه عينی رحمه الله دخپل شيخ په حوالې سره دخلع اصطلاحی تعريف کړې دې((هو فراق الرجل امراته على عوض يحصل له))بعضو دا تعريف کړې دې چه((هو مفارقة الرجل امراته على مال))بعضو فرمائيلی دی چه((هو ازالة الزوجية يعطيه من المال))(۳)

مطلب دادې چه خاوند لره دکوم څيز په عوض کښې پريږدی او دخپل زوجيت نه هغه خارج کړی.دې اصطلاح ته په شرع کښې خلع وئيلې شی.

**دټولونه مخکښې خلع چا کړې وه ؟:** ابو بکر بن دريد ليکلی دی چه په دنيا کښې دټولو نه مخکښې خلع عامر بن طرب دخپلې لورکړې وه،ده دخپلې لورنکاح خپل وراره سره اوکړه ليکن د نکاح نه پس په دواړو کښې جوړښت رانغلو،جينۍ د هلك نه نفرت کولو،چه د دې شکايت خاوند دجينۍ پلار ته اوکړو،پلار ئې اووئيل چه زه به په تاباندې دوه خبرې جمع کوم،ستامال دې هم لاړشی اوستا ښځه دې هم لاړه شی،نوتا چه دې لره څه ورکړل دهغې په بدله کښې بهٔزه تالره ددې نه خلع اوکړم.(۴) په اسلام کښې دټولونه مخکښې حضرت ثابت بن قيس بن شماس رضی الله عنه د هغه دښځې جميله خلع راغلې ده،راتلونکی روايت باب کښې ددې تفصيل رازی.

۱) فتح الباری: ٤/٤٩٣).
۲) ارشادالساری: ١٢/٤٠).
۳) عمدة القاری: ٢٠/٢٦٠).
٤) فتح الباری: ٩/٤٩٤).

**قوله**: کیف الطلاق فیه: خلع کښې دننه طلاق څنګه واقع کیږی،په دې کښې اختلاف دې د آئمه کرامو.

① حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله،حضرت امام مالك رحمه الله او دجمورو علماء کرامو په نیزخلع سره یو طلاق واقع کیږی او دوباره دنوې نکاح په صورت کښې هغه به دده دپاره حلاله شی،د حضرت امام شافعی رحمه الله اصح قول اود حضرت امام احمد بن حنبل رحمه الله یو روایت هم ددې مطابق دې،(۱)

② دظاهریه په نیز خلع د طلاق رجعی په حکم کښې ده،دنوې نکاح نه بغیر خاوند ښځې سره رجوع کولې شی،(۲)

③ دحضرت امام احمد بن حنبل رحمه الله اود امام اسحاق او ابوثور په نیزخلع فسخ نکاح ده.(۳)

④ حضرت امام شافعی رحمه الله نه یو روایت دا هم نقل شوې دې چه خاوند په خلع سره د طلاق اراده اونکړه نو فرقت اوجدائی به نه واقع کیږی. په کتاب الام کښې حضرت امام شافعی رحمه الله ددې تصریح کړې ده،علامه تقی الدین سبکی رحمه الله دې له قوی ګڼړلې دی او محمدبن نصرمروزی فرمائی چه همدا د حضرت امام شافعی رحمه الله آخری قول دې،(۴)

حضرت امام بخاری رحمه الله په ترجمة الباب کښې«وکیف الطلاق فیه»وائی او غالبًا همدې اختلاف طرفته اشاره ده.(۵)

**قوله**: وَقَوْلِ اللَّهِ تَعَالَى: وَلَا يَحِلُّ لَكُمْ أَنْ تَأْخُذُوا مِمَّا آتَيْتُمُوهُنَّ شَيْئًا: ددې عطف «الخلع»باندې دې او«باب»دپاره مضاف الیه دې،دا دسورة بقره د آیت هغه حصه ده چه په کومې کښې د خلع بیان دې،ارشاد دې چه " اوستاسو دپاره حلال نه دی چه (دښځې دپرېښودو په وخت کښې هغوی نه ) څه هم واخلئ،( که هغه اخستې شوې وی )هم دهغه نه دې ولې نه وی،چه کوم تاسو ( په مهر کښې ) دوی ته ورکړې وو مګر ( یو صورت البته حلال دې هغه )دا ( چه(څوك) ښځه خاوند داسې وی چه دواړو ته خطره وی چه هغوی به ( دزوجیت متعلق )دالله ﷻ مقرر شوی ضابطو لره قائم نه کړې شی.

نوداسې صورت کښې مخکښې فرمائی چه«فلا جناح علیهما فیما افتدت به»یعنی په دواړو باندې هیڅ ګناه به نه وی،دهغه مال په اخستوکښې چه کوم ښځه ورکړی او خپل ځان خلاص کړی.

ددې آیت کریمه په بناء باندې دخلع مشروعیت اوجواز باندې اتفاق دی البته مشهور تابعی بکر بن عبدالله دې لره جائز ګڼړی نه چه د ښځې دجدائی په عوض کښې خاوند څه مال

---

۱ ) فتح الباری: ۴۹۵/۹، مختصر اختلاف العلماء للطحاوی : ۴۶۵/۲).
۲ ) اوګورئ المحلی لابن حزم الظاهری،احکام الخلع ،ر قم المسئلة: ۱۹۷۸،۱۰/۲۴۹).
۳ ) المغنی لابن قدامة کتاب الخلع،رقم المسالة : ۵۷۵۵،۷/۲۴۹).
٤ ) فتح الباری: ۴۹۵/۹).
۵ ) فیض الباری: ٤ /۳۱۸).

حاصل كړي،هغه دقران پاك دسورة نساء آيت مبارك«فلا تاخذوا منه شيئا»نه استدلال كوي،اوفرمائي چەسورة بقره آيت منسوخ شوي دې،ليكن ددوی داقول شاذ دې،دسورة نساء يوبل آيت مبارك كښې دی چه«فان طبن لكم عن شيئا منه نفسا فكلوه هنيئا مريئا»چه ددې نه معلوم شو كه ښځه په رضامندئی سره څه وركول غواړی نو ددې اخستل جائز دی او په خلع كښې ښځه په رضامندئی سره وركوی،(۱)

**قوله: وَأَجَازَ عُمَرُ الْخُلْعَ دُونَ السُّلْطَانِ:** حضرت عمرفاروق رضی الله عنه خلع دسلطان نه بغير جائز اوګنړله،دجمهورو هم دا مسلك دې چه په خلع كښې د بادشاه اوقاضي شرط نشته دې،ددوی نه بغيرخلع صحيح كيديشي.

حضرت حسن بصری رحمه الله و ابن سيرين رحمه الله او ابوعبيده رحمه الله فرمائي چه دبادشاه او سلطان نه بغير خلع جائز نه ده .(۲)دا تعليق ابن ابی شيبه رحمه الله موصولاً نقل كړې دې،(۳)

**قوله: وَأَجَازَ عُثْمَانُ الْخُلْعَ دُونَ عِقَاصِ رَأْسِهَا:** «عقاص»د«عقيصة»جمع ده،د ويښتو كمسئ يا هغه تار ته وئيلې شي چه په هغې سره دويښتو كمسئ تړلې شي،(۴) حضرت عثمان رضی الله عنه دويښتو د كمسئ نه علاوه په خلع كښې نور ټول سامان اخستل جائز ګنړی.

په دې كښې اختلاف دې چه خاوند ورت څومره مال وركړې دې دهغې نه زيات دښځې نه په خلع كښې اخستې شي يانه ؟.

دحضرت امام مالك رحمه الله او حضرت امام شافعي رحمه الله په نيزخاوند دخپل وركړې شوی مال نه زيات طلب كولې شي .(۵)

حضرت امام احمد بن حنبل رحمه الله او امام اسحاق رحمه الله فرمائي چه دزيات اخستلو اجازت نشته دې،(۶)

دحنفيانودوه قوله دی،يو د جواز اوبل د كراهت په دواړو كښې تطبيق څه داسې كيديشي كه نشوز اونافرمانه ښځې دطرفنه وی نو زيات مال اخستلې شي اوكه اضرار اوايذاء د سړی د طرفنه وی اوددې په بناء باندې دخلع نوبت راغلو نوپه دې صورت كښې زيات مال مكروه دی،(۷)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه حضرت عثمان رضی الله عنه دې تعليق لره موني په امالی ابن قاسم كښې موصولاً نقل كړې دې،(۸)

---

۱) (۴۹۵/۹).
۲) فتح الباری: ۴۹۷/۹. اوګورئ مختصر اختلاف العلماء للطحاوی: ۴۶۵/۲، ۴۶۶).
۳) عمدة القاری: ۲۶۱/۲۰).
۴) عمدة القاری: ۲۶۱/۲۰).
۵) عمدة القاری: ۲۶۲/۲۰ . اوجز المسالک : ۱۰۴/۱۰.ماجاء فی الخلع).
۶) عمدة القاری: ۲۶۲/۲۰).
۷) اوګورئ فتح التقدير: ۱۹۴/۴.باب الخلع واوجز المسالک : ۱۰۵/۱۰).
۸) فتح الباری: ۴۹۶/۹).

قوله: وَقَالَ طَاوُسٌ إِلَّا أَنْ يَخَافَا أَلَّا يُقِيمَا حُدُودَ اللّٰهِ فِيمَا افْتَرَضَ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا عَلَى صَاحِبِهِ فِي الْعِشْرَةِ: حضرت طاوس رحمه الله فرمائى چه د قران پاك آيت كښې ((حدودالله)) نه هغه حدود مراد دى چه كوم دښځې خاوند ترمينځه وى، په معاشرت او مصاحبت كښې الله تعالىٰ دوى كښې هر يو دپاره په بل باندې مقرر كړې دې.

قوله: وَلَمْ يَقُلْ قَوْلَ السُّفَهَاءِ لَا يَحِلُّ حَتّٰى تَقُولَ لَا أَغْتَسِلُ لَكَ مِنْ جَنَابَةٍ: دا دعبدالله بن طاوس مقوله ده، هغه فرمائى چه طاوس داحمقو داقول نه دې اختيار كړې چه خلع تر هغه وخته پوره حلال نه ده تركومې پورې چه دا اونه وائى چه خه به تاسره وطى نه كوم، په دې خائې كښې په بخارى كښې اختصار دې، عبدالرزاق دا تعليق موصولاً نقل كړې دې، (۱) ددې نه واضح كيږى چه د ابن طاوس مقوله ده.

په دې كښې په حضرت حسن بصرى رحمه الله او امام شعبى رحمه الله باندې تعريض كړې دې، ددوى دواړو مذهب دادې چه تركومې پورې ښځه دنافرمانئى او جماع نه انكار اونكړى تر هغه وخته پورې خلع كول درست نه دى، ((لايحل حتى يقول....)) يعنى خلع حلال نه ده تر دې پورې چه ښځه اووائى چه ((لااغتسل لك من جنابة)) دا دجماع نه كنايه ده يعنى ښځه اووائى چه خه ستا د صحبت كولو دپاره تياره نه يم، نوبيا خلع حلاليږى (۲) ابن طاوس دا رد كړې دې او فرمائى چه داد طاوس مذهب نه دې، دجماع دانكار كولو نه باوجود كه د دواړو په مينځ كښې معاشرت او استوګنې حوالې سره ديو بل حقوق ادا كول او مزاجونو كښې مناسبت بالكل پاتې نشوه نو داسې صورت كښې هم خلع كولې شى

[۴۹۷۱] حَدَّثَنَا أَزْهَرُ بْنُ جَمِيلٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ الثَّقَفِيُّ حَدَّثَنَا خَالِدٌ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ امْرَأَةَ ثَابِتِ بْنِ قَيْسٍ أَتَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ يَا رَسُولَ اللّٰهِ ثَابِتُ بْنُ قَيْسٍ مَا أَعْتِبُ عَلَيْهِ فِي خُلُقٍ وَلَا دِينٍ وَلٰكِنِّي أَكْرَهُ الْكُفْرَ فِي الْإِسْلَامِ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَتَرُدِّينَ عَلَيْهِ حَدِيقَتَهُ قَالَتْ نَعَمْ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اقْبَلِ الْحَدِيقَةَ وَطَلِّقْهَا تَطْلِيقَةً قَالَ أَبُو عَبْدِ اللّٰهِ لَا يُتَابَعُ فِيهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ

حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمائى چه د ثابت بن قيس بى بى د حضرت نبى عليه السلام په خدمت كښې حاضره شوه او عرض ئې اوكړو چه يارسول الله ﷺ چه خه د ثابت بن قيس د خه خراب عادت يا ديندارئ او ديانتدارئى د كمئ په وجه خفه نه يم ليكن خه په حالت د اسلام كښې ناشكرئى نه كول غواړم، حضرت نبى عليه السلام اوفرمائيل چه آيا ته هغه باغ واپس كولو دپاره تياره ئې؟ هغې اووئيل چه آو، حضرت نبى عليه السلام ثابت بن قيس ته اوفرمائيل چه ددې نه باغ واخله او دې ته طلاق وركړه.

۱) فتح البارى: ۴۹۷/۹).
۲) فتح البارى: ۴۹۷/۹).

**قوله:** امراة ثابت بن قیس: حضرت ثابت بن قیس بن شماس ﷜ خطیب الانصار اومشهور صحابی دې،الله ﷺ هغه ته اوچت اوستر مقام ورکړې وو،ددوی بی بی دوی سره خلع کړې وه څکه چه حضرت ثابت شکل وصورت لحاظ سره بالکل حسین نه وو. ددې ښځې نوم دباب آخری روایت کښې«جمیله» راغلې دې،دا جمیله بنت عبدالله بن ابی بن سلول یعنی د راس المنافقین لور ده.

د دار قطنی په روایت کښې ددې نوم زینب راغلې دې،کیدیشی چه دیو ښځې دوه نومونه وی یا یونوم او بل لقب وی،(۱)

په دې ځائې کښې د حضرت امام بخاری ﷫ په بل روایت کښې دی چه«ان اخت عبدالله بن ابی» په دې کښې دعبدالله نه راس المنافقین مراد نه دې بلکه دده څوئې عبدالله مراد دې چه کوم مخلص صحابی وو،په دې ځائې کښې ئې نسبت نیکه طرفته اوشو،اصل عبارت دادې چه«ان اخت عبدالله بن عبدالله بن ابی»حاصل دادې چه جمیله،د راس المنافقین عبدالله بن ابی خور نه ده بلکه دده لور او دعبدالله بن عبدالله بن ابی خور ده،او د بخاری په روایت کښې دعبدالله بن ابی نه راس المنافقین مراد نه دې بلکه دده څوئې مراد دې چه کوم مخلص صحابی وو،لیکن په دې ځائې کښې ددوی نسبت ددوی نیکه طرفته اوشو،(۲)

ابن الاثیر ﷫ او امام نووی ﷫ فرمائی چه دا دراس المنافقین خوروه،لور نه وه،لکه څنګه چه د بخاری په روایت کښې دی(۳)لیکن د حافظ ابن حجر ﷫ رجحان دې طرفته دې چه کوم پورته ذکر کړو.

بعضو دې لره په تعدد واقعاتو باندې محمول کړې دې او وائی چه د راس المنافقین خور او لور دواړه د ثابت بن قیس په عقد کښې وې،خو په دې باندې څه کلك دلیل نشته دې،اصل عدم تعدد دې . (۴)

بعضو روایتونو کښې ددې ښځې نوم حبیبه بنت بنت سهل راغلې دې،حافظ ابن حجر ﷫ فرمانیلی دی چه ظاهر دادی چه جمیله بنت عبدالله او حبیبه بنت سهل د دواړو بیل بیل واقعات دی.اودواړو سره دخلع واقعه راپیښه شوې وه،باقی دجمیله په نوم او نسب کښې چه کوم اختلاف دې هغه په تعدد واقعات باندې محمول کول خلاف سیاق دی نو هغه لیکی چه:

**«قلت والذی یظهر انهما قصتان وقعتا لامراتین لشهرة الخبر وصحة الطرفین واختلاف السیاقین بخلاف ماوقع من الاختلاف فی تسمیة جمیلة ونسبها فان سیاق قصتها متقارب فامکن رد الاختلاف فیه الی الوفاق»(۵)**

---

۱) فتح الباری: ۴۹۸/۹).
۲) فتح الباری: ۴۹۸/۹).
۳) فتح الباری: ۴۹۸/۹).
۴) فتح الباری: ۴۹۸/۹).
۵) فتح الباری: ۴۹۹/۹).

**قوله:** ولكن اكره الكفر في الاسلام: ددې جملې نه څلور مطلبونه حاصليدې شي.

① دکفر نه مراد ناشکري اوکفران عشير دې اومطلب دادې چه دا خو څما سره ښه اخلاق اوحسن سلوك سره ژوند کوی او څه دوی طرفته مائل نه يم، اعراض او نفرت کوم، نو دا ناشکري دمسلمانيدو نه پس ماته خوښه نه ده، لهذا څه ده سره اوسيدل نه غواړم چه ددې ناشکرئي ارتکاب اونشي.

② دويم مطلب داکيدېشي که دې ما پرې نږدی نو دنفرت دشدت په وجه به نکاح فسخ کولو دپاره ماته په کفر او ارتداد کښې داخته کيدو خطره ده او داسلام راوړو نه پس کفر اختيارول ماته خوښ نه دی ددې وجې دې دې ما پريږدی.

③ علامه طيبی رحمه الله فرمائی چه دکفر نه مراد نافرمانی او دنفرت اظهار دې چه داسلامی احکامو خلاف دې، داسلام د تقاضو خلاف رويه باندې دکفر اطلاق اوکړو او مطلب دادې چه داسلام راوړو نه پس دده تعليمات خلاف عمل کول ماته خوښ نه دی او چونکه څما دده سره مناسبت او محبت نشته دې ددې وجې د اسلامی حکم برخلاف نافرمانی اودنفرت کولو ارتکاب ماته انديښنه ده، لهذا ما دده نه بيله کړه.

④ اودا هم احتمال دې چه په دې ځائې کښې مضاف محذوف اومنلې شي «ای اکره لوازم الکفر» يعنی اسلام کښې دکفر لوازم (نافرمانئ ،نفرت اوجنګ) ماته خوښ نه دی، ددې وجې مادده نه جدا کړئي. (۱)

**قوله:** اقبل الحديقة وطلقها تطليقة: حضرت امام احمد بن حنبل رحمه الله ددې جملې نه استدلال کوی اوفرمائی چه خلع طلاق نه دې بلکه فسخ دنکاح ده، ددې وجې، که خلع طلاق وې نو حضرت نبی کريم ﷺ به «طلقها تطليقة» نه فرمائيل.

ليکن ددې جملې نه دخلع فسخ نکاح باندې استدلال کول درست نه دی ځکه چه ددې نه زيات داثابت دی چه دا طلاق علی المال دې، او مطلب دادې چه ته باغ قبول کړه او طلاق ورکړه نودا دطلاق علی المال صورت جوړ شو.

محل اختلاف دادې که چا خلع اوکړه اود طلاق لفظ ئې استعمال نکړونو طلاق به واقع شی که نه اومذکوره جملې نه ددې متعلق څه استدلال نشی کولې. (۲)

**قوله:** قال ابوعبدالله لا يتابع فيه عن ابن عباس: حضرت امام بخاری رحمه الله فرمائی چه په دې حديث کښې ددوی دشيخ ازهر بن جميل دحضرت ابن عباس رضی الله عنه باره کښې متابعت نه دې کړې شوې، يعنی نورو حضراتو په سند کښې دحضرت ابن عباس رضی الله عنه ذکر نه دې کړې، بلکه عکرمه نه ئې دا مرسلاً نقل کړې دې نو دباب په دويم روايت کښې چه په هغې کښې د حضرت امام بخاری رحمه الله شيخ اسحاق واسطی دې عکرمه نه مرسلاً منقول

---

۱) مذکوره تفصيل دپاره اوګورئ فتح الباری: ۵۰۰/۹، وعمدة القاری: ۲۶۳/۲۰).

۲) فتح الباری: ۵۰۱/۹، و اوجز المسالک، کتاب الطلاق، باب الخلع : ۱۰/۱۰۰).

دې، حاصل دادې چه په دې حديث كښې دخالد حذا چه كوم طريق دې هغه صرف ازهر بن جميل نه موصولاً منقول دې باقى حضراتو ددوى طريق سره داحديث مرسلاً نقل كوى البته دويم طريق د«ايوب عن عكرمة»دې هغه امام په دې خائې كښې په څلورم نمبر باندې موصولاً نقل كړې دې.

[ ۴۹۷۲] حَدَّثَنَا اسْحَاقُ الْوَاسِطِيُّ حَدَّثَنَا خَالِدٌ عَنْ خَالِدٍ الْحَذَّاءِ عَنْ عِكْرِمَةَ اَنَّ اُخْتَ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اُبَيٍّ بِهٰذَا وَقَالَ تَرُدِّيْنَ حَدِيْقَتَهُ قَالَتْ نَعَمْ فَرَدَّتْهَا وَاَمَرَهُ يُطَلِّقْهَا وَقَالَ اِبْرَاهِيْمُ بْنُ طَهْمَانَ عَنْ خَالِدٍ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَطَلِّقْهَا وَعَنْ اَيُّوْبَ بْنِ اَبِيْ تَمِيْمَةَ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّهُ قَالَ جَاءَتْ امْرَاَةُ ثَابِتِ بْنِ قَيْسٍ اِلَى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنِّيْ لَا اَعْتِبُ عَلٰى ثَابِتٍ فِيْ دِيْنٍ وَلَا خُلُقٍ وَلٰكِنِّيْ لَا اُطِيْقُهُ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَتَرُدِّيْنَ عَلَيْهِ حَدِيْقَتَهُ قَالَتْ نَعَمْ

[ ۴۹۷۳] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ الْمُبَارَكِ الْمُخَرِّمِيُّ حَدَّثَنَا قُرَادٌ اَبُوْ نُوْحٍ حَدَّثَنَا جَرِيْرُ بْنُ حَازِمٍ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ جَاءَتْ امْرَاَةُ ثَابِتِ بْنِ قَيْسِ بْنِ شَمَّاسٍ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مَا اَنْقِمُ عَلٰى ثَابِتٍ فِيْ دِيْنٍ وَلَا خُلُقٍ اِلَّا اَنِّيْ اَخَافُ الْكُفْرَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَتَرُدِّيْنَ عَلَيْهِ حَدِيْقَتَهُ فَقَالَتْ نَعَمْ فَرَدَّتْ عَلَيْهِ وَاَمَرَهُ فَفَارَقَهَا

حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ عِكْرِمَةَ اَنَّ جَمِيْلَةَ فَذَكَرَ الْحَدِيْثَ

**قوله:** وقال ابراهيم بن طهمان عن خالد عن عكرمة عن النبى ﷺ: دابراهيم بن طهمان دوه شيوخ دى، يو خالد حذا او دويم ايوب بن ابى تميمه، خالد حذا نه خودا حديث مرسلاً نقل كوى. البته ايوب نه هغه دا موصولاً نقل كوى، حضرت امام بخارى رحمه الله په دې خائې كښې دواړه ذكر كړل.

**قوله:** حدثنا قراد: قراد د حضرت امام بخارى رحمه الله شيخ الشيخ دې، دا ددوى لقب دې. ددوى نوم عبدالرحمان بن غزوان دې اوابونوح ئې كنيت دې، داثقه دې اوجليل القدر محدثينوكښې دې ،البته ليث بن سعد نه هغوى يو روايت نقل كوى، په دې روايت باندې محدثينو كلام كړې دې. صحيح بخارى كښې ددوى صرف دايوروايت دې، د حضرت امام بخارى رحمه الله نه علاوه دامام ابو داود رحمه الله امام ترمذى رحمه الله او امام نسائى رحمه الله هم ددوى نه روايتونه كړى دى. ددوى وفات په كال ۲۰۷ هجرئى كښې اوشو، (۱)

---

۱) فتح البارى: ۵۰۱/۹، وعمدة القارى: ۲۶۴/۲۰، وتهذيب الكمال: ۳۳۸/۱۷، رقم الحديث: ۳۹۲۷).

## ١٢= بَابُ الشِّقَاقِ وَهَلْ يُشِيرُ بِالْخُلْعِ عِنْدَ الضَّرُورَةِ

وَقَوْلِهِ تَعَالَى: ﴿وَإِنْ خِفْتُمْ شِقَاقَ بَيْنِهِمَا فَابْعَثُوا حَكَمًا مِنْ أَهْلِهِ وَحَكَمًا مِنْ أَهْلِهَا إِلَى قَوْلِهِ خَبِيرًا﴾ (النساء:٣٥).

[٤٩٧٣] حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ عَنْ الْمِسْوَرِ بْنِ مَخْرَمَةَ الزُّهْرِيِّ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ إِنَّ بَنِي الْمُغِيرَةِ اسْتَأْذَنُوا فِي أَنْ يَنْكِحَ عَلِيٌّ ابْنَتَهُمْ فَلَا آذَنُ [ر:٨٨٣].

داباب شقاق يعنى اختلاف بين الزوجين په بيان كښې دې ،مخكښې فرمائى چه((وهل يشير بالخلع عندالضرورة)) او آيا دضرورت په وخت كښې حاكم او ولى دخلع مشوره وركولې شى، بعضې نسخوكښې((....عند الضرر))دې يعنى په خپل مينځ كښې معاشرت كښې د زوجينو په مينځ كښې ضرر لاحق كيږى نو داسې صورت كښې د خلع مشوره وركولې شى.

د ((يشير)) فاعل حاكم يا ولى محذوف دې،مخكښې په ترجمة الباب كښې دسورت نساء آيت نقل كوى الله ﷻ حكامو ته خطاب كوى او فرمائى كه " ستاسودزوجينو په مينځ كښې (داسې )اختلافات انديښنه وى(چه تاسو به هغه په خپل مينځ كښې صحيح نه كړئى شئ) نو يو حكم(منصف ) سړى د خاندان نه او يو حكم د ښځې دخاندان اوليږئى كه هغوى دواړه اصلاح غواړى نو الله ﷻ به د زوجينو په مينځ كښې اتفاق اوفرمائى.

دزوجينو په رشته دارو كښې حكم اومصنف جوړولو فائده دا ده چه اقاربو ته به ددوى حالات هم معلوم وى،او ددوى نه به دخيرخواهئى اميد هم وى،كه داقاربو نه څوك نه ملاويږى نو بيا دې په څه بل مناسب او ددې كار دپاره لائق سړې اوټاكى،كه هغه دواړو حكم او منصف اصلاح بين الزوجين كښې اصلاح اوغواړى نو الله ﷻ به ددوى دحسن نيت اوحسن سعى په وجه دزوجينو په مينځ كښې موافقت راولى.

دا دواړه منصفان كه په څه خبره باندې متفق شونو هغه خبره به نافذ العمل وى،ليكن كه دواړو دښځې خاوند په جدائى باندې اتفاق اوكړونو د حضرت امام مالك رحمه الله په نيزجدائى به واقع شى،ائمه ثلاثه فرمائى چه جدائى به واقع نشى،ځكه چه دطلاق اختيار خاوند لره دې،دده د رضامندئى او اجازت نه بغيرجدائى به نه وى،(١)

**دترجمة الباب سره دحديث مناسبت:** د باب لاندې حضرت امام بخارى رحمه الله چه كوم حديث نقل كړې دې،هغه په كتاب النكاح كښې چه حضرت نبى كريم ﷺ خطبه اوفرمائيله او وې فرمائيل چه بنى مغيره دخپلې لور د حضرت على رضى الله عنه سره د نكاح كولو څما نه اجازت اخستې وو،ليكن ما هغوئ ته ورنكړو.

علامه كرمانى رحمه الله فرمائى چه داحديث په دې باب كښې د ذكر كولو وجه داده چه حضرت فاطمه رضى الله عنها د حضرت على رضى الله عنه په دې نكاح باندې راضى نه وه،كه حضرت على رضى الله عنه نكاح

---

١) فتح البارى: ٩/٥٠٤،٥٠٥).

كړي وي نو د دواړو په مينځ كښې بهٔ دشقاق او اختلاف انديښنه وه، حضرت نبى كريم ﷺ حضرت على رضي الله عنه د نكاح كولو نه منع كړو اود دواړو په مينځ كښې ئې متوقع اختلاف ختم كړو، نو علامه كرمانى رحمه الله ليكى چه :

((توجه مطابقة الترجمة من كون فاطمة ماكانت ترضى بذالك فكان الشقاق بينهما وبين على متوقعا فاراد ﷺ دفع وقوعه بمنع على من ذالك بطريق الايماء والاشارة))(١)

حافظ ابن حجر رحمه الله دحديث او ترجمة الباب مناسبت تعريف اوكړو او وې فرمائيل چه ((وهى مناسبة جيدة))(٢)

## ١٣= بَاب لَا يَكُونُ بَيْعُ الْأَمَةِ طَلَاقًا

[٤٩٧٥] حَدَّثَنَا اسْمَاعِيلُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنْ رَبِيعَةَ بْنِ ابِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ الْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ كَانَ فِي بَرِيرَةَ ثَلَاثُ سُنَنٍ احْدَى السُّنَنِ انَّهَا اعْتِقَتْ فَخُيِّرَتْ فِي زَوْجِهَا وَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْوَلَاءُ لِمَنْ اعْتَقَ وَدَخَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالْبُرْمَةُ تَفُورُ بِلَحْمٍ فَقُرِّبَ الَيْهِ خُبْزٌ وَادْمٌ مِنْ ادْمِ الْبَيْتِ فَقَالَ الَمْ ارَ الْبُرْمَةَ فِيهَا لَحْمٌ قَالُوا بَلَى وَلَكِنْ ذَلِكَ لَحْمٌ تُصُدِّقَ بِهِ عَلَى بَرِيرَةَ وَانْتَ لَا تَاكُلُ الصَّدَقَةَ قَالَ عَلَيْهَا صَدَقَةٌ وَلَنَا هَدِيَّةٌ [ر:٤٨٠٩].

واده شوې وينځه كه مالك خرڅه كړي نو دده دا بيع به طلاق شميرلې كيږى كه نه، په دې كښې اختلاف دې، دجمهور علماء مسلك دادې چه خرڅولو سره به طلاق واقع نه وى، حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه او حضرت ابى بن كعب رضي الله عنه نه روايت دې چه بيع سره به طلاق واقع وى، حضرت امام بخارى رحمه الله د جمهورو تائيد كړې دې، روايت باب دجمهورودليل دې، په دې كښې د حضرت بريره رضي الله عنها واقعه ده. كوم چه حضرت عائشه رضي الله عنها اخستې وه او آزادكړې وه، اوهغې ته ئې د حضرت مغيث په زوجيت كښې د اوسيدو او نه اوسيدو اختيار وركړې وو، دا دخيار حاصلول ددې خبرې دليل دې چه بيع سره طلاق نه واقع كيږى، كه نفس بيع سره طلاق واقع كيدنى نو بيا په زوجيت كښې د اوسيدو اونه اوسيدو اختيار چرته حاصليږى.(٣)

((برمة)) كټوې ته وائى.

---

١) شرح الكرمانى : ٢٠٠/١٩).
٢) فتح البارى: ٥٠٥/٩ ).
٣) مذكوره تفصيل دپاره اوګورئ عمدة القارى: ٢٦٦/٢٠، وفتح البارى: ٥٠٥/٩. دلته دپاكستان په عدالت كښې عائلى قوانينو كښې دخلع متعلق دقران وسنت خلاف يو فيصله باندې تنبيه مناسب معلوميږى. په كال ١٩٦٧ء كښې دپاكستان سپريم كورټ په رومبى ځل دا فيصله وركړه كه ښځه په عدالت كښې دخلع درخواست وركړى او عدالت دا محسوس كړى چه د فريقينو په مينځ كښې خوشګوار تعلقات قائميدل مشكل دى نو هغه د خاوند درضامندئ نه بغير هم خلع كولې شى او نكاح فسخ كولې شى.
دسپريم كورټ دا فيصله داسلامى شريعت بالكل خلاف وه ځكه چه دقران وسنت واضح حكم دادې چه خلع د ښځې اوخاوند يو دوه اړخيزه معاهده ده چه دا د فريقينو...... ابقيه حاشيه په بل مخ......

...دتیرمخ باقی حاشیه] په رضامندنی سره انجام ته رسي،او زوجینو نه هیڅ یو فریق په دې باندې نه مجبوره کوی بل فریق،نو دځوارلسوسو کالو راسې دفقهاء امت په دې باندې اجماع ده چه دخلع دپاره دواړو فریقو رضامندی ضروری ده،او هیڅ یو فریق یو طرفیزه خلع نشی کولې،د ۱۹۶۷ء نه مخکښې د پاکستان په ټولو عدالتونو هم ددې فیصلې مطابق فیصلې کیدې.
د سپریم کورټ د ۱۹۶۷ء دفیصلې شاته چه کومه ذهنیت کارفرما دې،هغه په حقیقت کښې دادې چه د مغربی ملکونو په تقلید کښې دلته هم ښځې ته دطلاق اختیار ورکړې شی، البته عدالت دمسلمانانو سره دشرم حضوری په خاطر ددې طلاق نوم نې صرف خلع اینودې دې،ګنی عملی طور ددې مطلب هم دادې چه ښځه کله غواړی نو خپل خاوند ته به طلاق ورکړې اوجدا به شی .
چه کوم سړی په مسلمانه کورنۍ کښې سترګې غړولې وی او ددې حقیقت نه واقف وی چه الله ﷻ دطلاق اختیار حق صرف سړی ته ورکړې دې ښځې ته نه.البته که ښځه دڅه خاص مجبورنی له کبله خاوند سره اوسیدل نه غواړی نو (لکه سړې پاګل وی،یا مفقود الخبر وی،یادنان نفقې ورکولو نه منکر وی،یا نامرد وی )نو ددې دپاره دعدالت په ذریعه دنکاح فسخ کولو یو خاص طریقه اسلام مقرر کړې ده،لیکن ترکومې چه دخلع تعلق دې نودا شرعی اعتبار سره په هغه صورت کښې کولې شي چه کله ښځه خاوند دواړه راضي وی،یو طرفیزه ښځې ته داحق حاصل نه دې چه کله هغه اوغواړی دعدالت نه دې پروانه واخلی اودخاوند نه دې جدا شی،د طلاق ورکول او د نکاح ختمولو اختیار قران پاک صرف سړی ته ورکړې دې،قران پاک دخاوند په باره کښې په سورة بقره کښې په آیت ۲۳ کښې فرمائیلی دی چه :بیده عقدة النکاح هم دده په لاس کښې د نکاح غوټه ده.
ددې نه علاوه په پوره قران پاک کښې د طلاق ورکولو تذکره باربار رازی،اوهر ځائې ددې نسبت هم سړی طرفته شوې دې،دښځې د طلاق ورکولو چرته هم ذکر نشته دې،او هم داشان دحضرت نبی کریم ﷺ واضح ارشاد دې چه :((الطلاق بالرجال والعدة بالنساء))
(دطلاق اختیار سړی ته دې او دعدت په شمیر کښې دښځو قول معتبر دې)
هم داشان چه په کوم آیت کښې قران پاک د خلع ذکرکړې دې په هغه ځائې کښې ددې خبرې صراحت موجود دې چه خلع دزوجین په خپلو کښې درضامندنی سره منعقد کولې شی .هیڅ یو فریق په دې باندې مجبورولې نشی،د خلع په آیت مبارک کښې ارشاد دې چه :
ولاتاخذوا مما اتیتموهن شیئا الا ان یخافا الا یقیما حدود الله:( اوتاسو چه ښځو ته کوم مهر ورکړې دې په هغې کښې هیڅ حصه مه اخلی،مګر دا چه ښځې خاوند دواړه ته دا خطره وی چه هغوی به د الله ﷻ حدودو قائم اونه ساتلې شی).
دلته دا واضح کړې شوی دی چه خلع صرف په هغه صورت کښې کیدیشي چه کله ښځه خاوند په دې باندې متفق وی چه هغوی به نکاح باقی اوساتی اودالله ﷻ حدود به قائم اونه ساتلې شی،نو ددې نه فوراً پس ارشاد دې چه :
فان خفتم الا یقیما حدود الله فلا جناح علیهما فیما افتدت به:( نو که تاسو ته اندیښنه وی چه زوجین به دالله ﷻ حدود قائم نه کړې شی نو په دواړو باندې په دې مال کښې څه حرج نشته دې چه کوم ښځه د فدیې په طور ورکړی او رهائی حاصله کړی)
دلته دا پوهیدل پکار دی چه په خلع کښې دطرفینو رضامندۍ دضروری نه کیدل ددې آیت مبارک نه ثابتولو کوشش کیږی او ونیلې کیږی چه په دې آیت کښې حکامو ته خطاب کړې شوې دې .لهذا د خلع دانعقاد انحصار دحاکم په فیصله باندې دې نه دطرفینو په رضامندنی باندې،حالانکه په آیت کښې موجود دی((فلا جناح علیهما)) (په دې دواړو باندې څه حرج نشته )الفاظ او داشان دآیت په شروع کښې الفاظ((الا ان یخافا الا یقیما حدود الله))صراحتاً وائی چه د خلع دمنعقد کیدو دپاره د دواړو فریقو رضامندی ضروری ده.مګر دا چه ښځې خاوند دواړو ته دا اندیښنه وی چه هغوی به دالله ﷻ حدود لره قائم نه کړې شی.
.....[بقیه حاشیه په بل مخ......

## ۱۴=بَاب خِيَارِ الْأَمَةِ تَحْتَ الْعَبْدِ

[۴۹۷۶] حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ وَهَمَّامٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ رَأَيْتُهُ عَبْدًا يَعْنِي زَوْجَ بَرِيرَةَ

[۴۹۷۷] حَدَّثَنَا عَبْدُ الْأَعْلَى بْنُ حَمَّادٍ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ حَدَّثَنَا أَيُّوبُ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ ذَاكَ مُغِيثٌ عَبْدُ بَنِي فُلَانٍ يَعْنِي زَوْجَ بَرِيرَةَ كَأَنِّي أَنْظُرُ إِلَيْهِ يَتْبَعُهَا فِي سِكَكِ الْمَدِينَةِ يَبْكِي عَلَيْهَا

[۴۹۷۸] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ عَنْ أَيُّوبَ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ كَانَ زَوْجُ بَرِيرَةَ عَبْدًا أَسْوَدَ يُقَالُ لَهُ مُغِيثٌ عَبْدًا لِبَنِي فُلَانٍ كَأَنِّي

---

...دتيرمخ باقى حاشيه] په دې سلسله كښې د صحيح بخارى د ترجمة الباب ددې روايت استدلال كولې شي،حالانكه د يومعمولي پوهې والا سړى ددې روايت په دې پوهيدلې شي چه حضرت نبى كريم ﷺ په دې موقع باندې پخپله نكاح فسخ نه كړه بلكه حضرت ثابت بن قيس ته ئې د طلاق وركولو مشوره وركړه،نو هغوى هم دا مشوره قبوله كړه . دنسائي په روايت كښې دى چه حضرت ثابت بن قيس رضی الله عنه ته ئې اوفرمائيل چه :خذالذى لها عليك وخل سبيلها قال نعم:( چه كوم په تا باندې دهغې واجب وو هغه واخله اوهغه پريږده،حضرت ثابت بن قيس رضی الله عنه اوفرمائيل چه ښه ).(۳)

دا الفاظ پوره صراحت سره وائى چه دا معامله د حضرت ثابت بن قيس رضی الله عنه رضامندئى سره شوې وه. كه صرف د ښځې په درخواست باندې دخاوند درضامندئى نه بغير خلع كيديشوې نو حضرت نبى كريم ﷺ به پخپله نكاح فسخ كړې وې،نو امام ابوبكر جصاص رازى رحمه الله په دې واقعه باندې تبصره كوى او ليكى چه:

"كه دخلع سلطان ته حاصل وې،كه زوجينو غوښتلې يا ئې نه غوښتلې نو حضرت نبى كريم به ددې دواړو نه به ئې سوال نه كولو او خاوند ته به ئې دا نه فرمائيل چه ته دې سره خلع اوكړه بلكه پخپله به ئې خلع كړې وې او هغه ښځه به ئې جدا كړې وې،او خاوند ته به ئې دهغه باغ واپس كړې وې،كه دواړو انكار كولې يا په هغوى كښې يو انكار كولې،لكه څنګه چه په لعان كښې د فسخ نكاح اختيار حاكم ته وى نو هغه ملاعن ( خاوند ) ته دا نه وائى چه خپله ښځه پريږده بلكه پخپله تفريق راولى" .(۳)

لهذا ددې روايت باب نه مدعا نه صرف دا چه تعلق نشته بلكه دا روايت صراحتًا ددې ترديد كوى.

حقيقت دا دې چه مغرب په نن وخت دښځو دآزادئى حوالې سره كومه منصوبه روانه كړې ده لا ېر ملكونه ددې دهوكې نعرې په وجه په دام كښې راګير شوى دى او دقانون سازئ په وخت كښې د اسلام بنيادى اوفطرى تعليمات لره هم نظر انداز كړې شوى دى،اوس اوس دمصر حكومت ښځو ته د طلاق داختيار وركولو قانون جوړ كړې دې چه دسړو په شان ښځو ته هم دا اختيار دې چه كله هغوى غوارې نو سړو ته دې طلاق وركړى او جدائي دې حاصله كړى.د اسلام فطرى تعليمات اوهميشګير صداقتونو برخلاف داشان قوانينو كښې كه انسانى معاشرې دپاره د ښه والې او اصلاح اړخ موجود وې نو نن به دمغربى ژوند خاندانى معاشره نه تباه كيدلې،دمغرب فيملى نظام چه څنګه تباه وبرباد دې،مغربى اقوامو دپاره دا دتولونه لويه الميه ده،او دهغه خاني دانشورانو اوس اسلامى تعليماتو طرفته ددې دحل دپاره سترګې غړولې دى .ليكن دمغربى تهذيب د پرق پروق له كبله او ددې نه متاثره مسلمان ملكونو حكمران او قانوندان حضرات په نظر كښې تراوسه پورې دا حقيقت پټ دې (فالى الله المشتكى اللهم ارنا الحق حقا وارزقنا اتباعه وارنا الباطل باطلا وارزقنا اجتنابه».

انْظُرُ إِلَيْهِ يَطُوفُ وَرَاءَهَا فِي سِكَكِ الْمَدِينَةِ [ر:٤٩٧٩].

**مسئله خيار عتق:** واده شوې وينځه كه آزاده كړې شى اوددې خاوندغلام وى نو بالاتفاق داسې ونيځې ته به خيار عتق حاصل وى، يعنى هغې ته به خپل خاوند سره داوسيدو اونه اوسيدو اختيار حاصل وى . ليكن كه ددې خاوند آزاد دې نو دې ته به خيار عتق حاصل وى كه نه، په دې كښې اختلاف دې.

دائمه ثلاثه په نيز دې ته به خيار عتق حاصل نه وى، د حضرت امام بخارى رحمه الله هم د مسلك دې، نوهغوى د " خيار الامة تحت العبد " ترجمه كوى اودې خبرې طرفته اشاره كوى چه اختيار به په هغه وخت كښې حاصل وى چه كله ددې خاوند غلام وى، مفهوم مخالف دادې كه خاوند آزادوى نو اختيار به نه وى (١)

دحضرات حنفيه په نيز دې ته به خيار عتق حاصل وى، د دواړو فريقو استدلال دحضرت بريره رضي الله عنها واقعه نه دې حضرت بريره رضي الله عنها ته آزادئى نه پس بالاتفاق خيارعتق ملاؤ شوې وو، اوهغوى دخپل سابقه خاوند سره دنه اوسيدو فيصله كړې وه .دحضرت بريره رضي الله عنها د آزادئى په وخت كښې ددې خاوند حضرت مغيث باره كښې دوه قسمه روايتونه دى. بعضو روايتونو كښې دى چه هغه وخت كښې هغه آزاد وواوهم دا روايت دحنفيه مستدل دې اوبعضو كښې دى چه هغه غلام وو، آئمه ثلاثه دې دويم روايت ته ترجيح وركړې ده، ليكن دا روايت دهغوى دپاره دليل نه شى جوړيدې ځكه كه دا روايت تسليم كړې شى او اووئيلې شى چه په هغه وخت كښې هغه غلام وو نو دې نه د خيار الامة تحت العبد مسئله ثابت شوه چه متفق عليه ده. د خيار الامته تحت الحر په نفى باندې ددې روايتونو نه استدلال نشى كولې، (٢) په هغه وخت كښې د حضرت مغيث د غلام يا آزادئ متعلق اهم روايتونه دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما او حضرت عائشه رضي الله عنها نه منقول دى.

دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما په روايت كښې هيڅ اختلاف نشته دې، (٣) په دې كښې د حضرت مغيث دزوج بريره دغلام كيدوتصريح ده. ائمه ثلاثه هم دې روايتونو ته ترجيح وركوى، حضرت امام بخارى رحمه الله هم په دې باب كښې صرف دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما روايت نقل كړې دې .

دحضرت عائشه رضي الله عنها په روايت كښې اختلاف دې، دهغوى نه درې حضرات روايتونه نقل كوى . ① عروه ② قاسم بن محمد ③ اسود. په دې دريو واړو كښې عروه او قاسم د دواړو په روايتونو كښې تعارض دې، بعضو كښې د زوج بريره د آزادئى او بعضو كښې د غلامئ تصريح ده. (٤)

---

١ ) فتح البارى: ٥٠٩/٩).

٢ ) عمدة القارى: ٢٦٧/٢٠).

٣ ) فتح البارى: ٥١٣/٩، باب بلاترجمة واوجزالمسالک ماجاء فى الخيار: ٨٤/١٠).

٤) دعروه ددې روايت دپاره اوګورئ چه په هغې كښې د ((كان زوجا بريرحرا)) الفاظ دى . فتح البارى: ٥١٣/٩. (باب بلا ترجمه ) ، دعروه په دويم روايت كښې د ((وكان عبدا)) الفاظ دى. امام مسلم نقل كړى دى، اوګورئ صحيح مسلم كتاب العتق، باب بيان الولاء [..... باقى حاشيه په بل مخ .......

البته اسود عن عائشه رضي الله عنها په روايت کښې هيڅ اختلاف نشته دې، په دې کښې د زوج بريره د آزادئ تصريح ده. (۱)

ائمه ثلاثه د حضرت ابن عباس روايتونه او د حضرت عائشه رضي الله عنها هغه روايتونو ته ترجيح ورکړې ده چه په هغې کښې ((وکان عبدا)) صراحت دې . (۲)

حضرات حنفيه د حضرت عائشه رضي الله عنها د اسود والا روايت ته ترجيح ورکړې ده، چه په هغې کښې دی چه ((وکان حرا))، حنفيه فرمائي چه عروه عن عائشه رضي الله عنها او قاسم عن عائشه رضي الله عنها د روايتونو د تعارض په وجه ساقط شوی دی، لهذا اسود عن عائشه رضي الله عنها د روايت اعتبار به وی ځکه چه هغه غير مختلف فيها دې، (۳)

او د حضرت عائشه رضي الله عنها والا روايت د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما روايت باندې ترجيح ورکولې شي، ځکه چه حضرت عائشه رضي الله عنها حضرت بريره لره آزادولو او صاحب قصه ده. او حضرت ابن عباس رضي الله عنهما په هغه وخت کښې کم عمر وو. او دا قصه نيغ په نيغه د هغوی متعلق نه ده، د دې وجې په دې باب کښې د حضرت عائشه رضي الله عنها روايت مدار او قابل اعتبار پکار دې .

همداشان د اسود عن عائشه والا روايت تسليم کولو په صورت کښې د دواړو قسمه روايتونو کښې جمع او تطبيق ممکن دی چه په هغه روايتونو کښې هغه ته ((عبد)) وئيلې شوی دی هغه د ماضی اعتبار سره او وئيلې شو ځکه چه حضرت مغيث رومبې غلام وو. بيا آزاد کړې شو ځکه چه حريت او عبديت دوه داسې صفتونه دی چه په يو وخت کښې دواړه نشی جمع کيدې، دواړه به بيل بيل حالتونو کښې منلې شی چه ((انه کان عبدا فی حالة، حرا فی حالة اخری)) او ظاهر دی چه په دې صورت کښې به يو حالت مقدم وی او دويم حالت کښې به موخر او دا خبره په خپل ځائې کښې متعين ده چه د رقيت نه پس حريت راتلې شی، ليکن حريت نه پس رقيت نه شی راتلې. لهذا رقيت به مقدم وی او حريت موخر . د دې وجې چه په کومو روايتونو کښې ((وکان عبدا)) تصريح ده هغه د ماضی اعتبار سره ده او چه په کومو کښې ((کان حرا)) ی د هغې مطلب دا دی چه د حضرت بريره د آزادئ په وخت کښې هغه حر وو، داشان د دواړه قسمه روايتو کښې تعارض به نه وی، (۴)

...دتيرمخ باقي حاشيه] لمن اعتق : ۴۹۴/۱، قاسم دده خوئې عبدالرحمان نه په يو روايت کښې دی چه ((وکان حرا)) الفاظ نقل کړې شوی دی، او گورئ فتح الباری: ۵۱۳/۹، او د قاسم په بل روايت کښې زوج بريره د غلام تصريح ده او گورئ سنن ابی داود، کتاب الطلاق باب المملوکة تعتق وهی تحت حر او عبد: ۲۷۰/۲، رقم الحديث: ۲۲۳۴).

۱ ) سنن ابی داود، کتاب النکاح، باب من قال کان حرا : ۲۷۰/۲، رقم الحديث : ۲۲۳۵، وسنن الترمذی کتاب الرضاع، باب ماجاء فی الامة تعتق ولها زوج : ۴۶۱/۳، رقم الحديث: ۱۱۵۵).

۲ ) فتح الباری: ۵۱۴/۹).

۳ ) عمدة القاری: ۲۶۷/۲۰، واوجز المسالک : ۸۴/۱۰).

۴ ) او گورئ عمدة القاری: ۲۶۷/۲۰).

او باالفرض كه داهم تسليم كړې شي چه ټولو روايتونو كښې زوج بريره دغلام كيدو ذكر دې، بيا هم آئمه ثلاثه دپاره هغه مستدل نشي جوړيدې، ځكه چه ددې نه زيات نه زيات خيار الامة تحت العبد يو متفق عليه مسئله داثبات به وي، خيار الامة تحت الحر په نفي باندې ددې روايتونو نه استدلال بهر حال به نشي كولې، (١)

البته دسنن ابى داود اوترمذى شريف په دروايت نه استدلال كوى چه كوم هشام بن عروه عن ابيه عن عائشه رضي الله عنها طريق سره مروى دې، په دې كښې دى چه ((قالت كان زوج بريرة عبدا فخيرها رسول الله صلى الله عليه وسلم فاختارت نفسها ولو كان حرالم يخيرها))(٢) په دې كښې د((ولو كان حرالم يخيرها)) حضرت عائشه رضي الله عنها قول دې . امام نووى رحمه الله فرمائى چه((ومثل هدا لايكاداحد يقوله الا توقيفا)) يعنى حضرت عائشه رضي الله عنها دا جمله دځپل طرفنه اونه وئيله بلكه ضرور به ئې د حضرت نبى كريم صلى الله عليه وسلم نه ددې متعلق تپوس كړې وى ځكه چه داشان جمله دځپل طرفنه نشى وئيلې، (٣)

ددې جواب دادې چه دا دحضرت عائشه رضي الله عنها قول نه دې بلكه دحضرت عروه قول دې، نو دنسائى په روايت كښې ددې تصريح ده، (٤) ددې وجې دا دهغوى ځپل اجتهاد دې چه په بل مجتهد باندې حجت نه دې .

دا خو دروايت اعتبار سره كلام وو، دعلت او درايت اعتبار سره ائمه ثلاثه فرمائى چه دخيار عتق علت عدم مساوات اوعدم كفاءت دې، ښځه آزاده شوه، خاوند غلام وى، د دوارو په مينځ كښې برابرى پاتې نشوه لهذا ښځې ته به خيار عتق حاصل وى، ليكن كه خاوند آزاد وى نودعدم كفاءت دا علت به په هغه ځائې كښې نشى مونديې، لهذا په دې صورت كښې ښځې ته خيار عتق به حاصل نه وى، (٥)

په حنفيانو كښې دصاحب هدايه په نيز خيار عتق دوينځې د آزاديدو نه پس دځپل نفس مالك كيدل دى، چه ددې په وجه ددې دخاوند دپاره په ښځه باندې د دريو طلاقو اختيار حاصل شو، حالانكه ددې نه مخكښې ده ته د دوؤ طلاق اختيار وو، لهذا دا اختيار كړې شو كه غواړى نو دځپل سابقه خاوند په زوجيت دې پاتې كيږى او په ځپل طلاق كښې اضافه قبوله كړى اوكه غواړى نو دا اضافه قبوله نه كړى چه دې يو قسم خاوند ملكيت زيات شو

---

١ ) عمدة القارى: ٢٠/٢٦٧،وفى الاوجز: ١٠/٨٤ . اماالروايات التى و ردفيها انه كان عبدا فلا تخالف احدا من الائمة الابعة لان خيارالمراة اذكان زوجها عبدااجتماعى واماالروايات التى ورد فيها انه كان حرا فتخالف الائمة الثلاثة ولاتخالف الحنفية لان الخيار عندهم على كل حال).

٢ ) اوګورئ سنن الترمذى،كتاب الرضاع ،باب ماجاء فى المراة تعتق ولها زوج : ٣/٤٦١ . رقم الحديث: ١١٥٤.وسنن.دوادكتاب الطلاق،باب فى المملوكة تعتق وهى تحت صر وعبدا: ٢/٢٧٠.رقم الحديث: ٢٢٣٣)

٣ ) فتح البارى: ٩/٥١٣).

٤ ) اوګورئ سنن نسائى،كتاب الطلاق ،باب خيار الامة تعتق وزوجها مملوك : ٢/١٠٦).

٥ ) اوجزالمسالک: ١٠/٨١).

او بيله شى.(١)
امام طحاوى رحمه الله فرمائى چه دخيار عتق اصل علت د آزادئ نه پس د وينځې مختار كيدل دى، د آزادئ نه مخكښې ددې ټول اختيار مالك سره وو، مالك ته مكمل اختيار وو چه ددې واده غلام سره اوكړى يا آزاد سره، لهذا اوس د آزاديدو نه پس دې ته مكمل اختيار ملاويدل پكاردې چه ددې خاوند دې غلام وى يا آزاد، دهغه په قبلولو كښې به دې ته پوره پوره اختيار وى،(٢)
دا خبرې اترې دعقل او قياس اعتبار سره دى، ګنى اصل مدار خو دحضرت بريره واقعه ده، چه دهغې اصل تفصيل بيان شو.

## ١٥=بَاب شَفَاعَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي زَوْجِ بَرِيرَةَ

[٤٩٧٩] حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ أَخْبَرَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا خَالِدٌ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ زَوْجَ بَرِيرَةَ كَانَ عَبْدًا يُقَالُ لَهُ مُغِيثٌ كَأَنِّي أَنْظُرُ إِلَيْهِ يَطُوفُ خَلْفَهَا يَبْكِي وَدُمُوعُهُ تَسِيلُ عَلَى لِحْيَتِهِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِعبَّاسٍ يَا عَبَّاسُ أَلَا تَعْجَبُ مِنْ حُبِّ مُغِيثٍ بَرِيرَةَ وَمِنْ بُغْضِ بَرِيرَةَ مُغِيثًا فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ رَاجَعْتِهِ قَالَتْ يَا رَسُولَ اللّٰهِ تَأْمُرُنِي قَالَ إِنَّمَا أَنَا أَشْفَعُ قَالَتْ لَا حَاجَةَ لِي فِيهِ[ر:٤٩٧٦].

د حضرت امام بخارى رحمه الله مقصد ددې باب نه دادې چه خيار عتق حاصليدو نه پس وينځې سره دسابقه خاوند داوسيدو دپاره سفارش كولې شى، حضرت نبى كريم صلى الله عليه وسلم حضرت بريره ته سفارش كړې وو چه هغه دې خپل سابقه خاوند سره پاتې شى ليكن هغې دا سفارش قبول نه كړو،(٣)
ددې نه داخبره معلوميږى كه ديوسړى سفارش قبول نه كړې شونو ده ته پكار دى چه خفه نه شى، كه سفارش كولو والا خومره لوئې ولې نه وى، دحضرت نبى كريم صلى الله عليه وسلم سفارش حضرت بريره قبول نكړو، حضرت نبى كريم صلى الله عليه وسلم په دې باندې خفه نه شو.

## ﴿باب﴾

[٤٩٨٠] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ رَجَاءٍ أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ عَنِ الْحَكَمِ عَنْ إِبْرَاهِيمَ عَنِ الْأَسْوَدِ أَنَّ عَائِشَةَ أَرَادَتْ أَنْ تَشْتَرِيَ بَرِيرَةَ فَأَبَى مَوَالِيهَا إِلَّا أَنْ يَشْتَرِطُوا الْوَلَاءَ فَذَكَرَتْ ذٰلِكَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اشْتَرِيهَا وَأَعْتِقِيهَا فَإِنَّمَا الْوَلَاءُ لِمَنْ أَعْتَقَ وَأُتِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِلَحْمٍ فَقِيلَ إِنَّ هٰذَا مَا تُصُدِّقَ بِهِ عَلَى بَرِيرَةَ فَقَالَ هُوَ لَهَا صَدَقَةٌ وَلَنَا هَدِيَّةٌ حَدَّثَنَا آدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ وَزَادَ فَخُيِّرَتْ مِنْ زَوْجِهَا[ر:٤٤٤].

---

١) هداية، كتاب النكاح باب نكاح الرقيق: ٣٤٢/٢).
٢) اوګورئ شرح معانى الاثار للطحاوى، كتاب الطلاق، باب الامة تعتق وزوجها حر : ٥٤/٢).
٣) الابواب والتراجم: ٨٠/٢).

داباب بلاترجمه دې او ما قبل باب سره ددې تعلق دې ،دا «كالفصل من الباب السابق» دې.(۱)

## ۱۲=باب قول الله تعالى: وَلَا تَنْكِحُوا الْمُشْرِكَاتِ حَتَّى يُؤْمِنَّ وَلَأَمَةٌ مُؤْمِنَةٌ خَيْرٌ مِنْ مُشْرِكَةٍ وَلَوْ أَعْجَبَتْكُمْ [البقرة _۲۲۱]

[۴۹۸۱] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا لَيْثٌ عَنْ نَافِعٍ أَنَّ ابْنَ عُمَرَ كَانَ إِذَا سُئِلَ عَنْ نِكَاحِ النَّصْرَانِيَّةِ وَالْيَهُودِيَّةِ قَالَ إِنَّ اللَّهَ حَرَّمَ الْمُشْرِكَاتِ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ وَلَا أَعْلَمُ مِنَ الْإِشْرَاكِ شَيْئًا أَكْبَرَ مِنْ أَنْ تَقُولَ الْمَرْأَةُ رَبُّهَا عِيسَى وَهُوَ عَبْدٌ مِنْ عِبَادِ اللَّهِ .

ترجمة الباب كښې ذكر شوې آيت نه چه كومه مسئله په پوهه كښې رازي،هغه اجماعي ده،مشركاتو سره د اهل ايمان نكاح جائز نه ده،(۲)ايمانداري ښځې دې وينځې ولې نه وي هغه دشرك والا ښځو نه بهترې دي،كه هغه مشركه څومره ښكلې ولې نه وي .

**كتابيه سره د نكاح كولو حكم:** البته په دې كښې اختلاف دې چه دمسلمان كتابيه سره نكاح جائزده كه نه ؟

① د جمهور علماء اوآئمه اربعه په نيز كتابيه سره نكاح كول ديو مسلمان دپاره جائزدي.

دجمهورو استدلال دقران پاك دسورة مائده آيت «والمحصنات من الذين اوتوالكتاب» نه دې، په ترجمة الباب كښې حضرت امام بخاري رحمه الله دسورة بقره چه كوم آيت «وَلَا تَنْكِحُوا الْمُشْرِكٰتِ» ذكر كړې دې،جمهور فرمائي چه دا آيت عام وو.مجوسيه،كتابيه ټولو لره شامل وو،دسورة مائده آيت په دې كښې تخصيص اوكړو.

② حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما فرمائي چه كتابيه سره نكاح كول ممنوع دى،ځكه چه قران پاك «وَلَا تَنْكِحُوا الْمُشْرِكٰتِ» فرمائيلي دى او دې نه به زيات شرك څه وي چه يو ښځه حضرت عيسى عليه السلام لره خپل رب تسليموي، ګويا دحضرت ابن عمر رضي الله عنهما په نيز دسورة مائده آيت دسورة بقره ترجمة الباب آيت سره منسوخ كړې دې،نو ابراهيم حربي تصريح كړې ده چه آيت دمائده د آيت بقره سره منسوخ دې

ليكن جمهور فرمائي چه دا دعوى نسخ بلادلائل ده،اوحقيقت دادې چه دسورة نساء آيت دسورة بقره آيت كښې تخصيص كړې دې،دحضرت ابن عمر رضي الله عنهما قول ته بعضوشاذ وئيلې دې اوبعضودا په تقوى اوتورع باندې محمول كړې دې .(۳)

حضرت شيخ الحديث مولانا زكريا رحمه الله فرمائي چه د حضرت امام بخاري رحمه الله رجحان په دې مسئله كښې دحضرت ابن عمر رضي الله عنهما قول طرفته دې .(۴)

---

۱ ) عمدة القاري: ۹/۵۸۴،۵۸۳).

۲ ) الابواب والتراجم: ۲/۸۰).

۳ ) مذكوره تفصيل دپاره اوګورئ فتح الباري: ۹/۵۲۱،۵۲۰،والابواب والتراجم: ۴ /۸۰).

٤ ) الابواب والتراجم:۲/۸۰).

## ١٧=باب نكاح من أسلم من المشركات وعدتهن

[۴۹۸۲] حدثنا ابراهيم بن موسى اخبرنا هشام عن ابن جريج وقال عطاء عن ابن عباس كان المشركون على منزلتين من النبي صلى الله عليه وسلم والمؤمنين كانوا مشركي اهل حرب يقاتلهم ويقاتلونه ومشركي اهل عهد لا يقاتلهم ولا يقاتلونه وكان اذا هاجرت امرأة من اهل الحرب لم تخطب حتى تحيض وتطهر فاذا طهرت حل لها النكاح فان هاجر زوجها قبل ان تنكح ردت اليه وان هاجر عبد منهم او امة فهما حران ولهما ما للمهاجرين ثم ذكر من اهل العهد مثل حديث مجاهد وان هاجر عبد او امة للمشركين اهل العهد لم يردوا وردت اثمانهم

وقال عطاء عن ابن عباس: كانت قريبة بنت ابي امية عند عمر بن الخطاب فطلقها فتزوجها معاوية بن ابي سفيان وكانت ام الحكم بنت ابي سفيان تحت عياض بن غنم الفهري فطلقها فتزوجها عبد الله بن عثمان الثقفي

حضرت امام بخاری رحمه الله فرمائی کهٔ څوك مشركه ښځه مسلمانه شي نو دعدت تيريدو نه پس دمسلمان دې سره نكاح كول جائزدى البته ددې په عدت كښې اختلاف دې، دجمهورو په نيز ددې عدت دآزادې ښځې دعدت پشان درې طهره دى. د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز استبراء بحيضه يعني يوحيض كافي دې. (۱)

حضرت امام بخارى رحمه الله چه په باب كښې كوم روايت نقل كړې دې دهغې نه معلوميږى چه هغه د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله تائيد كوى، ځكه چه په دې كښې ديو حيض ذكر دې، «لم تخطب حتى تحيض وتطهر».

**قوله:** وقال عطاء عن ابن عباس: واوحرف عطف دې، معلوميږى داسې چه كوم مضمون ددې معطوف دې هغه امام حذف كړې دې، ابن جريج په حديث كښې راتلونكې مضمون هم دعطاء نه نقل كړې دې او ددې نه علاوه دويم مضمون هم دواو نه مخكښې ووهغه حذف كړې شو. (۲)

ددې عطاء نه كوم يو عطاء مراد دې؟ حضرت امام بخارى رحمه الله خو دا ګڼړلى دى چه ددې نه عطاء بن ابى رباح مراد دې، ليكن محدثين فرمائى چه ددې نه عطاء خراسانى مراد دې، او ابن جريج د عطاء خراسانى نه نيغ په نيغ سماع نه ده كړې، ددې وجې دا سند ضعيف او د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله په هغه سندونو كښې دې چه په هغې باندې تنقيد كړې شوې دې، كتاب التفسير كښې دسورة نوح لاندې دتنبيه عنوان سره په دې باندې بحث تيرشوې دې (۳)

---

۱) فتح البارى: ۵۲۱/۹).
۲) فتح البارى: ۵۲۲/۹).
۳) اوګورئ كشف البارى: كتاب التفسير سورة نوح: ۶۹۹).

عطاء دحضرت ابن عباس ﷺ نه روايت كوى ،هغوى فرمائي چه حضرت نبى كريم ﷺ او مومنانوسره دمشركانو دوه ډلې وې،اوله حربى مشركان چه حضرت نبى كريم ﷺ به هغوى سره جنګ كولو اوهغوى به حضرت نبى كريم سره جنګ كولو.دويم معاهد مشركان چه نه خو هغوى حضرت نبى سره او نه به حضرت نبى كريم ﷺ هغوى سره جنګ كولو،دحربى خوك ښځې به هجرت اوكړو اورابه غله نوهغې ته به ئې دنكاح پيغام نه ليږلو چه تركومې پورې به هغې ته حيض رانغلواوددې نه به پاكه نشوه. هركله چه به هغه پاكه شوه نودهغې دپاره به نكاح كول جائز شو. اوكه خاوند ددې دنكاح كولونه مخكښې به هجرت كړې وو نو هغه به خپل خاوند ته واپس كولې شوه،اوكه په دوى به څوك غلام يا وينځې هجرت كړې وو او هغه دواړه به آزاد شو نو اوهغوى ته به هم هغه حق وو چه كوم مهاجرين ته وو.

**قوله:** ثُمَّ ذَكَرَ مِنْ أَهْلِ الْعَهْدِ مِثْلَ حَدِيثِ مُجَاهِدٍ وَإِنْ هَاجَرَ عَبْدٌ اللهِ اوامة: بيا عطاء د معاهد ذكر د مجاهد دحديث په شان اوكړو كه د معاهد وينځه يا غلام به هجرت كړې راغلى وې نو بيا واپس كولې نشو بلكه ددوى قيمتونه به وركولې شو.

«مثل حديث مجاهد» نه يا خو هم دا خبره مراد ده چه كومه دلته«وان هاجر عبد ......»سره بيان كړې شوه،او يا ددې نه پوراتلونكې حديث طرف ته اشاره ده چه په هغې كښې د معاهدينو دآزادو ښځو حكم بيان شوې دې،ځكه چه په حديث باب كښې دمعاهدينو دآزادو ښځو ذكر نشته دې(۱)چونكه هغه مخكښې رازى نوددې وجې امام په دې ځائې كښې ذكر نه كړل.

دمجاهد حديث عبد بن حميد موصولاً ذكر كړې دې.(۲)

**قوله:** وَقَالَ عَطَاءٌ عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ كَانَتْ قَرِيبَةُ بِنْتُ أَبِي أُمَيَّةَ: داسابقه سند سره موصول دې،په دې كښې دى چه قريبه بنت ابى اميه(ام المومنين دحضرت سلمه ﷺ خور) دحضرت عمر ﷺ په نكاح كښې وه،دوى هغې ته طلاق وركړو نو حضرت معاويه دې سره واده اوكړو او ام حكم بنت ابى سفيان عياض بن غنم ﷺ په نكاح كښې وه ،هغه ورته طلاق وركړو نو عبدالله بن عثمان ثقفى دې سره واده اوكړو.

دحديث مناسبت سره دباب نه واضح دى چه مذكوره دواړه ښځې قريبه او ام حكم مخكښې مشركې وې،بيا هغوى اسلام قبول كړو اوبالترتيب حضرت معاويه او عياض سره ددوى نكاحونه اوشو. ددې نه دترجمة الباب«نكاح من اسلم من المشركات»ثابتيږى.

## ۱۸=بَابُ إِذَا أَسْلَمَتْ الْمُشْرِكَةُ أَوْ النَّصْرَانِيَّةُ تَحْتَ الذِّمِّيِّ أَوْ الْحَرْبِيِّ

وَقَالَ عَبْدُ الْوَارِثِ عَنْ خَالِدٍ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ اذَا اَسْلَمَتْ النَّصْرَانِيَّةُ قَبْلَ زَوْجِهَا بِسَاعَةٍ حَرُمَتْ عَلَيْهِ وَقَالَ دَاوُدُ عَنْ ابْرَاهِيمَ الصَّائِغِ سُئِلَ عَطَاءٌ عَنْ امْرَاةٍ مِنْ اهْلِ

---

۱ ) فتح البارى: ۹/۵۲۲).

۲ ) فتح البارى: ۹/۵۲۲).

الْعَهْدِ اسْلَمَتْ ثُمَّ اسْلَمَ زَوْجُهَا فِي الْعِدَّةِ اهِيَ امْرَاتُهُ قَالَ لَا اِلَّا اَنْ تَشَاءَ هِيَ بِنِكَاحٍ جَدِيدٍ وَصَدَاقٍ وَقَالَ مُجَاهِدٌ اِذَا اَسْلَمَ فِي الْعِدَّةِ يَتَزَوَّجُهَا

وَقَالَ اللّٰهُ تَعَالَى: لَا هُنَّ حِلٌّ لَهُمْ وَلَا هُمْ يَحِلُّونَ لَهُنَّ [ر: الممتحنه: ۱۰]

وَقَالَ الْحَسَنُ وَقَتَادَةُ: فِي مَجُوسِيَّيْنِ اسْلَمَا هُمَا عَلَى نِكَاحِهِمَا وَاِذَا سَبَقَ اَحَدُهُمَا صَاحِبَهُ وَابَى الْآخَرُ بَانَتْ لَا سَبِيلَ لَهُ عَلَيْهَا

وَقَالَ ابْنُ جُرَيْجٍ: قُلْتُ لِعَطَاءٍ امْرَاَةٌ مِنَ الْمُشْرِكِينَ جَاءَتْ اِلَى الْمُسْلِمِينَ اَيُعَاوَضُ زَوْجُهَا مِنْهَا لِقَوْلِهِ تَعَالَى وَآتُوهُمْ مَا اَنْفَقُوا [الممتحنه: ۱۰] قَالَ لَا اِنَّمَا كَانَ ذَاكَ بَيْنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَبَيْنَ اَهْلِ الْعَهْدِ

وَقَالَ مُجَاهِدٌ: هٰذَا كُلُّهُ فِي صُلْحٍ بَيْنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَبَيْنَ قُرَيْشٍ

**داحدالزوجين داسلام قبلولو نه پس دنكاح حكم:** دحضرت امام بخارى رحمه الله مقصد ددې ترجمې نه دادې كه زوجين كافر وى او ښځه خاوند نه مخكښې مسلمانه شى نوددې څه حكم دې، په دې كښې اختلاف دې .

① حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنه اوعطاء بن ابى رباح فرمائى چه ددښځې په اسلام راوړو به د دواړو په مينځ كښې نكاح فسخ شى. «لعموم قوله تعالى: لا هن حل لهم ولا هم يحلون لهن».

② ائمه ثلاثه فرمائى چه نكاح به ترهغه وخت پورې باقى وى تر كومې پورې چه عدت نه وى ختم شوې، عدت چه كله ختم شى نو بيا به نكاح ختمه شى.

③ حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائى چه كله ښځه مسلمانه شى نو ددې خاوند ته به داسلام دعوت وركړې شى، كه هغه اسلام قبول كړو نو نكاح به برقرار وى او كه انكار ئې اوكړو نو د دواړو په مينځ كښې به فرقت واقع شى.

ليكن دا به په هغه وخت كښې وى چه كله هغوى دواړه په دارالاسلام كښې وى، كه دواړه په دالحرب كښې وى نو دوه صورتونه دى .

① يو صورت دادې چه ښځه دارالاسلام طرفته هجرت اوكړى. په دې صورت كښې به دتباين دارين په وجه د دواړو په مينځ كښې فرقت واقع شى .

② دويم صورت دادې چه ښځه په دارالحرب كښې پاتې شى، په دې صورت كښې به د انقضاء عدت پورې د خاوند په عقد كښې وى او دعدت نه پس به نكاح ختمه شى.(۱)

حضرت امام بخارى رحمه الله په دې مسئله كښې اول قول طرفته مائل ښكارى ځكه چه هغوى كوم آثار نقل كړى دى دهغې نه داول قول تائيد كيږى.

**قوله:** وَقَالَ عَبْدُ الْوَارِثِ......: حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمائى كه نصرانيه دخپل خاوند نه مخكښې اسلام قبول كړو نو دخپل خاوند دپاره حرامه شوه . حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه عبدالوارث نه دا تعليق موصولا ماته نه دې ملاؤ شوې، البته عبادبن العوام په طريق سره

---

۱) مذكوره د درې واړو مذاهبو تفصيل دپاره اوګورئ عمدة القارى: ۲۷۲/۲۰).

دا ابن ابى شيبه موصولا نقل كړي دي.(۱)

**قوله:** وَقَالَ دَاوُدُ عَنْ إِبْرَاهِيمَ الصَّائِغِ سُئِلَ عَطَاءٌ......: داود بن ابى الفرات د ابراهيم بن ميمون صانغ نه نقل كړى دى چه عطاء بن ابى رباح نه تپوس اوكړې شو كه د معاهد ښځه اسلام قبول كړى او عدت كښې دننه دننه ددې خاوند هم مسلمان شى نو آيا هغه ښځه به دده وى؟ هغوى اوفرمائيل چه نه، خو كه ښځه غواړى نونوې نكاح او مهر سره دوباره ده سره عقد كولې شى، د دواد دا تعليق يو بل طريق سره ابن ابى شيبه موصولاً نقل كړې دې.(۲)

**قوله:** وَقَالَ مُجَاهِدٌ إِذَا أَسْلَمَ فِي الْعِدَّةِ يَتَزَوَّجُهَا: حضرت مجاهد رحمه الله فرمائى كه خاوند په عدت كښې دننه دننه اسلام قبول كړو نو هغه ښځه به دده وى، هم دادائمه ثلاثه مذهب دې، لكه څنګه چه تير شو چه عدت ختميدو پورې به نكاح باقى وى . دمجاهد رحمه الله په دې قول كښې «يتزوجها» نه نوې نكاح مراد نه ده بلكه مطلب دادې چه دتجديد عقد نه بغير به هغه دده ښځه وى،(۳) طبرى دا تعليق موصولاً نقل كړې دې.(۴)

حضرت امام بخارى رحمه الله مخكښې دقران پاك آيت «لاهن حل لهم ولا هم يحلون لهن» نقل كړې دې او دمجاهد ترديد ئې كړې دې او دعطاء تائيد ئې كړې دې چه ددې آيت كريمه عموم وجې سره نكاح ختمه شوه، كه عدت ختم وى كه نه وى .

**قوله:** وَقَالَ الْحَسَنُ وَقَتَادَةُ فِي مَجُوسِيَّيْنِ أَسْلَمَا هُمَا عَلَى نِكَاحِهِمَا: دوه مجوسيان چه ښځه خاوند دى كه دوى اسلام قبول كړونو د دواړو نكاح به برقرار وى، كه يو اسلا م قبول كړو او بل انكار اوكړو نو دزوجينو په مينځ كښې به فرقت واقع شى، حضرت حسن بصرى رحمه الله اوحضرت قتاده دې تعليق لره ذابن ابى شيبه نه موصولاً نقل كړې دې.(۵)

**قوله:** وَقَالَ ابْنُ جُرَيْجٍ قُلْتُ لِعَطَاءٍ امْرَأَةٌ مِنَ الْمُشْرِكِينَ جَاءَتْ إِلَى الْمُسْلِمِينَ: حضرت ابن جريج فرمائى چه ما عطاء بن ابى رباح نه تپوس اوكړو كه مشركانو نه څوك ښځه مسلمانانو ته راشى نو ددې خاوند ته به ددې ښځې معاوضه وركولې شى كه نه؟ هركله چه الله تعالى «واتوهم ما انفقوا» فرمائيلى دى .عطاء جواب وركړو چه نه څكه چه دا خو صرف دحضرت نبى كريم صلى الله عليه وسلم او معاهدينو ترمينځه وو (يعنى داد حضرت نبى كريم صلى الله عليه وسلم او د مشركانو ترمينځه يو معاهده شوې وه چه دې باندې دهغوى په مينځ كښې صلح شوې وه ليكن نن صبا په دې باندې عمل نشته دې )عبدالرزاق دا تعليق موصولاً نقل كړېدې(۶)

---

۱ ) فتح البارى: ۵۲۵/۹).
۲ ) عمدة القارى: ۲۷۳/۲،وفتح البارى: ۵۲۵/۹).
۳ ) تعليقات لامع الدرارى: ۳۷۶/۹).
٤ ) فتح البارى: ۵۲۵/۹).
۵ ) عمدة القارى: ۲۷۳/۲۰).
۶ ) عمدة القارى: ۲۷۳/۲۰).

**قوله:** وَقَالَ مُجَاهِدٌ هٰذَا كُلُّهُ فِي صُلْحٍ بَيْنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَبَيْنَ قُرَيْشٍ:

مجاهد رحمه الله فرمائی چه دا ټولې خبرې په دې صلح کښې وې چه کومې دحضرت نبی کریم ﷺ او د قریشو په مینځ کښې شوې وې، دا تعلیق ابن ابی حاتم موصولاً نقل کړې دې، (۱) دمجاهد رحمه الله دې تعلیق نه حضرت امام بخاری رحمه الله دعطاء قول تائید فرمائی. (۲)

[۴۹۸۳] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ وَقَالَ اِبْرَاهِيمُ بْنُ الْمُنْذِرِ حَدَّثَنِي ابْنُ وَهْبٍ حَدَّثَنِي يُونُسُ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ اَخْبَرَنِي عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ اَنَّ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ كَانَتِ الْمُؤْمِنَاتُ اِذَا هَاجَرْنَ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَمْتَحِنُهُنَّ بِقَوْلِ اللّٰهِ تَعَالَى يَا اَيُّهَا الَّذِينَ اٰمَنُوا اِذَا جَاءَكُمُ الْمُؤْمِنَاتُ مُهَاجِرَاتٍ فَامْتَحِنُوهُنَّ اِلَى اٰخِرِ الْاٰيَةِ قَالَتْ عَائِشَةُ فَمَنْ اَقَرَّ بِهٰذَا الشَّرْطِ مِنَ الْمُؤْمِنَاتِ فَقَدْ اَقَرَّ بِالْمِحْنَةِ فَكَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا اَقْرَرْنَ بِذٰلِكَ مِنْ قَوْلِهِنَّ قَالَ لَهُنَّ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ انْطَلِقْنَ فَقَدْ بَايَعْتُكُنَّ لَا وَاللّٰهِ مَا مَسَّتْ يَدُ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدَ امْرَاَةٍ قَطُّ غَيْرَ اَنَّهُ بَايَعَهُنَّ بِالْكَلَامِ وَاللّٰهِ مَا اَخَذَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى النِّسَاءِ اِلَّا بِمَا اَمَرَهُ اللّٰهُ يَقُولُ لَهُنَّ اِذَا اَخَذَ عَلَيْهِنَّ قَدْ بَايَعْتُكُنَّ كَلَامًا [ر: ۲۵۶۴].

حضرت امام بخاری رحمه الله دحدیث باب دوه سندونه ذکر فرمائی.

① رومبې سند دیحیی عن اللیث عن عقیل عن ابن شهاب دې.

② دویم سند دابراهیم عن ابن وهب عن یونس عن ابن شهاب دې. دلته چه کوم الفاظ دحدیث دی هغه دبل سند دی. داول سند الفاظ امام په «کتاب الشروط» کښې ذکر فرمائیلی دی. دویم سند کښې امام په دې ځائې کښې «قال ابراهیم» اووئیل اودائې تعلیقًا ذکر کړل، امام ذهلی په زهریات کښې دابراهیم بن المنذر نه داموصولاً نقل کړی دی، (۳)

په حدیث کښې دی چه مومنانې ښځې به کله دحضرت نبی کریم ﷺ په خدمت کښې حاضرې شوې نو حضرت نبی کریم ﷺ به دالله ﷻ دقول «یا ایها الذین امنوا اذا جاء المومنات مهاجرات فامتحنوهن» بناء باندې به ئې امتحان اخستو. حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی چه په مومنانو ښځو کښې به چا ددې اقرار کولونو په دې آزمښیت کښې پوره ختلې، هرکله چه به هغه ښځو دځپل قول اقرار کولو نو حضرت نبی کریم ﷺ به هغوی ته وئیل ځئ ستاسونه مې بیعت واخستلو، دحدیث مناسبت ترجمة الباب «باب اذا اسلمت المشركة» نه واضح دی.

---

۱) فتح الباری: ۵۲۷/۹، وعمدة القاری: ۲۷۳/۲۰).

۲) فتح الباری: ۵۲۷/۹).

۳) فتح ا لباری: ۵۳۰/۹، وارشادالساری: ۵۸/۱۲).

## ۱۹=بَاب قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالَى لِلَّذِينَ يُؤْلُونَ مِنْ نِسَائِهِمْ تَرَبُّصُ أَرْبَعَةِ أَشْهُرٍ

فَإِنْ فَاءُوا فَإِنَّ اللّٰهَ غَفُورٌ رَحِيمٌ وَإِنْ عَزَمُوا الطَّلَاقَ فَإِنَّ اللّٰهَ سَمِيعٌ عَلِيمٌ [ر: ۲۲۶،۲۲۷].
فَإِنْ فَاءُوا رَجَعُوا

[۴۹۸۴] حَدَّثَنَا اسْمَاعِيلُ بْنُ ابِي اوَيْسٍ عَنْ اخِيهِ عَنْ سُلَيْمَانَ عَنْ حُمَيْدٍ الطَّوِيلِ انَّهُ سَمِعَ انَسَ بْنَ مَالِكٍ يَقُولُ الَى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ نِسَائِهِ وَكَانَتْ انْفَكَّتْ رِجْلُهُ فَاقَامَ فِي مَشْرُبَةٍ لَهُ تِسْعًا وَعِشْرِينَ ثُمَّ نَزَلَ فَقَالُوا يَا رَسُولَ اللّٰهِ الَيْتَ شَهْرًا فَقَالَ الشَّهْرُ تِسْعٌ وَعِشْرُونَ [ر: ۳۷۱].

[۴۹۸۵] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ نَافِعٍ انَّ ابْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا كَانَ يَقُولُ فِي الْايلَاءِ الَّذِي سَمَّى اللّٰهُ لَا يَحِلُّ لِاحَدٍ بَعْدَ الاجَلِ الَّا انْ يُمْسِكَ بِالْمَعْرُوفِ اوْ يَعْزِمَ بِالطَّلَاقِ كَمَا امَرَ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ وَقَالَ لِي اسْمَاعِيلُ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ اذَا مَضَتْ ارْبَعَةُ اشْهُرٍ يُوقَفُ حَتَّى يُطَلِّقَ وَلَا يَقَعُ عَلَيْهِ الطَّلَاقُ حَتَّى يُطَلِّقَ وَيُذْكَرُ ذَلِكَ عَنْ عُثْمَانَ وَعَلِيٍّ وَابِي الدَّرْدَاءِ وَعَائِشَةَ وَاثْنَيْ عَشَرَ رَجُلًا مِنْ اصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

**دايلاء تعريف**: په لغت کښې دايلاء معنی د قسم خوړلو اوحلف اوچتولو ده(۱)او په اصطلاح شرع کښې دايلاء په تفسير کښې دعلماء کرام درې قولونه دی.

① دحضرات حنفيه په نيز دايلاء تعريف دی((منع النفس عن قربان المنكوحة اربعة اشهر فصاعدا منعا موكدا باليمين))،(۲)يعنی څلور مياشتې يا ددې نه زياتې مودې پورې ښځو لره دورتلونه قسم خوړل او اودريدلو ته ايلاء ونيلې شي.

② ائمه ثلاثه اواسحاق بن راهويه فرمائی چه دايلاء دپاره څلورمياشتې کافی نه دی بلکه څلور مياشتو نه زياته موده ايلاء دپاره ضروری ده.(۳)

لهذا که چا قسم اوخوړو چه هغه به څلور مياشتې ښځې لره نه ورځی نو ائمه ثلاثه په نيزدا ايلاء نه ده،دحنفيه په نيزدا ايلاء ده.

③سعيد بن مسيب وغيره بعض علماء فرمائی چه د څلورو مياشتو نه کمه موده کښې هم ايلاء منعقد کيږی . لکه چا دڅلورو مياشتو قسم خوړلې دې نو ددوی په نيز دا ايلاء ده.(۴)

**دايلاء حکم**: دايلاء کولو نه پس که مولی (ايلاء کولو والا)څلورو مياشتو کښې دننه دننه

۱) عمدة القاری: ۲۰/۲۷٤).
۲) عناية فتح التقدير : ٤/ ٤٠ (رباب الايلاء).
۳) مختصر اختلاف العلماء كتاب الطلاق،رقم المسالة : ۲،۹۹۸/٤٧٣،وعمدة القاری: ۲/۲۷۵).
٤ ) فتح البارى: ۹/۵۳۲) .

رجوع اوکړي نو دې به کفاره یمین ادا کوي او که رجوع ئې اونه کړه نو د حضرات حنفیه په نیز دڅلورومیاشتو مودې تیریدونه پس به خوبخود یو طلاق بائن واقع شي، اوامام اوزاعي په نیز به طلاق رجعي اوشي، د آئمه ثلاثه په نیز دمودې تیریدو نه پس به طلاق واقع نه وي بلکه ده لره قاضي ته پیش کولې شي، قاضي به دوی ته د رجوع یا طلاق حکم کوي. که قاضي نشته دې نو بیا هم ددوی په نیز توقف دې چه یا رجوع اوکړي یا طلاق ورکړي. (۱)

حضرت امام بخاري رحمه الله په دې مسئله کښې د ائمه ثلاثه مسلك اختیار کړې دې چه موده تیریدو سره پخپله طلاق نه واقع کیږي بلکه دوی به قاضي ته پیش کیږي چه یا رجوع اوکړي یا طلاق ورکړي.

نو حضرت امام بخاري رحمه الله د حضرت ابن عمر رضي الله عنه نه دا مذهب نقل کړې دې، اوفرمائي چه حضرت عثمان رضي الله عنه، حضرت علي رضي الله عنه، حضرت ابوالدرداء او حضرت عائشه رضي الله عنها، ټولو دولس صحابه کرام رضي الله عنهم نه دا خبره منقول ده، اود حضرت عثمان رضي الله عنه اوحضرت علي رضي الله عنه او ابوذر رضي الله عنه نه او ابن ابي شیبه او حضرت عائشه رضي الله عنها نه سعید بن منصور دا مذهب موصولاً نقل کړې دې. (۲)

لیکن حضرت عثمان رضي الله عنه، حضرت علي رضي الله عنه اوحضرت ابن عمر رضي الله عنه نه دحنفیه مسلك مطابق هم آثار منقول دي. ددوی نه علاوه حضرت عمر رضي الله عنه، حضرت ابن عباس، حضرت عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه، حضرت زید بن ثابت رضي الله عنه نه هم دحنفیه مسلك مطابق آثار منقول دي. (۳)

دباب تحت حضرت امام بخاري رحمه الله د حضرت نبي کریم صلی الله علیه وسلم د ازواج مطهرات دیو میاشتې دپاره جدا کیدو واقعه ذکر کړې ده. دجمهورو په نیز دا شرعي اواصطلاحي ایلاء نه وه، چونکه بل څه مرفوع حدیث دې باره کښې نه وو، ددې وجې حضرت امام بخاري رحمه الله دا واقعه نقل کړه، او یو مناسبت د دواړو په مینځ کښې ظاهر دې، البته دسعیدبن المسیب په نیز دا یو شرعي ایلاء ده ځکه چه ددوی په نیز شرعي ایلاء دپاره دڅلورو میاشتو قید نشته.

## ۲۰- بَاب حُكْمِ الْمَفْقُودِ فِي أَهْلِهِ وَمَالِهِ

وَقَالَ ابْنُ الْمُسَيَّبِ إِذَا فُقِدَ فِي الصَّفِّ عِنْدَ الْقِتَالِ تَرَبَّصُ امْرَأَتُهُ سَنَةً وَاشْتَرَى ابْنُ مَسْعُودٍ جَارِيَةً وَالْتَمَسَ صَاحِبَهَا سَنَةً فَلَمْ يَجِدْهُ وَفُقِدَ فَأَخَذَ يُعْطِي الدِّرْهَمَ وَالدِّرْهَمَيْنِ وَقَالَ اللَّهُمَّ عَنْ فُلَانٍ فَإِنْ أَتَى فُلَانٌ فَلِي وَعَلَيَّ وَقَالَ هَكَذَا فَافْعَلُوا بِاللُّقَطَةِ وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ نَحْوَهُ وَقَالَ الزُّهْرِيُّ فِي الْأَسِيرِ يُعْلَمُ مَكَانُهُ لَا تَتَزَوَّجُ امْرَأَتُهُ وَلَا يُقْسَمُ مَالُهُ فَإِذَا انْقَطَعَ خَبَرُهُ فَسُنَّتُهُ سُنَّةُ الْمَفْقُودِ

---

۱) اوګورئ مختصر اختلاف العلماء: ۴۷۳/۲، والمغني لابن قدامة: ۳۱۸، ۳۱۹).

۲) عمدة القاري: ۲۷۷/۲۰).

۳) مختصر اختلاف العلماء للطحاوي: ۴۷۵/۲، ۴۷۴. ومصنف عبدالرزاق: ۴۵۷/۶، ۴۵۳. رقم: ۱۱۶۳۷، ۱۱۶۴۴، ۱۱۶۴۵، دحضرت عمر رضي الله عنه اثر دپاره اوګورئ موطاامام محمد، باب ایلاء: ۲۶۳).

[۴۹۸۶] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ عَنْ يَزِيدَ مَوْلَى الْمُنْبَعِثِ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُئِلَ عَنْ ضَالَّةِ الْغَنَمِ فَقَالَ خُذْهَا فَاِنَّمَا هِيَ لَكَ اَوْلِاَخِيكَ اَوْلِلذِّئْبِ وَسُئِلَ عَنْ ضَالَّةِ الْاِبِلِ فَغَضِبَ وَاحْمَرَّتْ وَجْنَتَاهُ وَقَالَ مَا لَكَ وَلَهَا مَعَهَا الْحِذَاءُ وَالسِّقَاءُ تَشْرَبُ الْمَاءَ وَتَاْكُلُ الشَّجَرَ حَتَّى يَلْقَاهَا رَبُّهَا وَسُئِلَ عَنِ اللُّقَطَةِ فَقَالَ اعْرِفْ وِكَاءَهَا وَعِفَاصَهَا وَعَرِّفْهَا سَنَةً فَاِنْ جَاءَ مَنْ يَعْرِفُهَا وَاِلَّا فَاخْلِطْهَا بِمَالِكَ
قَالَ سُفْيَانُ فَلَقِيتُ رَبِيعَةَ بْنَ اَبِي عَبْدِ الرَّحْمٰنِ قَالَ سُفْيَانُ وَلَمْ اَحْفَظْ عَنْهُ شَيْئًا غَيْرَ هٰذَا فَقُلْتُ اَرَاَيْتَ حَدِيثَ يَزِيدَ مَوْلَى الْمُنْبَعِثِ فِي اَمْرِ الضَّالَّةِ هُوَ عَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ قَالَ نَعَمْ قَالَ يَحْيَى وَيَقُولُ رَبِيعَةُ عَنْ يَزِيدَ مَوْلَى الْمُنْبَعِثِ عَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ قَالَ سُفْيَانُ فَلَقِيتُ رَبِيعَةَ فَقُلْتُ لَهُ [ر:۹۱].

**د مفقود الخبر داهل او مال حكم:** مفقودهغه سړی ته وائي چه ورك شی او دده باره كښې چاته علم نه وی، دده داهل اومال په حكم كښې ائمه ثلاثه اختلاف دې.

① دحضرت امام ابوحنيفه رحمه الله او د حضرت امام شافعي رحمه الله په نيزدده اهل اومال دواړو كښې ترهغه وخته پورې تصرف به موقوف وی تر كومې چه دده دوفات علم او نه كړې شی يا دده هم عمر او اقران مړه شی، دې نه پس د تصرف اجازت به وركولې شی، تركومې پورې چه دده هم عمر خلق ژوندی وی تر هغه وخته پورې دده ښځه به بل چاسره واده نشی كولې انتظار به كوی.(۱)

② د حضرت امام مالك رحمه الله په نيزې، اهل اومال كښې تفصيل دې، هغه فرمائي چه كوم سړې مفقودشی نودده معامله به حاكم ته پيش كولې شی . حاكم به دده تلاش كوی او دنه ملاويدو په صورت كښې به دده ښځه تر څلورو كالوپورې انتظاركوی، څلوركاله نه دښځې دپاره متوفی عنها زوجها كيدو فيصله به كوی. نوښځه د څلورو كالو تيريدو نه پس عدت وفات يعنی څلور مياشتې لس ورځې تيرې كړی اوبل سره واده كولې شی. البته دا څلور كاله مخ پس به په عدالت كښې دمقدمه پيش كيدونه پس شميرلې شی اودمال په صورت كښې مالكيه فرمائي چه په دې كښې به وراثت جاری نه وی تر دې پورې چه دومره موده تيره شی چه په هغې كښې دمفقود دمړكيدو يقين اوشی دا موده څومره پكار ده ؟په دې كښې اويا كالو، اتيا كالو ،نوی كالو، اوسل كالو مختلف اقوال دی. (۲)

دحضرت امام احمد بن حنبل رحمه الله په نيز ميدان جنګ او سمندری سفر كښې ورك شوی دپاره مدت به مقرر كولې شی (لكه دمالكيه په شان څلور كاله) ليكن دې نه علاوه مفقود دپاره مدت مقررولې به نشی او دده اهل ومال كښې تر هغه وخت كښې تصرف نه شی كولې، تركومې پورې چه دده دوفات يقين اونشی. (۳)

---

۱) مختصر اختلاف العلماء للطحاوی:۲/ ۳۳۰،۳۲۹).
۲) دمالكيه دمذهب دتشريح دپاره اوګورئ بداية المجتهد: ۲/ ۴۵، ۴۶).
۳) الابواب والترجم: ۲/ ۸۱).

دشوافع او حنفيه مسلك چونكه په دې سلسله كښې ډير سخت دې،ددې وجې فقهائې احناف د مالكيه مسلك باندې فتوى وركوى اوحضرت تهانوى رحمه الله په دې سلسله كښې يومستقل رساله د«الحيلة الناجزة»په نوم سره تصنيف كړې ده،په دې كښې د علماء مالكيه فتاوى او ددې مسئلې متعلق ددوى مذهب كښې شرائط او تفصيلات جمع كړې دى.

دباب تحت حضرت امام بخارى رحمه الله د حضرت سعيد بن مسيب رضي الله عنه، حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه،حضرت ابن عباس رضي الله عنه او دامام زهرى رحمه الله مختلف آثار نقل كړى دى.

حضرت سعيد بن مسيب رضي الله عنه فرمائى كه يو سړې په صف قتال كښې دجهاد په موقع كښې ورك شى نو دده بى بى به يو كال پورې انتظار كوى.«تربص امراته سنة»په اصل كښې«تتربص»دې يو تاء تحفيفًا حذف كړې شوې ده دا تعليق عبدالرزاق موصولاً نقل كړې دې. اوهغه زيات مكمل او تام دې.«اذا فقد في الصف تربصت امراته سنة واذا فقد في غير الصف فاربع سنين»(١)

دويم تعليق دحضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه دې،هغوى يو وينځه واخسته. او ددې قيمت ئې لا ادا كړې نه وو چه وينځې مالك غيب شو. يو كال پورې حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه دهغه لټون اوكړو ليكن هغه ملاؤ نشو،نودوى د وينځې ثمن يويو،دوه دوه درهمه صدق كول شروع كړل .دصدقې وركولو په وخت كښې به ئې فرمائيل چه«اللهم عن فلان فان اتى فلان فلى وعلى»يعنى اې الله ﷻ ! دا دفلانى سړى دطرفه صدقه ده،كه هغه سړې راغلونو دا صدقه به خما دطرفنه وى،خما دپاره به ددې ثواب وى،او ددې ثمن به خما په ذمه وى.«فلى وعلى»اى فلى الثواب .... وعلى الغرامة»دې نه پس حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه اوفرمائيل چه د لقطه«ورك شوى څيز باره»كښې هم داسې كوئى .( چه يو كال پورې ددې تعارف او تشهير كوئى اودكال نه پس دا صدقه كوئى. دصدقې نه پس كه مالك راغلو نو ددې تاوان وركړئى، دصدقې ثواب به تاسوته ملاويږى).

سعيد بن منصور دا تعليق موصولاً نقل كړې دې. (٢)

حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه هم داشان اثر منقول دې،ددوى اثر هم سعيد بن منصور موصولاً نقل كړې دې.(٣)

څلورم تعليق د حضرت زهرى رحمه الله دې،هغوى ددې قيد باره كښې چه دكوم ځائې معلوم وى فرمائى چه دده ښځه واده نشى كولې،اونه دده مال تقسيمولې شى. خو چه كله دده خبر منقطع شى اودده متعلق څه پته اونه لګى نوبيا دې قيدى سره دمفقود والا معامله دې اختيار كړېشى. ( دمفقود باره كښې دامام زهرى رحمه الله مذهب دلته بيان نكړې شو ،دهغوى

---

١) فتح البارى: ٥٣٧/٩).
٢) فتح البارى: ٥٣٧/٩).
٣) فتح البارى: ٥٣٧/٩).

مذهب دادې چه دده ښځه به ترخلوروکالو پورې انتظارکوی،اوبیا به دې ته دواده اجازت وی.(١)

ابن ابی شیبه رحمه الله داتعلیق موصولاً نقل کړې دې.(٢)

**د حضرت امام بخاری رحمه لله علیه رائې:** حضرت امام بخاری رحمه الله په باب کښې چه کوم رومبی درې آثار دحضرت مسیب رحمه الله، حضرت ابن مسعود رضی الله عنه او حضرت ابن عباس رضی الله عنه نقل کړل دهغې نه په ظاهره دامعلومیږی چه د حضرت امام بخاری رحمه الله په نیز هم دمفقود دپاره یو کال موده ده . لیکن باب کښې چه کوم حدیث نقل کړې شوې دې دهغې نه یو احتمال راوزی چه حضرت امام بخاری رحمه الله د مفقود داهل او مال باره کښې فرق کول غواړی.ځکه چه په حدیث کښې حضرت نبی کریم ﷺ د غنم (چیلئ وغیره )او اوښ دواړو د ورکیدو په صورت کښې حکم بیل بیل بیان فرمائیلې دې .د غنم (چیلئ ) باره کښې خو فرمائی چه(هی لك اولاخیك اوللذئب)یعنی دا ته اخستې شی ځکه چه هغه خو یا ستا ده یا ستا درور ده یا بیا د شرمخ په حصه کښې به راشی.د ورور نه خودې ورکه شوې ده،ددې وجې دشرمخ حواله کولونه بهتر دې چه ته ئې پخپله واخلې،خو ورك شوی اوښ متعلق چه کله دهغه نه تپوس اوشو نودغصې په وجه دحضرت نبی کریم ﷺ دواړه رخصار مبارك سره شواووې فرمائیل چه ورك شوی اوښ سره ستا کار،دې سره دده دانه اوبه موجودې دی .هغه به اوبه څکی او دونې نه به خوری،تر دې پورې چه ددې مالك به ملاؤ شی.

حضرت امام بخاری رحمه الله ددې باب تحت دا حدیث ذکر کړې دې او دې خبرې طرفته ئې اشاره کړې ده چه دمفقود دمال حکم غنم والا وی او داهل حکم به ابل والا وی،ددې وجې چه کومې طریقې سره غنم وغیره مستقل دی .د دې د ضیاع اندیښنه ده .داشان دمال دضیاع هم اندیښنه وی.لهذا یوکال نه پس دابه تقسیمولې شی،اولکه ځنګه چه ابل مستقل دې او ددې دضیاع څه اندیښنه نشته دې،هغه به د خپلو اوبو او خوراك پخپله بندوبست کوی . هم په دې طریقه داهل باره کښې هم دضیاع اندیښنه نشته دې نو دا به ابل سره لاحق کولې شی او هلته به یو کال پس دنکاح اجازت نه وی ،نو ابن منیر رحمه الله فرمائی :

((لما تعارضت الآثار فی هذه المسالة وجب الرجوع الی الحدیث المرفوع فکان فیه ان ضالة الغنم یجوز التصرف فیها قبل تحقق وفاة صاحبها فکان الحاق المال المفقود بها متجها وفیه ان ضالة الابل لایتعرض لها لاستقلالها بامرنفسها فاقتضی ان الزوجة کذالك لا یتعرض حتی لها یتحقق خبر وفاته فالضابط ان کل شئ یخشی ضیاعه یجوز التصرف فیه صونا له عن الضیاع، ومالا فلا))(٣)

---

١) فتح الباری: ٥٣٨/٩).
٢) فتح الباری: ٥٣٨/٩).
٣) فتح الباری: ٥٣٩/٩).

**قوله:** قَال سفیان : فلقیت ربیعه بن ابی عبدالرحمان،قال سفیان ولم احفظ عنه شیئا غیر هذا فقلت ارایت حدیث یزید مولی المنبعث فی امر الضالة هو عن زیدبن خالد،قال نعم: سفیان بن عینیه فرمائی چه زه ربیعه بن ابی عبدالرحمان سره ملاو شوم او ما هغه ته اووئیل چه دورك شوی څیز متعلق دیزید مولی منبعث حدیث باب زیدبن خالد نه مروی دې که نه ؟. نو هغوی اوفرمائیل چه آو. په مینځ کښې جمله د معترضه په طورسفیان اووئیل چه د ربیعه بن عبدالرحمان نه ددې خبرې تحقیق کولو نه علاوه ما نور څه نه دی نقل کړی.

**قوله:** قَالَ يَحْيَى وَيَقُولُ رَبِيعَةُ عَنْ يَزِيدَ مَوْلَى الْمُنْبَعِثِ عَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ قَالَ سُفْيَانُ فَلَقِيتُ رَبِيعَةَ فَقُلْتُ لَهُ: دسفیان بن عینیه استاد یحیی بن سعید اووئیل چه ربیعه دا حدیث د یزید مولی منبعث عن زید بن خالد نه نقل کړې دې،سفیان اووئیل چه د یحیی خبرو آوریدو نه پس زه ربیعه سره ملاو شوم اوما هغه نه هغه سوال اوکړو چه کوم مخکښې تیرشو.

خلاصه داده چه یحیی بن سعید انصاری دا حدیث دیزیدنه نقل کړې دې . لیکن مرسلاً ئې نقل کړې دې . موصولاً ئې نه دې نقل کړې . یزید تابعی دې. دده په طریق کښې دیزید نه پس د زیدبن خالد صحابی واسطه نشته دې.یحیی بن سعیدخپل شاګرد سفیان ته اووئیل چه ربیعه دا حدیث موصولاً نقل کوی.((یزید عن زید بن خالد عن رسول الله ﷺ))نوسفیان لاړو او د ربیعه نه ئې تپوس اوکړو چه آیا تا دا حدیث بواسطه یزید .زیدبن خالد نه نقل کړې دې .نوهغه اووئیل چه آو.

په حدیث باب کښې څه الفاظ راغلی دی((لقطة))(دقاف فتحه اوسکون سره)ورك شوې څیز.په ضاله او لقطه کښې فرق دې،دضاله لفظ دحیوان دپاره خاص دې((وکاء))(دواو کسرې سره)تاراورسی((عفاص))(دعین په کسرې سر ه اودې نه پس فاء ده)لوښې، ظرف، تیلئ ((الحذاء))پیزار ته وئیلې شی، مراد ترې پښې دی.((سقاء))مشکیزې ته وئیلې شی،په دې ځائې کښې ترې خیټه مراد ده.(۱)

## ۲۱=بَابُ الظِّهَارِ

وَقَوْلِ اللَّهِ تَعَالَى قَدْ سَمِعَ اللَّهُ قَوْلَ الَّتِي تُجَادِلُكَ فِي زَوْجِهَا إِلَى قَوْلِهِ فَمَنْ لَمْ يَسْتَطِعْ فَإِطْعَامُ سِتِّينَ مِسْكِينًا [المجادله:۱_۴]

وَقَالَ لِي إِسْمَاعِيلُ حَدَّثَنِي مَالِكٌ أَنَّهُ سَأَلَ ابْنَ شِهَابٍ عَنْ ظِهَارِ الْعَبْدِ فَقَالَ نَحْوَ ظِهَارِ الْحُرِّ قَالَ مَالِكٌ وَصِيَامُ الْعَبْدِ شَهْرَانِ

۱) عمدة القاري: ۲۰/۲۸۰.وارشادالساري: ۱۱/۶۴).

وَقَالَ الحَسَنُ بْنُ الحُرِّ ظِهَارُ الحُرِّ وَالعَبْدِ مِنَ الحُرَّةِ وَالأَمَةِ سَوَاءٌ
وَقَالَ عِكْرِمَةُ إِنْ ظَاهَرَ مِنْ أَمَتِهِ فَلَيْسَ بِشَيْءٍ إِنَّمَا الظِّهَارُ مِنَ النِّسَاءِ
وَفِي العَرَبِيَّةِ لِمَا قَالُوا أَيْ فِيمَا قَالُوا وَفِي بَعْضِ مَا قَالُوا وَهَذَا أَوْلَى لِأَنَّ اللَّهَ لَمْ يَدُلَّ عَلَى المُنْكَرِ وَقَوْلِ الزُّورِ (۱)

دا عنوان په بعضو نسخوکښې دې،په هندوستانی نسخه کښې دا عنوان نشته دې بلکه«باب قد سمع الله قوالتی»دې. ظهار دباب مفاعله مصدر دې د ظهر نه،دظهر معنی ده پښت (شا).څوك سړې خپلې ښځې ته په خپل محرمات ابدیه کښېځه داسې اندام سره تشبیه ورکړی چه هغې ته کتل دده دپاره ممنوع وی لکه اووائی چه«انت علی کظهرامی»نو دې ته ظهار وائی . لیکن که داسې اندام سره تشبیه ورکړی چه هغې طرفته کتل جائز دی لکه سر او لاس نو په دې صورت کښې ظهار به نه وی .(۲) حافظ الدین نسفی رحمه الله دظهار تعریف کړې دې، «ظهار تشبیه المنکوحة بامراة محرمة علیه علی التابید مثل الام والبنت والاخت»(۳)

دظهار حکم دادې چه کله پورې هغه کفاره ادا نه کړی نو تر هغه وخت پورې ښځې سره جماع کول او دواعی دجماع دواړه حرام دی.(۴)

دحنفیه په نیزدمور یا دهریوداسې ښځې په ذکر کولوسره ظهار واقع شی چه هغې سره دانسان حرمت ابدی وی لکه لور،خور.د حضرت امام شافعی رحمه الله دیو قول مطابق دی. دهغوی دویم قول دادې چه ظهار صرف دمور په ذکر کولوسره متحقق کیږی. لهذا که چا خپلې بی بی ته«انت علی کظهراختی»اووئیل نو دې سره به ظهار نه واقع کیږی.(۵)

دمالکیه په نیزظهار محرم او اجنبیه دواړه ذکر کولو سره به وی ،لکه چا اووئیل چه«انت علی کظهرزینب»او زینب دده دپاره یو اجنبی ښځه ده نو دمالکیه په نیزپه دې صورت کښې به

---

۱) (تجادلک) تختصم الیک وتحاورک وهی امراة انصاریة قیل اسمها : خولة بنت ثعلبة.وقیل غیر ذالک . زوجها اوس بن الصامت رضی الله عنهما . (فی زوجها) فی شان زوجها الذی ظاهر منها ای قال لها.انت علی کظهرامی.وکان هذا القول قبل الاسلام طلاقا وهذا اول ظهار یقع فی الاسلام فنزلت الایات تبطل ماکان وتقرر انه لیس بطلاق وان فیه الکفارة کما سیاتی (الی قوله) وتتمتها:

﴿قَدْ سَمِعَ اللَّهُ قَوْلَ الَّتِي تُجَادِلُكَ فِي زَوْجِهَا وَتَشْتَكِي إِلَى اللَّهِ وَاللَّهُ يَسْمَعُ تَحَاوُرَكُمَا إِنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ بَصِيرٌ ۝ الَّذِينَ يُظَاهِرُونَ مِنْكُمْ مِنْ نِسَائِهِمْ مَا هُنَّ أُمَّهَاتِهِمْ إِنْ أُمَّهَاتُهُمْ إِلَّا اللَّائِي وَلَدْنَهُمْ وَإِنَّهُمْ لَيَقُولُونَ مُنْكَرًا مِنَ الْقَوْلِ وَزُورًا وَإِنَّ اللَّهَ لَعَفُوٌّ غَفُورٌ ۝ وَالَّذِينَ يُظَاهِرُونَ مِنْ نِسَائِهِمْ ثُمَّ يَعُودُونَ لِمَا قَالُوا فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ مِنْ قَبْلِ أَنْ يَتَمَاسَّا ذَلِكُمْ تُوعَظُونَ بِهِ وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ ۝ فَمَنْ لَمْ يَجِدْ فَصِيَامُ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ مِنْ قَبْلِ أَنْ يَتَمَاسَّا فَمَنْ لَمْ يَسْتَطِعْ فَإِطْعَامُ سِتِّينَ مِسْكِينًا ذَلِكَ لِتُؤْمِنُوا بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ وَتِلْكَ حُدُودُ اللَّهِ وَلِلْكَافِرِينَ عَذَابٌ أَلِيمٌ ۝﴾

۲) مختصر اختلاف علماء للطحاو: ۲/ ۴۸۷،۴۸۵).
۳) عمدة القاری: ۲۰/ ۲۸۰).
۴) الهدایة ،کتاب الطلاق،باب ظهار:۲/ ۴۰۹).
۵) مختصر اختلاف العلماء :۲/ ۴۸۷،۴۸۵).

ظهار متحقق وی، خمونږ په نيز نه.(۱)

**دآيات شان نزول:** حضرت امام بخاری رحمه الله په ترجمة الباب کښې چه کومو آيتونو طرفته اشاره کړې ده هغه دسورة مجادله ابتدائی آيتونه دی چه هغه دحضرت اوس بن الصامت رضي الله عنه دښځې حضرت خوله رضي الله عنها په واقعه کښې نازل شوی وو. واقعه څه داسې وه چه حضرت اوس يو ځل خپلې بی بی خوله ته اووئيل((انت علی کظهر امی))(ته ماله داسې ئې لکه څما د مور شا يعنی حرامه ئې )په زمانه دجاهليت کښې دا الفاظ دائمی حرمت دپاره به وئيلې شو،او ددې نه ابدی فرقت به واقع کيدو،نواوس بن الصامت خپلې ښځې ته اووئيل چه ته په ماباندې حرامه شوې،خوله رضي الله عنها دحضرت نبی کريم ﷺ په خدمت کښې حاضره شوه اووې وئيل چه :

((يارسو الله ان زوجی اوس بن الصامت تزوجنی واناشابة غنية ذات مال و اهل، حتی اکل مالی،وافنی شبابی وتفرق اهلی وکبرسنی ظاهر منی وقدندم فهل من شئ يجمعنی واياه)).

يعنی کله چه اوس ماسره واده کړې وو،په هغه وخت کښې څه ځوانه اووم،اوس څما مال او ځوانی ختمه شوه او څه بوډئی يم،نو اوس هغه ماسره ظهار اوکړو او اوس هغه شرمنده هم دې.نو څه صورت مونږ لره دواړو ته د دوباره جمع کيدوکيديشی . حضرت نبی کريم ﷺ دقول مشهور موافق اوفرمائيل چه څما په خيال ته دخپل خاوند دپاره حرامه شوې .په دې باندې هغه ښځې بحث شروع کړوچه اوس څه چرته لاړه شم ؟دبچو څنګه ګزاره به څنګه کيږی؟ اوس خود طلاق لفظ نه دې استعمال کړې.نوبيا جدائی راغله؟دقران پاك آيت ((تجادلك فی زوجها)) کښې دې طرفته اشاره ده. هغې ددې خپلې معاملې دالله ﷻ په دربار کښې هم شکايت اوکړو. نوپه دې باندې دمجادله آيت نازل شو او په کښې دکفاره ظهار تفصيل بيان شو. حضرت نبی کريم ﷺ هغوی ته اووئيل چه خپل خاوند راوبله،هغه راغلو نوحضرت نبی کريم ﷺ دهغه په وړاندې دا آيت مبارك تلاوت کړواوتپوس ئې ترې اوکړو چه ته غلام آزادولې شې.هغوی اووئيل چه غلام خو ګراندې. په دې کښې خوبه څما ټول مال ختم شی. حضرت نبی کريم ﷺ ورته اوفرمائيل چه دوه مياشتې پرله پسې روژې نيوې شې. هغه اووئيل يارسول الله ﷺ په الله قسم ،په ورځ کښې که څه درې ځل خوراك اونه کړم نو ډير تکليف وی راته. اوځمادنظرونو په وړاندې تياره شی. حضرت نبی کريم ﷺ ورته اوفرمائيل چه آيا شپيتومسکينانوته خوراك ورکولې شې. هغه اووئيل چه والله نه . خوکه تاسو ماسره تعاون اوفرمائې.حضرت نبی کريم ﷺ هغه سره د پنځلسو صاع تعاون اوکړو. او داشان هغه دوباره دښځې خاوند په حيثيت سره اوسيدلو. (۲)

**قوله:** وَقَالَ لِي إِسْمَاعِيلُ حَدَّثَنِي مَالِكٌ أَنَّهُ سَأَلَ ابْنَ شِهَابٍ عَنْ ظِهَارِ الْعَبْدِ فَقَالَ نَحْوَ ظِهَارِ الْحُرِّ: حضرت امام بخاری رحمه الله فرمائی چه اسماعيل بن ابی اويس

---

۱) مختصر اختلاف العلماء: ۴۸۷/۲).

۲) دشان نزول مذکوره تفصيل دپاره اوګورئ عمدة القاری: ۲۸۱/۲۰).

ماته اوونیل چه حضرت امام مالک رحمه الله دحضرت ابن شهاب زهری نه دغلام د ظهار باره کښې تپوس اوکړو نوهغوی اووئیل چه دغلام ظهار دآزاد دظهار په شان دې یعنی د دواړو په ظهار کښې هېڅ فرق نشته دې.

ابن قدامه دبعضو حضراتونه نقل کړی دی چه دغلام ظهار صحیح نه دې (۱) حضرت امام بخاری رحمه الله دابن شهاب زهری دا اثر نقل کړې دې او په اصل کښې ئې ددې مذهب تردید کړې دې .غلام که ظهار اوکړو نو ددې کفاره دحضرات حنفیه اود حضرت امام شافعی رحمه الله په نیز صرف د روژې په ذریعه به ادا وی. د حضرت امام مالک رحمه الله په نیز دخپل مولی په اجازت سره که هغه مسکینانو ته خوراك ورکړو نوبیاهم کفاره اداشوه.(۲)

**قوله:** قَالَ مَالِكٌ وَصِيَامُ الْعَبْدِ شَهْرَانِ: دااسماعیل بن ابی اویس ماقبل والا سندسره موصول دې. فرمائی چه غلام به کفاره ادا کولو کښې دوه میاشتې روژې نیسی. لکه څنګه چه آزاد سړې دوه میاشتې روژې نیسی.

**قوله:** وَقَالَ الْحَسَنُ بْنُ الْحُرِّ ظِهَارُ الْحُرِّ وَالْعَبْدِ مِنَ الْحُرَّةِ وَالْأَمَةِ سَوَاءٌ: حسن بن حر دکوفې اوسیدونکې دې او محدثین کښې ثقه دې. په کال ۱۳۳ هجرئی کښې دوی وفات شوی وو. په صحیح بخاری کښې ددوی صرف دایو تعلیق دې،بل چرته دده ذکر نشته دې.(۳) دابو ذرعن مستملی روایت کښې«حسن بن الحی» دې حسن بن الحی فقیه دې، دحضرت‌سفیان ثوری د طبقې محدثینو کښې دې . په کال ۱۶۹ هجرئی کښې دوی وفات شو. امام طحاوی مذکوره اثر حسن بن حی نه نقل کړې دې (۴)

مطلب دادې چه‌دحر اوعبد په ظهار کښې هېڅ فرق نشته دې . داشان ښځه که حره وی او که وینځه،په دې کښې هېڅ‌فرق نشته دې.

**قوله:** وَقَالَ عِكْرِمَةُ إِنْ ظَاهَرَ مِنْ أَمَتِهِ فَلَيْسَ بِشَيْءٍ إِنَّمَا الظِّهَارُ مِنَ النِّسَاءِ:

حضرت عکرمه رحمه الله فرمائی که مولی خپلې وینځې نه ظهاراوکړو نو هیڅ هم نشته دې،ظهار ښځې سره وی . حضرت امام مالک رحمه الله فرمائی چه لکه څنګه چه‌زوج، زوجه سره ظهار کولې شی داشان مولی خپلې وینځې سره هم ظهارکولې شی.ائمه ثلاثه او جمهور فرمائی چه‌په قران کریم کښې دی چه«یظاهرون من نسائهم»او وینځې‌په ««نسائهم»»کښې داخلې نه دی.(۵)

قاضی اسماعیل رحمه الله دا تعلیق موصولاً نقل کړې دې. (۶)

---

۱) فتح الباری: ۵٤۲/۹).
۲) فتح الباری: ۵٤۱/۹).
۳) فتح الباری: ۵٤۲/۹،وعمدة القاری: ۲۸۳/۲۰).
٤) فتح الباری: ۵٤۲/۹،وعمدة القاری: ۲۸۳/۲۰).
۵) فتح الباری: ۵٤۲/۹).
۶) فتح الباری: ۵٤۲/۹).

**قوله:** وَفِي الْعَرَبِيَّةِ لِمَا قَالُوا أَيْ فِيمَا قَالُوا وَفِي بَعْضِ مَا قَالُوا وَهَذَا أَوْلَى لِأَنَّ اللَّهَ لَمْ يَدُلَّ عَلَى الْمُنْكَرِ وَقَوْلِ الزُّورِ: په آيت كريمه كښې دى چه ﴿وَالَّذِينَ يُظٰهِرُونَ مِن نِّسَآئِهِمْ ثُمَّ يَعُودُونَ لِمَا قَالُوا فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ....الخ﴾ د((يَعُودُونَ لِمَا قَالُوا)) مختلف تفسيرونه دى.

① يو تفسير دداود ظاهرى نه منقول دې. هغه وائى چه((يَعُودُونَ لِمَا قَالُوا)) مطلب دادې چه يو ځل د ظهار كول نه پس دوباره كه دظهار الفاظ اووئيلې شى نوكفاره به ادا كوى،لكه څنګه چه دظاهر الفاظ نه په پوهه كښې رازى.(۱)

② حضرت امام بخارى رحمه الله د داود ظاهرى دا تفسير رد كړې دې اوفرمائى چه په عربئ ژبه كښې((عادله))د((عادفيه))په معنى كښې استعماليږى. دلته هم ((يَعُودُونَ لِمَا قَالُوا)) د((يعودون لما قالوا))په معنى كښې دې او مضاف دلته مخذوف دې، تقدير عبارت دې د ((يعودون لى نقض ما قالوا))مطلب دادې چه دظهار كولو نه پس دې لره ختمول غواړى يعنى((انت على كظهر امى))چه كوم الفاظ ادا كړى وو ( چه ددې نه حرمت ثابتيږى) كه دا الفاظ باطلول غواړى او حرمت ختمول غواړى نوكفاره به ادا كوى.

حضرت امام بخارى رحمه الله فرمائى چه دا تفسير اختيارول بهتردى. ځكه چه د داود ظاهرى په شان كه دظاهرى الفاظو مطابق د((عودلما قالوا))د الفاظو سره د ظهار داعاده رهنمائى فرمائى او تكرارترې مراد واخستې شى نو ددې مطلب به داوى چه الله ﷻ الفاظ ظهار داعاده د رهنمائى دپاره فرمائى. حالانكه دې الفاظو ته قران پاك((منكر))او((قول زور)) وئيلى دى، نو ((قول زور))طرفته الله ﷻ څنګه رهنمائى كولې شى.

③ بعضو وئيلى دى چه((يَعُودُونَ لِمَا قَالُوا))كښې لام((عن))په معنى كښې دې،يعنى بيا كه هغه دخپل قول نه رجوع كول غواړى (۲) نوكفاره به ادا كوى،دخپل قول نه رجوع كولو مطلب دادې چه هغه د جماع عزم او اراده اوكړى.

**تنبيه:** دالفاظ ظهار دوه قسمونه دى ،يو صريح لكه((انت على كظهر امى))دويم كنايه لكه((انت على كامى))په دې دويم قسم كښې به دنيت اعتبار وى. دظهار نيت خو به ظهار وى ګنى نه.(۳)

## ۲۲=بَابُ الْإِشَارَةِ فِي الطَّلَاقِ وَالْأُمُورِ

وَقَالَ ابْنُ عُمَرَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يُعَذِّبُ اللَّهُ بِدَمْعِ الْعَيْنِ وَلَكِنْ يُعَذِّبُ بِهَذَا فَأَشَارَ إِلَى لِسَانِهِ [ر:۱۳۰۴].

۱ ) عمدة القارى: ۲۰/۲۸٤).
۲ ) فتح البارى: ۹/۵٤۳).
۳ ) عمدة القارى: ۲۰/۲۸۱).

وَقَالَ كَعْبُ بْنُ مَالِكٍ اَشَارَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلَيَّ اَیْ خُذِ النِّصْفَ [ر: ۲۲۸۶].
وَقَالَتْ اَسْمَاءُ صَلَّى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْكُسُوفِ فَقُلْتُ لِعَائِشَةَ مَا شَانُ النَّاسِ وَهِيَ تُصَلِّي فَاَوْمَاَتْ بِرَاْسِهَا اِلَى الشَّمْسِ فَقُلْتُ اٰيَةٌ فَاَوْمَاَتْ بِرَاْسِهَا اَنْ نَعَمْ [ر: ۸۶].
وَقَالَ اَنَسٌ اَوْمَاَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَدِهِ اِلَى اَبِي بَكْرٍ اَنْ يَتَقَدَّمَ [ر: ۶۴۹].
وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ اَوْمَاَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَدِهِ لَا حَرَجَ [ر: ۸۴]
وَقَالَ اَبُو قَتَادَةَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الصَّيْدِ لِلْمُحْرِمِ اَحَدٌ مِنْكُمْ اَمَرَهُ اَنْ يَحْمِلَ عَلَيْهَا اَوْ اَشَارَ اِلَيْهَا قَالُوا لَا قَالَ فَكُلُوا [ر: ۱۷۲۸].

**د ترجمة الباب مقصد:** دطلاق او نورو معاملاتو کښې داشارې حکم حضرت امام بخاری رحمه الله په دې باب کښې فرمائيلې دې،هغوی چه کوم آثاراواحاديث په دې باب کښې ذکر فرمائيلی دی چه دهغې نه معلوميږی چه اشاره طلاق او نورومعاملاتو کښې معتبر ده. په دې شرط چه‌هغه مفهمه وی يعنی په خپل مفهوم باندې واضحه دلالت کوی.

ابن بطال فرمائی چه اشاره مفهمه دجمهورعلماء په نيز دنطق اوتلفظ قائمقام ده.البته دحنفيه په نيز بعضو صورتونوکښې اشاره معتبره نه ده اګر چه هغه مفهمه ولې نه وی،نو غالبًا ددې باب سره حضرت امام بخاری رحمه الله د حنفيه مذهب ترديد کړې دې.(۱)

علامه عينی دابن بطال قول رد کړې دې او فرمائی چه اشاره مفهمه دحنفيه په نيز هم طلاق وغيره کښې معتبره ده لهذا دا وئيل چه حضرت امام بخاری رحمه الله د حنفيه ترديد کول غواړی صحيح نه دی.(۲)

ابن منير فرمائی چه د حضرت امام بخاری رحمه الله مقصد ددې ترجمة الباب نه دادې چه اشاره که داسې وی چه دهغې نه اصل او عدد دواړو مفهوم راوزی نو هغه به په طلاق اونورو معاملاتوکښې معتبره وی.هغه دګونګی اشاره وی يا د قادر علی الکلام وی،(۳)لکه يو سړی اشارې سره طلاق ورکړو نو هغه به طلاق معتبر وی او که اشارې سره ده دطلاق عدد هم بيان کړې نو ددې عدد به هم‌اعتبار وی.

**داشارې حکم:** دحضرات حنفيه مذهب دادې چه دګونګی اشاره مفهمه معتبر او په منزله دکلام ده،هغه په طلاق،بيع،هبه اونورومعاملاتوکښې معتبره وی.البته په حدودو کښې ددې اعتبار نشته دې. ځکه چه«الحدود تندرئ بالشبهات»

که يوسړې مستقل ګونګې نه دې ليکن دده ژبه بنده شوې ده،که دابنديدل مرګ پورې جاری وی نو په ده باندې به دګونګی احکام جاری وی.

که يو سړې قادرعلی الکلام دې،نه ګونګې دې اونه دده ژبه بنده شوې ده ،نوصرف په څلورو امورو کښې به دده اشاره معتبره وی. ① کفر ② اسلام ③ نسب ④ افتاء.لکه چا ترې

---

۱) فتح الباری: ۹/۴۵۷).
۲) عمدة القاری: ۲۰/۲۸۵).
۳) فتح الباری: ۹/۵۴۷).

تپوس اوکړو چه ته مسلمان نې ؟او په جواب کښې په اثبات کښې سر اوخوزولو يا ترې چا تپوس اوکړو چه دا جائز دی نو جواب کښې ده به دده اثباتًا او نفيًا اشاره کافی وی،ددې څلورو واړو نه علاوه باقی امورواومعاملاتوکښې ديو داسې سړی اشاره به معتبره نه وی چه د وينا قدرت لری.(۱)

حضرت امام بخاری رحمه الله په دې باب کښې شپږ تعليقات اواووه موصول احاديث نقل کړی دی.

**قوله:** وَقَالَ ابْنُ عُمَرَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يُعَذِّبُ اللَّهُ بِدَمْعِ الْعَيْنِ وَلَكِنْ يُعَذِّبُ بِهَذَا: حضرت نبی کريم ﷺ فرمائيلی دی چه کله په سړی باندې څه مصيبت راشی نو الله ﷻ دسترګې نه په اوښکه وتلوباندې عذاب نه جاری کوی،ژبې طرفته ته اشاره کولوسره حضرت نبی کريم ﷺاوفرمائيل چه ددې په وجه عذاب ورکولې شی. (چه سړې په ژبې سره شکوه شکايت اوناشکری کوی).

يوشرعي مسئله بيانولو دپاره حضرت نبی کريم ﷺداشارې نه کام واخستلو حضرت امام بخاری رحمه الله دا تعليق په کتاب الجنائز کښې موصولاً نقل کړی دې. (۲)

**قوله:** وَقَالَ كَعْبُ بْنُ مَالِكٍ أَشَارَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَيَّ أَيْ خُذِ النِّصْفَ: حضرت کعب بن مالک رضی الله عنه په عبدالله بن ابی حدرد باندې څه قرض وو.دملاقات په دوران کښې ددې دواړو په مينځ کښې تلخی راغله. حضرت نبی کريم ﷺ په هغه ځائې باندې تير شو نو وې فرمائيل((يا کعب))او دلاس په اشارې سره نې اووئيل چه نيم واخله،په کتاب الملازمه کښې دا تعليق موصولاً تير شوې دې.(۳)

**قوله:** وَقَالَتْ أَسْمَاءُ صَلَّى النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْكُسُوفِ فَقُلْتُ لِعَائِشَةَ مَا شَأْنُ النَّاسِ وَهِيَ تُصَلِّي فَأَوْمَأَتْ بِرَأْسِهَا إِلَى الشَّمْسِ فَقُلْتُ آيَةٌ فَأَوْمَأَتْ بِرَأْسِهَا أَنْ نَعَمْ: حضرت اسماء بنت ابی بکر رضی الله عنها فرمائيلی دی چه حضرت نبی کريم ﷺ کسوف مونځ کولو.مادحضرت عائشه رضی الله عنها نه تپوس اوکړو اوهغې مونځ کولو،چه څه اوشو چه مونځ کوې. نو حضرت عائشه رضی الله عنها په سر نمر طرفته اشاره اوکړه،ما اووئيل چه آيا دا څه نښه ده. نو هغې دسر په اشارې سره جواب راکړو چه آو.داتعليق حضرت امام بخاری رحمه الله په((کتاب الکسوف،باب صلاة النساء مع الرجال في الکسوف))کښې موصولاًنقل کړی دې.(۴)

**قوله:** وَقَالَ أَنَسٌ أَوْمَأَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَدِهِ إِلَى أَبِي بَكْرٍ أَنْ يَتَقَدَّمَ: حضرت انس رضی الله عنه فرمائی چه حضرت نبی کريم ﷺ په مرض الوفات کښې دلاس

---

۱) دحنفيه مذهب دتفصيل دپاره اوګورئ الاشباه والنظائر ،احکام ا لاشارة : ۳/۴۵۵،۴۵۴).
۲) فتح الباری: ۹/۵۴۵).
۳) عمدة القاری: ۲۰/۲۸۵).
۴) عمدة القاری: ۲۰/۲۸۵).

په اشارې سره حضرت ابوبكر صديق ﷛ ته د مخكښې كيدو حكم اوكړو.

دا حديث په كتاب الصلاة كښې د «باب اهل العلم والفضل احق بالامامة» تحت موصولاً تير شوې دې.(۱)

**قوله:** وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ أَوْمَأَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَدِهِ لَا حَرَجَ: حضرت ابن عباس ﷟ نه روايت دې چه د حج په موقع باندې حضرت نبى كريم ﷺ نه يو سړي تپوس اوكړو چه ما درمى نه مخكښې څاروى ذبح كړو نو حضرت نبى كريم ﷺ ورته لاس په اشارې سره اوفرمائيل چه هيڅ باك نشته . په كتاب العلم كښې د «باب الفتيا باشارة اليد والراس» تحت دا تعليق موصولاً تير شوې دى.(۲)

**قوله:** وَقَالَ أَبُو قَتَادَةَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الصَّيْدِ لِلْمُحْرِمِ آحَدٌ مِنْكُمْ أَمَرَهُ أَنْ يَحْمِلَ عَلَيْهَا أَوْ أَشَارَ إِلَيْهَا قَالُوا لَا قَالَ فَكُلُوا: حضرت ابوقتاده ﷛ فرمائى چه حضرت نبى كريم ﷺ د محرم د ښكار متعلق تپوس اوكړو چه آيا په تاسو كښې چا په دې ښكار باندې څوك راپكاره كړى وو يا دې طرف ته مو اشاره كړې وه نو خلقو اووئيل چه نه، نو حضرت نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چه خورئى.

دا تعليق په كتاب الحج كښې «باب لا يشير المحرم الى الصيد» لاندې تير شوې دې.(۳)
حضرت امام بخارى ﷫ مذكوره شپږ تعليقات ذكر اوفرمائيل،
په دې كښې مختلفو احكامو طرفته اشارې خودلې شوى دى. چه د هغې نه معلوميږى چه اشاره كه مفهمه وى نو معتبر ده.

[۴۹۸۷] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا أَبُو عَامِرٍ عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ عَمْرٍو حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ عَنْ خَالِدٍ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ طَافَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى بَعِيرِهِ وَكَانَ كُلَّمَا أَتَى عَلَى الرُّكْنِ أَشَارَ إِلَيْهِ وَكَبَّرَ وَقَالَتْ زَيْنَبُ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فُتِحَ مِنْ رَدْمِ يَأْجُوجَ وَمَأْجُوجَ مِثْلُ هَذِهِ وَعَقَدَ تِسْعِينَ [ر: ۱۵۳۰].

په دې كښې دى چه كله په حضرت نبى ﷺ به طواف كولو او ركن ته اورسيدل نو اشاره به كوله او تكبير به ئې وئيلو «اشار اليه» مناسبت سره دا حديث په دې ځائې كښې ذكر شو، دا حديث په كتاب الحج كښې د «باب من اشار الى الركن» تحت تير شوې دې .(۴)

**قوله:** وَقَالَتْ زَيْنَبُ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فُتِحَ مِنْ رَدْمِ يَأْجُوجَ وَمَأْجُوجَ مِثْلُ هَذِهِ وَعَقَدَ تِسْعِينَ: حضرت زينب بنت جحش ﷝ فرمائى چه حضرت

---

۱) عمدة القاري: ۲۸۵/۲۰).
۲) عمدة القاري: ۲۸۵/۲۰).
۳) فتح الباري: ۵٤۵/۹).
٤) فتح الباري: ۵٤۵/۹).

نبی کریم ﷺ ارشاد اوفرمائیلو چه دیاجوج اوماجوج په بندش کښې دومره حصه پرانیستې شوه اوحضرت نبی کریم ﷺ په ګوتوسره د نوی (۹۰) نشان جوړ کړو.

((ردم)) بندش او رکاوټ ته وئیلې شی، دې ځائې کښې ددې نه سد ذی القرنین مراد دې.

د((عقد تسعین)) متعلق علامه ابن الاثیر لیکی چه :

((وعقد التسعین من مواضعات الحساب وهو ان تجعل راس الاصبع السابة فی اصل الابهام وتضمها حتی لا یبین بینهما الا خلل یسیر)) (۱)

داهل حساب په نیزداعداد دپاره دګوتو مختلف شکلونه معین شوی دی.

دنوی (۹۰) دپاره چه کوم شکل متعین دې هغه دادې چه دشهادت دګوتې سر د غټې ګوتې جرړې سره ملاؤ کړې شی، ددې نه یو وړوکې شان حلقه اودائره جوړه شی چه ددې په مینځ کښې وړه شان خلا پیدا شی نو د کتاب الفتن په روایت کښې دی چه ((وحلق باصبعه الابهام والتی تلیها وهی صورة عقد التسعین)) (۲)

دحضرت نبی کریم ﷺ مطلب داوو چه په سد سکندری کښې دومره شان وړوکې سورې شوې دې.

دا تعلیق په کتاب الانبیاء کښې موصولاً تیر شوې دې، (۳)

ددې تعلیق مناسبت دترجمة الباب نه داشان دې چه د دوؤ ګوتو نه مذکوره انداز کښې حلقه جوړول یوقسم اشاره ده. (۴)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه عدد معین دپاره ددې مخصوصې طریقې نه عقد انامل په منزله داشارې دی. هرکله چه قادر علی الکلام دپاره دا عقد کافی دې نو غیرر قادر علی الکلام دپاره اشاره په دې طریق اولی کافی ده، نو هغه فرمائی چه :

((ووجه ادخاله فی الترجمة ان العقد علی صفة مخصوصة لارادة عدد معلوم ینزل منزلة الاشارة المفهمة فاذا اکتفی بها عن النطق مع القدرة علیه دل علی اعتبار الاشارة ممن لا یقدر علی النطق بطریق الاولی)) (۵)

[۴۹۸۸] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ الْمُفَضَّلِ حَدَّثَنَا سَلَمَةُ بْنُ عَلْقَمَةَ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيرِينَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ أَبُو الْقَاسِمِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْجُمُعَةِ سَاعَةٌ لَا يُوَافِقُهَا عَبْدٌ مُسْلِمٌ قَائِمٌ يُصَلِّي فَسَأَلَ اللَّهَ خَيْرًا إِلَّا أَعْطَاهُ وَقَالَ بِيَدِهِ وَوَضَعَ أُنْمُلَتَهُ عَلَى بَطْنِ الْوُسْطَى وَالْخِنْصِرِ قُلْنَا يُزَهِّدُهَا [ر: ۸۹۳].

---

۱) النهایة فی غریب الحدیث والاثر: ۲/۲۱۶).
۲) فتح الباری: ۹/۵٤۶).
۳) وفتح الباری : ۹/۵٤۶).
٤) عمدة القاری: ۲۰/۲۸۶).
۵) فتح الباری: ۹/۵٤۶).

حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې چه ابوالقاسم حضرت نبى كريم ﷺ فرمائى چه دجمعې په ورځ يوساعت داسې وى چه كوم مسلمان په دې كښې ولاړ وى مونځ كوى اودنيكۍ دعا غواړى نو الله ﷻ ده ته هغه وركوى،دې خبرې وئيلو سره حضرت نبى كريم ﷺ دلاس په اشارې سره اوفرمائيل چه داشان ئې خپله غتې ګوتې مباركې اوونيله په مينځنۍ ګوته او وړه ګوته باندې كيخوده.مونږدې اشارې نه دااوګڼړل چه حضرت نبى كريم ﷺ ددې وخت قلت بنائى.

«قال بيده»يعنى«اشاره بيده ،، يزهدها : يقللها ،تزهيد» معنى تقليل ده. يعنى داشارې نه حضرت نبى كريم ﷺ د هغه ساعت او ګهړئ قليل كيدل اوفرمائيل،ددې قلت ئې اوخودلو چه ددې دورانيه ډيره كمه اومختصر وى.

بعضو دلاس داشارې دا مطلب بيان كړې دې چه اوورئ په مينځنۍ ګوته باندې كيخوده او دې طرفته ئې اشاره اوكړه چه ددا ساعت دجمعې دورځې په مينځنۍ حصه كښې ده اووړوكې ګوتې سره دې طرفته اشاره كول وو چه ددا ساعت د ورځې په آخرى حصه كښې وى،(۱)

دحديث مناسبت دترجمة الباب نه واضحه دې. په كتاب الجمعه كښې په دې حديث باندې بحث تير شوى دې.

[۴۹۸۹] وَقَالَ الْأُوَيْسِيُّ حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ شُعْبَةَ بْنِ الْحَجَّاجِ عَنْ هِشَامِ بْنِ زَيْدٍ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ عَدَا يَهُودِيٌّ فِي عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى جَارِيَةٍ فَأَخَذَ أَوْضَاحًا كَانَتْ عَلَيْهَا وَرَضَخَ رَأْسَهَا فَأَتَى بِهَا أَهْلُهَا رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهِيَ فِي آخِرِ رَمَقٍ وَقَدْ أُصْمِتَتْ فَقَالَ لَهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ قَتَلَكِ فُلَانٌ لِغَيْرِ الَّذِي قَتَلَهَا فَأَشَارَتْ بِرَأْسِهَا أَنْ لَا قَالَ فَقَالَ لِرَجُلٍ آخَرَ غَيْرِ الَّذِي قَتَلَهَا فَأَشَارَتْ أَنْ لَا فَقَالَ فَفُلَانٌ لِقَاتِلِهَا فَأَشَارَتْ أَنْ نَعَمْ فَأَمَرَ بِهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرُضِخَ رَأْسُهُ بَيْنَ حَجَرَيْنِ [ر:۲۲۸۲]

داويسى نوم عبدالعزيز بن عبدالله دې،دوى د حضرت امام بخارى رحمه الله شيخ دى. په روايت كښې دى چه دحضرت نبى كريم ﷺ په زمانه كښې يوجينۍ باندې يو يهودى ظلم اوكړو،ددې كالى ئې واخستل اوددې سر ئې چخنړا كړو. دده كور والو دا حضرت نبى كريم ﷺ لره راوستله اوددې جينۍ حال دا وو چه ددې دژوند آخرى ساګانې اخستې او بې هوشه وه. حضرت نبى كريم ﷺ دې نه تپوس اوكړو چه ته چا قتل كړې ئې؟حضرت نبى كريم ﷺ دقاتل نه علاوه دبل چا نوم واخستلو اوتپوس ئې ترې اوكړو . نوهغې دخپل سر په اشارې سره جواب وركړو چه نه .بيا ئې ورته دبل چا نوم واخستلو او تپوس ئې ترې اوكړو هغې اووئيل چه نه . بيا ئې ورته دقاتل نوم واخستلواو تپوس ئې ترې اوكړو چه ته هغه قتل كړې ئې؟نو دې دسر په اشارې سره اووئيل چه آو .حضرت نبى كريم ﷺ حكم وركړو او دقاتل سر د دوو كاڼړو په مينځ كښې كيخودلې شو او چنخړا كړې شو.

---

۱) عمدة القارى: ۲۰/۲۸۶).

((اوضاح))دا دوضح جمع ده،سپين ته وائی،په دې ځائې کښې ددې نه مراد دچاندئ کالی دی، ((كانت عليها)) دا جمله د((اوضاح)) صفت ده. د((رضيخ)) معنى ماتول او چخړى کول دی.

((اصمتت))دمجهول صيغه ده يعنى دهغې ژبه بنده شوې وه.

دحضرات حنفيه يوقول دادې چه په قصاص کښې داشارې اعتبار نشته دې (۱)دحديث باب متعلق هغوئ وائی چه حضرت نبی کريم ﷺ صرف ددې جينئ په اشارې سره دهغه يهودى سر او نه چنخړولو بلکه هغه اعتراف هم کړې وو،نو په خصومات کښې دده داعتراف روايت تير شوې دې،په هغې کښې دی چه((فاخذ اليهودى فاعترف فامربه النبى ﷺ فرض راسه بين حجرين))(۲)

دحنفيه په نيز په قصاص کښې مماثلت نشته چه قاتل که کانړی سره قتل کړې دې نو قصاص کښې دې هم په کانړی سره قتل کړې شی ځکه چه په حديث کښې دی چه((لاقود الابالسيف)) دحديث باب واقعه داسلام دشروع ده.(۳)

[۴۹۹۰] حَدَّثَنَا قَبِيصَةُ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ دِينَارٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ الْفِتْنَةُ مِنْ هَاهُنَا وَاشَارَ الَى الْمَشْرِقِ [ر: ۲۹۳۷]

[۴۹۹۱] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا جَرِيرُ بْنُ عَبْدِ الْحَمِيدِ عَنْ اَبِى اِسْحَاقَ الشَّيْبَانِيِّ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ اَبِى اَوْفَى قَالَ كُنَّا فِى سَفَرٍ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا غَرَبَتِ الشَّمْسُ قَالَ لِرَجُلٍ انْزِلْ فَاجْدَحْ لِى قَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ لَوْ اَمْسَيْتَ ثُمَّ قَالَ انْزِلْ فَاجْدَحْ قَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ لَوْ اَمْسَيْتَ اِنَّ عَلَيْكَ نَهَارًا ثُمَّ قَالَ انْزِلْ فَاجْدَحْ فَنَزَلَ فَجَدَحَ لَهُ فِى الثَّالِثَةِ فَشَرِبَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ اَوْمَا بِيَدِهِ اِلَى الْمَشْرِقِ فَقَالَ اِذَا رَاَيْتُمُ اللَّيْلَ قَدْ اَقْبَلَ مِنْ هَاهُنَا فَقَدْ اَفْطَرَ الصَّائِمُ [ر: ۱۸۳۹].

حضرت عبدالله بن ابى اوفىٰ نه روايت دې چه مونږ په سفر کښې حضرت نبی کريم ﷺ سره وو، کله چه نمر ډوب شو نو حضرت نبی کريم ﷺ يو سړی ته اوفرمائيل چه کوز شه او خمونږ دپاره ستوان واغړه. هغه اووئيل چه تاسو ترمابنام پورې صبر کړې وې،حضرت نبی کريم ﷺ ورته اوفرمائيل چه کوز شه او ستوان واغړه . هغه اووئيل چه کاش تاسو مابنام پورې صبر کړې وې،ځکه چه لاخو ورځ باقی ده. حضرت نبی کريم ﷺ بيا اوفرمائيل چه کوزشه او ستوان واغړه .نو دريم ځل حکم کولو نه پس هغه کوز شو هغه دحضرت نبی کريم ﷺ دپاره ئې ستوان واغړلو،اوحضرت نبی کريم ﷺ اوڅکل .بيا حضرت نبی کريم ﷺ

۱) اوګورئ الاشباه والنظائر ،احكام الاشارة : ۳/۴۵۴).
۲) صحيح البخارى :الخصومات ،باب مايذكر فى الاشخاص والخصومة بين المسلم واليهودى : ۳۲۵/۱).
۳) عمدة القارى: ۲۸۷،۲۸۸/۲۰).

مشرق طرفته خپل لاس مبارك سره اشاره اوكړه او وې فرمائيل چه كله تاسو شپه ددې طرفنه راتلل وينئ نو روژه افطار كوئ.

په اصل كښې غروب شوې وو، مغرب طرفته تياره لګيدلې وه. خوهغه سرې دا ګنړل چه اوس هم لا ورځ ده. دلته هم حضرت نبی كريم ﷺ مشرق طرفته اشاره فرمائيلې ده او دشپې راتلل ئې اوفرمائيل.

د «جدح» معنی ستوان په اوبو كښې خوشتول، دا حديث په كتاب الصوم كښې د «باب متی يحل فطر الصائم» تحت تير شوې دې.(۱)

[۴۹۹۲] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ عَنْ سُلَيْمَانَ التَّيْمِيِّ عَنْ أَبِي عُثْمَانَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَمْنَعَنَّ أَحَدًا مِنْكُمْ نِدَاءُ بِلَالٍ أَوْ قَالَ أَذَانُهُ مِنْ سَحُورِهِ فَإِنَّمَا يُنَادِي أَوْ قَالَ يُؤَذِّنُ لِيَرْجِعَ قَائِمَكُمْ وَلَيْسَ أَنْ يَقُولَ كَأَنَّهُ يَعْنِي الصُّبْحَ أَوِ الْفَجْرَ وَأَظْهَرَ يَزِيدُ يَدَيْهِ ثُمَّ مَدَّ أَحَدَاهُمَا مِنَ الْأُخْرَى

حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه روايت دې چه حضرت نبی كريم ﷺ فرمائيلی دی چه دبلال اذان دې تاسو كښې څوك د پشنمی دخوراك نه منع نه كړی. ځكه چه هغه ددې په وجه اذان كوی چه په تاسوكښې تهجدو كولووالا آرام اوكړی، دهغه مقصد دانه وی چه ګنی سبا شو. يزيد بن زريع خپل دواړه لاسونه مخكښې اوږده كړل او وې وئيل چه دصبا صادق رنړا داشان خوريږی.

«نِدَاءُ بِلَالٍ أَوْ قَالَ أَذَانُهُ» راوی ته شك دې چه حضرت نبی كريم ﷺ «لَا يَمْنَعَنَّ أَحَدًا مِنْكُمْ نِدَاءُ بِلَالٍ» فرمائيلی دی يا «لَا يَمْنَعَنَّ أَحَدًا مِنْكُمْ اذان بِلَالٍ» فرمائيلی وو. داشان په مخكښې جمله كښې هم راوی ته شك دې چه حضرت نبی كريم ﷺ «فَإِنَّمَا يُنَادِي لِيَرْجِعَ قَائِمَكُمْ» فرمائيلی وو يا «فَإِنَّمَا يُؤَذِّنُ لِيَرْجِعَ قَائِمَكُمْ» فرمائيلی وو، «ينادی» او «يوذن» كښې شك دې «لِيَرْجِعَ قَائِمَكُمْ» دقائم نه مرادتهجد كولو والا دې، رجع لازم او متعدی دواړه مستعمل دی. «رجع رجوعا» واپس كيدل، «رجع، رجعا» واپس كول، په دې ځائې كښې لازمی او متعدی دواړه احتمال دی. دلازم په صورت كښې «قائم» فاعل كيدو په وجه مرفوع به وی يعنی تهجد كولو والا واپس شی، مطلب دادې چه د سحر دمونځ نه مخكښې څه ساعت آرام اوكړی، دمتعدی په صورت كښې «قائم» مفعول به واقع كيدو په وجه به منصوب وی، يعنی هغه اذان تهجد كوونكی آرام طرفته واپس كړی.(۲)

**قوله:** وَلَيْسَ أَنْ يَقُولَ كَأَنَّهُ يَعْنِي الصُّبْحَ أَوِ الْفَجْرَ: «كَأَنَّهُ يَعْنِي» د راوی طرف نه په مينځ

۱) فتح الباری: ۹/۵۴۶).
۲) ارشاد الساری: ۱۲/۷۳، وعمدة القاری: ۲۰/۲۸۹).

كښې جمله معترضه ده.اصل حديث عبارت دې.((وَلَيْسَ أَنْ يَقُولَ الصبح))((يقول))فعل مضارع. ((ا ن))مصدريه داخل كيدو په وجې سره((قول))مصدر معنى كښې دې. عبارت به شي((وليس قول الصبح))او((قول))نه دلته كلام مراد نه دې بلكه مقصد او اراده مراد ده نو معنى به شي((وليس مقصد الصبح))يعنى دحضرت بلال اذان وركولو سره مقصد دسبا اعلان كول نه دې بلكه مقصد داوى چه تهجد كولو والاخه وخت آرام اوكړى. حضرت بلال ﷺ دا اذان به دسبا نه مخكښې وركولو. راوى په طور د تفسير((يقول))نه پس((كانه يعنى))اضافه اوكړه.دې خبرې طرفته اشاره كولو دپاره چه((يقول يعنى))معنى كښې وئيل دادى چه دقول نه دلته كلام مراد نه دې بلكه فعل مراد دې . دا د((اطلاق القول على الفعل))د قبيل نه دې.(۱)دا روايت په كتاب الصلوة كښې تير شوې دې،هلته((كانه يعنى))دا جمله معترضه نه ده.نو هلته عبارت دې((وليس ان يقول الفجراو الصبح))(۲)

((الفجر))او((الصبح))كښې راوى ته شك دې چه حضرت نبى كريم ﷺ((الفجر)) فرمائيلى وو يا((الصبح)).

((سحور)) (دسين په فتحه سره) هغه څيز ته وئيلې شى چه دسحر په وخت كښې خوړلې شى.اودسين په ضمه سره مصدر دې،پيشنمې خوړل،اكثر حضرات دسين د فتحه سره روايت كوى.(۳)

**قوله: وَأَظْهَرَ يَزِيدُ يَدَيْهِ ثُمَّ مَدَّ إِحْدَاهُمَا مِنَ الْأُخْرَى:** د((اظهر))ترجمه علامه عينى رحمه الله كړې ده((جعل احدى يديه على ظهر الاخرى))يعنى يو لاس دبل لاس په شا باندې اېښودل .او علامه قسطلانى رحمه الله فرمائى چه((اظهر من الظهور بمعنى العلوا اى اعلى يديه و رفعهما طويلا اشارة الى صورة الفجر الكاذب ثم مد احد احداهما من الاخرى اشارة الى الفجر الصادق)) (۴)يعنى خپل لاسونه ئې پورته طرفته ته اوچت كړل او اوږده ئې كړل.اشاره ئې صبح كاذب طرفته وه چه ددې رڼړا اوږده او مستطيل وى.بيا يو لاس دبل لاس نه بيل اوږدول اودا شاره وه د صبح صادق طرفته چه ددې رڼړا خوره وى .

په دې حديث كښې چونكه اشاره كړې شوې ده،ددې وجې ددې باب تحت ئې دا ذكر كړل.

۱ ) عمدة القارى: ۲۸۹/۲۰).
۲ ) صحيح البخارى (مع فتح البارى) كتاب الاذان،باب الاذان قبل الفجر : ۱۰۳/۲).
۳ ) ارشاد السارى: ۷۲/۱۲).
٤ ) ارشاد السارى: ۷۳/۱۲) .

[۴۹۹۳] وَقَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِي جَعْفَرُ بْنُ رَبِيعَةَ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ هُرْمُزَ سَمِعْتُ أَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَثَلُ الْبَخِيلِ وَالْمُنْفِقِ كَمَثَلِ رَجُلَيْنِ عَلَيْهِمَا جُبَّتَانِ مِنْ حَدِيدٍ مِنْ لَدُنْ ثَدْيَيْهِمَا إِلَى تَرَاقِيهِمَا فَأَمَّا الْمُنْفِقُ فَلَا يُنْفِقُ شَيْئًا إِلَّا مَادَّتْ عَلَى جِلْدِهِ حَتَّى تُجِنَّ بَنَانَهُ وَتَعْفُوَ أَثَرَهُ وَأَمَّا الْبَخِيلُ فَلَا يُرِيدُ يُنْفِقُ إِلَّا لَزِمَتْ كُلُّ حَلْقَةٍ مَوْضِعَهَا فَهُوَ يُوسِعُهَا فَلَا تَتَّسِعُ وَيُشِيرُ بِإِصْبَعِهِ إِلَى حَلْقِهِ [ر:۱۳۷۵].

حضرت ابو هريره رضي الله عنه فرمائى چه حضرت نبى كريم صلى الله عليه وسلم فرمائى چه د بخيل او خرچ كولو والا (سخى) مثال د دوؤ سړو په شان دې چه د اوسپنې زره داشان واغوندى چه هغه د سينې نه تر نامه پورې وى او سخى سړې چه كله خرچ كوى نو دده زره فراخه او دده په بدن كښې تر دې حده پورې اوږده وى چه هغه زره دده (د پښو د ګوتو) بندونو پورې وى، او د دې نقش پا ختموى ليكن بخيل چه كله هم د خرچ كولو اراده كوى نو دده د زرې هره حلقه په خپل ځائې باندې انخلى، هغه داسې فراخه كول غواړى ليكن هغه نه فراخه كيږى. دوى په خپله ګوته د خپلې حلقې طرفته ته اشاره اوكړه.

«جبتان من حديد» د اوسپنې دوه جبې يعنى زرې. «ثدييهما» دا د «ثدى» تثنيه ده. سينې ته ونيلې شى. بعضو نسخو كښې «ثديهما» جمع ده. «ثدى» د ثاء په ضمه، او د دال په كسره او دياء په تشديد سره ) د «ثدى» جمع ده. «تراقيهما» «تراقى» د «ترقوة» جمع ده. «وهى العظيم الكبير الذى بين ثغرة النحر والعاتق» هنسلى «مادت» دا د مد نه د باب مفاعله صيغه ده. اصل كښې «ماددت» د دال په دال كښې ادغام شوې دې يعنى په معنى د اوږدول، لويول. «تجن» د باب افعال نه دې، په معنى پټولو «بنان» بندونه، د ګوتو سرونه .(۱)

حضرت نبى كريم صلى الله عليه وسلم په دې حديث مبارك كښې د سخى مثال د هغه سړى سره وركړې دې چه هغه زره اغوستې وى. كله چه هغه خرچ كوى نو دده په جسم باندې هغه زره دومره اوږده او فراخه وى چه دده د پښو ګوتې هم پټې شى. كله چه دې روان شى نو دده د قدمونو نښې هغه زره ختموى، داشان سخې سړې چه كله د خرچ كولو اراده اوكړى نو دده زره فراخه وى . او د سخاوت د غلطئ اوكوتاهئ ختموى .حالانكه بخيل سړې چه كله د خرچ كولو اراده اوكړى نو دده زره تنګ او لاسونه ئې اودريږى. (۲)

دا حديث په كتاب الزكاة كښې موصولاً تير شوې دې .(۳) د حديث آخرى جمله «ويشير باصبعه الى حلقه» په وجه دا روايت ئې دلته ذكر كړې.

۱) د مذكوره الفاظو د تحقيق د پاره اوګورئ عمدة القارى: ۲۸۹/۲۰ . وارشادالسارى: ۷۳/۱۲).

۲) فتح البارى: كتاب الزكاة باب مثل المتصدق البخيل: ۳۰۶/۳).

۳) صحيح البخارى: (مع فتح البارى) كتاب الزكاة ،باب مثل المتصدق والبخيل : (۳۰۶/۳).

# ٢٣=باب اللعان

وَقَوْلِ اللهِ تَعَالَى وَالَّذِينَ يَرْمُونَ أَزْوَاجَهُمْ وَلَمْ يَكُنْ لَهُمْ شُهَدَاءُ إِلَّا أَنْفُسُهُمْ إِلَى قَوْلِهِ إِنْ كَانَ مِنَ الصَّادِقِينَ [ر:النور:٦_٩] .

فَإِذَا قَذَفَ الْأَخْرَسُ امْرَأَتَهُ بِكِتَابَةٍ أَوْ إِشَارَةٍ أَوْ بِإِيمَاءٍ مَعْرُوفٍ فَهُوَ كَالْمُتَكَلِّمِ لِأَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ أَجَازَ الْإِشَارَةَ فِي الْفَرَائِضِ وَهُوَ قَوْلُ بَعْضِ أَهْلِ الْحِجَازِ وَأَهْلِ الْعِلْمِ وَقَالَ اللهُ تَعَالَى فَأَشَارَتْ إِلَيْهِ قَالُوا كَيْفَ نُكَلِّمُ مَنْ كَانَ فِي الْمَهْدِ صَبِيًّا [ر:٢٩] وَقَالَ الضَّحَّاكُ إِلَّا رَمْزًا [ر:٤١]. إِلَّا إِشَارَةً.

((لعان))د باب مفاعله مصدر دې .چه ددې معنى لرې كول دى. په اصطلاح كښې دلعان تعريف دحضرات حنفيه په نيز دادې چه((شهادات موكدات بالايمان مقرونة باللعن، قائمة مقام حد القذف فى حقه ومقام حد الزنا فى حقها))او د ائمه ثلاثه په نيز دلعان تعريف دادې چه((هى ايمان موكدات بلفظ الشهادة))(١)

دحضرات حنفيه په نيز دلعان دپاره دشهادت اهليت شرط دې.((فلا يجرى الابين المسلمين الحرين العاقلين البالغين غير المحدودين فى قذف))د ائمه ثلاثه په نيز ديمين اهليت لعان دپاره شرط دې،ددې وجې ددوى په نيز مسلمان سړې او كافره ښځه كافر سړې او كافره ښځه غلام او دده ښځې په مينځ كښې هم لعان كيديشى.(٢)

د حضرت امام بخارى رحمه الله مقصد ددې باب نه دادې چه لعان كښې دننه اشاره معتبر ده. چه څنګه په طلاق كښې دننه اشاره معتبر ده. په رومبى باب كښې ئې اشاره باالطلاق ذكر كړه. او په دې باب كښې اشاره فى اللعان فرمائى .دمخكښې باب په شان په دې باب كښې هم حضرت امام بخارى رحمه الله داسې آثار اواحاديث ذكر فرمائيلى دى چه په هغې كښې داشارې اعتبار او ددې ذكر دې. د حضرت امام شافعى رحمه الله او حضرت امام مالك رحمه الله په نيز لعان كښې دننه داشارې اعتبار به كولې شى.

دحضرت امام ابوحنيفه رحمه الله،امام وزاعى او اسحاق بن راهويه په نيز لعان كښې دننه داشارې به هيڅ اعتبار نه وى.(٣)

په ترجمة الباب كښې حضرت امام بخارى رحمه الله دقران پاك آيت((والذين يرمون ازواجهم))ذكر فرمائى،ا مام د((يرمون))لفظ نه استدلال كړې دې. چه دا عام ده خواه لفظ سره وى اوكه اشارې سره.(٤)

١ ) اوګورئ هداية باب اللعان : ٢/ ٤١٦، ٤١٧).
٢ ) الابواب والتراجم: ٢/٨١).
٣ ) فتح البارى: ٩/٥٤٩، ٥٥٠).
٤ ) فتح البارى: ٩/٥٤٩).

مخکښې حضرت امام بخاری رحمه الله فرمائی که اخرس خپلې ښځې باندې دکتابت په ذريعه يا د اشارې په ذريعه تهمت اولګولو نو دا به په منزله د کلام وی. اوددې اعتبار به کولې شی. ددې وجې حضرت نبی کريم په قرائنو (مونځ وغيره کښې) کښې داشارې اعتبار کړې دې. بعضو اهل حجاز ((مالك وغيره)) هم دا مسلك دې، بعضې نور اهل علم د ( سفيان ثوری) وغيره هم دا مسلك دې.(١)

په قران پاك کښې د حضرت مريم په واقعه کښې دی چه ((فاشارت اليه قالوا كيف نكلم من كان فی المهد صبيا)) حضرت مريم باندې کله چه خلقو الزام اولګولو نوهغوی حضرت عيسى عليه السلام طرفته اشاره اوکړه،خلقو اووئيل چه مونږ هغه ماشوم سره څنګه خبرې اوکړو چه په ځانګو کښې پروت دې. دراصل حضرت مريم عليها السلام منت منلې وو چه خبرې به نه کوی. ((انی نذرت للرحمان صوما)) په دې کښې د((صوم)) نه مراد خاموشی ده نو په دې حالت کښې هغه داخرس په حکم کښې وه، هغې اشاره اوکړه نو خلقو ددې اشاره کافی اوګڼړله او ددې نه ئې هغه سوال دوباره اونه کړو. (٢) اګرچه کوم طرفته اشاره کړې شوې وه، په هغې باندې هغې نکير اوکړو، بهر حال دې آيت کريمه سره حضرت امام بخاری رحمه الله داشارې په معتبر کيدو استدلال کړې دې.

**قوله:** قَالَ الضحاك الا رمزا اشارة: دقران پاك سورة آل عمران په آيت کريمه کښې دی چه ((ايتك ان لا تكلم الناس ثلاثة ايام الا رمزا)) په دې کښې د((رمز)) معنی اشاره ده،دا به درې ورځې په اشارې سره خبرې کوی، په ژبه به خبرې نشی کولې.دا دحضر زکريا عليه السلام واقعه ده، چه الله جل جلاله هغه ته د زوئې زيرې ورکړو، نو هغوی دالله جل جلاله نه خواست اوکړو چه څه نښه مقرر او فرمائې چه کله خما خوئې کيږی.((رب اجعل لی اية)) نو الله جل جلاله جواب کښې ((ايتك ان لا تكلم الناس ثلاثة ايام الا رمزا)) اوفرمائيل.په دې کښې اشارې ته دکلام حکم ورکړې شو، معلوم شو چه اشاره معتبر وی،دا تعليق عبدبن حميد موصولاً نقل کړېدې.(٣)

وَقَالَ بَعْضُ النَّاسِ لَا حَدَّ وَلَا لِعَانَ ثُمَّ زَعَمَ اَنَّ الطَّلَاقَ بِكِتَابٍ اَوْ اِشَارَةٍ اَوْ اِيمَاءٍ جَائِزٌ وَلَيْسَ بَيْنَ الطَّلَاقِ وَالْقَذْفِ فَرْقٌ فَاِنْ قَالَ الْقَذْفُ لَا يَكُونُ اِلَّا بِكَلَامٍ قِيلَ لَهُ كَذٰلِكَ الطَّلَاقُ لَا يَجُوزُ اِلَّا بِكَلَامٍ وَاِلَّا بَطَلَ الطَّلَاقُ وَالْقَذْفُ وَكَذٰلِكَ الْعِتْقُ وَكَذٰلِكَ الْاَصَمُّ يُلَاعِنُ
وَقَالَ الشَّعْبِيُّ وَقَتَادَةُ اِذَا قَالَ اَنْتِ طَالِقٌ فَاَشَارَ بِاَصَابِعِهِ تَبِينُ مِنْهُ بِاِشَارَتِهِ
وَقَالَ اِبْرَاهِيمُ الْاَخْرَسُ اِذَا كَتَبَ الطَّلَاقَ بِيَدِهِ لَزِمَهُ

---

١ ) عمدة القاري: ٢٠/٢٩١).
٢ ) فتح الباري: ٩/٥٥٠).
٣ ) فتح الباري: ٩/٥٥٠).

وَقَالَ حَمَّادٌ الأخرَسُ وَالأصَمُّ إنْ قَالَ بِرَاسِهِ جَازَ اى اشار كل منهما براسه جاز.

**قوله:** وَقَالَ بَعْضُ النَّاسِ لَا حَدَّ وَلَا لِعَانَ: بعضې خلقو ونيلي دی چه اشارې سره نه حد واجب کيږی او نه لعان. که يو سړی په اشارې سره اووئيل چه فلانی سړی زنا کړې ده يا اشارې سره ئې اووئيل چه څما ښځې زنا کړې ده .نو داسې سړی باندې به نه حد جاری وی. او نه داسې ښځې خاوند باندې به لعان وی،بيا ددې خلقو هم دا مذهب دې چه کتاب او اشارې سره طلاق واقع کيږی حالانکه د طلاق او قذف په مينځ کښې هيڅ فرق نشته دې، (لهذا طلاق اشارې سره کيدېشی نو قذف کښې اشاره ولې غير معتبر ده) که هغه دا اووائی چه د قذف دپاره کلام ضروری دې نو دې ته به وئيلې کيږی چه د طلاق دپاره هم کلام ضروری دې گنی په اشارې سره طلاق .قذف او د اشان عتاق ټول ئې باطل اوګڼړل يعنی يا خو په دې ټولو کښې اشاره معتبر اوګڼړی يا په ټولو کښې غير معتبر، طلاق کښې اشارې لره معتبر ګڼړل او قذف کښې غير معتبر ګڼړل دا فرق صحيح نه دې.

دا په اصل کښې حضرت امام بخاری رحمه الله دحضرات حنفيه په مذهب باندې رد کړې دې.«بعض الناس»نه يا خو حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله مراد دې او يا حنيفه، ځکه چه دحنفيه په نيز طلاق کښې دننه داخرس اشاره مفهمه معتبر ګڼړلې شی،ليکن په قذف کښې نه ده . حضرت امام بخاری رحمه الله طلاق او دقذف په مينځ کښې دا فرق درست نه ګڼړی،دهغوی خيال دې چه اشاره يا دواړو کښې معتبر کيدل پکار دی يا په دواړو کښې غير معتبر.

ليکن حضرات حنفيه د دواړو په مينځ کښې چه کوم فرق کړې دې هغه بالکل واضح دې.ځکه چه دطلاق تعلق احکامو سره دې،او دلعان تعلق حدود سره او دحدود په باره کښې قاعده ده چه«الحدود تندری بالشبهات»حدود شبهات سره ساقط کيږی،لعان دخاوند په حق کښې دحد قذف قائمقام وی او دښځې په حق کښې حد زنا قائمقام وی او دا خبره خپل ځائې باندې کړې شوې ده.چه اشاره او رمز که هر څومره واضح ولې نه وی،ليکن په دې کښې احتمال بيا هم باقی پاتې کيږی او داحتمال باقی پاتې کيدو وجې سره شبه پيش راتلې شی،ددې وجې حنفيه لعان او حدود کښې اشاره اعتبار نه دې کړې .(۱)

**قوله:** وكذالك الاصم يلاعن: کونړ سړې لعان کولې شی. حنفيان هم دې ته درست وائی. ځکه چه هغه ژبې سره خبرې کولې شی. او په دې کښې هيڅ احتمال نشته دې،امام بخاری رحمه الله داهم خپل تائيد کښې پيش کوی ليکن فرق واضح دې. چونکه احناف داخرس اشاره اعتبار سره دشبك په وجه نه کوی او اصم خو اشاره نه کوی خبرې کوی په خلاف داخرس چه هغه خبرې کوی اشارې نه کوی.

شعبی رحمه الله او قتاده رحمه الله فرمائی چه کله سړې«انت طالق»اووائی او خپلې ګوتو سره«د دريو

۱) فيض الباری: ۴/۳۲۶،وعمدة القاری : ۲۰/۲۹۱).

طلاقو)اشاره اوكړى نو ددې اشارې په وجه ښځه به بائنه وى.
دحنفيه په نيز هم عدد طلاق كښې اشاره معتبره ده.ابن ابى شيبه‌دا تعليق موصولاً نقل كړې دې.(١)
حضرت ابراهيم‌نخعى رحمه الله فرمائى چه گونگې كه خپل لاس سره طلاق اوليكى نو طلاق به واقع كيږى.ابن ابى شيبه دا تعليق موصولاً نقل كړې دې (٢)دحنفيه په نيز هم دكتابت په ذريعه طلاق واقع كيږى.

**قوله:** وَقَالَ إِبْرَاهِيمُ الْأَخْرَسُ إِذَا كَتَبَ الطَّلَاقَ بِيَدِهِ لَزِمَهُ: د حضرت امام‌ابوحنيفه رحمه الله استاد حماد بن ابى سليمان رحمه الله فرمائى كه گونگې او كونړ كه په سره اشاره اوكړى‌نو جائز ده(معلومه شوه چه اشاره معتبره ده).
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه د حضرت امام‌ابوحنيفه رحمه الله داستاد قول نقل كوى گويا چه حضرت امام بخارى رحمه الله د حنفيانو الزام مسترد كول غواړى.(٣)

**قوله:** وَقَالَ حَمَّادٌ الْأَخْرَسُ وَالْأَصَمُّ إِنْ قَالَ بِرَأْسِهِ جَازَ: علامه عينى رحمه الله فرمائى چه حافظ ابن حجر رحمه الله دشيخ حماد په‌مراد‌باندې پوهه شوې نه دې.كه هغه دده په مقصد‌باندې پوهه شوې وې،نو دا خبره به ئې نه كوله .دشيخ عماد مقصد دادې چه‌دگونگى اشاره كه معروفه وى نو هغه دعبارت او نطق قائمقام ده.او دحنفيانو هم دامسلك دې.(٤)

[٤٩٩٤] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا لَيْثٌ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ الْأَنْصَارِيِّ أَنَّهُ سَمِعَ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ يَقُولُ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَلَا أُخْبِرُكُمْ بِخَيْرِ دُورِ الْأَنْصَارِ قَالُوا بَلَى يَا رَسُولَ اللَّهِ قَالَ بَنُو النَّجَّارِ ثُمَّ الَّذِينَ يَلُونَهُمْ بَنُو عَبْدِ الْأَشْهَلِ ثُمَّ الَّذِينَ يَلُونَهُمْ بَنُو الْحَارِثِ بْنِ الْخَزْرَجِ ثُمَّ الَّذِينَ يَلُونَهُمْ بَنُو سَاعِدَةَ ثُمَّ قَالَ بِيَدِهِ فَقَبَضَ أَصَابِعَهُ ثُمَّ بَسَطَهُنَّ كَالرَّامِي بِيَدِهِ ثُمَّ قَالَ وَفِي كُلِّ دُورِ الْأَنْصَارِ خَيْرٌ [ر: ٣٥٧٨].

[٤٩٩٥] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ أَبُو حَازِمٍ سَمِعْتُهُ مِنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ السَّاعِدِيِّ صَاحِبِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بُعِثْتُ أَنَا وَالسَّاعَةَ كَهَذِهِ مِنْ هَذِهِ أَوْ كَهَاتَيْنِ وَقَرَنَ بَيْنَ السَّبَّابَةِ وَالْوُسْطَى [ر: ٣٦٥٢]

[٤٩٩٦] حَدَّثَنَا آدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا جَبَلَةُ بْنُ سُحَيْمٍ سَمِعْتُ ابْنَ عُمَرَ يَقُولُ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الشَّهْرُ هَكَذَا وَهَكَذَا وَهَكَذَا يَعْنِي ثَلَاثِينَ ثُمَّ قَالَ وَهَكَذَا وَهَكَذَا وَهَكَذَا يَعْنِي تِسْعًا وَعِشْرِينَ يَقُولُ مَرَّةً ثَلَاثِينَ وَمَرَّةً تِسْعًا وَعِشْرِينَ [ر: ١٨٠١].

١ ) فتح البارى: ٥٥١/٩).
٢ ) فتح البارى: ٥٥١/٩).
٣ ) فتح البارى: ٥٥١/٩).
٤ ) عمدة القارى: ٢٩٢/٢٠).

[۴۹۹۷] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ عَنْ اسْمَاعِيلَ عَنْ قَيْسٍ عَنْ ابِي مَسْعُودٍ قَالَ وَاشَارَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَدِهِ نَحْوَ الْيَمَنِ الايمَانُ هَاهُنَا مَرَّتَيْنِ الا وَانَّ الْقَسْوَةَ وَغِلَظَ الْقُلُوبِ فِي الْفَدَّادِينَ حَيْثُ يَطْلُعُ قَرْنَا الشَّيْطَانِ رَبِيعَةَ وَمُضَرَ [ر:۳۱۲۶].

[۴۹۹۸] حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ زُرَارَةَ اخْبَرَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ ابِي حَازِمٍ عَنْ ابِيهِ عَنْ سَهْلٍ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَانَا وَكَافِلُ الْيَتِيمِ فِي الْجَنَّةِ هٰكَذَا وَاشَارَ بِالسَّبَّابَةِ وَالْوُسْطٰى وَفَرَّجَ بَيْنَهُمَا شَيْئًا [ر:۵۶۵۹].

حضرت امام بخاری رحمه الله پنځه مرفوع احادیث ذکرکړی دی،په دې ټولو کښې داشارې ذکر دې . لیکن دیو هم تعلق لعان سره نه دې .او دحدود په باب کښې نه دې،لهذا ددې احادیثو نه دلعان په باب کښې اشاره معتبر کیدو باندې استدلال کول قابل قبول نه دی.

آخری حدیث حضرت امام بخاری رحمه الله دلته په ړومبی ځل باندې ذکر کړو چه حضرت نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی چه ځه او یتیم کفالت کولو والادواړه به په جنت کښې داشان یو او دسبابه(مسواکې ګوتې) او مینځنۍ ګوتې سره ئې اشاره اوکړه اوددواړو په مینځ کښې ئې لږه شان فاصله پرینبوده. اشاره وه دقرب طرفته چه ځه او دیتیم پرورش کولو والا به جنت کښې یو بل سره نزدې یو.

## ۲۴=بَاب إِذَا عَرَّضَ بِنَفْيِ الْوَلَدِ

[۴۹۹۹] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ قَزَعَةَ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنْ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ ابِي هُرَيْرَةَ انَّ رَجُلًا اتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ وُلِدَ لِي غُلَامٌ اسْوَدُ فَقَالَ هَلْ لَكَ مِنْ ابِلٍ قَالَ نَعَمْ قَالَ مَا الْوَانُهَا قَالَ حُمْرٌ قَالَ هَلْ فِيهَا مِنْ اوْرَقَ قَالَ نَعَمْ قَالَ فَانّٰى ذٰلِكَ قَالَ لَعَلَّهُ نَزَعَهُ عِرْقٌ قَالَ فَلَعَلَّ ابْنَكَ هٰذَا نَزَعَهُ [ر:۶۸۸۴،۶۴۵۵].

د حضرت امام بخاری رحمه الله مقصد دادې که یو سړې صراحتاً دخپل بچې د نسب انکار اونه کړی بلکه تعریضاً انکار اوکړی،دتعریض مطلب دادې چه څوک داسې خبره ذکر کړی چه د هغې نه غیر مذکوره خبره معلومه شی.(۱)لکه اووائی چه روره ! ځما رنګ تور دې،دابچې دسپین رنګ ولې پیدا شوې دې.ددې جملې مطلب دا هم کیدیشی چه دابچې ځما نه دې،په دې تعریض باندې دلعان مرتب کولو سلسله کښې اختلاف دې.

دحضرات حنفیه،شافعیه او جمهور علماء په نیز تعریض باندې حد قذف نه جاری کیږی . اونه دزوجین په مینځ کښې به لعان رازی.البته تعزیراً ده ته سزا ورکولې شی.

دحضرات مالکیه په نیز دتعریض وجې سره لعان او حد دواړه جاری کیږی. د حضرت امام احمد بن حنبل رحمه الله نه یوروایت دجمهورو مطابق او نور روایتونه دمذهب مالکیه مطابق دې.(۲)

---

۱ ) التعریض هو ذکر شئ یفهم منه شئ اخر لم یذکر ... فتح الباری: ۵۵۲/۹).

۲ ) مذاهب مذکوره دپاره اوګورئ الابواب والتراجم : ۸۲/۲).

روايت باب كښې دى چه يو سړي دحضرت نبى كريم ﷺ په خدمت كښې حاضرشو او عرض ئې اوكړو چه يارسول الله ﷺ !خما يو هلك پيدا شوې دې چه تور دې (دا تعريض وو چه خه سپين يم او هلك تور دې نوهغه خما خوئې څنګه شو)حضرت نبى كريم ﷺاوفرمائيل چه آيا تاسره اوښان شته دې .هغه اوونيل چه آو .حضرت نبى كريم ﷺ ترې تپوس اوكړوچه هغه دڅه رنګ دي ؟هغه اوونيل چه دسور رنګ .حضرت نبى كريم ﷺ تپوس اوكړو چه آيا په هغه كښې څه توربخن خاكى رنګ شته دې ؟هغه اوونيل چه آو. حضرت نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چه داسې ولې اوشو؟هغه اوونيل چه شائد څه رګ دې راخكلې وى. نو حضرت نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چه ممكن دى چه ستا څه رګ دې راخكلې وى.

**قوله:** ان رجل اتى النبى ﷺ: ددې سړى نوم ضمضم بن قتاده وو ،(١) دې راغلواو وې وئيل چه((ان مراتى ولدت غلاما اسود))دا تعريض وو، نو ددې روايت په بعضو طريق كښې ددې جملې نه پس دا الفاظ هم دى چه((يعرض بنفيه))(٢)

يعنى هغه ددې هلك دخپل ځان نه نفى كول غوښتل چه څه خو سپين يم او دا هلك تور دې. دا خما خوئې څنګه كيديشى ؟.هم ددې تعريض په وجه داحديث حضرت امام بخارى رحمه الله په دې باب كښې ذكر كړو. حضرت نبى كريم ﷺدده د فهم اوماحول مطابق دده نه سوال اوكړو چه اوښان دمختلف رنګونو ولې وى. د سور اوښ بچې اكثر تور رنګ كښې وى داسې ولې وى؟ هغه اوونيل چه((لعل نزعه عرق)) يعنى يو رګ ده لره راكاږى.مطلب دادې چه ددې په اصول كښې څه څيز ددې رنګ وى. هغه څيز په ده باندې غالب راشى. چه ددې په وجه بچې هغه رنګ اختياروى. (٣) حضرت نبى كريم ﷺاوفرمائيل چه ستا په خوئې كښې هم داشان كيديشى.

((لعل نزعه عرق))كښې لعل فعل باندې داخل دې،حالانكه هغه په اسم باندې داخليږي، بعضې روايتونو((لعله نزعه عرق))دې نوبياخو څه اشكال نشته دې، بعضو وئيلى دى چه صحيح خبره داده چه((عرق))منصوب دې ((لعل عرقا نزعه))په دې صورت كښې ((عرقا))د((لعل)) به اسم وى.((اورق الذى فيه سواد ليس بحالك بل يميل الى الغبرة))يعنى داسې رنګ چه خالص تور نه وى بلكه په دې كښې څه خاكوالئى هم وى.(٤)

حضرت امام بخارى رحمه الله په ددې باب تحت مذكوره روايت ذكر كړې دې،اودې طرفته ئې اشاره كړې ده چه قذف او لعان كښې تعريض معتبر نه دې لكه څنګه چه دجمهورو مسلك دې.

---

١ ) فتح البارى: ٩/٥٥٣).
٢ ) فتح البارى: ٩/٥٥٣).
٣ ) والمغنى يحتمل ان يكون فى اصولها ماهو باللون المذكور،فاجتذبه اليه فجاء على لونه وادعى الداودى ان لعل هنالک الحقيق (فتح البارى: فتح البارى: ٩/٥٥٢).
٤ ) فتح البارى: ٩/٥٥٤).

## ۲۵=باب إحلاف الملاعن

[۵۰۰۰] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ اسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا جُوَيْرِيَةُ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ انَّ رَجُلًا مِنَ الْانْصَارِ قَذَفَ امْرَاتَهُ فَاحْلَفَهُمَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ فَرَّقَ بَيْنَهُمَا [ر:۴۴۷۱].

دحضرات حنفیه په نیز لعان اصل کښې شهادت دې،چه ددې تاکید دیمین په ذریعې سره کیږي. دمالکیه او شوافع په نیز لعان په اصل کښې یمین دې او د ( اشهد) په ذریعه ددې تاکید کولې شی،دثمره اختلاف او کتابیه په مینځ کښې دلعان صورت دراتلو په نوبت کښې به ظاهر وی . دمالکیه او شوافع په نیز ددوی په مینځ کښې به لعان درست وی. ځکه چه کتابیه دیمین اهل نه دی لکه څنګه چه ماقبل تیر شوی دی.

حضرت امام بخاری رحمه الله د ((احلاف الملاعن)) عنوان قائم کړې دې او دې طرفته ئې اشاره کړې ده چه هغه لعان لره یمین ګنړی،حدیث باب کښې هم ددوی استدلال دې ځکه چه په دې کښې ((فاحلفهما)) الفاظ دی،احلاف نه کلمات لعان ادا کیدل مراد دی.

دحنفیه مستدل دقران پاک آیت دې،((فشهادة احدهم اربع شهادات بالله)) په دې کښې لعان لره شهادت سره تعبیر کړې شوې دې.

## ۲۶=باب يبدأ الرجل بالتلاعن

[۵۰۰۱] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا ابْنُ ابِي عَدِيٍّ عَنْ هِشَامِ بْنِ حَسَّانَ حَدَّثَنَا عِكْرِمَةُ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا انَّ هِلَالَ بْنَ امَيَّةَ قَذَفَ امْرَاتَهُ فَجَاءَ فَشَهِدَ وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ انَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ انَّ احَدَكُمَا كَاذِبٌ فَهَلْ مِنْكُمَا تَائِبٌ ثُمَّ قَامَتْ فَشَهِدَتْ [ر: ۲۵۲۶].

حضرت امام بخاری رحمه الله په دې باب کښې دا خبره وئیل غواړي چه دلعان شروع به دسړی نه کیږی .دا یو متفق علیه مسئله ده،البته که اتفاق سره ښځې دسړی نه مخکښې لعان اوکړو نو د حضرت امام شافعی رحمه الله او اشهب مالکی او ابن عربی په نیز ددې دلعان اعتبار به نشی کولې. بلکه د سړی د لعان نه پس ښځې سره به اعاده کولې شی. د حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله او قاسم مالکی په نیزدده دلعان اعتبار به کولې شی،ځکه چه قران پاک کښې دسړی اودښځې لعان لره حرف عطف واو ذریعې سره بیان کړې شوې دې. او واو مطلقا جمعې دپاره رازی . دترتیب تقاضا نه کوی.(۱)

په حدیث باب کښې دلعان متعلق دحضرت هلال بن امیه رضی الله عنه قصه مختصرطور ذکر کړې شوې ده،ددې په آخر کښې دی چه((ثم قامت فشهدت)) یعنی دسړی دلعان نه پس بیا ښځه پاسیده او دې لعان اوکړو ،معلوم شو چه ابتداء دسړی نه به وی.

---

۱ ) مذکوره تفصیل دپاره اوګورئ فتح الباری: ۵۵۶/۹).

## ۲۷=بَابُ اللِّعَانِ وَمَنْ طَلَّقَ بَعْدَ اللِّعَانِ

حضرت امام بخاري رحمه الله د ترجمة الباب نه دې طرفته اشاره کړې ده چه د ښځې خاوند ترمينځه فرقت نفس لعان سره واقع کيږي . يا به د تفريق حاکم ضرورت راپيښيږي. ترجمة الباب کښې د «ومن طلق بعد اللعان» الفاظونه د حضرت امام بخاري رحمه الله رجحان دې طرفته معلوميږي چه نفس لعان سره فرقت نه واقع کيږي بلکه دې نه پس ملاعن به طلاق ورکوي نو بيا به فرقت واقع کيږي. په دې مسئله کښې دالاندې څلور مذاهب دي:

① د ائمه ثلاثه مذهب دادې چه نفس لعان سره به فرقت نه واقع کيږي، د مالکيه په نيز فراغ زوج او شوافع په نيز فراغ زوجه نه پس به فرقت واقع کيږي.

② د حضرات حنفيه په نيز تفريق حاکم سره يا د خاوند طلاق ورکولو سره به فرقت واقع کيږي. نفس لعان سره طلاق نه واقع کيږي. د حضرت امام بخاري رحمه الله رجحان هم دې طرفته معلوميږي . (۱) په دې مسئله کښې د حنفيه مسلک د ايلاء برعکس دې، ايلاء کښې د حنفيه په نيز د قضا قاضي ضرورت نشته دې بلکه نفس مدت تيريدو سره به طلاق واقع کيږي. د ائمه ثلاثه په نيز په ايلاء کښې تفريق قاضي نه بغير فرقت به واقع نه وي. لکه څنګه چه ماقبل کښې په بحث د ايلاء کښې تيرشو.

③ دريم قول دادې چه نه نفس لعان سره فرقت واقع کيږي او نه تفريق حاکم سره بلکه خاوند به طلاق ورکوي، نو فرقت به واقع شي.

④ څلورم قول د ابوعبيده دې چه فرقت نفس تهمت لګولو سره واقع کيږي، دلعان نوبت او که نه رازي. (۲)

[۵۰۰۲] حَدَّثَنَا اسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنْ ابْنِ شِهَابٍ انَّ سَهْلَ بْنَ سَعْدٍ السَّاعِدِيَّ اخْبَرَهُ انَّ عُوَيْمِرًا الْعَجْلَانِيَّ جَاءَ الَى عَاصِمِ بْنِ عَدِيٍّ الْانْصَارِيِّ فَقَالَ لَهُ يَا عَاصِمُ ارَايْتَ رَجُلًا وَجَدَ مَعَ امْرَاتِهِ رَجُلًا ايَقْتُلُهُ فَتَقْتُلُونَهُ امْ كَيْفَ يَفْعَلُ سَلْ لِي يَا عَاصِمُ عَنْ ذَلِكَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَالَ عَاصِمٌ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ ذَلِكَ فَكَرِهَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَسَائِلَ وَعَابَهَا حَتَّى كَبُرَ عَلَى عَاصِمٍ مَا سَمِعَ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا رَجَعَ عَاصِمٌ الَى اهْلِهِ جَاءَهُ عُوَيْمِرٌ فَقَالَ يَا عَاصِمُ مَاذَا قَالَ لَكَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ عَاصِمٌ لِعُوَيْمِرٍ لَمْ تَاتِنِي بِخَيْرٍ قَدْ كَرِهَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَسْالَةَ الَّتِي سَالْتُهُ عَنْهَا فَقَالَ عُوَيْمِرٌ وَاللَّهِ لَا انْتَهِي حَتَّى اسْالَهُ عَنْهَا فَاقْبَلَ عُوَيْمِرٌ حَتَّى جَاءَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَسَطَ النَّاسِ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ ارَايْتَ رَجُلًا وَجَدَ مَعَ امْرَاتِهِ رَجُلًا ايَقْتُلُهُ فَتَقْتُلُونَهُ امْ كَيْفَ يَفْعَلُ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ

---

۱) فتح الباري: ۵۵۸/۹، والمغني لابن قدامة: ۴۱۱/۷، ۴۱۰).

۲) الابواب والتراجم: ۸۲/۲).

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ اُنْزِلَ فِيكَ وَفِي صَاحِبَتِكَ فَاذْهَبْ فَاْتِ بِهَا قَالَ سَهْلٌ فَتَلَاعَنَا وَاَنَا مَعَ النَّاسِ عِنْدَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا فَرَغَا مِنْ تَلَاعُنِهِمَا قَالَ عُوَيْمِرٌ كَذَبْتُ عَلَيْهَا يَا رَسُولَ اللّٰهِ اِنْ اَمْسَكْتُهَا فَطَلَّقَهَا ثَلَاثًا قَبْلَ اَنْ يَاْمُرَهُ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ فَكَانَتْ سُنَّةَ الْمُتَلَاعِنَيْنِ [ر: ٤١٣].

حضرت سهل بن سعد ساعدى ﷺ فرمائى چه عويمر عجلانى ﷺ ،عاصم بن عدى انصارى ﷺ لره راغلو اودوى ته ئې اووئيل چه عاصم دا اووايه كه څوك سړې خپلې ښځې سره څوك سړې اووينى او هغه دغه سړې قتل كړى نو تاسو به هغه قتل كوئ او ( كه هغه قتل نه كړى )نو بې چاره به څه اوكړى؟اوس ددې باره كښې څما دپاره دحضرت نبى كريم ﷺ نه تپوس اوكړه. عاصم ددې متعلق دحضرت نبى كريم ﷺ نه تپوس اوكړو نو حضرت نبى ﷺ ددې مسئلو ( بلاضرورت سوال كول راپيښ شى او بغيرد راپيښيدو نه ښه ګنړل ) ناخوښه كړل او دا ئې معيوب اوګنړل،عاصم چه څه د حضرت نبى كريم ﷺ نه په جواب كښې څه واوريدل نو هغه په ده ښه اونه لګيدل. نو كله چه عاصم واپس راغلو خپل كور والو ته نو ده سره عويمر رسيدلې وو او تپوس ئې اوكړو چه رسول الله ﷺ څه جواب وركړو ؟عاصم اووئيل چه" تا څه خيردنه وه كړې "رسول الله ﷺ څما په سوال كولو بد اوګنړل. عويمر اووئيل چه په الله قسم څه به منع نه شم. تركومې پورې چه ددې مسئلې متعلق دحضرت نبى كريم ﷺ نه تپوس اونكړم.نو كله چه عويمر د حضرت نبى كريم ﷺ په خدمت كښې دخلقو په مخكښې راغلو اوعرض ئې اوكړو چه يارسول الله ﷺ اووائې چه سړې بل سړې خپلې ښځې سره اووينى اوهغه داسړې قتل كړى نودا سړى به قتل كيږى نو نه داسې صورت كښې به هغه څه كوى؟رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه ستا او ستا دښځې متعلق آيت نازل شوې دې.نو لاړ شه اوخپله ښځه راوله. دسهيل بيان دې چه دواړو لعان اوكړو او څه خلقو سره دحضرت نبى كريم ﷺ سره موجود اووم. هركله چه دواړه د لعان نه فارغ شو نو نو عويمر اووئيل چه يارسول الله ﷺ كه څه اوس داخان سره اوساتم نو څه به دروغژن يم . نو دحضرت نبى كريم ﷺ دحكم وركولو نه مخكښې هغه دې ته درې طلاق وركړل.ابن شهاب زهرى فرمائى چه هم دا دلعان كولو والا طريقه شوه(ددوى په مينځ كښې دلعان نه پس تفريق كولې شى) .

دعويمرعجلانى دوالد مختلف نوم روايتونو كښې يو ملاويږى .د ابو داود په روايت كښې عويمر بن اشقر دې،ابن عبدالبر الاستيعاب كښې عويمر بن ابيض دې اوخطيب بغدادى په مبهمات كښې عويمر بن الحارث ليكلى شوى دى،حافظ ابن حجر ﷺ هم دا قابل اعتماد ګنړلى دى .غالبًا دده دوالد نوم حارث او اشقر او ابيض دهغه القاب وو. (١)

عاصم بن عدى،دعويمر عجلانى د والد دتره خوئې وو،دعاصم لور عويمر سره وه. چه دهغې نوم خوله وو،بعض روايتونو كښې دى چه عويمر سره دعاصم وريره وه،عاصم د خپل قوم سردار وو.(٢)

١ ) فتح البارى: ٥٥٩/٩).
٢ ) فتح البارى: ٥٥٩،٥٦٠/٩).

**قوله**: ارأيت رجلا وجد مع امراته رجلا ايقتله فتقتلونه ام كيف يفعل: يعني يو سړى خپلې ښځې سره څوك بل سړې اوموندو( نو داپه زناسره كنايه ده يعني دوى ئې په زنا اوكتل)نوآيا داسې خاوند كه داسړې قتل كړي نوتاسو به خاوند په قصاص كښې قتل كوى يا به هغه( كه قتل نه كړى نو)څه به كوى.

په دې مسئله كښې دجمهورو مسلك دادې كه يوسړې خپلې ښځې سره يو غير سړې اوكتلو په زناكولو او ده زانى قتل كړونو خاوند به په قصاص كښې قتل كيږي.اويا دا چه خاوندبه په زناكښې څلور ګواهان پيش كوى.يا مقتول دمړ كيدو نه مخكښې دزنا اعتراف اوكړي. يا دمقتول ورثاء اعتراف اوكړي.نو په دې صورتونوكښې به خاوند نه شى قتل كولې.دحنفيه هم دا مسلك دې. حضرت امام احمد بن حنبل رحمه الله او داسحاق بن راهويه په نيز دزنا دثبوت دپاره دوه ګواهان پيش كولو په صورت كښې هم خاوند لره به قصاص كښې نشى قتل كولې.(١)

دحنفيه په نيز ديانتًا خودخاوند دپاره دې قتل كول جائز دى نو قضاءً جائز نه دى مګر هغه سړې مشهور باالشرد الفساد وى. (٢)

**قوله**: فكره رسول الله لمسائل وعابها: دحضرت عاصم سوال رسول الله ﷺ ته بنه اونه لګيدو. يو خو په دې وجه چه په دې كښې اشاعت فاحشه وو. دمسلمانانو نه خلاف يهوديانو ته او دښمنانوته د پروپيګنډې ملاويدو امكان وو.دويم دا چه كله به څه واقعه او حادثه راپيښه نشوه نو قبل الوقوع ددې متعلق سوال كول حضرت نبى كريم ﷺ ته بنه معلوم نشو. او سائل حضرت عاصم سره اوسه پورې دا واقعه نه وه پيښه شوې. (٣)

دحضرت نبى كريم ﷺ نه دا مسئله دپوښتلو دپاره عاصم عويمر ته وئيلى وو،عويمر خو يا ددې وجې اووئيل چه هغه سره دا واقعه شوې وه،ليكن دعاصم په مخكښې هغه ددې اظهار كول مناسب اونه ګڼړل او يا دا واقعه هغه سره نه وه شوې. خوهغه ددې حكم معلومول غوښتل . اتفاقا هغه چه كومه مسئله معلومول غوښتل نوهغه ده سره هم اوشوه. نو په روايت كښې د ا قول هم دې چه((ان الذى سالتك عنه قد ابتليت به))(٤)

ليكن په ظاهر دا معلوميږى چه حضرت عويمر سره دا واقعه شوې وه،او ددې باجود حضرت رسول الله ﷺ دحضرت عاصم متعلق داتپوس كول خوښ نه كړل.عويمر دحضرت نبى كريم ﷺ په خدمت كښې حاضر شو اوددې مسئلې تپوس ئې اوكړو څكه چه هغه مبتلا شوې وو اودوى ددې حكم دمعلومولو ضرورت وو.

**قوله**: قال ابن شهاب فكانت سنة المتلاعنين: د ابوداود په روايت كښې د ((تلك

١ ) فتح البارى: ٥٦٠/٩ . تكملة فتح الملهم : ٢٥٧/١).
٢ ) تكملة فتح الملهم: ٢٥٧/١).
٣ ) فتح البارى: ٥٦١/٩. ٥٦٢).
٤ ) فتح البارى: ٥٦١/٩).

اضافه ده چه ددې مشار اليه «الفرقة» دې، «فكانت تلك سنة المتلاعنين»(١) يعنى لعان كولو والو په مينځ كښې فرقت واقع كيدليو طريقه قائم اوشوه.
دحديث مناسبت دترجمة الباب نه واضح دى چه په دې كښې لعان هم ذكر شو. او دلعان نه پس طلاق هم.
**دلعان مشروعيت كله نه شو؟**: ابن جرير، طبرى، ابوحاتم او ابن حبان وغيره حضراتو رائې داده چه دلعان مشروعيت په نهم(٩) هجرئى شعبان كښې اوشو.(٢) قاضى عياض او امام نووى هم دا مختار گنړلې دې. ليكن د حافظ ابن حجر رحمه الله رجحان هم دې طرفته دې چه دلعان مشروعيت په شعبان لسمه هجرئى كښې شوې دې او مذكوره واقعه لسمه هجرئى كښې راغلې وه.
حافظ ابن حجر رحمه الله ددې يو دليل داپيش كړې دې چه حضرت سهل بن سعد ساعدى رضي الله عنه دلعان په موقع باندې موجود وو، په كتاب الحدود كښې ددوى يو روايت رازى، هغه فرمائى چه «شهدت المتلاعنين وانا ابن خمس عشرة سنة» يعنى لعان كولو والو سره څه حاضر اوم. او په هغه وخت كښې څما عمر پخلس كاله وو، بل طرفته په روايت كښې دننه دا هم تصريح ده چه د حضرت نبى كريم صلى الله عليه وسلم دوفات په وخت كښې دحضرت سهل پنځلس كاله وو نو كله چه حضرت نبى كريم صلى الله عليه وسلم دوفات په وخت كښې هم دده عمر پنځلس كاله وو، او دلعان په وخت كښې هم پنځلس كاله، ددې نه متبادر هم دا كيږى چه دلعان په نهمه هجرئى كښې نه وو بلكه په شعبان لسمه هجرئى كښې شروع شوې دې. ځكه چه حضرت نبى كريم صلى الله عليه وسلم په ربيع الاول يولسمه هجرئى كښې وفات شوې دې.
دويم دليل دادې چه د دارقطنى روايت دې چه دلعان واقعه غزوه تبوك نه پس پيښه شوې ده او غزوه تبوك باتفاق اهل سير رجب نهمه هجرئى كښې شوې ده. بل طرفته په اسلام كښې رومبې لعان دحضرت هلال بن اميه سره پيښ شوې دې. دمسلم په روايت كښې ددې تصريح شته دې، (٣) حضرت هلال بن اميه دهغه دريو مخلصو صحابه كرامو رضي الله عنهم نه وو چه په غزوه تبوك كښې متخلف وو او اوچه دهغوى توبه پنځوس ورځې پس نازله شوې وه. په دې قصه كښې دا خبره منقول ده چه د حضرت هلال ښځه په دې پنځوسو ورځو كښې د څلويښتو ورځو تيريدو نه پس دحضرت نبى كريم صلى الله عليه وسلم په خدمت كښې حاضره شوه او دخپل خاوند د خدمت كولو اجازت ئې اوغوښتلو. اوس په ظاهره ددې خبرې وقوع ډير مشكل په نظر راتلل چه په نهمه هجرئى كښې چه په كوم شعبان كښې مسلمانان دتبوك نه واپس شو. چه په هغې كښې حضرت هلال د توبې په انتظار كښې گوشه نشين شوې وو. ښځه څلويښت ورځې تيريدونه پس دهغه په خدمت كښې وه، دلعان واقعه هم په دې مياشت كښې راغله. ددې

---
١) فتح البارى: ٩/٥٦٤.
٢) فتح البارى: ٩/٥٥٩.
٣) اوگورئ صحيح مسلم (مع تكملة فتح الملهم) كتاب اللعان: ١/ ٢٥٠.

وجې دلعان واقعه په شعبان لسمه هجرئ كښې ده په نهمه كښې نه ده. (١) والله اعلم .
په كتاب ا لتفسير كښې د لعان دآيت متعلق دا خبره تيره شوې ده چه هغه دحضرت هلال بن اميه په واقعه كښې نازل شوى وو ،دهغه واقعه مخكښې پيښه شوې وه،د حضرت عويمر رضي الله عنه دلعان واقعه دې نه پس ده،(٢)ليكن د دواړو واقعاتو وقوع يو بل ته نزدې نزدې شوې دى.

## ٢٨=بَابُ التَّلَاعُنِ فِي الْمَسْجِدِ

د حضرت امام شافعي رحمه الله په نيز لعان به په مسجد كښې كولې شى البته كه ښځه په حالت حيض كښې وى نو دمسجد دروازې سره به كولې شى.(٣)
حنفيه فرمائى چه مسجد دلعان دپاره متعين نه دې،چه چرته حاكم وى هغه ځائې كښې به لعان كولې شى،كه هغه مسجدوى اوكه هغه بل ځائې.
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه حضرت امام بخارى رحمه الله د دې ترجمة الباب نه حنفيانو مسلك سره ا ختلاف طرفته اشاره كړې ده، د حنفيانو مسلك دې چه دلعان دپاره مسجد متعين نه دې.(۴)
علامه عينى فرمائى چه د حضرت امام بخارى رحمه الله مقصد دلعان دپاره مسجد متعين كول نه دى بلكه دهغوى مقصد مسجد كښې دلعان جواز وقوع ښائى،او جواز دحنفيه په نيزهم دې . لهذا دا وئيل چه حضرت امام بخارى رحمه الله مسلك دحنفيه اختلاف طرفته اته اشاره كوى. درست نه دى.(۵)

[٥٠٠٣] حَدَّثَنَا يَحْيَى اَخْبَرَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ اَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ قَالَ اَخْبَرَنِي ابْنُ شِهَابٍ عَنْ الْمُلَاعَنَةِ وَعَنْ السُّنَّةِ فِيهَا عَنْ حَدِيثِ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ اَخِي بَنِي سَاعِدَةَ اَنَّ رَجُلًا مِنْ الْاَنْصَارِ جَاءَ اِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ اَرَاَيْتَ رَجُلًا وَجَدَ مَعَ امْرَاَتِهِ رَجُلًا اَيَقْتُلُهُ اَمْ كَيْفَ يَفْعَلُ فَاَنْزَلَ اللَّهُ فِي شَاْنِهِ مَا ذَكَرَ فِي الْقُرْآنِ مِنْ اَمْرِ الْمُتَلَاعِنَيْنِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ قَضَى اللَّهُ فِيكَ وَفِي امْرَاَتِكَ قَالَ فَتَلَاعَنَا فِي الْمَسْجِدِ وَاَنَا شَاهِدٌ فَلَمَّا فَرَغَا قَالَ كَذَبْتُ عَلَيْهَا يَا رَسُولَ اللَّهِ اِنْ اَمْسَكْتُهَا فَطَلَّقَهَا ثَلَاثًا قَبْلَ اَنْ يَاْمُرَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ فَرَغَا مِنْ التَّلَاعُنِ فَفَارَقَهَا عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ ذَاكَ تَفْرِيقٌ بَيْنَ كُلِّ مُتَلَاعِنَيْنِ
قَالَ ابْنُ جُرَيْجٍ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ فَكَانَتْ السُّنَّةُ بَعْدَهُمَا اَنْ يُفَرَّقَ بَيْنَ الْمُتَلَاعِنَيْنِ وَكَانَتْ حَامِلًا وَكَانَ ابْنُهَا يُدْعَى لِاُمِّهِ قَالَ ثُمَّ جَرَتْ السُّنَّةُ فِي مِيرَاثِهَا اَنَّهَا تَرِثُهُ وَيَرِثُ

---

١ ) دحافظ ابن حجر رحمه الله مذكوره دليلونو دپاره اوګورئ فتح البارى: ٥٥٩/٩).
٢ ) اوګورئ كشف البارى: كتاب التفسير: ۴۶۶).
٣ ) عمدة القارى: ٢٩٧/٢٠).
٤ ) فتح البارى: ٥٦٥/٩).
٥ ) عمدة القارى: ٢٩٦/٢٠).

مِنْهَا مَا فَرَضَ اللّٰهُ لَهُ

قَالَ ابْنُ جُرَيْجٍ عَنْ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ السَّاعِدِيِّ فِي هٰذَا الْحَدِيثِ اِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنْ جَاءَتْ بِهِ اَحْمَرَ قَصِيرًا كَاَنَّهُ وَحَرَةٌ فَلَا اُرَاهَا اِلَّا قَدْ صَدَقَتْ وَكَذَبَ عَلَيْهَا وَاِنْ جَاءَتْ بِهِ اَسْوَدَ اَعْيَنَ ذَا الْيَتَيْنِ فَلَا اُرَاهُ اِلَّا قَدْ صَدَقَ عَلَيْهَا فَجَاءَتْ بِهِ عَلَى الْمَكْرُوهِ مِنْ ذٰلِكَ [ر: ۴۱۳].

«فقال ذاك تفريق .....» د «قال» فاعل يا سهل بن سعد دې يا ابن شهاب زهری دې. «قال ابن جريج» دا ماقبل سند سره متصل دې. «وكانت حاملا» چه كومې ښځې «خوله» سره لعان شوې وو هغه حامله وه، ددې نه معلوم شو چه نفی د حمل په صورت كښې هم لعان كولې شي. يعنى كه خوك سړې اووائى چه خما ښځې ته كوم حمل دې هغه خما نه دې نو په دې صورت كښې به ددوى په مينځ كښې لعان كولې شی، د ابن ابی ليلی رحمه الله او د حضرت امام مالك رحمه الله هم دا مذهب دې، د امام ابويوسف رحمه الله نه هم دا روايت دې، د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله، امام محمد رحمه الله او په مالكيه كښې د ابن ماجشون مسلك دې چه محض د نفی حمل په بناء باندې لعان به نه كيږی. د امام ابويوسف مشهور روايت هم ددې مطابق دې. (۱) دلته په حديث باب كښې بيشكه ددې خبرې ذكر دې چه هغه ښځه حامله وه ليكن په رواياتو كښې دا تصريح راغلې ده چه ددې خاوند په دې باندې تهمت لګولې وو او چه ددې په وجه ددوی په مينځ كښې لعان اوشو. «انها ترثه ويرث منها ما فرض الله له .....» دا مسئله اتفاقی ده چه لعان نه پس چه بچې پيدا كيږی، ښځه به ددې بچی وارثه وی. او بچې به ددې ښځې وارث وی.

**قوله: ان جاءت به احمر قصيرا كانه حرة فلا ارها الا قد صدقت وكذب عليها:**

حضرت نبی كريم د لعان نه پس اوفرمائيل كه ښځه نه د سور رنګ وړوكی قد والا بچې پيدا شو نو ښځه رښتونې ده او سړې دروغژن دې، او كه د تور رنګ غټو سترګو والا بچې او غټو سرين والا بچې پيدا شو نو سړې به رښتونې وی، نو ښځې نه د دويم صورت بچې پيدا شو.

«وحرة» د چمچورئی په شان يو وړوكې شان زهريلا كيږې. (۲) «اعين» غټو سترګو والا، «اليتين» دا د «الية» تثنيه ده، سرين ته وائی. ددې صفت مخذوف دې «ای عظيمين» كتاب التفسير كښې روايت تيرشوې دې په هغې كښې «عظيم الاليتين» الفاظ دی. (۳)

## ۲۹- بَابُ قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ كُنْتُ رَاجِمًا بِغَيْرِ بَيِّنَةٍ

حضرت نبی كريم ﷺ فرمائيلی دی كه ما بغير د څه ګواه نه څوك رجم كولې نو دا ښځه به مې كولې. د جمله حضرت نبی كريم د بدكارې او زناكارې ښځې متعلق فرمائيلې وه، ددې نه

---

۱) عمدة القاری: ۲۰/۲۹۷.

۲) وحرة (بفتح الواو والحاء) دويبة تترامی علی الطعام واللحم فتفسده (ارشاد الساری: ۱۲/۸۵).

۳) كشف الباری: كتاب التفسير: ۴۶۵.

معلوم شو كه خوك سړې مشهور باالشر وى نو صرف دشهرت په وجه په دې باندې حد نه جارى كيږى تر كومې پورې چه ګواه نه وى يا اقرار اونه كړى.

[٥٠٠٤] حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ عُفَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنِي اللَّيْثُ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ الْقَاسِمِ عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّهُ ذُكِرَ التَّلَاعُنُ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ عَاصِمُ بْنُ عَدِيٍّ فِي ذَٰلِكَ قَوْلًا ثُمَّ انْصَرَفَ فَأَتَاهُ رَجُلٌ مِنْ قَوْمِهِ يَشْكُو إِلَيْهِ أَنَّهُ قَدْ وَجَدَ مَعَ امْرَأَتِهِ رَجُلًا فَقَالَ عَاصِمٌ مَا ابْتُلِيتُ بِهَذَا الْأَمْرِ إِلَّا لِقَوْلِي فَذَهَبَ بِهِ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخْبَرَهُ بِالَّذِي وَجَدَ عَلَيْهِ امْرَأَتَهُ وَكَانَ ذَٰلِكَ الرَّجُلُ مُصْفَرًّا قَلِيلَ اللَّحْمِ سَبِطَ الشَّعَرِ وَكَانَ الَّذِي ادَّعَى عَلَيْهِ أَنَّهُ وَجَدَهُ عِنْدَ أَهْلِهِ خَدْلًا آدَمَ كَثِيرَ اللَّحْمِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اللَّهُمَّ بَيِّنْ فَجَاءَتْ شَبِيهًا بِالرَّجُلِ الَّذِي ذَكَرَ زَوْجُهَا أَنَّهُ وَجَدَهُ فَلَاعَنَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَهُمَا

قَالَ رَجُلٌ لِابْنِ عَبَّاسٍ فِي الْمَجْلِسِ هِيَ الَّتِي قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ رَجَمْتُ أَحَدًا بِغَيْرِ بَيِّنَةٍ رَجَمْتُ هَذِهِ فَقَالَ لَا تِلْكَ امْرَأَةٌ كَانَتْ تُظْهِرُ فِي الْإِسْلَامِ السُّوءَ قَالَ أَبُو صَالِحٍ وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ آدَمَ خَدِلًا [٦٨١١، ٦٤٦٤، ٦٤٦٣، ٥٠١٠].

حضرت ابن عباس ﷠ نه روايت دې چه حضرت نبى كريم ﷺ سره دلعان تذكره كيدله، عاصم بن عدى ﷠ د دې متعلق څه تپوس اوكړو، بيا هغه (كور) ته واپس شو نو ده لره دده دقوم يو سړې (حضرت عويمر ﷠) راغلو اوشكايت ئې اوكړو چه هغه خپلې ښځې سره يو پردې سړې په زنا كولواوليدو. عاصم اووئيل چه څه دخپلې خبرې په وجه په دې مبتلا شوم، او ده سره دحضرت نبى كريم ﷺ په خدمت كښې حاضر شوم. اودهغه سړى متعلق موهغوى ته اووئيل چه كوم سړې ده خپلې ښځې سره ليدلې وو. هغه (خاوند) پخپله زير رنګ والا، كمزورې او خورو ويښتو والا وو او چه دكوم متعلق ئې دعوى كړې وه چه هغه ئې خپلې ښځې سره ليدلې دې، هغه غنم رنګې اوڅورب وو. حضرت نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چه يا الله ! اصل حقيقت ښكاره كړه. نو هغه ښځې دهغه سړى پشان بچې راوړو چه دكوم متعلق ئې دعوى كړې وه. حضرت نبى كريم ﷺ د دې دواړو په مينځ كښې لعان اوكړو. يو سړى (عبدالله بن شداد دحضرت ابن عباس ﷠ د ترور خوى) دحضرت ابن عباس ﷠ نه تپوس اوكړو چه آيا دا هغه ښځه وه چه دكوم متعلق حضرت نبى كريم ﷺ فرمائيلى وو چه ((لوكنت احد راجما بغير بينة رجمت هذه)) يعنى كه ما خوك بغير دګواهئ سنګسار كولې نو دا ښځه به مې كړې وې. حضرت ابن عباس ﷠ جواب وركړو چه نه . هغه بله ښځه وه چه هغې به علانيه په اسلام كښې بدئ كولې (چه دهغې نوم حضرت ابن عباس ﷠ اونه خودلو).

**قوله:** فَقَالَ عَاصِمُ بْنُ عَدِيٍّ فِي ذَٰلِكَ قَوْلًا ثُمَّ انْصَرَفَ: حضرت عاصم بن عدى ﷠ دحضرت نبى كريم ﷺ په خدمت كښې حاضر شو او د لعان څه خبره ئې اوكړه. دې نه پس د حضرت عويمر ﷠ واقعه پيښه شوه. نو هغه اووئيل چه څه دخپلې دې خبرې په وجه په دې

کښې مبتلا شوم. حضرت عویمر سره دحضرت عاصم لوریا وریره وه چه هغې سره ئې لعان اوشو. ددې رشتې په حوالې سره هغه هم مبتلا شو هغه څه خبره وه چه کومه عاصم کړې وه. او چه کومه هغه دخپلې ابتلاء سبب اوخودلو. علامه کرمانی رحمه الله فرمائی چه هغه داسې نامناسبه خبره کړې وه چه دهغې نه دتکبر او نخوت اوعجب اظهار کیدو. (۱)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه ددې «قول» نه هغه سوال مراد دې چه کوم هغه دحضرت عویمر رضی الله عنه په وینا باندې دحضرت نبی کریم ﷺ نه کړې وواو حضرت نبی کریم ﷺ دا ناخوښ کړې وو لکه څنګه چه دحضرت سهل حدیث ماقبل تیر شوې دې، د ابن ابی حاتم په روایت کښې ددې تصریح ده چه «فقال عاصم انا لله وانا الیه راجعون، هذا والله بسؤالی عن هذا الامر بین الناس فابتلیت به» (۲)

**قوله:** قَالَ أَبُو صَالِحٍ وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ آدَمَ خَدِلًا: «ادم» د «ادمة» نه دې په معنی د غنم رنګې «خدل» غټو پنډو والا، روایت باب کښې «خدلا» د خاء په فتحې او د دال په سکون سره دې ابو صالح اوعبدالله بن یوسف نه «خدلا» د ( خاء په فتحې او د دال په کسرې سره ) روایت شوې دې. دابو صالح نوم عبدالله بن صالح دې، په کتاب المحاربین کښې ددوی روایت د حضرت امام بخاری رحمه الله نه موصولا کړې دې، دعبدالله بن یوسف روایت کښې امام په کتاب الحدود کښې موصولا نقل فرمائیلې دې. (۳)

## ۳۰=بَاب صَدَاقِ الْمُلَاعَنَةِ

[۵۰۰۵] حَدَّثَنِي عَمْرُو بْنُ زُرَارَةَ أَخْبَرَنَا إِسْمَاعِيلُ عَنْ أَيُّوبَ عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ قَالَ قُلْتُ لِابْنِ عُمَرَ رَجُلٌ قَذَفَ امْرَأَتَهُ فَقَالَ فَرَّقَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ أَخَوَيْ بَنِي الْعَجْلَانِ وَقَالَ اللَّهُ يَعْلَمُ أَنَّ أَحَدَكُمَا كَاذِبٌ فَهَلْ مِنْكُمَا تَائِبٌ فَأَبَيَا وَقَالَ اللَّهُ يَعْلَمُ أَنَّ أَحَدَكُمَا كَاذِبٌ فَهَلْ مِنْكُمَا تَائِبٌ فَأَبَيَا فَقَالَ اللَّهُ يَعْلَمُ أَنَّ أَحَدَكُمَا كَاذِبٌ فَهَلْ مِنْكُمَا تَائِبٌ فَأَبَيَا فَفَرَّقَ بَيْنَهُمَا

قَالَ أَيُّوبُ فَقَالَ لِي عَمْرُو بْنُ دِينَارٍ إِنَّ فِي الْحَدِيثِ شَيْئًا لَا أَرَاكَ تُحَدِّثُهُ قَالَ قَالَ الرَّجُلُ مَالِي قَالَ قِيلَ لَا مَالَ لَكَ إِنْ كُنْتَ صَادِقًا فَقَدْ دَخَلْتَ بِهَا وَإِنْ كُنْتَ كَاذِبًا فَهُوَ أَبْعَدُ مِنْكَ [ر: ۴۴۷۱].

«ملاعنة» هغه ښځه چه هغې سره د لعان واقعه راپیښه شوې وی . که هغه مدخول بها ده نو بالاجماع دې ته به پوره مهر ملاویږی. اوغیر مدخول بها ده نو د جمهور علماء د حضرت امام

۱) شرح بخاری للکرمانی وفتح الباری: ۵۶۸/۹).
۲) فتح الباری: ۵۶۷/۹).
۳ (ارشاد الساری: ۱۲/ ۸۶_۸۷).

مالك رحمه الله حضرت امام ابو حنيفه رحمه الله اود حضرت امام شافعي رحمه الله په نيز به دې ته نيم مهر ملاويږي، ابوالزناد، حكم بن عينيه او دحماد بن ابى سليمان په نيز دې ته پوره مهر ملاويږي، د امام زهري رحمه الله په نيز به دې ته به هيڅ نه ملاويږي، د حضرت امام مالك رحمه الله روايت ددې مطابق دې. (١)

**قوله:** فَرَّقَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ أَخَوَيْ بَنِي الْعَجْلَانِ: ((اخوى بنى العجلان)) نه د بنو عجلان سره تعلق لرونكى ښځه خاوند مراد دى ،ښځې خاوند ته((اخ)) د دين په وجه اووئيلې شو .((إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ إِخْوَةٌ))((اخوة)) د ((اخوى)) تثنيه ده. داضافت په وجه نون تثنيه حذف كړې شو. په ښځه باندې د((اخ)) مذكر اطلاق درست نه دې، ددې وجې د((اخت)) لفظ دلته تغليباً ((اخت)) د ((اخ)) تابع كړې شوه او((اخوى)) اووئيلې شو. مراد ددې نه حضرت عويمر رضي الله عنه اودده ښځه خوله دى. ددې دواړو تعلق د قبيله بنى عجلان سره وو. (٢)

**قوله:** ففرق بينهما: ددې نه دمذهب حنفيه اثبات كيږي چه نفس لعان سره فرقت نه واقع كيږي بلكه قاضي به ددوى په مينځ كښې تفريق راولي. (٣)

**قوله:** قَالَ أَيُّوبُ فَقَالَ لِي عَمْرُو بْنُ دِينَارٍ إِنَّ فِي الْحَدِيثِ شَيْئًا لَا أَرَاكَ تُحَدِّثُهُ قَالَ قَالَ الرَّجُلُ مَالِي قَالَ قِيلَ لَا مَالَ لَكَ: سعيد بن جبير رضي الله عنه نه روايت كوونكى دوه شاګردان دى يو ايوب سختياني او دويم عمرو بن دينار دې، دايوب په روايت كښې دحديث آخرى حصه نشته دې، او دعمرو سره ده، نو ايوب وائى چه عمرو بن دينار ماته اووئيل چه خه تا لره ګورم چه تاسو دحديث دا آخرى حصه نه بيانوئى. نو دحديث آخرى حصه بيانولو سره حضرت عمرو اووئيل چه لعان كونكى سړى حضرت نبى كريم ﷺ ته اووئيل چه خما مال به څرنګه خى ؟ يعنى ما چه دې ته كوم مهر وركړې وو هغه به ماته ملاويږي، حضرت نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چه مال به تاته نه ملاويږى څكه كه ته په خپله دعوى كښې رښتونې نې نو مال به ددې وجې نه ملاويږى چه تا ښځې سره صحبت كړې دې او كه ته دروغژن نې نو بيا دمال ملاويدل نور زياته بعيده خبره ده. بهر حال دحديث دا آخرى حصه د سعيد بن جبير رضي الله عنه نه عمرو بن دينار خو روايت كوى ليكن ايوب دا حصه نه نقل كوى. ((فيحفظ فيه عمرو ومالم يحفظه ايوب)) (٤)

((قال الرجل مالى)) په دې كښې ((مالى)) فاعل دې او فعل محذوف دې يعنى ((ايذهب مالى)) آيا خما

---

١) عمدة القاري: ٢٠/٣٠٠، فتح الباري: ٩/٥٧٠).

٢) عمدة القاري: ٢٠/٣٠٠، وارشاد الساري: ١٢/٨٧، وفيه وما اطلاق الاخوة فبالنظر الى ان المومنين اخوة او الى القرابة بينهما بسبب ان الزوجين كليهما من قبيلة عجلان).

٣) ارشادالساري: ١٢/٨٧).

٤) فتح الباري: ٩/٥٧١، وعمدة القاري: ٢٠/٣٠٠).

مال به څي،ماته به نه ملاويږي ؟((قال قيل لا مال لك))په دې كښې د((قال))فاعل راوى حديث حضرت ابن عمر دې يا سعيد بن جبير دې يا عمرو بن دينار دې،يعنى راوى دحديث اوونيل چه دې سړى ته په جواب كښې اوونيلې شو چه((لا مال لك)).((قيل))په دې ځائې كښې صيغه دمجهول ده.راتلونكى باب كښې چه كوم روايت رازى په هغې كښې((قال)) دمعروف صيغه ده يعنى حضرت نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چه((لا مال لك)).

## ٣١=بَاب قَوْلِ الْإِمَامِ لِلْمُتَلَاعِنَيْنِ إِنَّ أَحَدَكُمَا كَاذِبٌ فَهَلْ مِنْكُمَا تَائِبٌ

[٥٠٠٦] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِاللَّهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ عَمْرٌو سَمِعْتُ سَعِيدَ بْنَ جُبَيْرٍ قَالَ سَأَلْتُ ابْنَ عُمَرَ عَنْ حَدِيثِ الْمُتَلَاعِنَيْنِ فَقَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلْمُتَلَاعِنَيْنِ حِسَابُكُمَا عَلَى اللَّهِ أَحَدُكُمَا كَاذِبٌ لَا سَبِيلَ لَكَ عَلَيْهَا قَالَ مَالِي قَالَ لَا مَالَ لَكَ إِنْ كُنْتَ صَدَقْتَ عَلَيْهَا فَهُوَ بِمَا اسْتَحْلَلْتَ مِنْ فَرْجِهَا وَإِنْ كُنْتَ كَذَبْتَ عَلَيْهَا فَذَاكَ أَبْعَدُ لَكَ قَالَ سُفْيَانُ حَفِظْتُهُ مِنْ عَمْرٍو

وَقَالَ أَيُّوبُ سَمِعْتُ سَعِيدَ بْنَ جُبَيْرٍ قَالَ قُلْتُ لِابْنِ عُمَرَ رَجُلٌ لَاعَنَ امْرَأَتَهُ فَقَالَ بِإِصْبَعَيْهِ وَفَرَّقَ سُفْيَانُ بَيْنَ إِصْبَعَيْهِ السَّبَّابَةِ وَالْوُسْطَى فَرَّقَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ أَخَوَيْ بَنِي الْعَجْلَانِ وَقَالَ اللَّهُ يَعْلَمُ إِنَّ أَحَدَكُمَا كَاذِبٌ فَهَلْ مِنْكُمَا تَائِبٌ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ قَالَ سُفْيَانُ حَفِظْتُهُ مِنْ عَمْرٍو وَأَيُّوبَ كَمَا أَخْبَرْتُكَ [ر:٤٧٤٨].

د حضرت امام بخارى رحمه الله مقصد دادې چه قاضى او امام ته پكارى دى چه لعان كوونكو ته اووائى چه په تاسو دواړو كښې يو ضرور دروغژن دې،نوآيا تاسو څوك دخپلې خبرې نه رجوع او توبه كولو والا شته دې .حضرت نبى كريم ﷺ هم لعان كوونكو ته دا جمله فرمائيلې وه، لكه څنګه چه په روايت باب كښې رازى.البته په دې كښې اختلاف دې چه دا كلمات دلعان نه مخكښې به وئيلې كيږى يا دلعان نه پس،دقاضى عياض په نيز حضرت نبى كريم ﷺ دا كلمات دتوبې دترغيب وركولو دپاره دلعان نه پس وئيلې وو ،لهذا دلعان نه پس وئيل پكار دى.

د داودى په نيز حضرت نبى كريم ﷺ دلعان نه مخكښې د ويرولو دپاره دا كلمات ارشاد فرمائيلې وو .لهذا دلعان نه مخكښې وئيل پكار دى. په روايت كښې احتمال دې .حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه مخكښې وئيل زيات مناسب دى .(١)بهتر دادى چه دلعان نه مخكښې دې اووائى چه دروغژن سړې مخكښې والې اونه كړى. او دلعان نه پس دې هم! ووئيلې شى.چه دروغو وئيلو والا توبې طرفته متوجه شى.

---

١) فتح البارى: ٥٧٣/٩).

**قوله:** سَأَلْتُ ابْنَ عُمَرَ عَنِ الْمُتَلَاعِنَيْنِ: سعيدبن جبير دحضرت ابن عباس رضي الله عنه نه دلعان كولو والا متعلق تپوس اوكړو.دراصل د معصب بن زبير په زمانه كښې دلعان يو واقعه پيښه شوې وه. هغوى دمتلاعنين په مينځ كښې تفريق نه وو كړې.نو په دې باندې سعيد بن جبير رحمه الله دحضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه په خدمت كښې حاضر شو او سوال ئې اوكړو او هغوىدا روايت بيان كړو.

**قوله:** قَالَ سُفْيَانُ حَفِظْتُهُ مِنْ عَمْرٍو وَأَيُّوبَ: سعيد بن جبيرنه عمرو بن دينار اوايوب دواړه روايت نقل كوى او ددې دواړو نه سفيان بن عينيه دا روايت نقل كوى.سفيان پخپله تصريح كوى چه ما ددې دواړو نه دا حديث آوريدلې دې.

## ٣٢=بَابُ التَّفْرِيقِ بَيْنَ الْمُتَلَاعِنَيْنِ

[٥٠٠٧] حَدَّثَنِي اِبْرَاهِيمُ بْنُ الْمُنْذِرِ حَدَّثَنَا اَنَسُ بْنُ عِيَاضٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ نَافِعٍ اَنَّ ابْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا اَخْبَرَهُ اَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرَّقَ بَيْنَ رَجُلٍ وَامْرَاَةٍ قَذَفَهَا وَاَحْلَفَهُمَا

[٥٠٠٨] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ اَخْبَرَنِي نَافِعٌ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ لَاعَنَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ رَجُلٍ وَامْرَاَةٍ مِنَ الْاَنْصَارِ وَفَرَّقَ بَيْنَهُمَا [ر:٤٤٧٣].

ددې ترجمة الباب نه د حضرت امام بخارى رحمه الله مقصد دادې چه دلعان نه پس دمتلاعنين په مينځ كښې به حاكم تفريق راولى. او دوى به يوبل سره نه اوسوى. ددې ترجمة الباب نه د حضرت امام بخارى رحمه الله رجحان دې طرفته معلوميږى چه نفس لعان سره به فرقت نه واقع كيږى بلكه حاكم چه كله تفريق راولى نو بيا به فرقت واقع كيږى لكه څنګه چه د حنفيه مسلك دې.

د تفريق نه پس لعان كونكې ښځې خاوند په مينځ كښې به دوباره نكاح كولې شى كه نه په دې كښې اختلاف دې.د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله اود امام محمد رحمه الله په نيز كه زوج خپل ځان ته دروغژن وائى نو لعان د طلاق بائن په درجه كښې دې او دوباره به دې ښځې سره واده كولې شى.

د حضرت امام شافعى رحمه الله او د حضرت امام مالك رحمه الله او امام ابويوسف رحمه الله او د امام زفر رحمه الله په نيز دلعان نه پس لعان كولو والا به هم په هيڅ صورت كښې دوباره ښځه خاوند نه شى پاتې كيدلې.ددې نه حرمت موبده ثابتيږى (١) ځكه چه حضرت نبى كريم صلى الله عليه وسلم ته حضرت عويمر عجلانى رحمه الله ته فرمائيلى وو چه ((لا سبيل لك عليها))او يو روايت كښې دى چه ((المتلاعنان اذا تفرقا لايجتمعان ابدا))(٢)

حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله ددې دا تاويل كوى چه متلاعنين جمع نشى كولې،تر كومې

١) دمذاهبودتفصيل دپاره اوګورئ مختصر اختلاف ا لعلماء : ٥٠٦/٢).

٢) اوګورئ سنن دار قطنى باب ا لمهر: ٢٧٦/٣،رقم : ١١٦).

پورې چههغوی په خپل لعان باندې قائم وی،لیکن که زوج خپل ځان ته دروغژن اووائی نوپه باندې به حدف جاری کیږی او لعان به ختم شی،خو که هغه په لعان باندې قائم وی نوبیا بیشکه هغه کله هم جمع نشی کولې،او په خپلو کښې ددوی نکاح نشی کولې.(۱)

## ۳۳=بَاب يُلْحَقُ الْوَلَدُ بِالْمُلَاعِنَةِ

[۵۰۰۹] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا مَالِكٌ قَالَ حَدَّثَنِي نَافِعٌ عَنْ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَاعَنَ بَيْنَ رَجُلٍ وَامْرَأَتِهِ فَانْتَفَى مِنْ وَلَدِهَا فَفَرَّقَ بَيْنَهُمَا وَأَلْحَقَ الْوَلَدَ بِالْمَرْأَةِ[ر:۴۴۷۱].

ولد به دلعان کولو والا ښځې سره لاحق کولې شی،خاوند طرفته به دده نسبت نه شی کولې،نو په روایت کښې ددې تصریح شته دې،حضرت نبی کریم ﷺ بچې ښځې سره لاحق کړې وو یعنی بچې ئې صرف مور ته منسوب کړې وو.

دحضرت امام احمد بن حنبل رحمه الله په نیز نفس لعان سره به دبچی نفی اوشی،که سړی په اشارې سره هم لعان کښې ددې ذکر نه وی کړې.(۲)لیکن جمهور علماء فرمائی چهد بچی دنفی دپاره دخاوند طرفنه وضاحت ضروری دې ځکه چه پخپله لعان دبچی د نفی دپاره مشروع نه دې .لعان خوخاوند ته حد قذف اودښځې دحد زنا نه بچ کولو دپاره دې،خاوند په ښځه باندې د زنا تهمت لګولو باوجود کهبچې خپل تسلیموی نو دبچی نسب بهثابت منلې کیږی .که دبچی د نسب نفی کوی نو د خاوند د طرفنهبه ددې نفی اعتبار نه وی. البتهامام صاحب ددې دپارهڅه خاص مدت نه دې متعین کړې،د اوؤورځو یو روایت ددوی نه منقول دی .امام ابو یوسف رحمه الله او امام محمد رحمه الله د څلوېښتو ورځو موده مقرر فرمائیلې دد.د حضرت امام شافعی رحمه الله په نیز زر ترزرهبه نفی معتبره وی ګڼی نه .(۳)

## ۳۴=بَاب قَوْلِ الْإِمَامِ اللَّهُمَّ بَيِّنْ

[۵۰۱۰] حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي سُلَيْمَانُ بْنُ بِلَالٍ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ قَالَ أَخْبَرَنِي عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ الْقَاسِمِ عَنْ الْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّهُ قَالَ ذُكِرَ الْمُتَلَاعِنَانِ عِنْدَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ عَاصِمُ بْنُ عَدِيٍّ فِي ذَلِكَ قَوْلًا ثُمَّ انْصَرَفَ فَأَتَاهُ رَجُلٌ مِنْ قَوْمِهِ فَذَكَرَ لَهُ أَنَّهُ وَجَدَ مَعَ امْرَأَتِهِ رَجُلًا فَقَالَ عَاصِمٌ مَا ابْتُلِيتُ بِهَذَا الْأَمْرِ إِلَّا لِقَوْلِي فَذَهَبَ بِهِ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخْبَرَهُ بِالَّذِي وَجَدَ عَلَيْهِ امْرَأَتَهُ وَكَانَ ذَلِكَ الرَّجُلُ مُصْفَرًّا قَلِيلَ اللَّحْمِ سَبِطَ الشَّعَرِ وَكَانَ الَّذِي وَجَدَ عِنْدَ أَهْلِهِ آدَمَ خَدْلًا كَثِيرَ اللَّحْمِ جَعْدًا قَطَطًا فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اللَّهُمَّ بَيِّنْ فَوَضَعَتْ شَبِيهًا

۱) مختصر اختلاف العلماء : ۵۰۷/۲ . وبدائع الصنائع،كتاب اللعان : ۲۴۵/۳).
۲) فتح الباری: ۵۷۵/۹).
۳) عمدة القاری: ۳۰۲/۲۰).

بِالرَّجُلِ الَّذِي ذَكَرَ زَوْجُهَا أَنَّهُ وَجَدَ عِنْدَهَا فَلَاعَنَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَهُمَا فَقَالَ رَجُلٌ لِابْنِ عَبَّاسٍ فِي الْمَجْلِسِ هِيَ الَّتِي قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ رَجَمْتُ أَحَدًا بِغَيْرِ بَيِّنَةٍ لَرَجَمْتُ هَذِهِ فَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ لَا تِلْكَ امْرَأَةٌ كَانَتْ تُظْهِرُ السُّوءَ فِي الْإِسْلَامِ [ر:٥٠٠٣].

ددې باب نه د حضرت امام بخاري رحمه الله مقصد دادې چه دلعان نه پس دې امام اووائي چه «اللهم بين»اې الله ﷻ !ته اصل حقيقت واضح کړې .يعني چه کوم بچې پيدا کيدو والا دې په هغه کښې داسې نښې ظاهر کړې چه دهغې نه معلوم شي چه بچې دچا دې.دخاوند دې يا چه په چا باندې تهمت لګولې شوې دې دهغه دې . (۱)

داشان دخلقو په مينځ کښې ددې متعلق چه کوم التباس به وی هغه به ختم شي او نورو له به عبرت وی.بيا دپاره به خلق ددې حرکتونو نه پرهيز کوی.

حديث باب«باب قول الامام للمتلاعنين ......»کښې تير شوې دې .«جعدا» د «جيم په فتحې سره او دعين په سکون سره»ګلګوتي ويښتو والا .«قططا»چه دچا ويښته زيات ګلګوتي وی.

## ۳۵=بَاب إِذَا طَلَّقَهَا ثَلَاثًا ثُمَّ تَزَوَّجَتْ بَعْدَ الْعِدَّةِ زَوْجًا غَيْرَهُ فَلَمْ يَمَسَّهَا

[٥٠١١] حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا يَحْيَى حَدَّثَنَا هِشَامٌ قَالَ حَدَّثَنِي أَبِي عَنْ عَائِشَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ حَدَّثَنَا عَبْدَةُ عَنْ هِشَامٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا أَنَّ رِفَاعَةَ الْقُرَظِيَّ تَزَوَّجَ امْرَأَةً ثُمَّ طَلَّقَهَا فَتَزَوَّجَتْ آخَرَ فَأَتَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرَتْ لَهُ أَنَّهُ لَا يَأْتِيهَا وَأَنَّهُ لَيْسَ مَعَهُ إِلَّا مِثْلُ هُدْبَةٍ فَقَالَ لَا حَتَّى تَذُوقِي عُسَيْلَتَهُ وَيَذُوقَ عُسَيْلَتَكِ [ر:٢٤٩٦].

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه د صحيح بخاري ځومره نسخې ځماپه علم کښې دی په هغې کښې مسائل دعدت دپاره«لعان»نه بيل مستقل «كتاب العدة»عنوان نشته دې .البته په شرح ابن بطال کښې په مخکښې باب «باب واللائي يئسن من المحيض»نه مخکښې«كتاب العدة» او ددې په بعضو نسخو کښې د«ابواب العدة»عنوان دې ليکن دا عنوان دمخکښې باب په ځائې دلته کيدل پکار دی ځکه چه ددې باب لعان سره هيڅ تعلق نشته دې. (۲)

**دحلاله نکاح مسئله** : حضرت امام بخاري رحمه الله په دې باب کښې دحلالې د مسئلې بيان کړې دې،که يو سړی خپلې ښځې ته طلاق مغلظه ورکړو او دې نه پس ددې سړی ښځې بل سړی سره نکاح اوکړه نو آيا نکاح محض به داول خاوند په حق کښې حلاله جوړه شي او دده دپاره

۱) فتح الباري: ۵۷۶/۹).
۲) فتح الباري: ۵۸۰/۹).

به بیاد رومبی خاوند سره ددې نکاح نه پس که طلاق اوشو نو دعدت نه پس به نکاح جائز وی یا نه ؟په دې کښې درې اقوال دی.

① حضرت سعید بن المسیب فرمائی چه دبل سړی سره صرف نکاح کول تحلیل دپاره کافی دی. ابن الجوزی د داود ظاهری قول هم ددې مطابق نقل کړې دې .

② جمهور فقهاء فرمائی چه بل سړی سره نکاح او جماع د دواړوکیدل تحلیل دپاره ضروری دی.صرف نکاح دحلالې دپاره کافی نه ده بلکه وطی هم ضروری ده.البته انزال شرط نه دې.

③ حضرت حسن بصری رحمه الله فرمائی چه بل سړی سره صرف نکاح او جماع کیدل دتحلیل دپاره کافی نه دې بلکه انزال ه ددې دپاره ضروری دې،(١)

د جمهورو مستدل دروایت باب نه دې. چه په هغې کښې دحضرت رفاعه قرظی واقعه ذکرده. دحضرت رفاعی قرظی ښځې بل سړی سره نکاح اوکړه،دنکاح نه پس هغې خپل اول خاوند لره راتلل غوښتل نو حضرت نبی کریم ﷺ هغې ته اووفرمائیل چه((لاحتی تذوقی عسیلته ویذوق عسیلتك))((عسیلة))نه جماع مراد ده.حضرت عائشه رضی الله عنها نه ددې هم دا تفسیر منقول دې.(٢) نو د دې حدیث نه داخبره صفا معلومه شوه چه ښځه ترکومې پورې دبل سړی سره د نکاح کولو نه پس جماع اونکړی نوتر هغه وخته پورې هغه به اول خاوند دپاره حلاله کیدلې نشی.

**دامراة رفاعه واقعه** : ① دلته حدیث باب کښې،د امراة رفاعه واقعه بیانکړې شوې ده. رفاعه بن سموال(بروزن غضنفر)،قرظی د بنو قریظې یوې ښځې سره واده اوکړو .ددې ښځې د نوم بارد کښې اختلاف دې. تمیمه (دتاء په فتحه سره )تمیمه(تصغیر سره)سهیمه،امیمه مختلف روایتونه ملاویږی. (٣)

رفاعه دې ښځې ته طلاق ورکړونو دې یو بل سړی سره واده اوکړو چه دهغه نوم عبدالرحمان بن الزبیر (دزاء په فتحه اودباء په کسره سره)وو. عبدالرحمان دې ښځې سره په جماع کولو په څوجه قادر نشو نو هغه دحضرت نبی کریم ﷺ په خدمت کښې حاضره شوه او شکایت ئې اوکړو چه هغه په جماع باندې قادر نه دې . حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه شائد ته خپل رومبی خاوند رفاعه لره واپس تلل غواړې . لیکن دهغه دپاره ته تر هغه وخت پورې حلاله نه ئې تر کومې پورې چه ته دې بل خاوند سره جماع اونه کړې .

((لیس معه الامثل هدبة))یعنی ده سره نشته دې مګرد کپړې د غوټې په شان. ((هدبة)) ( دباء په ضمه او د دال په سکون سره )دکپړې طرفته وائی.((وارادت ان ذکره یشبه الهدبة فی الاسترخاء

---

١) دمذاهبو دتفصیل دپاره اوګورئ فتح الباری: ٥٨٣،٥٨٤/٩،وعمدة القاری: باب من اجاز طلاق الثلاث : ٢٣٦/٢٠).

٢) عمدة القاری: ٢٣٦/٢٠).

٣) فتح الباری:٥٨٠/٩).

وعدم الانتشار»(١) «حتى تذوقي عسيلة»تر دې پورې چه ته دهغه شهد اوڅښې يعنى دهغه سره جماع اوكړې .«عسيلة»د«عسل»تصغير دې .«عسل» مونث دې،ددې وجې ددې په تصغير كښې تاء تانيث ده، د «عسيلة»تفسير ماقبل كښې دحضرت عائشه ﷺ حوالې سره تير شوې دې چه دې نه جماع مراد ده. ازهرى فرمائى چه«الصواب ان معنى العسيلة حلاوة الجماع الذى يحصل بتغييب الحشفة فى الفرج»(٢)

② عهد نبوى ﷺ كښې دداشان ديوبلې واقعې ذكر هم ملاويږى . نو مقاتل بن حيان په خپل تفسير كښې د قران پاك آيت«فلا تحل له من بعد حتى تنكح زوجا غيره»په شان نزول كښې ذكركړې دې چه دا آيت د عائشه بنت عبدالرحمان بن عتيك متعلق نازل شوې دې. هغه د خپل د تره زوئي رفاعه بن وهب بن عتيك په نكاح كښې وه. رفاعه بن وهب دې ته درې طلاقه وركړل. نو دې عبدالرحمان بن زبير سره واده اوكړو. عبدالرحمان دې ته طلاق وركړو نو هغه دحضرت نبى كريم ﷺ په خدمت كښې حاضره شوه. او وې وئيل چه عبدالرحمان ماته دجماع كولو نه بغير طلاق راكړو. اوس څه خپل رومبى خاوند لره ورتلې شم. نو حضرت نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چه نه .(٣)

بعضې حضرات مذكوره واقعات يو شميرى. ليكن حافظ ابن حجر ﷫ فرمائى چه غالب دادى چه مذكوره دواړه واقعات جداجدا دى. څكه چه رومبۍ واقعه د رفاعه بن سموال دښځې ده او دوئمه واقعه د رفاعه بن وهب ده او دواړو ښځو ودونه عبدالرحمان بن زبير سره كړى وو.(٤)

③ داشان يو بله واقعه امام نسائى ذكركړې ده. د غميصاء يا درميصاء نومې يو ښځه دحضرت نبى كريم ﷺ په خدمت كښې حاضره شوه او دخپل خاوند شكايت ئې اوكړو چه په هغه جماع كولو قادر نه دې. نوددې خاوند حضرت نبى كريم ﷺ ته عرض اوكړو چه دا دروغ وائى. دراصل دا خپل رومبى خاوند لره تلل غواړى. په دې باندې حضرت نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چه«ليس ذالك لها حتى تذوق عسيلته»(٥)

---

١ ) فتح البارى :٥٨٢/٩ . دكتاب للباس په روايت كښې دى ((ان رفاعه طلق امرائة فتزوجها عبدالرحمان بن الزبير قالت عائشه : فجاءت .... وعليها خمارا خضر فشكت اليها ... اى الى عائشة.... من زوجها وارتها خضرة بجلدها فلما جاء رسول الله ﷺ والنساء يبصرن بعضهن بعضا قالت عائشة مارايت ما يلقى المومنات لجلدهااشد خضرة من ثوبها وسمع زوجها فجاء ... ومعه ابنان لمن غيرها.... قالت : والله مالى اليمين ذنب الا اليه من مامعه ليس باغنى عن من هذه ..... واخذت هدبة من ثوبها ...... كذبت والله يارسوالله ﷺ انى لانفضها نفض الاديم ولكنها ناشزة تريد رفاعة قال : فان كان ذالک لم تحل له الحديث وانظر فتح البارى: ٤٨٢/٩).

٢ ) ارشاد السارى: ٥٨٣/١٢).

٣ ) فتح البارى: ٥٨١/٩ . وتفسير ا لدرالمنثور فى التفسير بالماثور: ٢٨٣/١).

٤ ) فتح البارى: ٥٨١/٩، ٥٨٢).

٥ ) فتح البارى: ٥٨١/٩،والدر المنثور فى التفسير بالماثور: ١/ ٢٨٤ (سورة البقره).

بهر حال ددې ټولو روایاتو پیش نظر جمهور علماء فرمائي چه مطلقه مغلظه ړومبی خاوند له په هغه وخت کښې حلالیدې شي ترکوې چه دویم خاوند دنکاح کولو نه پس ده سره جماع اونه کړي او جماع نه پس بیا ورته طلاق ورکړي نو بیا دعدت تیریدو نه پس هغه اول خاوند دپاره حلالیدې شي.

**دحنفیه په مسلک باندې یو اشکال او ددې جواب:** دحنفیه په نیز خبر واحد سره کتاب الله باندې زیاتي جائز نه ده. دحنفیه مسلک باندې دلته دا اشکال کیږي چه حدیث باب، خبر واحد دې، دې سره دقران پاك آیت «حتی تنکح زوجا غیره» باندې زیاتې جائز نه دې. په آیت کښې صرف دنکاح کولو ذکر دې. حدیث نه دجماع کولو دقید اضافه جائز کیدل نه دی پکار.

① ددې یو جواب دادې چه دحنفیه په نیز نکاح دوطی په معنی کښې حقیقت ده. او مذکوره آیت کریمه کښې نکاح په حقیقی معنو کښې مستعمل ده، ددې وجې دحدیث نه په دې باندې زیاتی اونشوه بلکه حدیث ظاهر دقران پاك موافق دې. (۱)

② دویم جواب دادې چه حدیث باب خبر واحد نه دې بلکه خبر مشهور دې او خبر مشهور نه زیادتی فی النص جائز ده. (۲) نو امام ابوبکر جصاص رازی رحمه الله فرمائی چه :

«وقد وردت عن النبی ﷺ اخبار مستفیضة فی انها لا تحل للاول حتی یطاها الثانی منها حدیث الزهری عن عروة عن عائشة ان رفاعة القرظی ..... وروی ابن عمر وانس بن مالك عن النبی ﷺ مثله، ولم یذکرا قصة امراة رفاعة، وهذه اخبار قد تلقاها الناس بالقبول، واتفق الفقهاء علی استعمالها فهی عندنا فی حیز التواتر، ولا خلاف بین الفقهاء فی ذالك الا شئ یروی عن سعید بن المسیب انه قال انها تحل للاول بنفس عقد النکاح دون الوطء ولم نعلم احدا تابعه علیه فهو شاذ» (۳)

## ۳۶ = بَاب وَاللَّائِي يَئِسْنَ مِنَ الْمَحِيضِ مِنْ نِسَائِكُمْ إِنِ ارْتَبْتُمْ [الطلاق: ۴].

قَالَ مُجَاهِدٌ إِنْ لَمْ تَعْلَمُوا يَحِضْنَ أَوْ لَا يَحِضْنَ وَاللَّائِي قَعَدْنَ عَنِ الْمَحِيضِ وَاللَّائِي لَمْ يَحِضْنَ فَعِدَّتُهُنَّ ثَلَاثَةُ أَشْهُرٍ [الطلاق: ۴].

ددې باب نه مخکښې د ابن بطال په نسخه کښې د «کتاب العدة» عنوان دې. بعضو کښې د «ابواب العدة» عنوان دې. حضرت امام بخاری رحمه الله ددې ځائې نه د عدت مسائل بیانوی. «عدة، عد، یعد» مصدر نه دې په معنی د شمیرلو. اصطلاح شرع کښې دعدت تعریف دې «هی تربص ای انتظار مدة تلزم المراة عند زوال النکاح» (۴)

---

۱) فتح الباری: ۹/۵۸۵.

۲) عمدة القاری: ۲۰/۲۳۶ (باب من اجاز طلاق الثلاث).

۳) احکام القران للجصاص، باب ذکر الاختلاف فی الطلاق بالرجال: ۱/ ۳۹۰.

۴) عمدة القاری: ۲۰/۳۰۳.

**د نابالغه جینۍ او د بوائی ښځې عدت :** حضرت امام بخاری رحمه الله فرمائی چه «العدة اسم لمدة تتربص بها المرأة عن التزويج بعد وفاة زوجها او فراقه لها اما بالولادة او بالاقراء او الاشهر» (۱)

په باب کښې حضرت امام بخاری رحمه الله د سورة طلاق آیت ذکر فرمائیلې دې چه په هغې کښې د دوه قسمه ښځو دعدت بیان دې .یو هغه ښځه هغه سن یاس ته اورسی او ددې حیض راتلل بند شی.دویم هغه جینکۍ دهغوی حیض لا شروع شوې هم نه وی .ددې دواړو قسم ښځو عدت درې میاشتې دې.

په آیت کریمه کښې «ان ارتبتم» په تفسیر کښې حضرت امام بخاری رحمه الله د مجاهد قول نقل کړې دې،«ان لم تعلموا یحضن اولا یحضن» یعنی «ان ارتبتم» معنی داده چه تاسو ته معلوم نه وی چه دې ته به حیض رازی یا نه .چه دکومو ښځو په حیض راتلو اونه راتلو کښې تاسو ته شك وی نو دهغوی عدت درې میاشتې دې.

لیکن جمهور علماء فرمائی چه په آیت کریمه کښې «ان ارتیاب فی اتیان الحیض وفی عدم اتیان الحیض» مراد نه دې یعنی دحیض راتللو او نه راتللوکښې شك وارتیاب مراد نه دې بلکه «ارتیاب فی الحکم» مراد دې یعنی مذکوره دواړو قسمه ښځو په حکم کښې که تاسو ته شك اوارتیاب دې چه د عدت قانون څه پکار دې او ددوی دپاره دشریعت څه فیصله ده نو ددوی عدت درې میاشتې خودلې شوې دې.

نو واحدی ددې آیت کریمه په شان نزول کښې روایت نقل کړې دې چه سورة بقره کښې چه کله دعدت آیاتونه نازل شو نو حضرت ابی بن کعب حضرت نبی کریم ﷺ ته اوفرمائیل چه خلق وائی چه بعضې داسې ښځې پاتې شوې چه دهغوی د عدت حکم نازل نشو،حضرت نبی کریم ﷺ تپوس اوکړو چه هغه کومې ښځې دی ؟هغوی عرض اوکړو چه «الصغار والکبار وذوات الحمل» یعنی وړوکې جینکۍ اوسن یاس ته رسیدلې بوډئی ښځې او حامله ښځې،نو په دې باندې دامذکوره آیت نازل شو چه په هغې کښې ددې ښځو دعدت حکم بیان کړې شو.(۲)دمجاهد رحمه الله تعلیق باب لره فریابی موصولاً نقل کړې دې.(۳)

## ۳۷=بَاب وَأُولَاتُ الْأَحْمَالِ أَجَلُهُنَّ أَنْ يَضَعْنَ حَمْلَهُنَّ

[۵۰۱۲] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ جَعْفَرِ بْنِ رَبِيعَةَ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ هُرْمُزَ الْأَعْرَجِ قَالَ أَخْبَرَنِي أَبُوسَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ أَنَّ زَيْنَبَ بِنْتَ أَبِي سَلَمَةَ أَخْبَرَتْهُ عَنْ أُمِّهَا أُمِّ سَلَمَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّ امْرَأَةً مِنْ أَسْلَمَ يُقَالُ لَهَا سُبَيْعَةُ كَانَتْ تَحْتَ

---

۱) فتح الباری: ۵۸۷/۹).
۲) عمدة القاری: ۳۰۳/۲۰).
۳) ارشاد الساری: ۹۳/۱۲).

زَوْجِهَا تُوُفِّيَ عَنْهَا وَهِيَ حُبْلَى فَخَطَبَهَا ابُو السَّنَابِلِ بْنُ بَعْكَكٍ فَأَبَتْ انْ تَنْكِحَهُ فَقَالَ وَاللّٰهِ مَا يَصْلُحُ انْ تَنْكِحِيهِ حَتَّى تَعْتَدِّي اخِرَ الاجَلَيْنِ فَمَكُثَتْ قَرِيبًا مِنْ عَشْرِ لَيَالٍ ثُمَّ جَاءَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ انْكِحِي [ر:٣٦٢٦].

[٥٠١٣] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ عَنِ اللَّيْثِ عَنْ يَزِيدَ انَّ ابْنَ شِهَابٍ كَتَبَ اِلَيْهِ انَّ عُبَيْدَ اللّٰهِ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ اخْبَرَهُ عَنْ ابِيهِ انَّهُ كَتَبَ الَى ابْنِ الارْقَمِ انْ يَسْأَلَ سُبَيْعَةَ الاسْلَمِيَّةَ كَيْفَ افْتَاهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ افْتَانِي اذَا وَضَعْتُ انْ انْكِحَ [ر:٣٧٧٠].

[٥٠١٤] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ قَزَعَةَ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ ابِيهِ عَنِ الْمِسْوَرِ بْنِ مَخْرَمَةَ انَّ سُبَيْعَةَ الاسْلَمِيَّةَ نُفِسَتْ بَعْدَ وَفَاةِ زَوْجِهَا بِلَيَالٍ فَجَاءَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاسْتَأْذَنَتْهُ انْ تَنْكِحَ فَاذِنَ لَهَا فَنَكَحَتْ

**دحامله ښځو عدت** : حضرت امام بخاري رحمه الله په دې باب کښې دحامله ښځو دعدت مسئله بيان کړې ده چه ددوی عدت وضع حمل دې لکه څنګه چه دقران پاك آيت دې او هم دا دجمهور علماء او آئمه اربعه مسلك دې البته حضرت علی رضي الله عنه او حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه منقول دی چه دحامله ښځو عدت به«ابعد الاجلين»وی يعني که هغوی وضع حمل د څلورو مياشتو او لسو ورځو نه مخکښې کوی نوعدت به څلور مياشتې لسو ورځې وی او که وضع حمل دڅلورو مياشتو لسو ورځو نه پس کوی نو عدت به ئې وضع حمل وی. حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه مذهب جمهور طرفته ته رجوع هم منقول ده.(١) روايت باب دجمهور علماء مستدل دې چه په دې کښې وضع حمل عدت لره ګنړلې شوې دې، کتاب التفسير کښې ددې تفصيل تير شوې دې.

**د حضرت سبيعه واقعه** : دباب په روايت کښې سبيعه بنت حارث واقعه بيان‌شوې ده. ددې خاوند حضرت سعد بن خوله رضي الله عنه وفات شو، لکه څنګه چه په کتاب المغازی کښې روايت دې(٢) دوضع حمل نه پس ابوالسنابل ده ته دنکاح کولو پيغام اوليږلو نوهغوی انکار اوکړو. دموطاپه روايت کښې دی چه دې ته دوو سړو د نکاح پيغام ورکړې وو چه په هغوی کښې يو ځوان او بل بوډا وو.(٣) چه کوم ځوان وو دهغه نوم ابوالبشر بن حارث وو.(٤) او ابو السنابل د زيات عمر والا سړې وو ددې وجې سبيعه د ځوان دنکاح پيغام قبلول اوغوښتل، په دې باندې ابوالسنابل اووئيل چه ترکومې پورې څلور مياشتې لس ورځې تيرې نه کړې تر هغه وخته پورې ستادپاره چاسره نکاح کول حلال نه دی. دهغې وضع حمل د خاوند د وفات نه دوه درې مياشتې پس شوې وو بعضو روايتونو کښې دوه مياشتې، بعضو

---

١ ) عمدة القاري: ٢٠/٣٠٤).

٢ ) کشف الباری، کتاب المغازی باب فضل من شهد بدرا : ١٤٥).

٣ ) فتح الباری: ٩/٥٩٠).

٤ ) فتح الباری: ٩/٥٩٠، ارشادالساری: ١٢/٩٤).

كښې خلوېښت ورځې ، بعضو كښې پنځويشت ورځې ذكر دى.(١) بهر حال خلور مياشتې لس ورځې لا تيرې شوې نه وې. ابوالسنابل دا په دې وجه اووئيل چه په هغه وخت كښې د سبيعه نور رشته دار موجود نه وو. دهغه خيال وو چه تر هغه وخت به دهغې رشته دار راشى او هغوى سره به خبره اوكړى نوشاند دا به ماسره په نكاح كولو راضى شى. (٢) سبيعه دحضرت نبى كريم ﷺ په خدمت كښې حاضره شوه او وې وئيل چه ځما وضع حمل اوشو آيا اوس ځه نكاح كولې شم ؟حضرت نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چه ته نكاح كولې شې.

**قوله: فقال والله ما يصلح ان تنكحيه:** دصحيح بخارى په ډيرو نسخو كښې «فقال» په ځاې «فقال» دې ليكن صحيح «فقالت» دمذكر صيغه ده،ضمير ابوالسنابل طرفته راجع دې .

په «ان تنكحيه» كښې «ان» مصدريه دې او بتاويل مصدر دې او دا جمله د «يصلح» فاعل دې د ابوالسنابل مختلف نومونه روايتونو كښې رازى ،عمرو ،عامر ، اصرم، عبدالله(٣)

د باب په دويم روايت كتاب المغازى كښې تفصيل سره تير شوې دې (۴) دريم روايت كښې دى «ان سبيعة نفست» «نون ضمه او فاء په كسره سره» په معنى د «ولدت».

## ٣٨=بَاب قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَالْمُطَلَّقَاتُ يَتَرَبَّصْنَ بِأَنْفُسِهِنَّ ثَلَاثَةَ قُرُوءٍ [البقره:٢٢٨]

وَقَالَ اِبْرَاهِيمُ فِيمَنْ تَزَوَّجَ فِي الْعِدَّةِ فَحَاضَتْ عِنْدَهُ ثَلَاثَ حِيَضٍ بَانَتْ مِنَ الْأَوَّلِ وَلَا تَحْتَسِبُ بِهِ لِمَنْ بَعْدَهُ وَقَالَ الزُّهْرِيُّ تَحْتَسِبُ وَهَذَا أَحَبُّ إِلَى سُفْيَانَ يَعْنِي قَوْلَ الزُّهْرِيِّ

وَقَالَ مَعْمَرٌ يُقَالُ أَقْرَأَتْ الْمَرْأَةُ إِذَا دَنَا حَيْضُهَا وَأَقْرَأَتْ إِذَا دَنَا طُهْرُهَا وَيُقَالُ مَا قَرَأَتْ بِسَلًى قَطُّ إِذَا لَمْ تَجْمَعْ وَلَدًا فِي بَطْنِهَا

دمطلقات عدت په قرآن پاك كښې مذكور آيت كښې درې قروء خودلې شوې دې،په دې باندې دټولو اتفاق دې ليكن د «قرء» په تفسير كښې اختلاف دې.

دحضرات حنفيه په نيز «قرء» دلته د حيض په معنى كښې ده او هم دا د حضرت امام احمد بن حنبل رحمه الله صحيح قول دې،حضرات صحابه كرام رضي الله عنهم كښې حضرت عمر بن الخطاب رضي الله عنه، حضرت على رضي الله عنه ،حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه هم دا قول منقول دې.بلكه اثرم دحضرت امام احمد بن حنبل رحمه الله نه نقل كړى دى چه اكابر صحابه كرام رضي الله عنهم هم دا قول دې .

حضرت امام شافعى رحمه الله او حضرت امام مالك رحمه الله فرمائى چه «قرء» د «طهر» په معنى

---

١ ) فتح البارى: ٥٩٢/٩ ).

٢ ) نوې په موطا كښې روايت دې ..... وكان اهلها غيبا،ورجا،اذا جاء اهلها ان يوشروه بها ... اوګورئ الموطا للامام مالک كتاب الطلاق باب عدة المتوفى عنها زوجها اذاكانت حاملا : ٥٨٩/٢).

٣ ) فتح البارى: ٥٩٠/٩).

٤ ) اوګورئ كشف البارى: كتاب المغازى ،باب من شهد بدرا : ١٤٥).

كښې دي،حضرات صحابه كرام رضي الله عنهم كښې حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه،حضرت زيد بن ثابت رضي الله عنه او حضرت عائشه رضي الله عنها نه هم دا قول منقول دې،د حضرت امام احمد بن حنبل رحمه الله نه يو روايت هم ددې مطابق دې.(١)

**د حضرت امام بخاري رحمه الله رجحان:** حضرت امام بخاري رحمه الله په باب كښې دحضرت ابراهيم نخعي چه كوم اثر نقل كړې دې،په هغې كښې اګر چه يو بله مسئله بيان شوې ده ليكن ددې اثر په ذكر كولو سره د حضرت امام بخاري رحمه الله رجحان اوميلان دې طرفته معلوميږي چه دهغوى په نيز«قرء»دحيض په معنى كښې ده او هغه په دې مسئله كښې دحضرات حنفيه سره موافقت كوى،ځكه چه په دې اثر كښې دمطلقه عدت حيض شميرلې شوې دې،طهر نه.

**دحضرت ابراهيم نخعي دااثر حاصل** : حضرت ابراهيم نخعي رحمه الله دااثر حاصل دادې چه يو مطلقه ښځې عدت كښې دننه بل واده اوكړو،لكه اوسه پورې لا ددې حيض نه وو تير شوې چه دې بله نكاح اوكړه،دنكاح نه پس بل خاوند ورته هم طلاق وركړو.اوس دړومبى خاوند عدت هم په دې باندې لازم شو او د دويم خاوند هم عدت په دې باندې لازم شو.د ړومبى خاوند عدت ختميدو دپاره دوه حيضونه او د دويم خاوند د عدت دپاره درې حيضوه نه باقي وى . نو اوس چه كوم دوه حيضونه رازى هغه به دويم خاوند په حيض كښې شميرلې شي يا نه؟ابراهيم نخعي رحمه الله فرمائي چه دا دوه حيضونه به د دويم خاوند په عدت كښې نشي شميرلې .خاوند عدت به شميرلې شي. او د دويم خاوند دعدت دپاره دې نه پس مستقل درې مزيد حيضونه به دا تيروى. ليكن امام زهري رحمه الله فرمائي چه دا دوه حيضونه به د دويم خاوند دعدت دپاره شميرلې كيږى،مخكښې د دويم عدت پوره كيدو دپاره به صرف ديو حيض ضرورت وى.داشان ټول څلور حيضونو سره به د دويم خاوند عدت تير شي،د زهري رحمه الله دې قول لره ابوسفيان خوښ كړې دې او دحنفيه په نيز هم دا مسلك دې.د حضرت امام مالك رحمه الله يو روايت هم ددې مطابق دې .(٢)دحضرت ابراهيم نخعي رحمه الله داتعليق ابن ابى شيبه موصولاً نقل كړې دې.(٣)

**قوله:** وقال معمر: اقرات المراة اذادنا حيضها واقرات اذادناه طهرها: ابو عبيده معمر بن مثنى فرمائي چه د«اقرات»استعمال په هغه وخت كښې هم كيږى چه كله دحيض زمانه رانزدې او په هغه وخت كښې هم كيږى چه كله زمانه د طهر رانزدې،حاصل دادې چه مذكوره لفظ دحيض او دطهر دواړو دپاره استعماليږى.

**قوله:** ويقال :ماقرات بسلاقط اذالم تجمع ولدا في بطنها: «ماقرات بسلاط»په هغه وخت كښې وئيلې كيږى چه كله ښځه شنډه وى او هغه په رحم كښې بچې نشى جمع كولې،

---

١) اوګورئ بداية المجتهد،كتاب الطلاق،الباب الاول فى العدة الفصل الاول فى عدة الزوجات : ٨٩/٢).

٢) الابواب والترجم: ٨٣/٢،وفتح البارى: ٥٩٥/٩،وارشاد السارى: ٩٦/١٢).

٣) ارشادالسارى: ٩٦/١٢).

معلومه شوه چه د ((قرء)) معنى جمع كولو راځي. حيض ته قرء په دې وجه اووئيلې شو چه په دې كښې دجمع شوې وينې خروج كيږي او طهر ته قرء ددې وجې وائي چه په دې كښې رحم كښې دننه وينه جمع كيږي، كتاب التفسير كښې په سورت نوركښې هم دا جمله تيره شوې ده (۱)

## ٣٩=بَابُ قِصَّةِ فَاطِمَةَ بِنْتِ قَيْسٍ

وَقَوْلِ اللَّهِ: وَاتَّقُوا اللَّهَ رَبَّكُمْ لَا تُخْرِجُوهُنَّ مِنْ بُيُوتِهِنَّ وَلَا يَخْرُجْنَ إِلَّا أَنْ يَأْتِينَ بِفَاحِشَةٍ مُبَيِّنَةٍ وَتِلْكَ حُدُودُ اللَّهِ وَمَنْ يَتَعَدَّ حُدُودَ اللَّهِ فَقَدْ ظَلَمَ نَفْسَهُ لَا تَدْرِي لَعَلَّ اللَّهَ يُحْدِثُ بَعْدَ ذَلِكَ أَمْرًا أَسْكِنُوهُنَّ مِنْ حَيْثُ سَكَنْتُمْ مِنْ وُجْدِكُمْ وَلَا تُضَارُّوهُنَّ لِتُضَيِّقُوا عَلَيْهِنَّ وَإِنْ كُنَّ أُولَاتِ حَمْلٍ فَأَنْفِقُوا عَلَيْهِنَّ حَتَّى يَضَعْنَ حَمْلَهُنَّ إِلَى قَوْلِهِ بَعْدَ عُسْرٍ يُسْرًا [الطلاق:٦-٧].(٢)

حضرت امام بخاري رحمه الله د فاطمه بنت قيس واقعه تفصيل سره نه ده بيان كړې، ددې وجې چه ددوى دقصې روايات د حضرت امام بخاري رحمه الله د شرط مطابق نه دى. البته امام مسلم او امام ابوداود ددې قصه تفصيل سره بيان كړې ده. حضرت امام بخاري رحمه الله ددوى قصې طرفته اشاره كړې ده.

**دحضرت فاطمه بنت قيس واقعه :** حضرت فاطمه بنت قيس رضي الله عنها يو صاحب عقل وجمال والا ښځه وه. ابوعمرو بن حفص دې سره نكاح اوكړه، حضرت علي رضي الله عنه چه كله حضرت نبي كريم ﷺ يمن ته اوليږلو نو ابوعمرو هم دوى سره لاړو او هغه خائې هغوى خپلې ښځې فاطمه ته دريم طلاق اوليږلو او خپل د تره زوئې حارث بن هشام ته ئې اووئيل چه فاطمه ته څه كهجورې او اوربشې وركړه، فاطمه ته دا كمې معلومې شوې او دحضرت نبي كريم ﷺ په خدمت كښې حاضره شوه او شكايت ئې اوكړو نوحضرت نبي كريم ﷺ هغې ته اوفرمائيل چه ((ليس لك سكنى ولا نفقة)) (٣) او هغې ته ئې حكم اوكړو چه ته د ام شريك په كور كښې عدت پوره كړه. بيا ئې اوفرمائيل چه ام شريك لره څمونږ اصحاب زيات ځى راځي نو ددې وجې ته دهغه خائې په ځائې د عبدالله بن ام مكتوم په كور كښې عدت پوره كړه. ځكه چه هغه نابينا سړې دې، هغه ځائې كښې به ته آزادئى او بې تكلفئ سره اوسيږې. هركله چه ستا عدت پوره شى نو ماته اطلاع راكړه، نو عدت پوره كيدو باندې هغې حضرت نبي كريم ﷺ

---

١) اوګورئ كشف الباري، كتاب التفسير: ٤٦٤).

٢) ( بيوتهن ) مساكنهن التى يسكنها وهى بيوت الازواج (يخرجن ) حتى تنقضى عدتهن (بفاحشة) زنا، فيخرجن لاقامة الحد عليهن وقيل : الفاحشة النشوز وسوء الخلق فيسقط حقهن بالسكنى ( مبينة )) ظاهرة وثابتة . (حدودالله ) احكام شرعه (امرا) رجعة . ( اسكنوهن ) اى المطلقات حتى تنقضى عدتهن ((من حيث سكنتم ) من مكان سكناكم ونوعه (وجدكم) سعتكم وطاقتكم (تضاروهن) توذوهن ( لتضيقوا عليهن ) فى المسكن حتى يخرجن (اولات حمل ) ذوات حمل حبالى (الى قوله ) وتتمتها ﴿ فَإِنْ أَرْضَعْنَ لَكُمْ فَآتُوهُنَّ أُجُورَهُنَّ وَأْتَمِرُوا بَيْنَكُمْ بِمَعْرُوفٍ وَإِنْ تَعَاسَرْتُمْ فَسَتُرْضِعُ لَهُ أُخْرَى ۝ لِيُنْفِقْ ذُو سَعَةٍ مِنْ سَعَتِهِ وَمَنْ قُدِرَ عَلَيْهِ رِزْقُهُ فَلْيُنْفِقْ مِمَّا آتَاهُ اللَّهُ لَا يُكَلِّفُ اللَّهُ نَفْسًا إِلَّا مَا آتَاهَا سَيَجْعَلُ اللَّهُ بَعْدَ عُسْرٍ يُسْرًا ۝﴾

٣) فتح الباري: ٥٩٧/٩).

ته اطلاع ورکړه او وې وئيل چه ماته معاويه بن ابى سفيان او ابوجهم د نکاح پيغام ليږلے دې، حضرت رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه ابوجهم خو خپله همسا دخپلې اوږې نه نه کوزولې ( ډير سخت طبيعت والا دې) اومعاويه مفلس سړے دې، هغه سره مال نشته دې، ته اسامه بن زيد سره نکاح اوکړه، نودحضرت نبى کريم ﷺ په وينا سره فاطمه حضرت اسامه سره نکاح اوکړه. فرمائى چه الله ﷻ په هغې کښې داسې خير واچولوچه ښځو به ماسره رشك کولو.(١)

**د معتده مبتوته دنفقې او سکنى حکم** : حضرت امام بخارى رحمه الله په دې باب کښې دراصل دمعتده مبتوته نفقه او سکنى مسئله بيان کړې ده يعنى هغه ښځه چه کومې ته طلاق بائن اوشو او هغه غير حامله ده نو د عدت په دوران کښې ددې دخاوند د طرفنه نفقه اوسکنى به ملاويږى که نه، په دې کښې ا ختلاف دې.

مطلقه رجعيه ته خو په بالاتفاق د عدت په دوران کښې نفقه او سکنى ملاويږى، مطلقه رجعيه مبتوته که حامله ده نو دې ته به هم بالاتفاق دعدت په دوران کښې نفقه او سکنى ملاويږى، اختلاف دمطلقه مبتوته غيرحامله کښې دې.

① د حضرت امام احمد بن حنبل رحمه الله امام اسحاق رحمه الله حسن بصرى رحمه الله او د ظاهريه په نيز معتده غيرحامله دعدت دوران کښې نه به ورته نفقه ملاويږى اونه سکنى.

② د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله سفيان ثورى رحمه الله او د ابراهيم نخعى رحمه الله په نيز دې ته به دعدت په دوران کښې سکنى و نفقه دواړه ملاويږى حضرت عمر رضى الله عنه اود حضرت عبدالله بن مسعود رضى الله عنه نه هم دا قول منقول دې.

③ د حضرت امام مالك رحمه الله او د حضرت امام شافعى رحمه الله په نيزبه دې ته د عدت په دوران کښې سکنى ملاويږى البته نفقه به نه ملاويږى .(٢) او د حضرت امام بخارى رحمه الله رجحان هم دې طرفته معلوميږى ځکه چه هغه په باب کښې کوم روايت ذکرکړې دې دې هغې نه سکنى ثابتيږى او دنفقه د وجوب متعلق څه دليل هغوى ذکر کړې نه دې ،د فاطمه بنت قيس واقعه نه استدلال کوى چه حضرت نبى کريم ﷺ دوى ته اوفرمائيل چه «لا نفقة لك ولا سكنى» ستا دپاره نه نفقه شته دې او نه سکنى شته دې.

دحضرت امام مالك رحمه الله او دحضرت امام شافعى رحمه الله مستدل دقران پاك آيت دې چه کوم حضرت امام بخارى رحمه الله دلته په ترجمة الباب کښې ذکر کړې دې ﴿أَسْكِنُوهُنَّ مِنْ حَيْثُ سَكَنتُم مِّن وُجْدِكُمْ وَلَا تُضَارُّوهُنَّ لِتُضَيِّقُوا عَلَيْهِنَّ وَإِن كُنَّ أُولَاتِ حَمْلٍ فَأَنفِقُوا عَلَيْهِنَّ حَتَّىٰ يَضَعْنَ حَمْلَهُنَّ﴾ يعنى دې مطلقه ښځو ته استوګنه او سکنى ورکړئ چه کوم ځائې کښې تاسو پخپله اوسيږئ دخپل طاقت مطابق اودوى ته ايذا مه ورکوئ چه تاسو په دوى باندې تنګى واچوئ او که دوى

---

١ ) صحيح مسلم، كتاب الطلاق، باب المطلقة البائن لانفقة لها : ١١١٤/٢، رقم الحديث : ١٤٨).

٢ ) دمذاهبومذکوره دتفصيل دپاره اوګورئ الابواب والترجم : ٨٣/٢، وعمدة القارى: ٣٠٧/٢٠، وفتح البارى: ٦٠٠/٩، وبداية المجتهد، كتاب الطلاق ،بيان احكام العدد: ٩٥/٢)

حاملوى نو په دوى باندې خرچ كوى تر دې پورې چه وضع حمل اوشى.
په دې آيت كريمه كښې الله ﷻ دسكنى حكم خو مطلق وركړې دې او دنفقه حكم ئې دحامله كيدو سره مقيد كړې دې، دحضرت امام شافعى رحمه الله په نيز چونكه مفهوم مخالفت حجت دې او ددې اعتبار كيږى ځكه چه هغه ددې آيت كريمه نه ثابتوى كه ښځه حامله وى نو دې ته به نفقه نه ملاويږى.(١)
دحضرت فاطمه بنت قيس قصې نه هم هغه داشان استدلال كوى چه په دې كښې دوه حكمونه دى «لا نفقه لك ولا سكنى» دسكنى حكم چونكه دقران كريم آيت «اسكنوهن» سره معارض دې ددې وجې ددې اعتبار به نه كيږى البته دنفقې حكم چونكه د آيت معارض نه دې ددې وجې ددې اعتبار به كيږى.
**داحنافو دلائل**: حضرات حنفيه هم دخپل مسلك دپاره دقران وحديث دآثارونه دلائل پيش كوى.
① په سورة بقره كښې «وللمطلقات متاع باالمعروف حقا على المتقين» په دې آيت كښې د «مطلقات» د رجعيه او مبتوته دواړو دپاره شامل دې، داشان د «متاع» لفظ دنفقه او د كسوه تولو دپاره شامل دې(٢)
② يو بل آيت كښې دمطلقات ذكر كوى او فرمائى چه «وعلى المولودله رزقهن وكسوتهن بالمعروف» يعنى دوالد په ذمه ددې ښځو خوراك او لباس د ددستور مطابق دې دلته هم دمبتوته او د رجعيه كښې هيڅ فرق اونشو.
③ دارقطنى كښې حضرت جابر رضي الله عنه نه روايت دې چه حضرت نبى كريم ﷺ فرمائيلى دى چه «المطلقات ثلاثا لها السكنى والنفقة»(٣)
تركومې چه دحضرت فاطمه بنت قيس د واقعې تعلق دې نو ددې جواب دادې چه د حضرت فاطمه حديث حضرت عمرفاروق رضي الله عنه، حضرت عائشه رضي الله عنها او حضرت اسامه بن زيد رد كړې وو (۴) د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه مخكښې چه كله هغه حديث پيش كړې شو نو هغوى اوفرمائيل چه «لا نترك كتاب الله وسنة نبينا بقول امراة لاندرى حفظت او نسيت لها السكنى والنفقة»(٥)
يعنى كتاب او دخپل نبى سنت لره مونږ د يو ښځې د قول په وجه نشو پريخودې، معلوم نه دى چه دا خبره هغې ته صحيح ياده هم ده اوكه نه ده.
د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه ددې حديث نه معلوميږى چه كتاب الله او سنت رسول ﷺ كښې مبتوته دپاره سكنى او نفقه دواړه دى. كتاب الله كښې دسكنى حكم خو صراحتاً موجود دې

١) فتح البارى: ٦٠٠/٩).
٢) تفسير ابن جرير الطبرانى : ٣٤٢/٢،(كذا فى ا لتكملة : ٢٠٢/١).
٣) سنن دار قطنى كتاب الطلاق : ٢١/٤،وانظر للتفصيل اعلاء ا لسنن باب ان المطلقة المبتوتة لها السكنى والنفقه : ١٠٤/١١).
٤) عمدة البارى: ٣٠٨/٢٠).
٥) اوګورئ صحيح مسلم ( مع تكملة فتح الملهم ) كتاب الطلاق باب المطلقة البائن لانفقة لها : ٢١٣/١ ).

ارشاد دې چه «واسكنوهن من حيث سكنتم» خو حنفيه په دې آيت كريمه نه نفقه وجوب باندې هم څلورو طريقو سره استدلال كړې دې :

① سكنى يو مالى حق دې چه الله ﷻ تصريح سره دخاوند په ذمه واجب فرمائيلې دې .اودا حق مبتوته او رجعيه دواړو لره ثابت دى، دسكنى حق واجب كيدل د وجوب نفقه هم تقاضا كوى ځكه چه سكنى يو مالى حق كيدو په وجه دنفقې يو حصه ده نو كله چه سكنى واجب ده نو نفقه هم واجب كيدل پكار دى.

② په دې آيت كريمه كښې دى چه «ولا تضاروهن» يعنى دې مطلقه ښځو ته ضرر او تكليف مه وركوئى او په نفقه ته وركولو كښې هم ضرر او تكليف دې.

③ ددې جملې نه مخكښې جمله ده چه «لتضيقوا عليهن» او تنګى او تضييق چه څنګه سكنى كښې كيدې شى، داشان ترك نفقه كښې هم تنګى داخل ده.

امام جصاص رازى رحمه الله ددې آيت كريمه نه دنفقه دوجوب باندې مذكوره دريو طريقو سره استدلال كړې دې.(١)

بعضې حضراتو ددې آيت كريمه نه دنفقه ثبوت باندې داشان استدلال كړې دې چه لفظ د «اسكنوهن» سره سكنى او نفقه دواړه ثابتيږى. «سكنى» خو واضح دى چه ددې لفظ منطوق دې او نفقه داشان ثابتيږى چه معتده حق زوج دپاره دعدت په دوران كښې د خاوند په كور كښې محبوسه وى او قاعده ده چه كوم سړې چه دچا دپاره محبوس اوسى، ددې نفقه ده په ذمه لازميږى لكه قاضى عامة المسلمين دپاره محبوس كيږى نو ددې نفقه او وظيفه دعامة المسلمين بيت المال نه ادا كيږى. ددې قاعدې پيش نظر دمعتده نفقه دخاوند په ذمه كيدل پكار دى.

حاصل دا چه قران كريم كښې «اسكنوهن» نه صراحتًا دسكنى وجوب ثابت شو نو مذكوره قاعده دحبس نه نفقه پخپله واجب شوه. داشان چه ګويا كتاب الله نه نفقه او سكنى د دواړو ثبوت اوشو.(٢)

④ بيا د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه په قرات كښې «وانفقوا عليهن» اضافه ده. د هغوى قرات دې «اسكنوهن من حيث سكنتم وانفقوا عليهن من وجدكم»(٣) په دې قرات كښې دسكنى دحكم په شان دنفقې حكم هم صراحت سره دې. ممكن دى چه دحضرت عمر فاروق رضي الله عنه هم دا

---

١) احكام القران للجصاص سورة الطلاق: ٣/ ٥٦٥).

٢) احكام القران للجصاص :٥٦٥.٥٦٦/٣ . قال ابن رشدى بداية المجتهد : ٢/ ٩٥.امالذين اوجبولها السكنى والنفقة فصاروالى وجوب السكنى لها بعموم قوله تعالى : اسكنوهن من حيث سكنتم من وجدكم. وصارو الى وجوب النفقة لها لكون النفقة تابعة لوجوب الاسكان فى الرجعية وفى الحامل وفى الزوجية وبالجملة فحيثما وجبت السكنى فى الشرع النفقة ).

٣) روح المعانى : ١٣٩/٢٨ (سورة الطلاق).

قرات وی.نو بیا هغوی((لا ندع کتاب ربنا))اووئیل چه زمونږ درب په کتاب کښې د نفقه او سکنی دواړو ذکر شته دې.

اوس پاتې شو((وسنة نبینا))چه سنتو سره دنفقه ثبوت څنګه وی.هغه داشان دې چه امام طحاوی رحمه الله په شرح المعانی الاثار کښې هم دا روایت دحضرت ابراهیم نخعی رحمه الله په طریق دحضرت عمر فاروق رضی الله عنه نه نقل کړې دې . ددې په آخر کښې دحضرت عمرفاروق رضی الله عنه ارشاددې چه((سمعت رسول الله ﷺ یقول لها السکنی والنفقة))(۱) په دې مرفوع حدیث کښې صراحت سرددمبتوته دپاره دسکنی او نفقه دواړو دوجوب ذکر دې.

**دابراهیم نخعی رحمه الله مراسیل حجت دی:** د ا مام طحاوی رحمه الله په دې روایت باندې اشکال کړې شوی دی‌چه‌دا منقطع ده. ځکه چه‌ابراهیم نخعی رحمه الله دحضرت عمرفاروق رضی الله عنه نه نقل کوی‌او هغوی‌دحضرت عمر رضی الله عنه په زمانه کښې موجودنه وو.

ددې جواب ورکړې شوی چه‌د ابراهیم نخعی د ارروایت‌ته به‌زیات نه زیات مرسل وئیلې کیږی اود ابراهیم‌نخعی رحمه الله مراسیل‌دحضرات محدثین‌نه معتبر او صحیح ګڼړلې شوی دی.

امام جرح وتعدیل یحیی بن معین‌فرمائی چه((مراسیل ابراهیم احب الی من مراسیل الشعبی))(۲)

او دشعبی دمراسل متعلق عجلی فرمائی چه((ومرسل الشعبی صحیح))(۳)

حضرت عبدالله بن مسعود نه د شعبی مراسیل بالاتفاق صحیح دی. هغوی پخپله‌خپل معمول او اصول بیان کړی دی چه‌کله‌څه روایت‌دحضرت عبدالله بن مسعودنه ماته‌یو استاد نه ملاویږی‌نو څه‌دهغه استاد نوم اخلم اوهغه روایت بیانوم .او کله چه د ډیر استاذانو نه ملاویږی نوځه‌ددې استاذانو نومونه نه اخلم‌بلکه نیغ په نیغ‌دا دحضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه نه‌مرسل بیانوم .(۴)ددې وجې‌حافظ ابن رجب فرمائی چه‌حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه نه دحضرت ابراهیم نخعی رحمه الله مراسیل ددوی مسانید نه زیات قوی او صحیح وی .(۵) دحضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه په‌شان‌حضرت عمر رضی الله عنه نه هم ددوی ټول مراسیل‌درست دی.نو حافظ ابن عبدالبر په((التمهید))کښې‌ددې خبرې تصریح کړې ده(۶) اومذکوره‌روایت دحضرت عمر رضی الله عنه نه دې .

او که دا تسلیم کړې شی چه دحضرت ابراهیم نخعی رحمه الله دا روایت‌منقطع کیدو په وجې سره حجت نه دې.بیا هم دحضرت عمر فاروق رضی الله عنه دا جمله چه((لاندع کتاب ربنا وسنة نبینا))په

---

۱) شرح معانی الاثار: ۲/ ۳۵).

۲) تهذیب الکمال : ۲/ ۲۳۸.وتهذیب التهذیب : ۱/ ۱۷۷.وسر اعلام النبلاء : ۴/ ۵۲۲).

۳) خلاصة الخزرجی : ۱۸۴ ).

۴ ) کتاب العلل للترمذی: ۲/ ۲۳۷ ( فی اخر سننه ).

۵ ) تعلیقات تهذیب الکمال : ۲/ ۲۳۹ ) .

۶) التمهید لابن عبدالبر باب بیان التدیس ومن یقبل نقله ویقبل مرسد: ۱/ ۳۷،۳۸).

صحت كښې خوبهر حال چاته شك نشته دې او داصول حديث قاعده ده چه د يو صحابي وينا ((السّنة كذا)) د حديث فرموع په درجه كښې ده.(۱)

بيهقي په دې باندې اشكال كړې دې چه د ((سنة نبينا)) الفاظ دابواحمد زبيري تفردد دې ځكه چه ابواحمد دشيخ عمار بن زريق نه يحيى بن آدم هم دا روايت نقل كړې دې . ليكن هغوى د ((سنة نبينا)) الفاظ نه دى وئيلي او يحيى بن آدم زبيري نه احفظ دى.

ليكن ماردينى جواب وركړې دې چه ديحيى او زبيرى په روايت كښې تعارض نشته دې، ځكه چه زبيرى ديحيى مخالفت نه كوى بلكه يو اضافه ئې كړې ده چه دهغې نه ديحيى روايت خالي دې او زبيرى ثقه دې ،د ثقه زياتې او اضافه قبلولې شي . بيا زبيرى په دې اضافه كښې متفرد هم نه دې بلكه مصنف بن ابى شيبه كښې ددې شواهد او متابعات هم دى.(۲)

**دحضرت فاطمه بنت قيس دواقعې جواب** : تر كومې پورې چه د حضرت فاطمه بنت قيس ﷞ دواقعې تعلق دې چه نو ددې جواب دادې چه هغوى ته سكنى او نفقه دمخصوص حالت په وجه نه ده وركړې شوې،سكنى خو يو په دې وجه ورنكړې شوه چه دهغې دخاوند كور په ويران ځائې كښې وو،او هلته دهغې عدت تيرول مناسب نه وو،دويم دا چه هغه د ژبې نه لږه تيزه وه،چه دهغې په وجه دځخرګنئ سره دهغې جوړښت نه راتلو.نو حضرت نبى كريم ﷺ د قران پاك آيت ((ولايخرجن الا ان ياتين بفاحشة مبينة)) باندې عمل كولو او هغه ئې بل ځائې ته منتقل كړه.آيت كريمه كښې د ((فاحشة)) تفسير دحضرت ابن عباس ﷠ نه بدګوئى او زبان درازى منقول دې .(۳)

باقى پاتې شوه نفقه نو ددې آسان جواب دادې چه هر كله هغې ته سكنى ورنكړې شوه نو دنفقې هم هغه مستحق نه وه. ځكه چه نفقه خو د احتباس په وجه واجب كيږى . هر كله چه احتباس پاتې نشو نو نفقه هم پاتې نشوه.

او داهم وئيلې شى چه ددې خاوند دخپل وكيل په ذريعه څه كهجورې او اوربشې اوليږلې ليكن هغې دخپل حق نه كمې اوګڼړلې او واپس ئې كړې نو ممكن دى چه دحضرت نبى كريم ﷺ دقول ((لانفقة لك)) كښې دزائد نفقه نفى وى. چه دكومې هغې مطالبه كوله،مطلقًا دنفقې نفى نه ده .(۴)

باقى د ((وان كن اولات حمل)) مفهوم مخالف سره دحضرت شوافع نه چه كوم استدلال كړې دې،دهغې جواب دحضرات حنفيه دطرفنه وركولې شى چه مفهوم مخالفت ځمونږ په نيز په

---

۱) عمدة القارى: ۳۱۱/۲۰،تكملة فتح الملهم : ۱/ ۲۰۶).

۲) مصنف بن ابى شيبه : ۵/ ۱۴۷ . ۱۴۸).

۳) مصنف عبدالرزاق،كتاب ا لنكاح،باب الاان ياتين بفاحشة مبينة : ۶/ ۳۲۳،رقم الحديث : ۱۱۰۲۲).

۴ ) فلما كان سبب النقلة من جهتها كانت بمنزلة الناشرة فسقطت نفقتها وسكناها جميعا (احكام القران للجصاص : ۵۶۸/۳،من سورة الطلاق ).

نصوص کښې حجت نه دی، او د ((اولات حمل)) دا قید، قید احترازی نه بلکه حامله ښځو لره په طورخاص ددې وجې ذکر اوفرمائیلو چه اکثر وختونوکښې دحمل موده اوږده وی، ددې وجې متنبه فرمائی که بالفرض موده دحمل اوږده شی نو بیا هم وضع حمل پورې نان نفقه دسابقه خاوند په ذمه به واجب وی.

دلیل دادې چه مذکوره آیت مطلقه رجعیه او مبتوته دواړولره شامل دې. اومطلقه رجعیه باندې دټولو اتفاق دې چه هغه غیر جامله وی نو بیا به هم هغې ته نفقه ملاویږی . چه ددې نه معلوم شو چه مطلقه رجعیه په حق کښې ((وان کن اولات حمل)) د مفهمو مخالف اعتبار به چا هم نه کولې. لهذا دمبتوته په حق کښې ددې اعتبار نه دې پکار.(۱)

[۵۰۱۵] حَدَّثَنَا اسْمَاعِيلُ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ وَسُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ انَّهُ سَمِعَهُمَا يَذْكُرَانِ انَّ يَحْيَى بْنَ سَعِيدِ بْنِ الْعَاصِ طَلَّقَ بِنْتَ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْحَكَمِ فَانْتَقَلَهَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ فَارْسَلَتْ عَائِشَةُ امُّ الْمُؤْمِنِينَ الَى مَرْوَانَ بْنِ الْحَكَمِ وَهُوَ امِيرُ الْمَدِينَةِ اتَّقِ اللَّهَ وَارْدُدْهَا الَى بَيْتِهَا قَالَ مَرْوَانُ فِي حَدِيثِ سُلَيْمَانَ انَّ عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ الْحَكَمِ غَلَبَنِي وَقَالَ الْقَاسِمُ بْنُ مُحَمَّدٍ اوَمَا بَلَغَكِ شَانُ فَاطِمَةَ بِنْتِ قَيْسٍ قَالَتْ لَا يَضُرُّكَ انْ لَا تَذْكُرَ حَدِيثَ فَاطِمَةَ فَقَالَ مَرْوَانُ بْنُ الْحَكَمِ انْ كَانَ بِكِ شَرٌّ فَحَسْبُكِ مَا بَيْنَ هَذَيْنِ مِنَ الشَّرِّ

[۵۰۱۶] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْقَاسِمِ عَنْ ابِيهِ عَنْ عَائِشَةَ انَّهَا قَالَتْ مَا لِفَاطِمَةَ الَا تَتَّقِي اللَّهَ يَعْنِي فِي قَوْلِهَا لَا سُكْنَى وَلَا نَفَقَةَ

[۵۰۱۷] حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَبَّاسٍ حَدَّثَنَا ابْنُ مَهْدِيٍّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْقَاسِمِ عَنْ ابِيهِ قَالَ عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ لِعَائِشَةَ الَمْ تَرَيْ الَى فُلَانَةَ بِنْتِ الْحَكَمِ طَلَّقَهَا زَوْجُهَا الْبَتَّةَ فَخَرَجَتْ فَقَالَتْ بِئْسَ مَا صَنَعَتْ قَالَ الَمْ تَسْمَعِي فِي قَوْلِ فَاطِمَةَ قَالَتْ امَا انَّهُ لَيْسَ لَهَا خَيْرٌ فِي ذِكْرِ هَذَا الْحَدِيثِ

وَزَادَ ابْنُ ابِي الزِّنَادِ عَنْ هِشَامٍ عَنْ ابِيهِ عَابَتْ عَائِشَةُ اشَدَّ الْعَيْبِ وَقَالَتْ انَّ فَاطِمَةَ كَانَتْ فِي مَكَانٍ وَحْشٍ فَخِيفَ عَلَى نَاحِيَتِهَا فَلِذَلِكَ ارْخَصَ لَهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ(۲)

**قوله:** حدثنا اسماعيل: یحیی بن سعید دا روایت د قاسم بن محمد او سلیمان بن یسار دواړونه نقل کوی چه دوی د دواړو حضراتونه دا تذکره واوریده چه یحیی بن سعید

---

۱) احکام القران : ۳/۵۶۵).

۲) الحدیث اخرجه البخاری ایضافی الطلاق باب قصة فاطمة بنت قیس رقم الحدیث : ۵۳۲۳، ۵۳۲۶، ۵۳۲۵، ۵۳۲۴،وباب المطلقة اذا حشی علیها فی مسکن زوجها ان یقتحم علیها او تبذو .. علی اهلها بفاحشة،رقم الحدیث : ۵۳۲۷، ۵۳۲۸،واخرجه ابوداود فی الطلاق باب فی نفقة المبتوتة : ۱/ ۳۱۱).

العاص د عبدالرحمان بن الحكم لور (چه دهغې نوم عمره وو )ته طلاق ورکړو ( دا دمشهور خليفه مروان بن الحکم وريره وه )عبدالرحمان خپله لور د خاوند کور نه منتقل کړه، په دې باندې ام المومنين حضرت عائشه رضي الله عنها دمدينې امير او د جينئ تره مروان بن الحکم ته اووئيل چه دالله ﷻ نه ويرېږئ او جينئ د خاوند کور ته واپس کړه ( چه هغه ځائې کښې عدت تير کړى )مراون دحضرت عائشه رضي الله عنها خبرې څه جواب ورکړو ؟ دا روايت د قاسم او سليمان ددوؤ حضراتو نه دې او د دواړو په روايتونوکښې د مروان جواب مختلف دې .دسليمان بن يسار په روايت کښې دى چه مروان حضرت عائشه رضي الله عنها ته اووئيل چه په دې سلسله کښې ماباندې (څما رور ) عبدالرحمان غالب شو (او هغه خپله لور د خاوند دکور نه منتقل کړه )اود قاسم په روايت کښې دى چه مروان حضرت عائشه رضي الله عنها ته اووئيل چه آياتاته دحضرت فاطمه بنت قيس واقعه معلوم نه ده ؟ .(چه هغه دخاوند کور نه منتقل شوې وه )حضرت عائشه رضي الله عنها اوفرمائيل چه ستا به هيڅ حرج نه وى که ته د فاطمه حديث ذکر نه کړې. ( مطلب دادې چه هغه واقعه ستا دپاره حجت نه ده ځکه چه د فاطمه يوګز ژبه وه او دهغې به هر وخت څخر ګنئ سره جنګ وو،هغه دهغې د مخصوص حالت په وجه بيل کړې شوې وه او ددې وجې هغه واقعه ستا دپاره حجت نه ده)مروان بن الحکم اووئيل چه ((ان کان بك شر فحسبك ما بين هذا من الشر))(١) په دې کښې ((بك)) د ((عند)) په معنى کښې ده يعنى که ستاسو په نيز هلته شروو نو ددې دواړو په مينځ کښې هم شردې،مطلب دادې که ته دا ګنړې هلته به هغې وخت نشو تيرولې. د خاوند په کور کښې هغه د شر اونزاع په وجه نشو اوسيدې نو ددې وجې هغه منتقل کړې شوې وه .نودلته هم د ښځې خاوند په مينځ کښې ډير شر او نزاع ده چه ددې په وجه دعبدالرحمان لور ديحيى بن سعيد کور نه منتقل کړې شوې ده . هلته دخروج او انتقال سبب که نزع او شروو نو هغه سبب د لته هم دې.

دباب په دويم روايت کښې حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائى چه فاطمه باندې څه اوشو؟آيا هغه دالله ﷻ نه ويرېږى نه چه وائى چه مطلقه ته به نه نفقه ملاويږى او نه سکنى.

دريم روايت کښې دى چه حضرت عروه رحمه الله حضرت عائشه رضي الله عنها ته اووئيل چه آيا تا دحکم فلانئ نمښئ نه وه ليدلې چه دهغې خاوند هغې ته طلاق بائن ورکړې وو او هغه دکورنه وتلې ده.حضرت عائشه رضي الله عنها اووئيل چه هغې بداوکړل .عروه اووئيل آيا تا دفاطمه قول نه دې آوريدلې ((لا سکنى ولا نفقة))نو حضرت عائشه رضي الله عنها اوفرمائيل چه ددې حديث په بيانولوکښې د فاطمه دپاره هيڅ ښيګړه نشته دې.

دعبدالرحمان بن ابى الزناد په روايت کښې اضافه ده چه حضرت عائشه رضى الله فاطمه ته په سختئ سره اووئيل او ډير معيوب ئې اوګڼړلو او وې وئيل چه فاطمه په يو ويران مکان کښې وه . چه دهغې اطراف کښې به سړى ويريدل.په دې وجه حضرت نبى کريم ﷺ دې ته رخصت ورکړو.

---

(١) اى ان کان عندک ان سبب خروج فاطمة ماوقع بينهما وبين اقارب زوجها من الشر،فهذالسبب موجود .( فتح البارى: ٩/٥٩٨).

دحضرت عائشه ﷞ مقصد دادې چه د فاطمه واقعه يو مخصوص واقعه ده او ديو خاص سبب په وجه دې ته دخاوند دکور نه دوتلو اجازت ورکړې شوې وو .دا عام قانون کنټرل او په استدلال کښې پيش کول درست نه دی.

**قوله:** وزاد ابن ابي الزناد عن هشام عن ابيه.: امام ابوداود دا موصولاً نقل کړې دې.«مکان وحش»(دواو فتحې سره) په معنی د ويران.ابن حزم اعتراض کړې دې چه عبدالرحمان بن ابی الزناد انتهائی ضعيف راوی دې. او دهغوی دا روايت باطل دې ليکن دهغوی دا خبره درست نه ده ،بيشکه ابوالزناد باندې بعضو ائمه جرح کړې ده ليکن هغه متروك الحديث نه دې بلکه يحيی بن معين ﷫ فرمائی چه«انه اثبت الناس فی هشام ابن عروة»(١)او دهغوی دا روايت دهشام نه دې «فلله در البخاری ما اکثر استحضاره واحسن تصرفه فی الحديث والفقه»(٢)

## ٣٠=بَابُ الْمُطَلَّقَةِ إِذَا خُشِيَ عَلَيْهَا فِي مَسْكَنِ زَوْجِهَا أَنْ يُقْتَحَمَ عَلَيْهَا أَوْ تَبْذُوَ عَلَى أَهْلِهَا بِفَاحِشَةٍ

[٥٠١٨] حَدَّثَنِي حِبَّانُ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ أَنَّ عَائِشَةَ أَنْكَرَتْ ذَلِكَ عَلَى فَاطِمَةَ [ر:٥٠١٥].

ما قبل باب کښې حضرت امام بخاری ﷫ وئيلی وو چه معتده بائنه دپاره سکنی به وی،اوس دلته دا وئيل غواړی که څه راپيښ شی چه دهغې په وجه هغه دخاوند د کورنه دعدت په دوران کښې منتقل کيدل غواړی نو هغه منتقل کيدې شی.

عذر دا هم کيدې شی چه مکان داسې ځائې کښې واقع دې چه هغه ديو اجنبی سړی يا دطلاق ورکونکی سړی دراتلو خطره وی چه د ښځې دپاره دضرر باعث کيدې شی،او عذر دا هم کيدې شی چه ښځه ګرزبې ده،خاوند اودده رشته داروسره هر وخت جنګونه کوی او دې پرې ژوند تنګ کړې دې .

دفاطمه بنت قيس متعلق دا دواړه خبرې نقل کړې شوی دی چه دهغې کور په ويران ځائې کښې وو او دهلته يو سړې راتلې شو،امام ابو داود ددې ذکر موصولاً او حضرت امام بخاری ﷫ تعليقاً کړې دې لکه څنګه چه مخکښې باب کښې تير شو او حضرت سعيد بن المسيب نه دامام نسائی دويم روايت کښې د دوئمې خبرې ذکر دې. په دې کښې دحضرت فاطمه بنت قيس متعلق دی.«انها کانت لسنة»يعنی هغه ګز ژبې وه(٣)

---

١ ) فتح الباری: ٩/٦٠٠.ددوی وفات په ١٧٤ هجرئی کښې اوشو،اوګورئ طبقات ابن سعد : ٧/٣٢٤.ددوی حالات اوګورئ تهذيب الکمال : ٩٨/١٧.تاريخ البخاری الکبير: ٥/ الترجمه : ٩٩٧.وميزان الاعتدال :٢ الترجمه: ٤٩٠٨.وشذرات الذهب : ١/ ٢٨٤).

٢ ) تهذيب الکمال : ٩٨/١٧).

٣ ) فتح الباری: ٥٩٨/٩).

په ترجمة الباب كښې دى چه((المطلقة اذا خشى عليها))((خشى))د مجهول صيغه ده.اوددې نائب فاعل((ان يقتحم عليها))دې يعنى كله چه په دې باندې د چا راتلو ويره وى،د((اقتحام))معنى ده چه((الهجوم على الشخص بغير اذن))بغير د اجازت نه چالره ورتلل،((تبذوا))د بذا نه دې . چه ددې معنى بدگوئى او زبان درازى رازى ، بعضو نسخو كښې((على اهله))دى((اى اهل المطلق))په دې صورت كښې د ((اهله))ضمير طلاق وركولو والا طرفته راجع به وى،(١)

((اذا خشى عليها او تبذو على اهلها))شرط دې او جزا محذوف ده تقدير به وى((تنتقل الى مسكن غير مسكن الطلاق))(٢)يعنى هغه بل چرته منتقل كيدېشى.

حضرت امام بخارى رحمه الله ددې باب تحت دحضرت عروه رضي الله عنه چه كوم روايت نقل كړې دې په هغې كښې دى چه((ان عائشه انكرت ذالك على فاطمة))يعنى حضرت عائشه رضي الله عنها په فاطمه باندې ددې قول متعلق نكير كړې دې د((ذالك))مشار اليه فاطمه بنت قيس قول((لا نفقة ولا سكنى))دې(٣)

دحضرت عروه رضي الله عنه داحديث د رومبى باب په آخر كښې لږ په تفصيل سره تير شوې دې دهغې په آخر كښې دى چه((ان فاطمه كانت فى مكان وحش فخيف على ناحيتها فلذالك ارخص لها النبى ﷺ))او د نسائى روايت هم تير شوې دې . په هغې كښې((انها كانت لسنة))الفاظ دى. حضرت امام بخارى رحمه الله ددې روايتونو دمجموعې نه ترجمة الباب ثابت كړې دې . او دنسائى والا حديث چونكه د حضرت امام بخارى رحمه الله په شرط باندې نه وو ددې وجې هغه ئې په باب كښې شامل نه كړو.نو حافظ ابن حجر رحمه الله ليكى چه :

((وقد اخذ البخارى الترجمة من مجموع ماورد فى قصة فاطمة فرتب الجواز على الاحد الامرين اما خشية الاقتحام عليها واما ان يقع منها على اهل مطلقها فحش من القول))(۴)

علامه كرمانى رحمه الله فرمائى چه :

((فان قلت لم يذكر البخارى ماشرط فى الترجمة من البذاء قلت علم من القياس على الاقتحام والجامع بينهما رعاية المصلحة وشدة الحاجة الى الاحتراز عنه))(۵)

علامه قسطلانى رحمه الله فرمائى چه :

((وقال شارح التراجم ذكر فى الترجمة الخوف عليها، والخوف منها والحديث يقتضى الاول وقاس الثانى عليه، ويؤيده قول عائشة لها فى بعض الطرق اخرجك هذا اللسان فكان الزيادة لم تكن على شرطه فضمنها

---

١) فتح البارى: ٦٠١/٩.ارشاد السارى: ١٢/١٠٠).
٢) ارشاد السارى: ١٢/١٠٠).
٣) ارشاد السارى: ١٢/١٠١).
٤) فتح البارى: ٥٩٩/٩).
٥) شرح الكرمانى: ١٩/٢٣٤).

**للترجمة قياسا**»(١)

مطلب دادې چه حضرت امام بخاری رحمه الله په ترجمة الباب کښې د معتده د جواز خروج دپاره دوه علتونه بیان کړی دی. یو «الخوف علیها» یعنی په دې باندې دچا د راتلو ویره وی نو بالکل وتلې شی، دویم «الخوف منها» یعنی د دې د ژبې نه ویره وی نو هم بالکل تلې شی، لیکن روایت کښې صرف د رومبی علت ذکر دی، د دویم روایت ذکر نشته دې. روایت باب کښې اګر چه د رومبی علت هم ذکر نشته دې خکه چه هغه په دې خائې کښې ډیر مختصر دې. البته دې نه مخکښې والا باب په آخر کښې د مذکوره علت ذکر په دې روایت کښې دې.

او دویم علت تاسو د قیاس نه هم ثابتولې شئ چه کله په دې باندې د چا د راتلو ویره د طلاق ورکوونکی خاوند د کور نه دوتلو علت هم جوړیدیشی. نو د دې د زبان درازئی نه ویره هم خروج د جواز سبب جوړیدل پکار دی. او بعضې روایتونو کښې د دې دویم علت تصریح هم ده لیکن هغه روایات د حضرت امام بخاری رحمه الله په شرط باندې نه دی، د دې وجې هغه ئې ذکر نه کړل.

**د معتده مطلقه د کور نه د وتلو حکم:** د معتد مطلقه د کور نه دوتلو باره کښې حضرات ائمه کرام کښې اختلاف دې.

① د حضرت امام مالک رحمه الله او حضرت امام شافعی رحمه الله او امام احمد رحمه الله په نیز مطلقه ښځه د عدت په دوران کښې دورځې د ضرورت دپاره د کور نه وتلې شی.

② د حضرات حنفیه په نیز معتده مطلقه د کور نه بهر نه شی وتلې .(٢)

د حضرات ائمه استدلال د حضرت جابر رضی الله عنه روایت دې چه کوم امام مسلم او امام ابو داود نقل کړې دې . هغه فرمائی چه «طلقت خالتی فاردات ان تجد نخلها فزجرها رجل ان تخرج فاتت النبی صلی الله علیه وسلم فقال اخرجی، فجدی نخلك فانك عسی ان تصدقی او تفعلی معروفا»(٣)

یعنی حضرت جابر رضی الله عنه فرمائی چه خما ترور ته طلاق ورکړی شو نو هغې د (عدت په دوران کښې غوښتل چه دخپل باغ میوه پریکړی، هغې له یو سړی د کور نه دوتلو نه منع کړه نو هغه حضرت نبی کریم صلی الله علیه وسلم له راغله نو حضرت نبی کریم صلی الله علیه وسلم او فرمائیل چه ته اوزه او دخپل باغ میوه پریکولې شې. ډیر ممکن دی چه ته هغه صدقه کړې یا په څه بل ښیګړه کښې ئې خرچ کړې.

ائمه ثلاثه د دې حدیث نه استدلال کوی او فرمائی چه مطلقه د عدت په دوران کښې د کور نه وتلې شی، لکه څنګه چه په روایت کښې دی.

حضرات حنفیه د قران پاك نه استدلال کوی، د الله جل جلاله ارشاد دې چه «**ولا یخرجن الا ان یاتین بفاحشة مبینة**» یعنی هغه مطلقه ښځې د کورونو نه نشی وتلې مګر چه هغوی د یو واضحې برائی ارتکاب اوکړی. په دې آیت کښې د عموم نه استدلال کوی او فرمائی چه په دې کښې

١) ارشادالساری: ١٢/١٠١).
٢) الابواب والتراجم: ٢/٨٣، وتکملة فتح الملهم، کتاب الطلاق، باب جواز خروج البائن: ١/).
٣) صحیح مسلم، کتاب الطلاق، باب جواز خروج البائن: ٢/، وسنن ابی داود، کتاب الطلاق: ٢/)

ټولې مطلقات صراحتا دعدت ختميدو پورې د كور نه دبهر وتلو نه منع كړې شوې دی . لهذا معتده مطلقه دكور نه بهر نشی وتلې.
باقي پاتې شو د حضرت جابر رضي الله عنه حديث نو ددې جواب دادې چه هغه خبر واحددې.او خبر واحدنه دكتاب الله تخصيص يا تقييد جائز نه دې. او ددې حديث تاويل هم كولې شی چه هغه داحكام عدت دنزول نه مخكښې واقعه وی.
په دې باندې دليل دې چه دحديث راوی حضرت جابر رضي الله عنه خپله فتوی ددې حديث خلاف ده. امام طحاوی رحمه الله د هغوی دا فتوی نقل كړې ده. دهغوی نه تپوس اوكړې شوچه معتده مطلقه او معتده د وفات دوران عدت كښې دكور نه نه شی وتلې. نوهغوی اوفرمائيل چه نشی وتلې.(۱)
**د معتدة الوفات دنفقه او سكنى حكم :** داټول تفصيل دمعتده مطلقه متعلق وو.تر كومې چه تعلق دې دمعتدة الوفات دنفقې او دسكنى نو ددې تفصيل په كتاب التفسير كښې تير شوې دې .معتدة الوفات د ورځې په وخت كښې د خپل كور نه بهر وتلې شی.او د احنافو په نيز معتدة الوفات(كونډې) دپاره نه نفقه شته اونه سكنى.حامله وی او كه غير حامله چونكه د زوج د انتقال نه پس ددې اموال ورثه منقول شو،لهذا د ورثه ته د مال نه به نفقه ادا كولې شی او نه سكنى .(۲)
دعلامه نووی رحمه الله مطابق دلته خو نفقه واجب نه ده كه هغه حامله وی اوكه غير حامله البته دسكنى دپاره نووی رحمه الله فرمائی چه((والاصح عندنا وجوب السكنى))(۳)
حنابله په نيز كه هغه غير حامله وی نو نه نفقه شته دې او نه سكنى اوكه حامله وی نو دوه روايتونه دی يو روايت كښې حامله دپاره نفقه او سكنى نشته او بل روايت كښې حامله دپاره نفقه او سكنى شته دې((كذا قال الموفق))(۴)
دمالكيه په نيز متوفى عنها زوجها دپاره نفقه نشته كه حامله وی اوكه غيرحامله البته سكنى په دې صورت كښې ده چه كله كور د زوج ملكيت وی يا دكرايه وی او خاوند دوفات نه قبل كرايه اد كړې وی گنې نه((كذا قال الباجی))(۵)

........................

۱) شرح معانی الاثار كتاب الطلاق : ۲/).
۲) بدائع الصنائع : ۲۱۱/۳،و اوجز ا لمسالک : ۱۸۵/۱۰).
۳) الصحيح لمسلم مع شرح الكامل للنوی: ۱/ ۴۸۳).
۴) اوجز المسالک : ۱۸۵/۱۰،والمقنع فی فقه الامام احمد كتاب النفقات:۳۱۱/۳،والعدة شرح العدة للمقدسی: ۴۳۳،باب نفقه المعتدات والانصاف فی معرفة الراجع من الخلاف للمرداوی : ۳۶۹/۹، ۳۶۸).
۵) اوجزالمسالک : ۱۸۵/۱۰،والفقه الاسلامی وادلته : ۶۵۹/۷،والشرح الصغير للدردير: ۲/ ۶۸۶،باب العدة والمنتقى شرح موطا للباجی : ۱۳۴/۴،وبلغة السالک لأقرب المسالک الصاری: ۱/ ۲۵۰).

## ۴۱=بَاب قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالَى وَلَا يَحِلُّ لَهُنَّ أَنْ يَكْتُمْنَ مَا خَلَقَ اللّٰهُ فِي أَرْحَامِهِنَّ [ر: البقره : ۲۲۸]. مِنَ الْحَيْضِ وَالْحَبَلِ

[۵۰۱۹] حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنِ الْحَكَمِ عَنْ اِبْرَاهِيمَ عَنِ الْاَسْوَدِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ لَمَّا اَرَادَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ يَنْفِرَ اِذَا صَفِيَّةُ عَلَى بَابِ خِبَائِهَا كَئِيبَةً فَقَالَ لَهَا عَقْرَى اَوْ حَلْقَى اِنَّكِ لَحَابِسَتُنَا اَكُنْتِ اَفَضْتِ يَوْمَ النَّحْرِ قَالَتْ نَعَمْ قَالَ فَانْفِرِي اِذًا [ر: ۳۲۲].

دعدت تعلق دحیض او حمل سره دې،ددې وجې ښځې ته دحیض او حمل د کتمان اجازت نشته دې،په دې سلسله کښې هغه امین ده . امام حاکم په ((مستدرک)) کښې روایت نقل کړې دې ((ان من الامانة ان ائتمنت علی فرجها)) (۱) لهذا که ښځه دحیض او حمل متعلق څه خبره پیش کړې نو هغه به تسلیمولې شي،خو که معتده څه داسې خبره اووائي چه دعقل نه بالکل بهر وي او چه دهغې ښکاره دروغژن کیدل معلوم دی نو دې لره به معتبر نه شی گنړلې .(۲)

**قوله:** حدثنا سليمان .....: حضرت عائشه ﷞ فرمائي چه حضرت نبی کریم ﷺ چه کله( حجة الوداع نه ) دواپس تلو اراده اوکړه نو حضرت صفیه ﷞ دخپلې خیمې دروازې سره خفه ولاړه وه( ځکه چه هغې ته په منی کښې دطواف زیارت کولو نه پس دمعذورئی ایام شروع شوی وو )حضرت نبی کریم ﷺ هغې ته اوفرمائیل چه آیا ته به مونږ لره منع کړې،یعنی آیا تا دنحر په ورځ یعنی د لسمې ذی الحجه طواف زیارت کړې دې،هغې اوفرمائیل چه آو . نو بیا حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه نو بیا خو څه هیڅ حرج نشته دې.(ځکه چه طواف وداع دحائضه دپاره ضروری نه دې ).

ددې حدیث نه معلومیږی چه حیض وغیره سلسله کښې دښځې دقول اعتبار کیږی ځکه چه دحضرت نبی کریم ﷺ دحضرت صفیه ﷞ د ایام بیمارئی دشروع کیدو په وجه د سفرد موخر کیدو اراده کړې وه،او دهغې نه هیڅ تحقیق اونه کړو چه واقعی دهغې ایام بیماری شروع شوی دی که نه،ددې تکذیب ئې اونکړو،معلوم شو چه په دې باره کښې به دښځې دقول اعتبار کولې شی.(۳)

داحدیث په کتاب الحج کښې ((باب التمتع)) لاندې تیر شوې دې .(۴)

**قوله:** فقال لها عقري او حلقى انك لحابستنا: ددې جملې ترکیب اولغوی تشریح کښې مختلف قولونه دی.

---

۱ ) فتح الباری: ۶۰۲/۹).
۲ ) فتح الباری: ۶۰۲/۹).
۳ )افتح الباری: ۶۰۲/۹).
٤ ) ارشادالساری: ۱۰۲/۱۲).

① دابوعبيده او امام سيبويه په نيز ((عقرا : حلقا)) تنوين سره دوى او دا دواړه ((عقر)) او ((حلق)) مصدر دى. ترکيب کښې دا مفعول مطلق واقع دى. لکه څنګه چه ((سقيا، رعيا)) او ((جدعا)) الفاظ مفعول مطلق واقع کيږى . تقديرى عبارت دې ((عقرك الله عقرا)) الله ﷻ دې تالره شنډ کړى .((وحلقك الله حلقا)) الله دې ستا مرئى خرابه کړى، الله دې ستا حلق کښې تکليف کړى.(١)

② دعلامه زمخشرى رحمه الله په نيز ((عقرى)) او ((حلقى)) الف سره دى، اوترکيب کښې خبر واقع کيږى .مبتدا محذوف دى ((اى هى عقرى)) يا ((انت عقرى))(٢)

③ د بعضو په نيز ((عقرى)) او ((حلقى)) الف سره د ((فعلى)) په وزن مصدردى، په معنى د ((العقر والحلق)) لکه څنګه چه ((شکوى)) د ((شکو)) په معنى کښې مصدر دې.(٣)

دا اګر چه لغوى اعتبار سره بددعائيه الفاظ دى ليکن عام استعمال کښې د دې لغوى معنى مراد اخستې شى بلکه په طور دتعجب او تحير دا الفاظ استعماليږى .(٤) دلته هم په طور دتعجب او تحير استعمال شوى دى.

## ٤٢=بَاب وَبُعُولَتُهُنَّ أَحَقُّ بِرَدِّهِنَّ [البقرة: ٢٢٨] فِي الْعِدَّةِ وَكَيْفَ يُرَاجِعُ الْمَرْأَةَ إِذَا طَلَّقَهَا وَاحِدَةً أَوْ ثِنْتَيْنِ

[٥٠٢٠] حَدَّثَنِي مُحَمَّدٌ اخبَرَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا يُونُسُ عَنِ الْحَسَنِ قَالَ زَوَّجَ مَعْقِلٌ اخْتَهُ فَطَلَّقَهَا تَطْلِيقَةً

[٥٠٢١] وحَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى حَدَّثَنَا عَبْدُ الاعْلَى حَدَّثَنَا سَعِيدٌ عَنْ قَتَادَةَ حَدَّثَنَا الْحَسَنُ انَّ مَعْقِلَ بْنَ يَسَارٍ كَانَتْ اخْتُهُ تَحْتَ رَجُلٍ فَطَلَّقَهَا ثُمَّ خَلَّى عَنْهَا حَتَّى انْقَضَتْ عِدَّتُهَا ثُمَّ خَطَبَهَا فَحَمِيَ مَعْقِلٌ مِنْ ذَلِكَ انَفًا فَقَالَ خَلَّى عَنْهَا وَهُوَ يَقْدِرُ عَلَيْهَا ثُمَّ يَخْطُبُهَا فَحَالَ بَيْنَهُ وَبَيْنَهَا فَانْزَلَ اللَّهُ وَاذَا طَلَّقْتُمُ النِّسَاءَ فَبَلَغْنَ اجَلَهُنَّ فَلَا تَعْضُلُوهُنَّ الَى اخِرِ الايَةِ فَدَعَاهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَرَا عَلَيْهِ فَتَرَكَ الْحَمِيَّةَ وَاسْتَقَادَ لِامْرِ اللَّهِ [ر: ٤٢٥٥].

[٥٠٢٢] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ نَافِعٍ انَّ ابْنَ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا طَلَّقَ امْرَاةً لَهُ وَهِيَ حَائِضٌ تَطْلِيقَةً وَاحِدَةً فَامَرَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ انْ يُرَاجِعَهَا ثُمَّ يُمْسِكَهَا حَتَّى تَطْهُرَ ثُمَّ تَحِيضَ عِنْدَهُ حَيْضَةً اخْرَى ثُمَّ يُمْهِلَهَا حَتَّى تَطْهُرَ مِنْ حَيْضِهَا فَانْ ارَادَ انْ يُطَلِّقَهَا فَلْيُطَلِّقْهَا حِينَ تَطْهُرُ مِنْ قَبْلِ انْ يُجَامِعَهَا فَتِلْكَ الْعِدَّةُ الَّتِي امَرَ اللَّهُ انْ تُطَلَّقَ

---

١) النهاية لابن الاثير: ٣/ ٢٧٣).
٢) مجمع بحار الانوار: ٣/ ٦٤٠).
٣) النهاية ٣/ ٢٧٣).
٤) مجمع بحار الانوار: ٣/ ٦٤٠).

هَا النِّسَاءُ وَكَانَ عَبْدُ اللَّهِ اِذَا سُئِلَ عَنْ ذٰلِكَ قَالَ لِاَحَدِهِمْ اِنْ كُنْتَ طَلَّقْتَهَا ثَلَاثًا فَقَدْ حَرُمَتْ عَلَيْكَ حَتّٰى تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَكَ

وَزَادَ فِيهِ غَيْرُهُ عَنِ اللَّيْثِ حَدَّثَنِي نَافِعٌ قَالَ ابْنُ عُمَرَ لَوْ طَلَّقْتَ مَرَّةً اَوْ مَرَّتَيْنِ فَاِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَمَرَنِي بِهٰذَا [ر: ٤٦٢٥].

**د طلاق نه درجوع مسئله:** حضرت امام بخاري رحمه الله په دې باب كښې درجوع عن طلاق مسئله بيان كړې ده،كه يوسړي خپلې ښځې ته طلاق رجعي وركړو نو مدت كښې دننه دننه كه هغه رجوع اوكړي نو د نوې نكاح ضرورت نشته دې اوكه عدت تير شو اوبيا هغه رجوع كول غواړي نوپه دې صورت كښې عقدجديد او نوې نكاح به ضرورت وي. حضرت امام بخاري رحمه الله باب كښې دننه دحضرت عبدالله رضي الله عنه چه كوم حديث ذكر كړې دې په هغې كښې درجوع ړومبې صورت موندې شي يعنى ((رجوع فى العدت))او حضرت معقل بن يسار چه كوم حديث ذكركړې دې په هغې كښې درجوع دويم صورت موندې شي يعنى((رجوع بعد العدت))د علماء په دې باندې اتفاق دې چه خاوند د طلاق رجعي وركولو نه پس عدت كښې دننه درجوع حق لري. اګر چه ښځه ناخوښه وي او ده سره اوسيدل نه غواړي.(١)

**د طلاق نه به څنګه رجوع كولې شي:** حضرت امام بخاري رحمه الله په ترجمة الباب كښې مخكښې فرمائي چه ((وكيف يراجع المراة اذا طلقها...))يعنى د طلاق نه به درجوع طريقه څه وي؟

د حضرت امام شافعي رحمه الله په نيزرجوع بالكلام به وي .خاوند به اووائي چه ما د طلاق نه رجوع اوكړه .د امام اوزاعي رحمه الله او حضرت امام مالك رحمه الله په نيز رجوع بالجماع به وي . حضرت امام مالك رحمه الله خو دنيت شرط هم لګوي چه خاوند به رجوع عن الطلاق نيت سره جماع اوصحبت اوكړي نو بيا به رجوع صحيح وي. دحنفيه په نيزرجوع قول اوعمل دواړه سره كيد يشي.((جماع مس بالشهوة نظر الى فرجها بالشهوة))سره رجوع به اوشي.اګرچه ده درجوع كول قصدنه وي كړې.(٢) امام احمد نه يوقول د حضرت امام شافعي رحمه الله موافق او دويم قول د اوزاعي رحمه الله موافق منقول دې .

دباب لاندې حضرت امام بخاري رحمه الله چه كوم روايات ذكر فرمائيلى دى دا مخكښې تير شوى دى . ړومبى روايت كښې دى چه((فحمى معقل من ذالك انفا))يعنى حضرت معقل( بفتح الميم وسكون العين وكسر القاف )دخوددارئ په وجه ددې نه منع كړې شو او هغوى دوباره خپلې خور ته ددې خاوند سره دنكاح كولو اجازت ورنكړو .((حمى الرباب سمع من حمى عن الشيء)) اودريدل، حمايت كول،((انفا)) دهمزه اونون فتحې سره)خوداري .(٣)((واستقاد لامرالله))يعنى ده دالله جل جلاله د حكم طاعت اوكړو.

---

١) فتح البارى: ٩/٦٠٤).

٢) فتح البارى: ٩/٦٠٤ . والابواب والترجم: ٢/٨٤).

٣) ارشادالسارى: ١٢/١٠٣).

## ٤٣=باب مُراجعة الحائض

[٥٠٢٣] حدثنا حجاج حدثنا يزيد بن ابراهيم حدثنا محمد بن سيرين حدثني يونس بن جبير سالت ابن عمر فقال طلق ابن عمر امراته وهي حائض فسال عمر النبي صلى الله عليه وسلم فامره ان يراجعها ثم يطلق من قبل عدتها قلت فتعتد بتلك التطليقة قال ارايت ان عجز واستحمق [ر:٤٦٢٥].

که يوسړی په زمانه دحيض کښې خپلې ښځې ته طلاق ورکړونو دحضرت نبی کريم ﷺ ارشاد دې چه ده ته رجوع کول پکاردی. په دې باندې دټولو عالمانو اتفاق دې. البته ددې رجوع په شرعی حيثيت کښې اختلاف دې. د حضرت امام مالك رحمه الله او داود ظاهری په نيز رجوع واجب ده. د حضرت امام احمد بن حنبل رحمه الله يوروايت ددې مطابق دې، او دحنفيه په نيز مختار هم دا دی. د حضرت امام شافعی رحمه الله په نيز رجوع مستحب ده، د حضرت امام احمد بن حنبل رحمه الله ظاهر مذهب هم ددې مطابق دې او حنفيه کښې قدوری دا مختار ګرزولې دې، د دلائلو تفصيل دکتاب الطلاق په شروع کښې تير شوې دې.

حضرت امام بخاری رحمه الله خو د ((باب مراجعة الحائض)) ترجمه خو قائمه کړې ده ليکن وجوب اوعدم وجوب سره هغوی هيڅ بحث نه دې کړې.

## ٤٤=باب تحد المتوفى عنها زوجها أربعة أشهر وعشرا

وقال الزهري لا ارى ان تقرب الصبية المتوفى عنها الطيب لان عليها العدة

[٥٠٢٤] حدثنا عبد الله بن يوسف اخبرنا مالك عن عبد الله بن ابي بكر بن محمد بن عمرو بن حزم عن حميد بن نافع عن زينب بنت ابي سلمة انها اخبرته هذه الاحاديث الثلاثة قالت زينب دخلت على ام حبيبة زوج النبي صلى الله عليه وسلم حين توفي ابوها ابو سفيان بن حرب فدعت ام حبيبة بطيب فيه صفرة خلوق او غيره فدهنت منه جارية ثم مست بعارضيها ثم قالت والله ما لي بالطيب من حاجة غير اني سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول لا يحل لامراة تؤمن بالله واليوم الاخر ان تحد على ميت فوق ثلاث ليال الا على زوج اربعة اشهر وعشرا

قالت زينب فدخلت على زينب بنت جحش حين توفي اخوها فدعت بطيب فمست منه ثم قالت اما والله ما لي بالطيب من حاجة غير اني سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول على المنبر لا يحل لامراة تؤمن بالله واليوم الاخر ان تحد على ميت فوق ثلاث ليال الا على زوج اربعة اشهر وعشرا

قالت زينب وسمعت ام سلمة تقول جاءت امراة الى رسول الله صلى الله عليه وسلم فقالت يا رسول الله ان ابنتي توفي عنها زوجها وقد اشتكت عينها افتكحلها فقال رسول الله

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا مَرَّتَيْنِ أَوْثَلَاثًا كُلَّ ذَلِكَ يَقُولُ لَا ثُمَّ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّمَا هِيَ أَرْبَعَةُ أَشْهُرٍ وَعَشْرٌ وَقَدْ كَانَتْ إِحْدَاكُنَّ فِي الْجَاهِلِيَّةِ تَرْمِي بِالْبَعْرَةِ عَلَى رَأْسِ الْحَوْلِ قَالَ حُمَيْدٌ فَقُلْتُ لِزَيْنَبَ وَمَا تَرْمِي بِالْبَعْرَةِ عَلَى رَأْسِ الْحَوْلِ فَقَالَتْ زَيْنَبُ كَانَتْ الْمَرْأَةُ إِذَا تُوُفِّيَ عَنْهَا زَوْجُهَا دَخَلَتْ حِفْشًا وَلَبِسَتْ شَرَّ ثِيَابِهَا وَلَمْ تَمَسَّ طِيبًا حَتَّى تَمُرَّ بِهَا سَنَةٌ ثُمَّ تُؤْتَى بِدَابَّةٍ حِمَارٍ أَوْ شَاةٍ أَوْ طَائِرٍ فَتَفْتَضُّ بِهِ فَقَلَّمَا تَفْتَضُّ بِشَيْءٍ إِلَّا مَاتَ ثُمَّ تَخْرُجُ فَتُعْطَى بَعَرَةً فَتَرْمِي ثُمَّ تُرَاجِعُ بَعْدُ مَا شَاءَتْ مِنْ طِيبٍ أَوْغَيْرِهِ سُئِلَ مَالِكٌ مَا تَفْتَضُّ بِهِ قَالَ تَمْسَحُ بِهِ جِلْدَهَا [ر: ١٢٢١، ٥٠٢٥].

«تحد»د «احداد» نه دې د «احداد» معنى ترك زينت او سوګ كولو رازى. «احداد» لغت كښې منع كولو ته وائى. او اصطلاح كښې معتده دوران عدت خپل خان لره د زينت لكه خوشبو وغيره سامان نه منع كول. كونډه به د عدت په دوران كښې ځلور مياشتې لس ورځو پورې د زينت نه احتراز كول او دا سوګ كور په دې واجب دى، د حضرت حسن بصرى رحمه الله او شعبى رحمه الله په نيزواجب نه دى ليكن ددوى قول شاذ دې.(١)

**قوله: وقال الزهري : لا اري ان تقرب الصبية الطيب لان عليها العدة:** ابن شهاب زهرى رحمه الله فرمائى چه څه مناسب نه ګنړم چه كمسنه جنيئ (چه دهغې خاوند مړ شى) خوشبوته نزدې شي او خوشبو اولګوى ددې وجې چه په هغې باندې عدت شته دې.

كه يو كمسنې او نابالغې جينئ خاوند مړشى نو دائمه ثلاثه په نيزپه دې باندې سوګ واجب دې د حضرات حنفيه په نيزپه دې باندې سوګ نشته دې.(٢)

حضرت امام بخارى رحمه الله د امام زهرى رحمه الله تعليق ذكر كوى او د آئمه ثلاثه تائيد كوى «لان عليها العدة» نه چه كوم علت ذكر فرمائى هغه دا امام زهرى رحمه الله دقول حصه نه ده بلكه حضرت امام بخارى رحمه الله ذكر فرمائيلې ده ځكه چه ابن وهب دا موصولاً نقل كړې ده. په دې كښې دا الفاظ نشته دې .(٣) حاصل دادې چه چونكه چه په كمسن اونابالغه جينئ باندې عدت تيرول واجب نه دى ددې وجې سوګ تيرول هم په دې باندې واجب نه دې پكار.

حضرات حنفيه د روايت باب نه استدلال كوى، چه په هغې كښې «لا يحل لامراة تومن بالله واليوم الاخر ......» په دې كښې د «امراة» لفظ وئيلې شوې دې چه د دې اطلاق په بالغه باندې كيږى په نابالغه جينئ باندې د «امراة» نه كيږى. دې وجې نه نابالغه جينئ د سوګ تيرولو پابند نه ده.

**دسوګ موده** : دې نه پس حضرت امام بخارى رحمه الله په باب كښې د حضرت حميد بن نافع په

---

١) فتح البارى: ٩/٦٠٧).
٢) فتح البارى: ٩/٦٠٦، الابواب والتراجم : ٢/ ٨٤).
٣) فتح البارى: ٩/٦٠٦).

واسطه دحضرت زینب بنت ابی سلمه نه دري روایتونه نقل کړی دی .یو روایت کښې دحضرت ام حبیبه،دویم روایت کښې دحضرت زینب بنت جحش او په دریم روایت کښې د ام المومنین حضرت ام سلمه ﷺ واقعه نقل کړې شوې ده. زینب بنت ابی سلمه،دحضرت نبی کریم ﷺ ربیبه او دام المومنین حضرت ام سلمه( داول خاوند نه ) لور وه.(١)

هغه فرمائي چه څه د حضرت نبی کریم ﷺ زوجه حضرت ام حبیبه لره ورغلم په هغه وخت کښې چه کله دهغې دوالد ابوسفیان انتقال اوشو.حضرت ام حبیبه ﷺ خوشبو راوغوښتله چه په هغې کښې دخلوق یا بل څيز زردی وه .اوبو جینۍ ته ئې اولګوله.بیا هغې لاسونه په خپل رخسا ر باندې راښکل اووې وئیل چه په خدائې ماته دخوشبو ضرورت نشته دې لیکن ما دحضرت نبی کریم ﷺ نه دا آوریدلی دی چه کومه ښځه په الله ﷻ باندې اوپه ورځ دآخرت باندې ایمان لري دهغې دپاره جائز نه دی چه هغه دچا په مرګ باندې د دریو ورځو نه زیات سوګ اوکړی سوا د خاوند نه چه دهغه سوګ څلور میاشتې اولس ورځو پورې دې.

حضرت زینب ﷺ فرمائي چه څه حضرت زینب بنت جحش لره ورغلم او کله چه دهغې رور وفات شوې وو،هغې خوشبو راوغوښتله او دائې استعمال کړه او وې فرمائیل چه په خدائې ماته دخوشبو ضرورت نشته دې مګر ما د حضرت نبی کریم ﷺ نه آوریدلی دی چه په منبر باندې ناست وو چه دیو ښځې دپاره چه هغه په الله ﷻ او په ورځ دقیامت باندې ایمان لري حلال نه دی چه په مړی باندې دري ورځونه زیات سوګ اوکړی سوا دخاوند نه چه دهغه سوګ څلور میاشتې او لس ورځې پورې دې.

حضرت زینب بنت جحش فرمائي چه ما (دخپلې مور ) ام سلمه ﷺ نه واوریدل چه وئیل چه یو ښځه دحضرت نبی کریم ﷺ په خدمت کښې حاضره شوه او عرض ئې اوکړو چه یارسول الله ﷺ خما د لور خاوند مړ شوې دې او دهغې په سترګه کښې تکلیف دې نو آیا مونږ هغې له رانجه لګولې شو،حضرت رسول الله ﷺ دوه یا درې ځل اووئیل چه نه .

بیا حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه اوس خو د عدت موده څلور میاشتې او لس ورځې ده حالانکه د جاهلیت په زمانه کښې تاسو کښې یو ښځې به پوره یو کال پس به څپیاکې غورزولې کولې او ( دې نه پس به دعدت نه بهر راوتله).

**د جاهلیت دزمانې عدت :** راوی دحدیث حضرت حمید وائی چه ما دزینب بنت ابی سلمه نه تپوس اوکړو چه د کال په پوره کیدو څپیاکو غورزلو کولو به څه مطلب وو ؟نو حضرت زینب اوفرمائیل چه کله به د یو ښځې دخاوند انتقال اوشو نو هغه به یو تنګې کوټې ته داخله شوه، خرابې جامې به واغوستلې او هیڅ خوشبو به ئې نه لګوله تر دې پورې چه یو کال به تیر شو .دې نه پس به دې لره یو څوپایا ( خر،چیلۍ یا څه بل مارغه ) راوستلې شو او په دې باندې به ئې خپل بدن او څرمن مخل،ډیر کم به داسې کیدل چه په هغې باندې بدن اومخی او

---

١ ) زینب بنت ابی سلمة : وهی بنت ام سلمة زوج النبی ﷺ وهی ربیبة النبی ﷺ وزعم ابن التین انها لاروایة لها عن رسول الله ﷺ کذا قال وقد ا خرج لهامسلم حدیثها کان اسمی برة فسمانی رسول الله ﷺ زینب الحدیث واخرجها البخاری حدیثا تقدم فی اوائل السرة النبویة (وانظر فتح الباری: ٩/٦٠٦).

مره نشی،بیا به هغه بهر راوتله،دې ته به ئې یو څپیاکه ورکړه‌او هغې به داغوزاره کړه،بیا به واپس شوه او خوشبو وغیره به ئې چه څه لګول به ئې اولګول ( داشان به دهغې عدت مکمل شو ).

حضرت امام مالک رحمه الله نه تپوس اوشو چه د((تفتض به))نه څه مراد دې‌نو هغوی‌به اوفرمائیل چه‌ددې معنی داده چه‌هغه ښځې به دې څناور سره خپله څرمن مخله.

**قوله: انها اخبرته هذه الاحادیث الثلاثة:** حضرت زینب بنت ابی سلمه حضرت حمید بن نافع‌ته درې احادیث اوونیل،په دې دریو واړو کښې‌ابتدائی دوه احادیث‌په کتاب الجنائز کښې تیر شوی دی.(١)

**قوله: لا یحل لامراة تومن باالله والیوم الاخر:** حنفیه او مالکیه ددې نه استدلال کوی چه سوګ په مومنه باندې واجب دې،ذمیه باندې نشته دې .څکه چه داحکم صرف مومنه دپاره شامل دې.د ذمیه نه خاموش دې . اواشیاء‌کښې اصل چونکه اباحت دې لهذاپه ذمیه باندې سوګ واجب نه دې،د شوافع په نیزذمیه باندې هم سوګ واجب دې.(٢)

**قوله: علی میت:** دمالکیه په نیز مفقود الخبر ښځه باندې‌سوګ تیرول شته دې، د جمهورو په نیزنشته دې،جمهور ددې لفظ نه استدلال کوی څکه چه‌دمفقود الخبر وفات متحقق او یقینی نه دې. (٣)

**قوله: الاعلی زوج:** د خاوند نه علاوه‌په بل رشته دار باندې د دریو ورځو نه زیات سوګ کول درست نه دی،امام ابوداود په مراسیل‌کښې عمرو بن‌شعیب‌روایت نقل کوی چه‌په پلار باندې‌اووه ورځې‌پورې‌سوګ کولې شی‌لیکن‌هغه روایت‌مرسل دې .(٤)

**قوله: اربعة اشهر وعشرا:** دکونډې عدت څلور میاشتې او لس ورځې دې،په دې کښې حکمت دادې چه‌دبچی د کامل تخلیق اونفخ روح مرحله‌شپږوشلو ورځو تیریدو نه پس مکمل کیږی . څلور میاشتوکښې‌هره میاشت که د دیرشو ورځووی‌نو دڅلورو میاشتو نه شپږ شلې ورځې جوړیږی.لیکن چونکه میاشت د یوکم دیرش ورځو هم وی‌ددې وجې‌لس ورځې‌احتیاطا ورکړې شوی دی اوڅلور میاشتې لس ورځې‌مقرر شوی دی .(٥)

**یواشکال او دهغې جوابونه:** په دې باندې د حضرت امام احمد بن حنبل رحمه الله یو اشکال کیدیشی چه کوم دحضرت جعفر بن ابی طالب ښځې حضرت‌اسماء بنت عمیس نه مروی

---

١ ) اوګورئ کتاب الجنائز باب احداد المراة علی غیر زوجها رقم الحدیث : ١٨٠، ١٢٨٢،ص / ٢٥١). البته آخری روایت دلته په ړومبی ځل ذکر شو.
٢ ) فتح الباری: ٦٠٧/٩).
٣ ) فتح الباری: ٦٠٧/٩).
٤ ) فتح الباری: ٦٠٧/٩).
٥ ) ارشاد الساری: ١٠٦/١٢).

دي. هغوی فرمائی چه د حضرت جعفر دشهادت نه پس حضرت نبی کریم ﷺ په دریمه ورځ مالره راغلو او وې فرمائيل چه نن نه پس ته سوګ مه کوه.(١)
ددې نه دسوګ کول موده درې ورځې معلومیږی، ددې مختلف جوابونه ورکړې شوی دی.
① داحديث شاذ دې ځکه چه دا دباب صحيح احاديث مخالف دې، ددې وجې معتبر نه دې.
② امام طحاوی رحمه الله فرمائی چه داحکم مخکښې وو، دې نه پس داحاديث باب منسوخ کړې شو.
③ په دې کښې چه کوم سوګ نه حضرت نبی کریم ﷺ منع فرمائیلې ده هغه عام سوګ نه وو بلکه حضرت اسماء دمعروف سوګ نه زیات مبالغې سره سوګ اوکړو چه دکومې نه منع کړې شوې وه.
④ بعضو وئيلی چه حضرت اسماء حامله وه. درې ورځې پس وضع حمل شوې وو او وضع حمل سره عدت پوره کیږی، ددې وجې هغه منع کړې شوې وه .(٢)

**قوله:** جاءت امراة الى رسول الله ﷺ: ددې ښځې نوم چه کومه دحضرت نبی کریم ﷺ په خدمت کښې حاضره شوې وه، دابن وهب په روايت کښې عاتکه بنت نعيم راغلې دې . البته ددې دلور نوم معلوم نشو. ددې دلور دخاوند نوم هم په دې روايت کښې مغيره مخزومی مذکور دې .(٣)

**قوله:** اشتكت عينها: ((عينها)) ((اشتكت)) دپاره فاعل هم کیدیشی، دده سترګه شکایت کوی، دشکایت نسبت په دې صورت کښې ((عين)) طرف ته مجاز به وی، او ((عينها)) مفعول به هم جوړیدیشی. ((اشتكت)) کښې ضمير فاعل به وی یعنی هغه جینۍ د خپلې سترګې شکایت کوی. منذری رحمه الله دا دويم صورت راجح ګڼړلې دې .او علامه حريری رحمه الله هم دا صورت صحیح اوګڼړلو. نو هغه په ((درة الغواص)) کښې فرمائی چه ((لا يقال اشتكت عين فلان والصواب ان يقال اشتكى فلان عينه لانه هو المشتكى لاهى)) (۴)

((افنكحلها)): ((نكحل)) دنون په ضمه سره باب افعال نه دې په معنی درنجو لګولو یعنی آیا مونږ هغې ته سرمه لګولې شو.

**قوله:** كانت المراة اذا توفى عنها زوجها دخلت حفشا: ((حفش)) دحاء په کسره دفاء په سکون سره .وړوکې کور، تنګې کوټې ته وائی.(۵)
بعره پچی ته وائی.

١) فتح الباري: ٦٠٨/٩).
٢) فتح الباري: ٦٠٩/٩).
٣) فتح الباري: ٦٠٩/٩_٦١٠).
٤) ارشاد الساري: ١٠٨/١٢).
٥) فتح الباري: ١١١/٩).

**قوله: فقلما تفتض بشئ الا مات:** دلته د«تفتض به»چه كوم لفظ استعمال شوي دي،دهغې مختلفې معنې بيان كړې شوى دى:

① دحضرت امام مالك حوالې سره دحديث په آخر كښې تير شوى دى چه ددې معنى دى «تمسح به جلدها»يعنى هغه ښځه چه ښناز سره خپل بدن مخى.

② ابن قتيبه هم ددې قريب قريب«افتضاض»تشريح كړې ده.هغه فرمائى چه ما په حجاز كښې دخلقو نه د«افتضاض»دمعنې تپوس اوكړو نو وې وئيل چه«المعتدة كانت لا تمس ماء ولا تقلم ظفرا ولا تزيل شعرا ثم تخرج بعد الحول باقبح منظر ثم تفتض اى تكسر ما هى من العدة بطائر تمسح به قبلها وتنبذه فلا يكاد يعيش بعد ما تفتض به»(١)

يعنى معتده به نه اوبو ته لاس لګولو او نه به ئې نوكونه اخستل،نه به ئې ويښته صفا كول، يو كال نه پس هغه به د تنګې كوټې بهر شوه او ډير خراب صورت به ئې ووا ود عدت پابندئى به ئې ديو مارغه په ذرعه ختمې كړې،داشان به ئې دې مارغه سره خپله شرمګاه اوچوله او بيا به ئې دا غورزوله،هغه مارغه به د«افتضاض»د دې عمل نه پس عام طورژوندي نه پاتې كيدو.

علامه خطابى رحمه الله فرمائى چه«افتضاض»د«فضضت الشئ»نه ماخوذ دې،چه ددې معنى ماتول رازى چونكه مارغه سره مذكوره عمل نه پس معتده دعدت دپابندئې ماتولې او ختمولې.

ددې وجې دې ته«افتضاض»وائى .(٢)په«تفتض به»كښې باء سببيه دې.

③ بعضو وئيلى دى چه د«افتضاض»معنى په خوږو اوبو سره غسل كول دى.

د«تفتض»معنى ده هغه اوبو سره غسل كوى او د«فضة»چاندئى په شان چمكداره شى.نو امام اخفش فرمائى چه«افتضاض»د«فضة»نه ماخوذ دې.او ددې معنى د پاكيدو او نظافت حاصلولو ده. او امام خليل فرمائى چه«فضفض»خوږو اوبو ته وائى او«افتضاض»غسل كول ته وائى.(٣)

چه كوم ښناور سره معتده خپل بدن مخى هغه اكثر مرى،ممكن دى چه دا د شيطان او جناتو اثر وى او دا هم كيديشى چه دګندګئ په وجه ددې جسم كښې داسې جراثيم پيدا كيږى چه هغې سره ښناور مړ كيږى.يا ټول كال داشان اوسيدو سره ددې په جسم كښې داسې حرارت اوګرمى پيدا كيږى چه ښناور دې سره مرى.والله اعلم .

**قوله: فتعطى بعرة:** «تعطى»د«اعطاء»مضارع مجهول صيغه ده. ضمير په دې كښې دننه نائب فاعل دې،او «بعرة»مفعول به دې .معتده ته ښپياكې وركوى،او هغه دا غورزوى .

---

١) فتح البارى: ٦١٢/٩).
٢) ارشاد السارى: ١٠٩/١٢).
٣) ارشاد السارى: ١٠٩/١٢).

د دې مقصد یا خو دې طرفته اشاره کول وو چه دې د ښځې په شان دعدت کیفیت اوغوزولو. او یا دې طرفته اشاره وه چه دمشقت او تکلیف دا حالت ددې دپاره د خاوند په حق کښې دتعظیم په وجه د بوج باعث نه وو بلکه د ښځې په شان سپك وو،او یو قول دا هم دې چه معتده تفاولا به ښځې غوزولې چه دا حالت دوباره کله دې طرفته رانشی.(۱)

**قوله: فدخلت علی زینب ابنة جحش حین توفی اخوها:** دا خبره په دویم روایت کښې ده چه زینب بنت ابی سلمه فرمائی چه څه ام المومنین حضرت زینب بنت جحش لره راغلم. کله چه ددې درور انتقال اوشو. د حضرت زینب بنت جحش درې رونړه وو. یو عبدالله بن جحش، دویم عبیدالله بن جحش اودریم عبد بن جحش، چه دده کنیت ابواحمد الاعمی وو.

عبدالله بن جحش خودلته مراد نه شی کیدې ځکه چه هغه په جنګ احد کښې شهید شوې وو. او زینب بنت ابی سلمه په هغه وخت کښې بچې وو. اوبه دې حالت کښې حضرت زینب بنت جحش لره دتعزیت دپاره څنګه راتلې شی.

عبیدالله بن جحش هم مراد نشی اخستې. ځکه چه دې مرتد شوې وو او نصرانی مذهب ئې اختیار کړې وو،او په ښځمه هجرئی یا شپږمه هجرئی کښې په حبشه کښې دنصرانیت په مذهب انتقال شوې وو.

عبد بن جحش هم مراد نشی اخستې ځکه چه دده انتقال دخپلې خور حضرت زینب نه بعد شوې دې (اګر چه بعض حضرات هم دې مراد اخلی او وئیلې ئې دی چه دده انتقال مخکښې شوې دې).

بعض علماء ددې اشکال یو جواب دا ورکوی چه درور نه عبیدالله بن جحش مراد دې. هغه اګر چه مرتد شوې وو بیا هم رور وو. ددې وجې حضرت زینب ته ددې غم وو. خاص کر د نصرانیت په حالت دده وفات نو نور زیات غم وو ځکه حضرت زینب سوګ اوکړو. اودا هم کیدیشی چه رورنه ددې علاتی یا رضاعی رور مراد وی.(۲)

## ۴۵=بَابُ الْكُحْلِ لِلْحَادَّةِ

[۵۰۲۵] حَدَّثَنَا اٰدَمُ بْنُ اَبِي اِيَاسٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا حُمَيْدُ بْنُ نَافِعٍ عَنْ زَيْنَبَ بِنْتِ اُمِّ سَلَمَةَ عَنْ اُمِّهَا اَنَّ امْرَاَةً تُوُفِّيَ زَوْجُهَا فَخَشُوا عَلٰى عَيْنَيْهَا فَاَتَوْا رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاسْتَاْذَنُوهُ فِي الْكُحْلِ فَقَالَ لَا تَكَحَّلْ قَدْ كَانَتْ اِحْدَاكُنَّ تَمْكُثُ فِي شَرِّ اَحْلَاسِهَا اَوْشَرِّ بَيْتِهَا فَاِذَا كَانَ حَوْلٌ فَمَرَّ كَلْبٌ رَمَتْ بِبَعَرَةٍ فَلَا حَتّٰى تَمْضِيَ اَرْبَعَةُ اَشْهُرٍ وَعَشْرٌ وَسَمِعْتُ زَيْنَبَ بِنْتَ اُمِّ سَلَمَةَ تُحَدِّثُ عَنْ اُمِّ حَبِيبَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَحِلُّ لِامْرَاَةٍ مُسْلِمَةٍ تُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ اَنْ تُحِدَّ فَوْقَ ثَلَاثَةِ اَيَّامٍ اِلَّا عَلٰى زَوْجِهَا اَرْبَعَةَ اَشْهُرٍ وَعَشْرًا [ر: ۵۰۲۹، وانظر: ۵۰۲۳].

---

۱) فتح الباری: ۶۱۲/۹).

۲) فتح الباری: ۶۰۶/۹).

[٥٠٣٦] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا بِشْرٌ حَدَّثَنَا سَلَمَةُ بْنُ عَلْقَمَةَ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيرِينَ قَالَتْ أُمُّ عَطِيَّةَ نُهِينَا أَنْ نُحِدَّ أَكْثَرَ مِنْ ثَلَاثٍ إِلَّا بِزَوْجٍ [ر:٣٠٧].

«حاده» سوګ کولووالا ښځې ته وائي. دباب په ړومبی روایت کښې دی چه د یو ښځې خاوند وفات شو . خلقو ته دده سترګو فکر شو نو هغوی دحضرت نبی کریم ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او د سرمې (رنجو) لګولو اجازت ئې اوغوښتلو. اوس حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه رانجه مه لګوه. ( دجاهلیت په زمانه کښې دعدت تیرولو دا طریقه وه چه ) په تاسوکښې به یو ښځه په خرابه کوټه کښې اوسیده، کله چه به کال تیر شو، بیا به یو سپې تیریدلو چه هغه به دې په څپیاکو ویشتلو. ( نوبیا به عدت ختمیدو اوس په اسلام کښې سهولت ورکړې شو) لهذا کله پورې چه به څلور میاشتې لس ورځې تیرې نه شی نو ترهغه وخت پورې به رانجه نه لګوی. دا حدیث ددې نه مخکښې هم تیر شوې دې. «احلاس» د «حلس» (دحاء په کسره اولام په سکون سره) جمع ده، جامو او نری څادرته وائی. «اوشربیتها» راوی ته شك دې چه «شر احلاسها» ئې وئیلي وو یا «شر بیتها» ئې وئیلي وو. دجامو او مکان دواړو صفت ده بیان کړو «فلاحتی تمضی ای فلا تکتحل حتی تمضی اربعة اشهر وعشرة ایام» (١)

**چه کومې ښځې سوګ کوی د هغوی دپاره د رانجو لګولو حکم:** حضرت امام بخاری رحمه الله په دې باب کښې دسوګ کولو والو ښځو درانجو لګولو مسئله بیان کړې ده. په دې باندې خود ټولو ائمه اتفاق دې چه سوګ والا ښځې ته بغیر دضرورت او حاجت نه رانجه لګول جائز نه دی. البته دضرورت په صورت کښې هم رانجه لګولې شی که نه .په دې کښې اختلاف دې.

① د ظاهریه په نیز دضرورت په وخت کښې هم سوګ والا ښځه رانجه نه شی لګولی، د حضرت امام بخاری رحمه الله رجحان هم دې طرفته معلومیږی .ځکه چه هغوی په باب کښې کوم حدیث بیان کړې دې هغه د ظاهریه مستدل دې چه حضرت نبی کریم ﷺ په سترګه کښې دتکلیف نه باوجود دې سوګ والا معتده ښځې ته درانجو لګولو اجازت ورنکړو.

② دحضرت امام شافعی رحمه الله په نیز دضرورت په وخت کښې سوګ والا ښځه دشپې په وخت کښې رانجه لګولې شی. د ورځې نه .د حضرت امام مالك رحمه الله په یو روایت کښې هم ددې مطابق دی. دهغوی استدلال دحضرت ام سلمه رضی الله عنها ددې روایت نه دې چه کوم حضرت امام مالك رحمه الله او حضرت امام احمد بن حنبل رحمه الله او امام ابوداود ذکر کړې دې. دحضرت ام سلمه رضی الله عنها نه یو معتده درانجو لګولو متعلق تپوس اوکړو نو هغوی جواب ورکړو «لا تکتحلی به الا من امر بد منه یشتد علیك فتکتحلین باللیل وتمسحینه بالنهار» اوبیا ئې اوفرمائیل چه ما دخپل خاوند ابو سلمه په وفات باندې داشان کړی وو. نوحضرت نبی کریم ﷺ فرمائیلی وو چه «فلا تجعلیه الا باللیل وتنزعیه بالنهار» اوموطا کښې روایت دې چه «اجعلیه باللیل وامسحیه بالنهار».

---

١) عمدة القاری: ١٦/٢١٥).

③دحضرات حنفيه په نيز دضرورت په وخت كښې سوګ كولو والا ښځې دورځې په وخت كښې رانجه لګولې شى او دشپې په وخت كښې هم . دحضرت امام مالك رحمه الله يو روايت هم ددې مطابق دې«لان الضرورات تبيح المحظورات».
دحديث باب جواب دا وركولې شى چه په دې كښې حضرت نبى كريم ﷺ د رانجو لګولو نه منع كړې وه چه حضرت نبى كريم ﷺ په نيز ضرورت متحقق نه وو يا په دې وجه چه هغه بيمارى لره وه او يا په دې وجه چه ددې علاج رانجو لګولو نه علاوه نورو څيزونو سره ممكن وو(١)

## ٣٦=بَابُ الْقُسْطِ لِلْحَادَّةِ عِنْدَ الطُّهْرِ

[٥٠٢٧] حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ أَيُّوبَ عَنْ حَفْصَةَ عَنْ أُمِّ عَطِيَّةَ قَالَتْ كُنَّا نُنْهَى أَنْ نُحِدَّ عَلَى مَيِّتٍ فَوْقَ ثَلَاثٍ إِلَّا عَلَى زَوْجٍ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ وَعَشْرًا وَلَا نَكْتَحِلَ وَلَا نَتَطَيَّبَ وَلَا نَلْبَسَ ثَوْبًا مَصْبُوغًا إِلَّا ثَوْبَ عَصْبٍ وَقَدْ رُخِّصَ لَنَا عِنْدَ الطُّهْرِ إِذَا اغْتَسَلَتْ إِحْدَانَا مِنْ مَحِيضِهَا فِي نُبْذَةٍ مِنْ كُسْتِ أَظْفَارٍ وَكُنَّا نُنْهَى عَنِ اتِّبَاعِ الْجَنَائِزِ[ر:٣٠٧].

په دې باب كښې حضرت امام بخارى رحمه الله د سوګ والا ښځې د حيض نه پاكيدو په وخت كښې قسط خوشبو داستعمالولو بيان كړې دې. حضرت ام عطيه فرمائى چه مونږ خلقو ته په يو مړى باندې د دريو ورځو نه زيات سوګ كولو نه منع كړې شوى يو. مګر خاوند باندې دځلورو مياشتو او لسو ورځو پورې دسوګ كولو بيان شته دې. مونږ به نه رانجه لګول،نه به مو خوشبو لګوله.او نه به مو رنګ شوې جامه اغوستله البته د ثوب عصب اجازت وو.( د ثوب عصب تفصيل مخكښې رازى)كله چه مونږ نه به يو ښځه دحيض نه پاكه شوه او غسل به ئې اوكړونو د لږ شان قسط اظفار د استعمال مونږ ته اجازت وو او مونږ خلقو لره جنازې پسې د تلو نه منع كړې شوى وو.

«ننهى» دمضارع مجهول صيغه ده.د اول نون په ضمه او هاء په فتح سره . «رخص» بضم الراء وكسر الخاء )دماضى مجهول صيغه ده.«نبذة» په معنى د«شئ قليل كست اظفار» د اظفار د خائې نوم دې.صغانى فرمائى چه صحيح لفظ ظفار دې.چه عدن په ساحل باندې ديو خائې نوم دې.(٢)

**قوله:** قال ابوعبدالله القسط والكست مثل الكافور والقافور نبذة قطعة: حضرت امام بخارى رحمه الله فرمائى چه د قسط لفظ دقاف سره هم دې او كاف سره هم لكه څنګه چه كافور كاف او قاف دواړو سره استعماليږى«نبذة» په معنى د ټكړې،لره حصه .

---

١ ) دمذاهب مذكوره تفصيل دپاره اوګورئ الابواب والترجم : ٢/ ٨٤،وتكمله فتح الملهم: ١/ ٢٢٨،او اوګورئ فتح البارى: ٩/ ٦١٠).
٢ ) ارشاد السارى: ١١/ ١١٢).

## ۴۸=باب تلبس الحادة ثياب العصب

[۵۰۲۸] حَدَّثَنَا الْفَضْلُ بْنُ دُكَيْنٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ السَّلَامِ بْنُ حَرْبٍ عَنْ هِشَامٍ عَنْ حَفْصَةَ عَنْ أُمِّ عَطِيَّةَ قَالَتْ قَالَ لِي النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَحِلُّ لِامْرَأَةٍ تُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ أَنْ تُحِدَّ فَوْقَ ثَلَاثٍ إِلَّا عَلَى زَوْجٍ فَإِنَّهَا لَا تَكْتَحِلُ وَلَا تَلْبَسُ ثَوْبًا مَصْبُوغًا إِلَّا ثَوْبَ عَصْبٍ
وَقَالَ الْأَنْصَارِيُّ حَدَّثَنَا هِشَامٌ حَدَّثَتْنَا حَفْصَةُ حَدَّثَتْنِي أُمُّ عَطِيَّةَ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَا تَمَسَّ طِيبًا إِلَّا أَدْنَى طُهْرِهَا إِذَا طَهُرَتْ نُبْذَةً مِنْ قُسْطٍ وَأَظْفَارٍ قَالَ أَبُو عَبْدِ اللَّهِ الْقُسْطُ وَالْكُسْتُ مِثْلُ الْكَافُورِ وَالْقَافُورِ [ر: ۳۰۷].

په دې باب کښې حضرت امام بخاری رحمه الله دسوګ والا دښځې دپاره د ثیاب عصب استعمال اجازت بیان کړې دې. فرمائي چه سوګ والا ښځه دثیاب عصب استعمال کولې شی.
علامه سهیلی رحمه الله فرمائی چه عصب دیو وښو نوم دې. چه په یمن کښې کیږی .چه دې سره جامه رنګ کولې شی. دې جامو لره چه په وښو کښې رنګ کولې شی،ثیاب عصب وئیلې شی . لیکن حافظ ابن حجر رحمه الله دې تشریح لره غریب ګڼړی.(۱)
مشهور دی چه د وړئی ریشلو نه پس دا تړلې شی او دې ته رنګ ورکولې شی . دې نه پس بیا دا پرانیزی او جوړوی ئې.په کوم کوم خائې کښې چه په دې وړئی کښې بندش وی هغه خائې ته رنګ نه رسی. ددې نه چه کومه کپړه جوړیږی په هغې کښې زینت نه وی،ددې وجې دسوګ او داحداد په زمانه کښې داغوستلو اجازت دې .نو علامه ابن الاثیر لیکی چه :
((العصب برود یمنیة غزلها ای یجمع ویشد ثم یصبغ وینسج فیاتی موشیا لبقاء ماعصب منه ابیض لم یاخذه صبغ یقال برد عصب وبرود عصب بالتنوین والاضافة وقیل هی برود مخططة والعصب الفتل فیکون النهی للمعتدة عما صبغ بعد النسج))(۲)
خلاصه دا دد چه سوګ والا ښځه د رنګینو جامو او ثوب مصبوغ د اغوستلو نه مع کړې شوې دد. لیکن دا ممانعت ثیاب عصب لره شامل نه دی بلکه ممانعت دهغه جامو د استعمال نه دې چه د جوړیدو نه پس رنګ شوی وی. حالانکه ثیاب عصب جوړیدونه مخکښې په رنګ کښې اچولې شی.

په دویم روایت کښې دی چه((قال الانصاری))نه محمد بن عبدالله بن المثنی مراد دې چه د حضرت امام بخاری رحمه الله شیخ دې.

**قوله:** ولا تمس طیبا الا ادنی طهرها: یعنی سوګ والا ښځه خوشبو نه شی استعمالولې، البته دطهر زمانې ته نزدې لږ شان قسط اظفار استعمالولې شی.

((الا ادنی طهره ای عند قرب طهرها))(۳)

---

۱) فتح الباری: ۹/۶۱۴).
۲) النهایة فی غریب الحدیث والاثر لابن الاثیر: ۳/ ۲۴۵).
۳) فتح الباری: ۹/۶۱۵).

**دسوګ والا ښځې دپاره دثياب عصب داستعمال حكم :** دسوګ والا ښځې دپاره د ثياب عصب په استعمال كښې په حضرات فقهاء كرام كښې اختلاف دې.په دې خوا تفاق دې چه معتده به رنګينه او ښكلې جامه او زينت والا جامه نه استعمالوى.دثياب عصب متعلق د حضرت امام شافعى رحمه الله صحيح قول دادې چه معتدة الوفات دپاره ددې استعمال حرام دې اوهم دا مسلك دحضرات حنفيه دې.
حضرت امام مالك رحمه الله فرمائى كه جامه غټه وى،نرمه او نرئى نه وى نوبيا جائز دى ليكن كه هغه نرمه او نرئى وى نوبيا ددې استعمال جائز نه دې.
حضرت امام احمد بن حنبل رحمه الله نه جواز او عدم جواز دواړه قسمه روايتونه منقول كړى دى ليكن دهغوى صحيح روايت د عدم جواز دې.(١)
داسې معلوميږى چه عراق او كوفه وغيره كښې دثوب عصب ترقى يافته شكل تيار شوې وو،اودزينت په موقعوبه دا استعماليده . ددې وجې څمونږ فقهاء كرام دخپلې زمانې او علاقې مناسب سرددعرف مطابق معتده دپاره ددې استعمال ممنوع ګنړلې دې .حديث كښې دى چه د ثوب عصب اجازت وركړې شوې دې چه په هغه وخت كښې ديو ساده كپړه شميرلې شوه.اودزينت دپاردبه نشوه استعمالولې.

## ٣٨ = بَابٌ وَالَّذِينَ يُتَوَفَّوْنَ مِنكُمْ وَيَذَرُونَ أَزْوَاجًا إِلَى قَوْلِهِ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ [البقره : ٢٣٤]

[٥٠٢٩] حَدَّثَنِي إِسْحَاقُ بْنُ مَنْصُورٍ أَخْبَرَنَا رَوْحُ بْنُ عُبَادَةَ حَدَّثَنَا شِبْلٌ عَنِ ابْنِ أَبِي نَجِيحٍ عَنْ مُجَاهِدٍ وَالَّذِينَ يُتَوَفَّوْنَ مِنْكُمْ وَيَذَرُونَ أَزْوَاجًا قَالَ كَانَتْ هَذِهِ الْعِدَّةُ تَعْتَدُّ عِنْدَ أَهْلِ زَوْجِهَا وَاجِبًا فَأَنْزَلَ اللَّهُ وَالَّذِينَ يُتَوَفَّوْنَ مِنْكُمْ وَيَذَرُونَ أَزْوَاجًا وَصِيَّةً لِأَزْوَاجِهِمْ مَتَاعًا إِلَى الْحَوْلِ غَيْرَ إِخْرَاجٍ فَإِنْ خَرَجْنَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيمَا فَعَلْنَ فِي أَنْفُسِهِنَّ مِنْ مَعْرُوفٍ قَالَ جَعَلَ اللَّهُ لَهَا تَمَامَ السَّنَةِ سَبْعَةَ أَشْهُرٍ وَعِشْرِينَ لَيْلَةً وَصِيَّةً إِنْ شَاءَتْ سَكَنَتْ فِي وَصِيَّتِهَا وَإِنْ شَاءَتْ خَرَجَتْ وَهُوَ قَوْلُ اللَّهِ تَعَالَى غَيْرَ إِخْرَاجٍ فَإِنْ خَرَجْنَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فَالْعِدَّةُ كَمَا هِيَ وَاجِبٌ عَلَيْهَا زَعَمَ ذَلِكَ عَنْ مُجَاهِدٍ
وَقَالَ عَطَاءٌ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ نَسَخَتْ هَذِهِ الْآيَةُ عِدَّتَهَا عِنْدَ أَهْلِهَا فَتَعْتَدُّ حَيْثُ شَاءَتْ وَقَوْلُ اللَّهِ تَعَالَى غَيْرَ إِخْرَاجٍ وَقَالَ عَطَاءٌ إِنْ شَاءَتْ اعْتَدَّتْ عِنْدَ أَهْلِهَا وَسَكَنَتْ فِي وَصِيَّتِهَا وَإِنْ شَاءَتْ خَرَجَتْ لِقَوْلِ اللَّهِ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيمَا فَعَلْنَ فِي أَنْفُسِهِنَّ قَالَ عَطَاءٌ ثُمَّ جَاءَ الْمِيرَاثُ فَنَسَخَ السُّكْنَى فَتَعْتَدُّ حَيْثُ شَاءَتْ وَلَا سُكْنَى لَهَا [ر: ٤٢٥٧].
[٥٠٣٠] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ عَنْ سُفْيَانَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي بَكْرِ بْنِ عَمْرِو بْنِ حَزْمٍ

---

١) دمذاهبو تفصيل دپاره اوګورئ الابواب والتراجم: ٢/ ٨٤.اوګورئ فتح البارى: ٩/ ٦١٤).

حَدَّثَتْنِي حُمَيْدُ بْنُ نَافِعٍ عَنْ زَيْنَبَ بِنْتِ اُمِّ سَلَمَةَ عَنْ اُمِّ حَبِيبَةَ بِنْتِ اَبِي سُفْيَانَ لَمَّا جَاءَهَا نَعِيُّ اَبِيهَا دَعَتْ بِطِيبٍ فَمَسَحَتْ ذِرَاعَيْهَا وَقَالَتْ مَا لِي بِالطِّيبِ مِنْ حَاجَةٍ لَوْلَا اَنِّي سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ لَا يَحِلُّ لِامْرَاَةٍ تُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ تُحِدُّ عَلَى مَيِّتٍ فَوْقَ ثَلَاثٍ اِلَّا عَلَى زَوْجٍ اَرْبَعَةَ اَشْهُرٍ وَعَشْرًا [ر:١٢٢١].

په دې باب کښې حضرت امام بخاری رحمه الله دمتوفی عنها زوجها دعدت مسئله بیان کړې ده. متوفی عنها زوجها دعدت باره کښې دوه آیتونه نازل شو. یو آیت دې چه ﴿وَالَّذِيْنَ يُتَوَفَّوْنَ مِنْكُمْ وَيَذَرُوْنَ اَزْوَاجًا يَّتَرَبَّصْنَ بِاَنْفُسِهِنَّ اَرْبَعَةَ اَشْهُرٍ وَّعَشْرًا﴾ او دویم آیت دې چه ﴿وَالَّذِيْنَ يُتَوَفَّوْنَ مِنْكُمْ وَيَذَرُوْنَ اَزْوَاجًا ۖ وَّصِيَّةً لِّاَزْوَاجِهِمْ مَّتَاعًا اِلَى الْحَوْلِ غَيْرَ اِخْرَاجٍ﴾

په دې دواړو خبرو کښې دننه اختلاف دې اول خودا چه عدت د خاوند په کور کښې تیر کړې شی که نه؛ دویم دا چه موده څلور میاشتې لس ورځې ده یا یو کال ؟.

وړمبی آیت نه معلومیږی چه عدت به دخاوندپه کو رکښې تیروی«يتربص بانفسهن» کښې «تربص» نه «تربص فی لبيت الزوج» مراد دی.او مدت دعدت په دې کښې څلور میاشتې او لس ورځې دی او دویم آیت نه معلومیږی چه «تربص» یو کال پورې به وی او که وتل غواړی نو وتلې شی.

جمهور علماء چه په دوی کښې ائمه اربعه هم شامل دی دهغوی رائې داده چه «يتربصن بانفسهن اربعة اشهر» والا آیت ناسخ دې او «وَصِيَّةً لِّاَزْوَاجِهِمْ مَّتَاعًا اِلَى الْحَوْلِ غَيْرَ اِخْرَاجٍ» والا آیت منسوخ شوې دې.اګر چه په تلاوت کښې ناسخ مقدم او منسوخ موخر دې.

مجاهد رحمه الله او عطاء دحضرت ابن عباس رضي الله عنه خلاف نقل کړی دی چه آیت الحول نه دې منسوخ . دوصیت حکم په آیت الحول کښې څلور میاشتې او لس ورځې عدت مقرر کیدونه پس راغلې دې. بیا زوجات ته اختیار ورکړې شوې دې که هغوی غواړی نو ددې وصیت نه استفاده کولې شی یا ددوی دمرضئ خلاف استفاده کول نه وی نو نه دې وی،اوس دا اوګنړئی چه دلته درې څیزونه ذکر شو:

① متوفی عنها زوجها دپاره څلور میاشتې او لس ورځې دعدت واجب دی.

② متوفی عنها زوجها سکونت به په بیت زوج کښې لازم وی.

③ ازواج باندې وصیت واجب کیدل.

حضرت امام بخاری رحمه الله یو قول د حضرت مجاهد رحمه الله نقل کړواو یو د عطاء رحمه الله اودا دواړه دحضرت ابن عباس رضي الله عنه شاګردان دی. نو ګویا هغوی دابن عباس رضي الله عنه رائې پیش کړې ده.

حضرت مجاهد رحمه الله وئیلی دی چه د «وَالَّذِيْنَ يُتَوَفَّوْنَ مِنْكُمْ وَيَذَرُوْنَ اَزْوَاجًا ۖ وَّصِيَّةً لِّاَزْوَاجِهِمْ» څلورو میاشتو او لسوورځو سره هیڅ تعلق نشته دې.آیت الحول کښې ازواج لره د دې پابند جوړ کړې شوی دی چه هغوی دې دزوجات دپاره نور د اووه میاشتواو شلو ورځو وصیت اوکړی. متاع او سکنی دپاره چه پوره کال شی. او زوجات ته دا اختیار ورکړې شوې دې چه هغوی

دي ددې وصيت مطابق بيت زوج کښې اوسيدل غواړي نو اوسيږي دې او که اوسيدل نه غواړي نو نه دې اوسيږي.

عطاء وائي چه((وصية لازواجهم))والا آيت الحول کښې امور ثلاثه کښې امر ثاني منسوخ شويدې . اود ښځې دپاره په بيت زوج کښې عدت تيرول ضروري پاتې نشو.عطاء وائي چه نه تر څلورومياشتو لس ورخو پورې په عدت کښې دخاوند په کور کښې اوسيدل ضروري دي او نه په مدت وصيت کښې بيت زوج کښې سکونت اختياورل ضروري دى. دعطاء په نيز څلور مياشتې لس ورځې دعدت حکم په خپل ځائې باقي دې،آيت الحول نازليدو سره سکونت في بيت زوج وجوب ختم شو.نه مدت دعدت څلور مياشتې لس ورځې کښې وجوب باقي پاتې شو اونه مدت دوصيت اووه مياشتې شل ورځو کښې.

مجاهد رحمه الله مدت وصيت کښې خود ښځې د اختيار ذکرکړې دې ليکن دعدت په موده کښې يعنى څلور مياشتې لس ورځو باره کښې مجاهد رحمه الله سکوت اختيار کړې دې.ليکن ظاهر دادى چه د مجاهد رحمه الله په نيزهم چه څنګه مدت وصيت کښې ښځې دپاره بيت زوج کښې سکونت واجب نه دې داشان دعدت مدت څلور مياشتې او لس ورځو کښې هم سکونت في بيت الزوج واجب نه دې،اګر چه هغوى ددې ذکر نه دې کړې ددې وجې چه کله مدت وصيت کښې چه کوم لوئې مدت دې سکونت في الزوج ضروري نه دې نو مدت عدت څلور مياشتې او لس ورځو کښې چه کوم وړوکې شان مدت دې دا سکونت ضروري نه دې لهذا که دا اومنلې شي چه مجاهد رحمه الله سکونت في بيت الزوج لره مدت وصيت کښې ضروري نه ګڼړي نه مدت عدت کښې نو بيا عطاء او مجاهد کښې اختلاف باقي پاتې نشو.

دې نه پس عطاء فرمائي چه د آيت ميراث نازليدو نه پس ښځې دپاره بيت زوج کښې د اوسيدلو ا ختيار ختم شو.نه هغه څلور مياشتې او لس ورځې مدت عدت کښې هلته پاتې کيدېشي.اونه مدت وصيت اووه مياشتې اوشل ورځې هلته پاتې کيدېشي. که اوسيږي نو کرايه به ورکوي. ميراث دې ته ملاؤ شو. رقم دې سره شته او اوسيدل غواړي نو کرايه دې ورکړي بلکه آيت ميراث نه پس خو دا وصيت هم جائز نه ګڼړي. ځکه چه آيت تربص نزول کښې مقدم وو اوآيت الحول موخر وو مګر آيت الميراث ددې هم موخر دې لهذا هغه آيت الحول دپاره ناسخ دې.

په دې دريمه مسئله کښې هم آيت الحول آيت الميراث سره منسوخ شو، عطاء رحمه الله او مجاهد رحمه الله کښې اختلاف نشته دې دواړه ددې قائل دى.

ددې تفصيل نه معلوم شو چه د مجاهد رحمه الله اود عطاء رحمه الله بيان کښې دابن عباس رضي الله عنه مذهب بيان کولو کښې اختلاف نه دې ليکن دابن عباس رضي الله عنه په روايتونو کښې اختلاف واقع شوې دې،بعضې روايتونو نه عدم نسخ معلوميږي لکه څنګه چه حضرت امام بخاري رحمه الله نقل کړى دى.اوددې تفصيل ددوى په مخکښې پيش کړې شو.اوبعضو روايتونو کښې نسخ معلوميږي. علامه سيوطي رحمه الله درمنثور کښې فرمائيلى دى چه((اخرج ابوداود والنسائي والبيهقي من طريق عکرمة عن ابن عباس رضي الله عنه في قوله((والذين يتوفون منكم ويذرون ازواجا وصية لازواجهم متاعا الى

الحَوْلِ غَيْرَ اِخْرَاجٍ﴾ قال نسخ الله ذالك باية الميراث بما فرض الله لهن من الربع والثمن ونسخ اجل الحول بان جعل اجلها اربعة اشهر وعشرا»(١)

داشان روایاتو نه دحضرت ابن عباس رضی الله عنهما رائې دجمهورو موافق معلومیږی چه هغه آیت الحول د «اربعة اشهر وعشرا» والا آیت سره منسوخ منی.

## ٣٩ = بَاب مَهْرِ الْبَغِيِّ وَالنِّكَاحِ الْفَاسِدِ

وَقَالَ الْحَسَنُ اِذَا تَزَوَّجَ مُحَرَّمَةً وَهُوَ لَا يَشْعُرُ فُرِّقَ بَيْنَهُمَا وَلَهَا مَا اَخَذَتْ وَلَيْسَ لَهَا غَيْرُهُ ثُمَّ قَالَ بَعْدُ لَهَا صَدَاقُهَا

[٥٠٣١] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ اَبِي بَكْرِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ اَبِي مَسْعُودٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ ثَمَنِ الْكَلْبِ وَحُلْوَانِ الْكَاهِنِ وَمَهْرِ الْبَغِيِّ [ر: ٢١٢٢].

[٥٠٣٢] حَدَّثَنَا آدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا عَوْنُ بْنُ اَبِي جُحَيْفَةَ عَنْ اَبِيهِ قَالَ لَعَنَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْوَاشِمَةَ وَالْمُسْتَوْشِمَةَ وَآكِلَ الرِّبَا وَمُوكِلَهُ وَنَهَى عَنْ ثَمَنِ الْكَلْبِ وَكَسْبِ الْبَغِيِّ وَلَعَنَ الْمُصَوِّرِينَ [ر: ١٩٨٠]

[٥٠٣٣] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ الْجَعْدِ اَخْبَرَنَا شُعْبَةُ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ جُحَادَةَ عَنْ اَبِي حَازِمٍ عَنْ اَبِي هُرَيْرَةَ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ كَسْبِ الْاِمَاءِ [ر: ٢١٦٣].

«بغی» دباء په فتحه او غین په کسره اودیاء په تشدید سره )بروزن فعیل زانیه ته وائی. دا د صفت صیغه ده. او د «بغاء» نه مشتق دې.چه ددې معنی دزنا ده. مذکر او مونث دواړو دپاره دا لفظ استعمالیږی.

علامه کرمانی رحمه الله فرمائی چه ددې وزن دفعول دې،اصل کښې «بغوی» وو .واو یاء سره بدل کړې شواو یاء مناسبت سره دغین ته کسره ورکړې شوه اود یاء په یاء کښې ادغام اوکړې شو.(٢)
په دې باب کښې حضرت امام بخاری رحمه الله درحقیقت په نکاح فاسد کښې دمهر مسئله بیان فرمائیل غواړی. لیکن دنکاح فاسد په سلسله کښې چونکه دوی سره څه روایت موجود نه دې. ددې وجې هغوی دمهر بغی روایت نه داستدلال کړې دې او ترجمه کښې «مهر بغی» اضافه کړې ده . چونکه نکاح فاسد کښې چه کومه وطی وی هغه هم یو قسم بغاء او زنا ده.
دنکاح فاسد ډیر صورتونه دی لکه دګواهانو نه بغیر نکاح،په زمانه دعدت کښې نکاح، نکاح موقت،دا دنکاح فاسد صورتونه دی.(٣)

«وقال الحسن اذا تزوج محرمة فرق بينهما ولها ما اخذت وليس لها غيره ثم قال بعد لها صداقها»

«محرمة» دمیم په ضمه او د راء په تشدید سره «ای امراة محرمة علیه» د مستملی په روایت کښې «محرمة» دمیم په فتحه او حاء په سکون سره او دراء په فتحه سره ) دې،«ای ذا محرمة» یعنی ذی رحم محرمه ښځه(٤)

١) اوګورئ الدرالمنثور: ١/ ٣٠٩،وتعليقات لا مع الدارى: ٩/٢٦).
٢) فتح البارى: ٩/٦١٧، وعمدة القارى : ٢١/٩).
٣) عمدة القارى: ٢١/٩).
٤) عمدة القارى: ٢١/٩).

حضرت حسن بصري رحمه الله فرمائی که یوسړی یو ذی رحم محرم ښځې سره نکاح اوکړه او دې ته معلوم نه وو نومعلومیدونه پس د دواړو په مینځ کښې تفریق اوجدائی به راوستلې شي. اوس پاتې شو دا چه دې ښځې ته به څه ملاویږی یا نه نود حضرت حسن بصري رحمه الله دوه قولونه دی، یو قول دادې چه دې ته به صداق مسمی ملاویږی یعنی په نکاح کښې چه مهر مقرر شوې وو هغه به دې ته ملاویږی.«ولها ما اخذت»نه هم دا مراد دی او دویم قول دادې چه دې ته به مهر مثل ملاویږی ، «لها صداقها» یعنی«صداق مثلها»هم دا دواړه قولونه د جمهورو طرف ته هم منسوب دې. بعضو وئیلي دی چه«صداق مسمی» ملاویږی. اوبعضې فرمائی چه مهر مثل به ملاویږی. ابن بطال دا داکثرو علماء کرامو قول ګڼړلې دې .(۱)

**محرم سره دنکاح کولو حکم** :دا صورت خو په هغه وخت کښې دې چه یوسړې په بې خبرئی کښې یو محرمې سره نکاح اوکړه،لیکن که چا دقصده ددې خراب حرکت ارتکاب اوکړو نو د داسې سړی په حکم کښې اختلاف فقهاء دې :

① دحضرت امام مالك رحمه الله،حضرت امام شافعي رحمه الله او حضرت حسن بصري او په حنفيه کښې امام ابویوسف رحمه الله اود امام محمد رحمه الله په نیز داسې سړی باندې حدزنا جاری به وی.(۲)

② د حضرت امام احمد بن حنبل رحمه الله اود ا مام اسحاق په نیزذی رحم محرمې ښځې سره واده کولو والا سړې به قتل کولې شي او دده مال به ضبط کولې شي .(۳)

③ دابن حزم ظاهری په نیزد پلار ښځې سره نکاح کولو والابه قتل کولې شي . لیکن باقي محارمو سره نکاح کولو والا باندې به حدزنا جاری کیږی.(۴)

④ دحضرت امام ابوحنیفه رحمه الله او حضرت سفیان ثوری رحمه الله په نیز په ده باندې به حدزنا نه جاری کیږی بلکه تعزیرا به ده ته سزا ورکولې شي.(۵)

حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائی چه«الحدود تندرئ بالشبهات» حدود دپاره قاعده دا ده چه هغه دشبهاتو په وجې سره ساقط کیږی اودلته«شبهة العقد»دې ددې وجې حدشرعی نه جاری کیږی البته سخته سزا به ورکولې شي.(۶)

حضرت امام احمد بن حنبل رحمه الله د سنن ابی داود د روایت نه استدلال کوی، حضرت براء بن عازب رضي الله عنه فرمائی چه خما خپل تره( ابوبرده بن نیار)سره ملاقات اوشو اودوی سره بیرغ وو. ما تپوس اوکړو چه چرته ځئی ؟هغوی اووئیل چه:

«بعثنی رسول الله ﷺ الی رجل نکح امراة ابیه فامرنی ان اضرب عنقه واخذ ماله»(۷)

حافظ ابن حجر رحمه الله په«الاصابة»کښې فرمائی چه نکاح کولو والا ددې سړی نوم منظور بن زبان او دښځې نوم ملیکه بنت خارجه وو. لیکن په دې باندې اشکال کیږی چه منظور بن زبان خو دحضرت نبی کریم ﷺ نه پس ژوندې وو کله چه حدیث کښې دی چه د مذکوره

---

۱ ) فتح الباری: ۶۱۸/۹).
۲ ) المحلی لابن حزم کتاب الحدود حکم القتل فیمن اعرس بامراة ابیه : ۲۰۰/۱۲).
۳ ) بذل المجهود کتاب الحدود،باب فی الرجل یزنی بحریمه : ۴۲۳/۱۷).
٤ ) المحلی لابن حزم: ۱۲/ ۲۰٤).
۵ ) بذل المجهود: ۱۷: ٤۲۳).
۶ ) بذالمجهود : ۴۲۲/۱۲).
۷ ) سنن ابو داود کتاب الحدود،باب فی الرجل یزنی بحریمه: ٤/ ٤۵۵،رقم الحدیث : ٤٤۵۷).

سرې د ځښ پريکولو حکم ورکړې شوې وو.(١)

بهر حال ددې روايت نه استدلال کوې او حضرت امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائى چه ذى رحم محرم سره نکاح کولو والا به قتل کولې شى.

علامه ابن حزم رحمه الله دقتل په دې حکم کښې مورد حديث سره خاص کړې دې چه «امرأة الاب» سره نکاح کولو صورت کښې خوبه قتل کولې شى ليکن دويم محارم کښې به نشى قتل کولې بلکه حدزنا به پرې جارى کيږى.(٢)

حضرت مولانا عبدالحى لکهنوى رحمه الله په يو رساله «القول الجازم فى سقوط الحد بنكاح المحارم» نوم سره تحرير فرمائيلې ده. او د حضرات حنفيه مسلك په دې کښې مدلل بيان کړې دې.

دا حديث په کتاب البيوع کښې «باب ثمن الكلب» لاندې تير شوې دې، (٣) سپې خرڅول او ددې قيمت اخستل د حضرت حسن بصرى رحمه الله او حضرت امام شافعى رحمه الله او حضرت امام احمد بن حنبل رحمه الله په نيز حرام دى. حديث باب ددې حضراتو مستدل دې.

د حضرت ابراهيم نخعى، سحنون مالکى او حضرات حنفيه په نيز ثمن الكلب جائز دې. حديث کښې چه څنګه وارد شوى دى دا ددې حضراتو په نيزمنسوخ شوى دى.(۴)

دويم روايت کښې دى چه حضرت نبى کريم ﷺ په واشمة «بدن کښې ستنې سره رانجه لګول والا» او مستوشمة «او بل لره ستنې سره رانجه لګولو والا» باندې او سود کوونکى او سود خورونکى باندې لعنت دې او د سپې قيمت او دزنا کمائى نه منع فرمائيلې ده او تصوير جوړونکى والو باندې لعنت دې.

دا حديث هم کتاب البيوع کښې «باب ثمن الكلب» لاندې تير شوې دې.(۵)

دريم روايت کښې دى چه حضرت نبى کريم ﷺ د «کسب اماء» د وينځو د کمائى نه منع فرمائيلې ده يعنى وينځو زنا اوکړه او چه کوم رقم ئې حاصل کړو د هغې نه ئې منع فرمائيلې ده.
دا حديث هم په کتاب البيوع کښې تير شوې دې.(۶)

## ٥٠ = بَابُ الْمَهْرِ لِلْمَدْخُولِ عَلَيْهَا وَكَيْفَ الدُّخُولُ أَوْ طَلَّقَهَا قَبْلَ الدُّخُولِ وَالْمَسِيسِ

[٥٠٢٣] حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ زُرَارَةَ أَخْبَرَنَا إِسْمَاعِيلُ عَنْ أَيُّوبَ عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ قَالَ قُلْتُ لِابْنِ عُمَرَ رَجُلٌ قَذَفَ امْرَأَتَهُ فَقَالَ فَرَّقَ نَبِيُّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ أَخَوَيْ بَنِي الْعَجْلَانِ وَقَالَ اللَّهُ يَعْلَمُ أَنَّ أَحَدَكُمَا كَاذِبٌ فَهَلْ مِنْكُمَا تَائِبٌ فَأَبَيَا فَقَالَ اللَّهُ يَعْلَمُ أَنَّ أَحَدَكُمَا كَاذِبٌ فَهَلْ مِنْكُمَا تَائِبٌ فَأَبَيَا فَفَرَّقَ بَيْنَهُمَا، قَالَ أَيُّوبُ فَقَالَ لِي عَمْرُو بْنُ دِينَارٍ فِي الْحَدِيثِ شَيْءٌ لَا أَرَاكَ تُحَدِّثُهُ قَالَ قَالَ الرَّجُلُ مَالِي قَالَ لَا مَالَ لَكَ إِنْ كُنْتَ صَادِقًا فَقَدْ دَخَلْتَ بِهَا وَإِنْ كُنْتَ كَاذِبًا فَهُوَ أَبْعَدُ مِنْكَ [ر: ٤٤٧١].

---

١) تعليقات بذل المجهود: ١٢/٤٢٢).
٢) المحلى لابن حزم: ١٢/٢٠٥).
٣) عمدة القارى: ٢١/٩).
٤) عمدة القارى: ٢١/٩).
٥) عمدة القارى: ٢١/١٠).
٦) عمدة القارى: ٢١/١٠).

